بسم الله الرحمن الرحيم

# معارف القرآن پښتو

مع

## آسان ترجمه قرآن

از مفتي محمد تقي عثماني مدظله

تاليف مفتي محمد شفيع رحمه الله

د مترجم شاه فيصل د طرفه اضافات

1. لفظي او بامحاوره ترجمه
2. د خلاصه تفسير په ضمن کښې قرآني آياتونه
3. په حاشيه کښې د غير تفسير شوي آياتونو تفسير
4. په ځينو ځايونو کښې [illegible] الفاظو اضافه
5. د [illegible] اشعار و [illegible]

فيصل كتب خانه
[illegible] پشاور
0321-[illegible]

محقق جدید ایډیشن

# معارف القرآن

جلد (۳)

پښتو

تالیف

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمۃ اللہ علیہ

مع

## آسان ترجمه قرآن

حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظله

مترجم

حضرت مولانا شاه فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امداد العلوم وجامعه اسلامیه چارسده

**خصوصیات مع تسهیلات واضافات**

(۱) هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول (۲) آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله (۳) ټکی په ټکی او روانه ترجمه (۴) د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه لیکل (۵) په حاشیه کښې د غیر تفسیر شده آیاتونو تفسیر (۶) د عربی او فارسی د اشعارو په پښتو کښې ترجمه (۷) د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل


فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنگی قصه خوانی بازار پیښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دکتاب نوم : معارف القرآن پښتو محقق ایډیشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتي محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه
مفتي اعظم پاکستان

مترجم : مولانا پروفیسر (الباحث فی الدکتوراه) شاه فیصل
فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، جامعه اسلامیه چارسده

خورونکي : فیصل کتب خانه محله جنګي

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست مضامین

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

**پاره نمبر [۵]**

**پاره نمبر [۲]**

وَّالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ كِتٰبَ

او واده شوي | دښځو نه | ما سوا دهغه ښځونه | چې مالکان شوي دی | ښئ لاسونه ستاسو | دا فرض دي

اوواده شوي ښځې | مگرهغه ښځې حرامې نه دی چې ستاسو په ملکیت کښې راشی | دا قانون دي

اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ اَنْ

دالله | په تاسو | اوحلالې کړې شوی دی | ستا سو دپاره | هغه چې ماسوادی ددغه محرماتونه په دې شرط | چې

دالله ﷻ چې تاسودپاره ئې جوړ کړې دې | ددې نه سوا هرځومره ښځې چې دی هغه تاسودپاره حلالې دی

تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِكُمْ مُّحْصِنِيْنَ

طلبوئ تاسو هغوئ | په مالونوخپلوسره | په داسې حال چې ساتونکی یئ هغوئ لره په قلا دنکاح کښې |

دخپلو مالونو (مهرونو) په ذریعه ئې طلبوئ | د نکاح په قلعه کښې ئې بندونکې ئې

غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ ؕ فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ

نه داچې زنا کونکی یئ دهغوئ سره | بیا هغه چې مزه واخستله تاسو | په هغې سره | دهغوئ نه |

دانه چې صرف خپل شهوت پرې پوره کوئ | بیا چې تاسو کومو ښځونه مزه واخسته ..........

فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً ؕ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ

نوورکړئ هغوئ ته | مهرونه دهغوئ | دفرض په حیثیت سره | اونشته گناه | په تاسو

نو هغوئ ته خپل مهرونه پوره اداکړئ | او په دې کښې هیڅ باک نشته چې دمهر مقرر کولونه پس

فِيْمَا تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْۢ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

په هغه کار کښې | چې راضی شوئ تاسو | په هغې باندې | روستو | دمقررولو دمهرنه | بیشکه الله

تاسوخپل مینځ کښې په څه (کمی زیاتی) باندې راضی شئ | ..........بیشکه الله ﷻ

كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۲۴﴾

دې پوهه | او دحکمت خاوند |

په هرڅه پوهه او صاحب د حکمت دې |

**آسان ترجمه قرآن:** دا رنگ (په تاسو حرام دي) هغه ښځې چه دنورو خاوندانو په نکاح کښې وي هغه چه کومې وینځې ستاسو په ملکیت کښې راشي (هغه مستثنی دي) الله تعالی په تاسو دا احکام فرض کړي دي ددې ښځو نه علاوه د نورو ښځو په باره کښې ئې تاسو ته دا حلال کړي دي چه تاسو خپل مال (بطور مهر) خرچ کړئ او دوی (خپله نکاح کښې) راولئ ، په دې شرط چه تاسو دوی سره باقاعده د نکاح رشته قایمه کړئ او عفت حاصل کړئ ، صرف شهوت پوره کول مقصود نه وي نو کومو ښځو سره چه (نکاح مو وکړله) او فایده مو ترې واخسته هغوی ته هغه مهر ورکړئ کوم چه مقرر کړې شوې دې هنه د مهر مقررکولونه وروستو هم چه تاسو په کوم (کمي بیشي) باندې راضي شوئ په دې کښې په تاسو څه گناه نشته او یقین وکړئ چه الله ته دهري خبرې علم دې دحکمت مالک دې.

## خلاصه تفسیر

[تاسوباندې حرامې کړې شوې ښځې درته مخکښې اوخودلې شوې دهغې نه څلورم قسم] ﴿وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ﴾ هغه ښځې دی چه دخاوندانو والا دے مگر [په دې قسم کښې هغه شامل ندی] چه [په شرعی طور] ستاسو په ملکیت کښې راشی [او ددوی حربی خاوندان په دارحرب کښې موجود وی او دیوحیض راتلو یا دحمل څېړولو نه پس تاسو دپاره حلالے دی لکه چه په هدایه کښې دی] ﴿كِتٰبَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ﴾ الله تعالی دا احکام په تاسوفرض کړی دی ﴿وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ﴾ اوددې ښځو نه سوا نورے [پاتې] ښځې تاسو دپاره حلالے کړې شوی دی یعنی دا چه تاسو دوی لره دخپلو مالونوپه ذریعه [په نکاح کښې راوړل] غواړئی [یعنی مهر کیدل په نکاح کښې ضروری دی او] ﴿اَنْ تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِكُمْ مُّحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ﴾ په دې سے شان چه تاسو [دوی] ښځې جوړےکړئی [چه شرطونه یې په شریعت کښې مشهور دی لکه گواهان هم وی اوهغه څه وختی نکاح هم نه وی،وغیره] یوائې هم مستی اوښکل نه وی [ددې په عموم کښې زنا اومتعه ټول داخل شو گویا چه دے کښې هم مال لگولے شی] ﴿فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ﴾ بیا [دنکاح کیدونه پس] په کومې طریقے سره چه [دمعتبر وشرعی طریقو نه] تاسو ددې ښځونه نفع اخستلې ده ﴿فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً﴾ نو دوی ته [ددې په بدل کښې] ددوی مهرونه ورکړئی کوم چه مقرر شوی دی او [دامه گنړئی چه دغه مقررشوی کښې د مونږ روږے پشان هیڅ قسم کمے زیاتے راوستل ممکن نه دی بلکه] ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْۢ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ﴾ دمقرر کیدونه پس هم په کوم [مقدار] چه تاسو [ښځه خاوند] خپل مینځ کښې راضی شئ په دې کښې په تاسو هیڅ گناه نشته [لکه خاوند نورمهر زیات کړو یا ښځې کم کړو یا ئے بیخی معاف کړو چه په هرشان صحیح دی] ﴿اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا﴾ بیشکه الله ﷻ ډیر پوهیدونکې دې [ستاسو ښیگړې ښے پیژنی] ډیر د حکمت خاوند دے [ددغې حکمونو په لحاظ ئے احکام مقر کړی دی اگرچه چه چرته ستاسو په پوهه کښې رانشی].

## معارف اومسائل

په تیروآیتونوکښې همیشه دپاره ددری قسمه حرامو کړې شوږزنانوبیان اوشوچه محرمات نسبیه،محرمات رضاعیه اومحرمات بالمصاهرة وې،اوس په دې آیت کښې څلورم قسم هغه نکاح کړې شوې ښځې دی چه ترهغې پورې حرامې دی،ترڅوچه دبل په نکاح کښې وی لکه فرمائی:

قوله تعالٰی: ﴿وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ﴾ یعنی دخاوندانووالاښځې هم حرامې کړې شوې،یعنی څوپورې چه یو ښځه دڅاسړی په نکاح کښې وی،بل سړې ورسره نکاح نه شی کولې،دې نه په ښکاره ډول معلومه شوه چه یوه ښځه په یووخت دیونه دزیات خاوندانوښځه نشی کیدې،ددې زمانې ځنې جاهل بې دینه وائی چه هرکله سړی دیوې نه زیاتې ښځې [څلور]کولې شی نوپکاردې چه یوې ښځې له هم دیونه زیات مړونه رواوې،چنانچه دامطالبه ددې آیت نه بیخی خلاف ده،داسې جاهلانه خبرې کوونکی خلق په دی نه پوهیږی چه سړولره گنړې بیبیانې یونعمت دې چه په هرمذهب اوهرملت کښې رواگرځولې شویدی اودانسان تاریخ پرگواه دې لیکن ښځې لره په یووخت کښې دیونه زیات خاوندان کیدل دغې ښځې لره هم سخت مصیبت دې اوکوم دوه سړی

چه دَیوې ښځې خاوندان جوړشي هغوئې دپاره هم دَشرم خبره ده، اوخالص شرم دې، دبچي اوماشوم به هم بده ورځ داسې وی چه نسب به ئې دیونه هم نشی ثابتیدې ولې چه ددې دپاره څه لاره نشی رایستلې. په دې لحاظ داسې زیاته ناکاره مطالبه هغه خلق کولې شي چه دانسانیت سراسري دشمنان وی او دحیا ،غیرت جنازه ئې وتلې وی- داخلق دَهغه رحمتونونه دپوره انسانیت دَمحرومه کولو مرستیالان وی چه دَاولاداو دَمورپلار دَحقوقو دَلین نه راپیدا کیږی، ولې چه هر کله نسب ثابت نشی نو دَیوتربله حقوقو او فرائضو اداکولو ذمه واری به په چا راځی؟

دطبیعت او دَعقل په اعتبار هم که اوکتلې شی نو دا خبره روانشی ښکاره کیدې چه دَیوې ښځې دڅو مړونه شی-

① دښځې خاوند جوړیدو مقصد انساني نسل جاری ساتل دی، په دې اعتبار سره ګنړې ښځې خو د یوسړی نه بارداره کیدې شی لیکن دګنړو مړونو ښځې دیوسړی نه دَبارداره کیدو هیڅ څه طریقه نشته چه ګنی هم هغه ددَماشوم پلار ثابت شی او دَنوروزور، طاقت دهسې بربادشی بلکه په داسې شان دَټولو مړونو طاقت بَربادشی او هیڅ یو به اصل پلارنشی ثابتیدَې بلکه دشهوت پوره کولونه سوا به ورته نور څه نشی ونیلې-

② د تجربې اولیدلو کتلونه ثابته ده چه ښځه دَسړی په مقابله کښې داسې یونازک انسان دې چه دکال په زیات برخه کښې دَفاندې اغستوجوګه هم نهٔ پاتې کیږی، ځنې حالاتو کښې دې دپاره دَیو خاوند حقوق پوره کول هم ممکن نهٔ وی نو دګنړو خاوندانو حقوق به څنګه پُوره کړې شی؟

③ دَجسمانی طاقت په لحاظ ،دَښځې په مقابله کښې نارینه زیات روغ موټ دې، که دَیوسړی جنسی طاقت دَعاموسړونه زیات وی، په یوه ښځه ئې ګُذاره نشی کیدې نو په جائز طریقه ورته ددویم او دریم نکاح موقعه ملاویدل پکار دی ورنه هغه به ناروا لارې چارې اختیار کړی او پوره معاشره به ګډه وډه کړی خو دَښځې نه دداسې خرابولو اندیښنه نشته. چنانچه اسلامی شریعت دامسئله دومره زیاته ضروری ګرځولې ده چه دَسړی په نکاح کښې دَښځې بل سړی سره نکاح حرامیدل ئې خولاڅه کوې بلکه طلاقه شوې ښځه یادَمړشوی خاوندوالا ښځه ترڅو چه عدت کښې وی بل سړی سره ئې نکاح نشی کیدې-

قوله تعالٰی: ﴿إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ دا جمله ، دَ - ﴿وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ﴾ -نه استثنا ده مطلب ئې دادې چه دَ کومې ښځې میړه وی نو بل سړی سره ئې نکاح کول ناروا دی، سوا ددې نه چه یوه ښځه دچاپه ملکیت کښې دوینځې په حیث راشی، مثلاً مسلمانان، دَدارحرب کافرانو سره جهاد او کړو او دهغه ځانې نه ئې بندیوانې کړې ښځې راوستې، چه دلته داراسلام ته راغلې او خاوندان سره نکاح ختم شو، اوس که داسې ښځه کتابیه یا مسلمانه وی نو دَداراسلام هر یو مسلمان ورسره نکاح کولې شی او که امیر المؤمنین ئې وینځه او ګرځوی نو یو فوځی سپاې ته ئې دَمال غنیمت په ویش کښې ورکړی نو بیا ترِ هم فائده اغستل روا دی- خو هله چه یو حیض ئې تیرشوې وی او که بچې ئې په خیټه ؤونو دهغې خیږیدل ضروری دی-

**مسئله**: که یوه کافره ښځه په دارحرب کښې مسلمانه شی او خاوند ئې کافر وی نو دَهغه دَنکاح نه به هله وُوځی چه درې حیضه تیر کړی-

**مسئله** که یوه کافره ښځه داراِسلام ته په راتلو مسلمانه شوه او خاوند ئې کافر وو، نو دَشریعت حاکم به ئې خاوند ته اسلام وړاندې کړی که هغه دَمسلمانیدو نه انکار او کړی نو قاضی دِ دې دواړو کښې

بیلتون راولی دا به طلاق حسابیږي، چه عدت تیر کړي نو بیا به یو مسلمان سره نکاح کولې شي۔ ﴿کِتٰبَ اللّٰهِ عَلَیۡکُمۡ﴾ د ذکر شوؤ محرماتو حراموالي د الله تعالی دا رخه فیصله شوې دې ﴿قال القرطبي اي حرمت هذه النساء کتابا من الله علیکم﴾ (۱)

﴿وَاُحِلَّ لَکُمۡ مَّا وَرَآءَ ذٰلِکُمۡ﴾ یعنی تر اوسه ذکر شوؤ محرماتو ښځو نه علاوه، نورې ښځې تاسو لره حلالې دي، مثلاً د تره لور، د خاله [ترور] لور، د ماما لور، د ماما او د تره ښځه چه دوئ وفات شي یا طلاق ورکړي، په شرط د دې چه دغه ذکر شوي قسمونه به بلې خپلوئ سره حرام شوې نه وي، دا شان د هغه چا ښځه چه صرف په خُله ئې ورته خوئې وئیلې وي، کُله چه هغه طلاق ورکړي یا مړ شي، چه ښځه ئې مړه شي نو د هغې خور سره ـ وغیره ـ بې شمیره صُورتونه جوړیږي، دا ټول ئې د ﴿مَّا وَرَآءَ ذٰلِکُمۡ﴾ په عموم کښې داخل کړل۔

مسئله په یو وخت کښې د خلورو ښځونه زیاتې په نکاح کښې ساتل ناروا دي، د دې تفصیلی بیان د سورة نسآء په شروع کښې تیر شوې دې، په نزدې روایتونو کښې د دې ذکر په نه لیدو سره چاته دا غلط فهمی نه دی راتلل پکار چه د ﴿مَّا وَرَآءَ ذٰلِکُمۡ﴾ په عموم کښې بغیر د څه پابندئ نه، ښځو سره نکاح کول روا دي، دا شان ډیرې حرامې شوې ښځې هغه دي چه ذکر ئې په احادیثو شریفو کښې راغلې دې، او په آیتونو کښې ورته اشارې هم شته او مونږ د تفسیر په ترڅ کښې خائې په خائې ذکر کړې دي۔

قوله تعالی: ﴿اَنۡ تَبۡتَغُوۡا بِاَمۡوَالِکُمۡ﴾ [د حرامو کړې شوؤ ښځو د ابیان ستاسو د پاره څکه ذکر کړې شوې دې چه د خپلو مالونو په ذریعه حلالې ښځې اولټوئ او هغوئ په خپل نکاح کښې راولئ۔

ابوبکر جصاص په ،، احکام القرآن ،، کښې لیکی چه دې نه دوه خبرې معلومه شوې یو دا چه نکاح د مهر نه نشی خالی کیدې [تردې که ښځه خاوند خپل مینځ کښې د مهر د نیشتوالي فیصله په نکاح کښې اوکړي نو هم به مهر ضروری وی چه تفصیل ئې د فقهې په کتابونو کښې ذکر شوې دې] بله تر دا خبره معلومه شوه چه مهر هغه څیز پکار دې چه مال ورته وئیلې شي. د احنافو مذهب دا دې چه لسو درهمو نه کم مهر نه دې پکار (۲)، یو درهم درې نیمې ماشې چاندی کیږي۔

قوله تعالی: ﴿مُّحۡصِنِیۡنَ غَیۡرَ مُسٰفِحِیۡنَ﴾ [د خپلو مالونو په ذریعه حلالې ښځې طلب کوئ او دا اګنړئ چه د ښځو لټول د پاک لمنئ او خان محفوظ ساتلو د پاره دې] چه د نکاح ډیر ضروری مقصد دې، او د نکاح په ذریعه دا څیز حاصل کړئ، په مال لګولو سره د زنا د پاره ښځې مه لټوئ۔

دې نه معلومه شوه چه اګرچه زناکار خلق هم مالونه لګوی لیکن دغه مال لګول هم حرام دی او د دغې مال په ذریعه چه کومه ښځه حاصله کړې شی هغې نه فائده اغستل حلال نه دی۔

د ﴿غَیۡرَ مُسٰفِحِیۡنَ﴾ لفظ زیاتولو سره ئې د زنا نه منع اوکړه او دې ته هم اشاره راغله چه زنا کښې صرف شهوت پوره کول، او به تویول او بیول، مقصود دی څکه چه دې سره اولاد طلب کول او نسل انسانی جاری لرل په اراده کښې نه وی، مسلمانانو له د پاک لمنی جاری لرلو او د انسانی نسل زیاتولو د پاره خپل طاقت په خائې باندې خرچ کول پکار دی چه طریقه ئې ملک د نکاح او ملک د یمین دې [یعنی نکاح کول یا د وینځې خرید کول]

---

۱) ترجمه: علامه قرطبي فرمایلي دي، یعنی دا ښځې په تاسو حرامے دي، د حکم د الله تعالی د طرف نه مقرر هوے دے۔
۲) أحکام القرآن للجصاص، سورة النساء، باب الاختلاف في مقدار المهر: ج ۲، ص ۳۴

قوله تعالی: ﴿فَمَا اسْتَمْتَعْتُم بِهِ مِنْهُنَّ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ فَرِيضَةً ۚ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَاضَيْتُم بِهِ مِن بَعْدِ الْفَرِيضَةِ﴾ د نكاح كولونه پس چه كومو ښځونه فائده پورته كړئ هغوئ ته خپل مهرونه وركړئ ولې چه دا دا كول په تاسو فرض كړې شويدي۔

په دې آيت كښې دلته د استمتاع، فائده پورته كولونه مراد ورسره وطئ او كوروالي كول دي. كه يو اځې نكاح اوشي او د خاوند كورته منكوحه رارخصت شي چه خاوند ته د دغه فائدې پورته كولو موقعه په لاس ورنشي بلكه د دې نه وړاندې ورته خاوند طلاق وركړي نو نيم مهر واجبيږي. او كه د فائدې پورته كولو موقعه ملاؤشي نو پوره مهر واجبيږي. په دې آيت كښې دې خبرې ته خصوصي مخه راګرځولې شوې ده چه كله ديوې بي بي نه خاوند فائده پورته كړه نو د هغې مهر اداكول په هرشان سره واجب شو په دې كښې كوتاهي كول د اسلامي شريعت نه خلاف دې او انساني غيرت هم دا غواړي چه هر كله د نكاح مقصد پوره شونو د بي بي په حق كښې د كوتاهي او بې ځايه بهانې كول نه وي، البته بي بي ته، شريعت دا حق هم وركړې دې چه مهر وركول كه نغد مقرر شوي وي نو د مهر ترلاسه كولو پورې هغه خاوند ته د ځنځيدو نه او ورتلو ځخه انكار كولې شي۔

**د متعې حرامولې:** د ،،استمتاع ،، لفظ ماده [بنيادي تكى (م، ت، ع) دى چه معنى ئې فائده اخستل دي، دا فائده موندل د بنده او د مال دواړو نه كيدې شي- د عربي قواعدو له مخه د يوې كلمې په بنيادي تكو كښې ،،س،، او ،،ت،، چه زياتي كړې شي نو د طلب او موندلو معنى وركوي- د دې لغوي تحقيق په بنياد د ﴿فَمَا اسْتَمْتَعْتُم﴾ ښكاره مطلب د ټول اُمت په نزد [چه د مشرانو په پل تلي دي] هم هغه دې چه اوس مونږ پورته بيان كړو ليكن يوه فرقه واني چه دې نه اصطلاحي متعه مراد ده او دغه خلق دې آيت شريف له د متعې د حلالوالي د پاره دليل جوړوي، حالانكه د دوئي د دغه مراد كړې متعه هغه ده چه د قرآن كريم د پورته تيرشوي آيت ﴿مُّحْصِنِينَ غَيْرَ مُسَافِحِينَ﴾ نه ئې پوره ترديد كيږي- او تشريح ئې رارواني ده-

د دغه فرقې د دعوې مطابق چه متعه حلاله ده، د دوي په اصطلاح كښې متعه داده چه يوسړې يوې ښځې له د څه رقم يا سامان په عوض كښې هغې نه د فائدې اغستو د پاره ځان ته كړي، نو د دې قسم متعې د دې آيت سره هيڅ قسم تعلق نشته، صرف د اشتقاقي مادې [م-ت-ع] په بنياد د دغه فرقې تردې مطلب اغستو دعوى كړې ده چې د دې آيت مبارك ځخه د حلت متعه ثبوت كيږي.

رومبني خبره خو داده چه هر كله بله معنى هم احتمال لري [اګرچه زمونږ په نزد هغه تاكلې شوې ده] نو د دې د ثبوت به څه طريقه وي؟ بله خبره داده چه قرآن كريم د حرامو كړو ښځو ذكر په دې شان فرمائيلې دې چه د دې نه علاوه، د خپلو اُصولو په ذريعه حلالې ښځې لټوئې، په داسې حال كښې چه اوبه بهيوونكې نه يئې، يعني صرف شهوت پوره كول مومو مقصود نه وي او د ﴿مُّحْصِنِينَ﴾ قيد ئې هم ورسره اولګولو، اچه د پاك لمنئ خيال لرونكې هم يئ [ـــــــ هر كله چه متعه، يو خاص وخت او نيتي پورې كولې شي، لهذا په دې كښې نه اولاد حاصلول مقصود دي، نه كور، وور، آباد ول دي، نه پاك لمنى او خپل حفاظت كول دي، د اشان كومې ښځې سره چه متعه اوكړې شي نو هغې له فريق مخالف وارثه ښځه هم نه ګرځوي، او د خپلو اصلي بيبيانو په شمير كښې نشي راوستې او هر كله چه مقصدئې صرف شهوت پوره كول وي، ځكه سړې او ښځه په عارضي ډول ځان له د نوؤ جوړولتمون پسې وي، هر كله چه دائې صورت دې نو متعه د پاك لمنئ او د ځان د محفوظه كولو ضمانت نه وركوي بلكه دا د دې دشمنه ده-

دَهدائي دَصاحب، امام مالک رحمه الله ته دَمتعې دَرواوالې دَقائل کيدونسبت کول ځکه غلط دی
چه دَهدائي شارح اونورولويولويوفقهاوُداپه ډاګه وئيلي دی چه صاحب دَهدائي نه په دې باره
کښې تسامح او چشم پوشي[ځان آساني]شوې ده[1]
بیاهُم ځنې خلق دعوی لری چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه ترآخره پورې متعه حلاله بلله ليکن داسې
ځکه نه ده چه امام ترمذی رحمه الله په ،،باب ماجاء فی نکاح المتعة[2]،،دوه احاديث داشان نقل
کريدی: ﴿عن علی بن ابی طالب ان النبی ﷺ نهی عن متعة النساء وعن لحوم الحمر الاهلية زمن خيبر﴾
دَحضرت علی رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ دَغزوهٔ خيبرپه موقعه، ښځو سره دَمُتعې
کولو اودَ کورنو خرونو دَغوښې خوړلونه ئې منع فرمائيلې ده
دَحضرت علی رضي الله عنه داحديث بخاری اومسلم هم نقل کړيدې[3]-
② دَامام ترمذی دويم نقل کړې حديث دادې:
﴿عن ابن عباس رضي الله عنه قال انماكانت المتعة فی اول الاسلام حتی اذانزلت الاية الاعلی ازواجهم اوماملكت ايمانهم قال ابن عباس رضي الله عنه فكل فرج سواهما فهوحرام﴾[4]
[دَحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دَاسلام په شروع کښې متعه رواوه تردې چه
آيت ،،﴿أَوْمَامَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ﴾نازل شونوهغه منسوخ شوه، بياحضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائيلی
دی چه شرعی بی بی اوشرعی وينځې نه علاوه دَهرقسم شرمګاه نه فائده اغستل حرام دی-
دلته دومره خبره ضرورشته چه په اول کښې حضرت ابن عباس رضي الله عنه څه زمانې پورې مُتعه
رواګڼرله خودَصحيح مسلم جلد ۱ ص ۴۵۲ مطابق حضرت علی رضي الله عنه پوهه کړاودَترمذی دپورته
ذکرکړې روايت په مطابق دَآيت شريف،، ﴿إِلَّا عَلَىٰٓ أَزْوَاجِهِمْ أَوْمَامَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ﴾نه دَخبرداره کيدوپه وجه
ئې دې نه رجوع اوکړه-
څومره عجيبه خبره ده چه دَمُتعې دَحلالوالی دعويدارخلق[شيعه]په دې باره کښې دَهغه حضرت
علی رضي الله عنه هم مخالفت کوی دَچاچه دوئی دَمحبت اوفرمانبرداره کيدودعويداردی ﴿وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ
ظَلَمُوٓا أَيَّ مُنقَلَبٍ يَنقَلِبُونَ﴾
صاحب دَروح المعانی دَقاضی عياض نه نقل کړی دی چه دَخيبردَغزانه وړاندې متعه حلاله
وه، بياپه غزوهٔ خيبرکښې حرامه کړې شوه، بياصرف دَفتح مکه په ورځ حلاله کړې شوه اودرې
ورځې پس، همېشه دَپاره حرامه کړې شوه[5]-
دا رنګه خبرهم د غور کولو وړ ده چې د الله تعالى دا فرمان ﴿وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ ۝ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزْوَاجِهِمْ أَوْ
مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ ۝﴾يوداسې واضح قرآنی ارشاددې چه دَهيڅ تاويل ځائې پکښې
نشته، چنانچه دې نه دَمُتعې حراموالې صفاښکاره دې اودَدې په مقابله کښې په شاذو قراتونو
تکيه کول قطعاغلط دی-

---

[1] ) فتح القدير، كتاب النكاح، فصل فی بيان المحرمات: ج۳، ص ۲۴۷
[2] ) جامع الترمذی، كتاب النكاح، باب ما جاء فی نكاح المتعة: ج۱، ص ۲۳
[3] ) صحيح مسلم: ج۱، ص ۴۵۲
[4] ) جامع الترمذی، كتاب النكاح، باب ما جاء فی نكاح المتعة: ج۱، ص ۲۳
[5] ) روح المعانی تحت هٰذه الآية: ج۵، ص ۶.۵

لکه حنګه چې مخکښې عرض اوکړې شو چې د ﴿اسْتَمْتَعْتُمْ﴾ نه د اصطلاحي متعه مراد اخستلو څخه قطعي دليل نشته دې، هغه محض يو احتمال دې. دا احتمال د ﴿إِلَّا عَلَىٰ أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ﴾ مضمون د قطعي الدلالة مضمون هيڅ کله معارض نشي کيدې. فرض کړه که دواړه دليلونه په قوت کښې هم برابروی نو دا به ونيلې شی چه دواړه دليلونه په حلت او حرمت کښې متعارض نه دی. او فرض کړه که تعارض اومنلې شی نو بيا هم عقل سليم تقاضا داده چې محرم ته په مبيح باندې ترجيح پکار ده.

مسئله: دمُتعې دَنکاح پشان، وختی نکاح هم حرام اوباطل دې، وختی نکاح دې ته وائي چه تريو مقرر وخته پورې نکاح اوکړې شی- اودَې دواړو ترمنځه فرق دادې چه په مُتعه کښې، دمُتعې، لفظ ونيلې شی اومُؤقت(وختی)نکاح دَ، نکاح په لفظ سره کيږی-

قوله تعالىٰ: ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَاضَيْتُم بِهِ مِن بَعْدِ الْفَرِيضَةِ﴾ ددې مطلب دادې چه هر کله ښځه خاوند خپل منځ کښې مَهر اوټاکی او مقدارئې مقرر کړی نو بيا هم دا يو داسې ټاکلې څيزنه دې ګنړل پکار چه څه کمې زياتې پکښې نشی کيدې بلکه خاوند پکښې په خپله خوښه زياتې کولې شی اوښځه ئې پکښې په خپله خوښه کمې هم کولې شی اوسراسرئې معاف کولې هم شی اوکه دَالفاظو عموم ته اوګورونو داخبره ترهم معلوميږی چه که دَمَهر اداکول سمدستی مقررشوی وونودَهغې په ځائې داسې هم کيدې شی چه ښځه په خپلې خوښې څه ډيل سره ئې اغستل مقرر کړی او په دې کښې به څه ګناه هم نۀ وی-

قوله تعالىٰ: ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ دآيت په ختميدو داجُمله هم زياته شوه په دې کښې يوه داخبره اوښودلې شوه چه الله تعالى دَهر څه نه خبردې، که ددې حکمُونو څوک خلاف اوکړی اوقاضی، حاکم يابل انسان پرې اګرچه خبرنشی بياهم الله تعالى خو په ټول هر څه خبردې- په هرحال کښې هغه نه ويره کول پکاردی

اوبله داخبره اوښودلې شوه چې زمونږ ټول احکام په حکمت باندې اډانره دی- حکمت هغه باريکه خبره ده چه هرڅوک پرې نشی پوهيدلې، چې هر کس په پوهه کښې نه راځی، دَحراموالی اوحلالوالی کوم حکمونه چه په آيتونو کښې ذکرشوی دی دَهغې علت که دَچا په پوهه کښې راځی اوکنه راځی نو په هرحال کښې ئې منل لازم دی، ځکه چه که مونږ ته ئې علت معلوم نۀ وی، نودَ صاحب حُکم، يعنی الله تعالى ته خو معلوم دی چه عليم اوحکيم دې

ددې زمانې ډير ليک لوستونکی خلق او جاهلان د الله ﷻ د حکمونو علتونه تلاش کوی، که دوئ ته څه علت په ګوتو ورنشی نو معاذ الله دوئ دالله ﷻ هغه حکم نامناسب ګنړی او يا وائی چې دا د نوی دور د تقاضو مطابق نه دې ، دې الفاظو سره دداسې خلقو خله بنده کړې شوه او ونيلې شوی دی چې تاسو نادان يئ او الله ﷻ د علم خاوند دې ، تاسو ناپوهه يئ او الله ﷻ حکيم ذات دې ، خپلې پوهې لره د حقانيت معيار مه جوړوئی ، والله اعلم وعلمه اتم واحکم.

وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا أَنْ يَّنْكِحَ

| او هغه څوك | چې طاقت نه لري | په تاسو كښې | د مال | چې نكاح اوكړي

او صاحب د حكمت دې | او په تاسو كښې چې څوک دا طاقت نه لري چې هغه

الْمُحْصَنٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ فَمِنْ مَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ

د اصيلو | مومناتو ښځو سره | نو د هغه وينځو سره دې نكاح اوكړي | چې مالكان شوي وي ښي لاسونه ستاسو

اصيلې مسلمانې ښځې سره نكاح اوكړي | نو هغه مسلمانو ښځو سره دې نكاح اوكړي چې تاسو نې مالكان ني

مِّنْ فَتَيٰتِكُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ؕ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِإِيْمَانِكُمْ ؕ بَعْضُكُمْ

دهغه وينځو ستاسو نه | چې مومنانې وي | او الله | ښه عالم دې | په ايمانونو ستاسو | بعضې ستاسو

الله ﷻ ته ستاسو د ايمان حال ډير ښه معلوم دې | كيديشي وينځه د اصيلې نه ښه مسلمانه وي | تاسو ټول ..........

مِّنْ بَعْضٍ ۚ فَانْكِحُوْهُنَّ بِإِذْنِ أَهْلِهِنَّ وَآتُوْهُنَّ أُجُوْرَهُنَّ

د بعضو نه دي | نو په نكاح واخلئ هغوئ | په اجازت | د سر پرستانو دهغوئ | او وركړئ هغوئ ته | مهرونه دهغوئ

يو شان يئ نو هغوئ سره د مالكانو په اجازت نكاح اوكړئ | او د رواج مطابق ورته مهرونه هم وركړئ

بِالْمَعْرُوْفِ مُحْصَنٰتٍ غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ أَخْدَانٍ ۚ

د رواج مطابق | چې پاتې شي په قلعه د نكاح كښې | او نه وي زنا كارې | او نه وي نيونكې د پټو يارانو

اچې هغوئ د نكاح په قلعه كښې محفوظې شي | او په ښكاره بدكارې نه كوي | او نه پټ پټ ياران نيسي

فَإِذَآ أُحْصِنَّ فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ

بيا هر كله چې راشي په قلعه د نكاح كښې | نو كه راتلل اوكړل هغوئ | په بدكارئ سره | نو مقرره هغوئ د پاره | نيمه

نو هر كله چې هغوئ په نكاح سره محفوظې شي | او دې نه پس بدكاري اوكړي | نو هغوئ ته د اصيلې

مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ ؕ

دهغې | چې ده په اصيلو ښځو باندې | د سزا نه | دا حكم | د پاره دهغه چا دى | چې يريږي | د ماتيدو د حد نه | تاسو نه

په نسبت نيمه سزا وركړئ | .................... دا آسانى هغه چا د پاره ده چې هغه سره د زنا ويره وي

وَأَنْ تَصْبِرُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٢٥﴾

او كه صبر اوكړئ تاسو | دا غوره ده | ستاسو د پاره | او الله | ښښونكې | مهربان دې |

او كه تاسو صبر اوكړئ | نو دا ستاسو د پاره ډير بهتره ده | او الله ﷻ ښښونكې مهربان دې |

**آسان ترجمه قرآن:** او په تاسو كښې چه كوم خلق د دې طاقت نه لري چه د آزادو مسلمانانو ښځو سره نكاح وكړي نو هغوى په هغه مسلمانانو وينځو د چا سره نكاح كولې شي چه ستاسو په ملكيت كښې دي او الله ته ستاسو د ايمان پوره حالت معلوم دې تاسو ټول په خپلو كښې يو شان يئ نو دې وينځو سره د دوى د مالكانو په اجازت باندې نكاح وكړئ ، او دوى ته د قاعدې مطابق مهر وركړئ په دې شرط چه دوى سره د نكاح رشته قايمه كړئ نو دوى لره پاكدامنې جوړې كړئ ، نه دې هغوى د شهوت پوره كولو د پاره څه (ناجائز) كار وكړي او نه دې په پټه ناجائزه اشنايان پيدا كړي بيا چه كله هغوى د نكاح په حفاظت كښې

راشي او دي نه وروستو څه لويه بې حيائي (يعنې زنا) وكړي نو دوى باندې به دهغې سزا نه نيمه سزا وي چه (نا واده كړي) آزادو ښځو لره مقرر ده دا ټول (يعني د وينځو سره نكاح كول) په تاسو كښې دهغه چا دپاره دي چه هغوى ته (دنكاح نه كولو په صورت كښې) گناه كښې د مبتلا كيدو خطره وي او كه تاسو صبر وكړئ نو دا تاسو دپاره ډيره بهتره ده او الله ډير بخښونكې، مهربانه دې.

**ربط:** مخكښې نه د نكاح بيان راروان دې . په دې وجه ددې په باب كښې شرعي وينځو سره د نكاح كولو ذكر شروع شو. او بيا هم ددې متعلق د حد حكم بيان كړې شو چې د وينځې او غلام حد د آزادې سړى اوښځې څخه مختلف وي.

## خلاصه تفسير

﴿ وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا اَنْ يَّنْكِحَ الْمُحْصَنٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ ﴾ او څوك چه په تاسو كښې پوره قدرت او گنجائش نه لرى آزادو مسلمانانو ښځو سره دنكاح كولو ﴿ فَمِنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ فَتَيٰتِكُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ﴾ نو هغوئ دې دخپل مينځ [دخلقو] دمسلمانانو وينځو نه چه ستاسو دخلقو [دشريعت له مخه] په ملكيت كښې دى نكاح دے اوكړى [ولے چه داكثرو وينځو مهروغيره كم وي،او غريب ته ئے په واده كولو كښې څه شرم هم نه وى] ﴿ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِكُمْ ۚ بَعْضُكُمْ مِّنْ بَعْضٍ ۚ ﴾ او [دوينځے سره په نكاح كولو كښې دے شرم نه كوى ولے چه كيديشى چه په دينى لحاظ هم هغه دتاسو نه زياته غوره وى خكه چه غوره والے د دين په ايمان باندې اړه لرى او] ستاسو دايمان پوره حالت يواځې الله تعالى ته معلوم دے [چه په دې كښې څوك زيات لوړ ا وڅوك زيات ښكته دې څكه چه دا زړه سره تعلق لرى او پوره خبرئے يواځې الله تعالىٰ دې او ددنيا له مخه دشرم نه زياته وجه دنسب بيلتون دې نو په دې كښې په اصل بنياد حضرت آدم ﷺ] كښې دشريكيدوپه [اعتبار سره] تاسو ټول په خپل مينځ كښې برابريئ [نودشرم كولو څه وجه ده] نو [هر كله چه دنيشتوالى دشرم وجه معلوم شوه نو د ذكر شوى ضرورت په وخت] ﴿ فَانْكِحُوْهُنَّ بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ ﴾ دوى سره نكاح كوئى [خو شرط دا هم دے چه] ددوى د مالكانو په اجازت سره [دوى] ﴿ وَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ﴾ اوددوى [مالكان] ته ددوى مهر د [شرعي] قاعدې موافق وركوئى [اودامهر وركول] ﴿ مُحْصَنٰتٍ غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ اَخْدَانٍ ۚ ﴾ په دې سے شان سره [دعوى] چه دوى نكاح شوې ښځې جوړے كړې شى نه خوپه ښكاره بدكارى كوونكې وى اونه په پټه آشنائى كوونكې وى [يعني دغه مهر دے دنكاح په مقابله كښې وى دزنا د اجرت وركولو په ډول به حلال نه وى] ﴿ فَاِذَآ اُحْصِنَّ فَاِنْ اَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ ۚ ﴾ بياكله چه دغه وينځے په نكاح كښې راوستې جوړے كړى شى نو كه چرې هغوى د ډيرے بے حيايئ كار [يعنى زنا] اوكړى نو [پس دثبوت نه په شرط ددې چه مسلمانے وى] پدوى به ددې سزانه نيمه سزا [جارى] كيږى چه [په ناواده شوو] آزادو ښځو باندې وى [څنگه چه نكاح نه رومبے هم دوينځو هم دغه سزا وه اودغه شان دغلامانو هم] ﴿ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ ۚ ﴾ دا [وينځو سر نكاح كول] هغه چا دپاره [مناسب] دى چه په تاسوكښې [دشهوت دغلبے په وجه اوپه دې وجه چه آزاده بى بى ورته په لاس نشى راتلے] زنا [كښې اخته كيدو] انديښنه لرى [او څوك چه انديښنه نه لرى هغه لره مناسب نه دى] ﴿ وَاَنْ تَصْبِرُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ ﴾ او [كه ددې انديښنے په حالت كښې هم په خپل نفس باندې قادر وى نو] ستاسو زغم كول زيات غوره دى [وينځے سره

د نکاح کولو په نسبت] او [دا شان] ﴿وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ الله ﷻ لوئې بخښوونکې دې [که دمکروهوالی په صورت کښې ئې هم نکاح اوکړو نو مونږ به يئ ګرفت نه کوو] او لوئې درحمت خاوند دے [چه دحرامولو حکم ئے اونکړو].

## معارف اومسائل

﴿طَوْلًا﴾ مالداری اوقدرت ته وئيلې شي، دآيت مطلب دادې چه څوک آزادو ښځوسره دَنکاح کولو قدرت نۀ لری، یاورسره دَدې سامان نۀ وی نو مؤمناتو وينځوسره نکاح کول پکاردی، دينه معلومه شوه چې څومره پورې ممکنه وی نو آزادې ښځې سره دې نکاح اوکړي وينځې سره دنکاح نه کوی اوکه وينځې سره نکاح کول راپيښ شي نومؤمنه وينځه دلټوی. دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دامذهب دې چه آزادو ښځوسره دَنکاح دقُدرت لرلو یاوجود وينځې سره نکاح کول یاکتابی وينځې سره نکاح کول مکروه دی.

اودَحضرت امام شافعی رحمه الله اودنوروامامانو رحمهم الله په نزدآزادو ښځوسره دَنکاح کولو دقُدرت لرلو یاوجود وينځې سره نکاح کول حرام دی، اوکتابي وينځې سره نکاح کول مطلقاروانۀ دی(۱) -

په هرحال وينځې سره دَنکاح کولونه ځان ساتل، آزادسړی دپاره په هرحال کښې غوره دی اوکه مجبوراکول وی نومؤمنې وينځې سره دکوی- وجه ئې داده چه دَوينځې نه پيدا کيدونکې اولادبه دَهغه چاغُلام یاوينځه وی چه ددغې وينځې مالک وی اوغيرمؤمنې وينځې نه چه کوم اولاد پيدا کيږی چه هغه به دَموريه طريقه بل څه دين اختيارکړی لهذااولادلره دَغُلامئ نه بچ کولواومؤمن جوړولو دپاره داضروری دی چه دبچومورد آزاده وی اوکه وينځه وی نوکم ناکم مؤمنه خودضرور وی چه دماشوم ايمان په حفاظت کښې پاتې شي، خکه علماء کرامو فرمائيلی دی چه کتابی ښځه که آزاده وی هغې سره اګرچه نکاح کول درست دی، بياهم ترځان ساتل زيات غوره دی اوپه دې دَورکښې ددې اهميت ديرزيات دې ولې چه دَيهودونصاراَو ښځې عموما مسلمانانوسره په دې وجه نکاح کوی چه خپل خاوندا ودَخاوند انو اولاد خپل دين ته راواړولې شي.

بيائې اوفرمائيل: ﴿وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِكُمْ ؕ بَعْضُكُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ﴾ [الله تعالى لره ستاسو دَايمانونوپُوره علم دې، ايمان دَغوره والی وجه ده، کله کله وينځه اوغلام په ايمانی مرتبه کښې دآزادنارينه اوزنانه نه زيات وی، په دې وجه مومنی وينځې سره نکاح کولونه کرکه مۀ کوئ بلکه دَدې دَايمان قدراوکړئ.

په آخره کښې ئې اونيل: ﴿بَعْضُكُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ﴾ [آزاد اوغُلام دَيوجنس [بنيادمونه انسانان] دی اوټول هم دَيوکس [حضرت آدم ﷺ] نه پيدا شوی دی غوروالې تقوی اوايمان سره اړه لری

﴿قال المظهری فيهاتان الجملتان لتانيس الناس بنكاح الاماء ومنعهم عن الاستنكاف منهن﴾ (۲) دې دواړوجملو مطلب دادې چه دَوينځونکاح سره سمون پيدا کړئ، کرکه ترمه کوئ[-

قوله تعالٰى: ﴿فَانْكِحُوْهُنَّ بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ وَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ﴾ [وينځوسره دَهغوئ دَمالکانوپه اجازت نکاح کوئ که هغوئ اجازت ورنکړی نو دَوينځونکاح به صحيح نۀ وی[ ولې چه وينځه په خپل ځان هم اختيارنۀ لری اوداسې غُلام هم چه هغه بغير دَخپل آقا [مالک] دَاجازت نه بغير نکاح نشی کولې.

---

۱ ) بدائع الصنائع، كتاب النكاح، فصل ومنها بأن لا تكون معتدة الغير: ج ۲، ص ۲۶۸

۲ ) تفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۸۱

بیانې اوفرمائیل چه وینخوسره نکاح کوئ نو دهغوئ مهر په ښه شان سره اداکوئ اخوادیخواتیل جت پکښې مذ کوئ اوپوره ورته اداکوئی، دوینځې ګنړلوپه وجه ورته تکلیف مه ورکوئ ـــ په دې لړ کښې دامام مالک رحمه الله مذهب دادې چه مهر دوینځې حق دی، اونوراماما‌ن رحمهم الله فرمائی چه ځنګه ددې مالک آقادې دغه شان ددې دمهر [مال وغیره] مالک هم آقادې.

قوله تعالی: ﴿ مُحْصَنٰتٍ غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ أَخْدَانٍ ﴾ [مؤمنانو وینخوسره نکاح کوئی په داسې حال کښې چه هغوئ پاک لمنې وی، نه مسافحات وی [چه په ښکاره زناکوی] اونه په پټه باندې آشنائی کوونکې وی، ګوچه دلته دوینخوپه باره کښې ئې فرمائیلی دی چه نکاح دپاره پاک لمنې وینځې لټوئ، لیکن آزاده ښځه چه زناکاره وی دهغې دنکاح نه ځان ساتل هم زیات غوره اوبهتردی.

ځنګه چه آیت نه معلومه شوه چه اصیلې ښځې سره مودنکاح کولوقدرت نه وی نووینځې سره نکاح کوئی، دې نه داهم ثابته شوه چه متعه روانه ده، ولې که متعه رواوې نواصیلې سره دنکاح کولودقدرت نه لرلوپه صورت کښې بیادیوکس دپاره زیات آسان صورت دمتعې ؤچه جنسی خواهش به ئې هم پرپوره کیدو اومالې بوج به ئې هم دنکاح په مقابله کښې ډیرکم کیدو داشان آیت کښې ﴿ مُحْصَنٰتٍ غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ ﴾ سره دوینخوصفت بیان کړې شوې دې اودمتعې په صورت کښې خوهم سفاح اوسفاح [زنا او زنا] وی، هغه داشان چه یوه ښځه په لړه موده کښې دګڼروسړوپه استعمال کښې راځی، اوبچې ئې هم چاته منسوب کولې نشی نودبچی خیرولوفائده ئې هم هیڅ نشوه اودتولوقوت صرف په شهوت پوره کولوکښې بربادیږی.

بیانې اوفرمائیل: ﴿ فَإِذَآ أُحْصِنَّ فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ ﴾ [هر کله چه وینځې موپه نکاح کښې راغلې اودهغودپاک لمنوپاتې کیدوانتظام اوشواوبیاهم زنااوکړی نوورته نیمه سزا به ورکولې شی دهغې سزا، چه اصیلوښځودپاره مقرره ده، دې نه ناواده کړې آزادې ښځې مراددی، ناواده اصیل سړې اواصیلې ښځې نه چه زناصادره شی نوسل دری سزابه ورکولې شی چه ذکرئې دسورة نورپه بل آیت کښې دې، البته دواده کړی اصیل سړی اوواده کړې اصیلې ښځې دپاره دزناکولوسزارجم دې چه په کاڼوویشتلوسره ئې وژل دی، هر کله چه داسزا نیم کیدلې شی نو په دې وجه دڅلورو اماما‌نو مذهب هم دغه دې چې د وینځې، غلام نه چه هرکله زناصادره شی نوچه واده کړی وی یانا واده کړی، په دوارو صورتونو کښې به ورته سزاپنځوس پنځوس دری ورکولې شي، دوینځوحکم خوپه آیت شریف کښې ذکرکړې شویدې اودلالة النص په ډول دغلام مسئله هم ددې نه معلومه شوه.

﴿ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ ﴾ [اووینځوسره دنکاح کولواجازت هغه سړی ته دې چه په زناکښې داخته کیدواندیښنه لری.

﴿ وَأَنْ تَصْبِرُوا خَيْرٌ لَّكُمْ ﴾ [که دزناداندیښنې لرلوباوجود هم صبراوکړئ اوخپل ځانونه پاک دامنه اولرلې شئ نودا ستاسودپاره ددې خبرې نه غوره ده] چه وینځوسره نکاح اوکړئ.

دآیت په ختمولوئې اوفرمائیل ﴿ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ [اووینځو سره نکاح کول مکروه دی، که په دې مکروهوالی موعمل اوکړو، نوبیا به موهم الله تعالی معاف کړی اوهغه درحم خاوند هم دئې ولې چه وینځوسره ئې دنکاح کولواجازت ورکړې دې اوبند کړی ئې نه دې.

**فائده:** دپورتنی آیت په تفسیر کښې چه دغلام اووینځې ذکرراغلې دې دهغې نه شرعی غلام اووینځه مراددی چه کافران سړی اوښځې به دجهادپه وخت بندیوان کړې شواوامیر المؤمنین به

په مجاهدینو کښې تقسیمول، دغه بندیان به وینځې غلامان جوړشو، او دهغوئ راتلونکې نسل به هم وینځې غلامان ؤو (سوادیو څو صورتونو نه) چه تفصیل ئې دفقهې په کتابونو کښې موجود دې، کله نه چه مسلمانانو جهاد کول پرېښي دي او دخپل جهاد او صلح ادارې ئې ددین ددشمنانو په اشارو باندې اودرولې ده او دغیرشرعي أصولو پابندشوي دي دهغې راسې دوینځو، غلامانو نه بې نصیبه شوي دي، اوسني دکورونو نوکران، خادمان، وینځې غلامان خکه نه دي چه داآزاد دي. په ځنې علاقو کښې خلق، ماشومان خرڅوي او غلامان ئې جوړوي، داسوده او سوچه حرام دي، او په داسې کولو سره هغوئي وینځې غلامان نشي جوړېدې.

يُرِيدُ اللّٰهُ

| غواړي | الله

| الله دا غواړي

لِيُبَيِّنَ لَكُمْ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ

چې اوښائي تاسو ته طریقې | او اروان کړي تاسو | په طریقو | دهغه نیکانو خلقو | چې مخکښې ستاسو نه وؤ

چې تاسو ته خپل حکمونه بیان کړي | او په هغه لار مو روان کړي چې ستاسو نه مخکښې خلق ئې پرې روان کړي وو

وَيَتُوْبَ عَلَيْكُمْ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۞ وَاللّٰهُ يُرِيْدُ اَنْ

او قبولوالي د توبې اوکړي | په تاسو | او الله | ښۀ پوهه | او دحکمت خاوند دي | او الله اراده لري | چې

او تاسو ته خپل رحمت متوجه کړي | او الله ﷻ په هرڅه پوهه او صاحب د حکمت دي | او الله پاک غواړي

يَّتُوْبَ عَلَيْكُمْ ۣ وَيُرِيْدُ الَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الشَّهَوٰتِ

رجوع اوکړي په رحمت سره | په تاسو باندې | او اراده لري | هغه کسان | چې تابعداري کوي | دخواهشانو

چې تاسو ته خپل رحمتونه راؤګرزوي | او څوک چې په خپلو خواهشاتو پسې ګرځي

اَنْ تَمِيْلُوْا مَيْلًا عَظِيْمًا ۞ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ ۚ

چې کاږه شئ تاسو | په کږېدلو | لویو سره | غواړي الله | چې سپکوالي اوکړي | په تاسو |

هغوئ داغواړي چې تاسو دسمې لارې نه ډیرلرې کړي | او الله ﷻ داغواړي چې په تاسو باندې سپکوالي اوکړي

وَخُلِقَ الْاِنْسَانُ ضَعِيْفًا ۞

او پیدا کړې شوې دي | انسان | کمزورې |

(ځکه چې) انسان کمزورئ پیدا شوې دې |

**آسان ترجمه قرآن:** الله تعالي غواړي چه تاسو ته د (احکامو) وضاحت وکړي او کوم (نیکان) خلق چه تاسو نه مخکښې تېر شوي دي، تاسو د هغوی په لاره راولي، او په تاسو (رحمت سره) توجه وکړي او الله په هره خبره پوهیږي هم، حکمت والا هم دې الله غواړي چه تاسو طرف ته توجه وکړي، او کوم خلق چه د نفس خواهشاتو پسې روان دي هغوی غواړي چه تاسو د صحیح لارې نه لرې واوړئ الله غواړي چه تاسو سره دآسانۍ معامله وکړي او انسان کمزورې پیدا شوې دې.

**د آيتونو ربط:** ددې څخه مخکښې آيتونو کښې د احکامو تفصيل بيان شو دې آيتونو مبارکو کښې الله ﷻ خپل انعام او اکرام فرمائي. اودا چې ددې احکامو په مشروعيت کښې ستاسو د منافعې او مصلحت رعايت کړې شو ېدې اگر چې تاسو ددې په تفصيل باندې پوهه نشئ بيا دې سره سره په دې احکامو باندې د عمل کولو ترغيب دې. او د گمراهانو په ناپاکو ارادو باندې هم خبردارې ورکړې شوې دې. [اودا فرمائيلې شوی دی چې] دا خلق ستاسو خيرخواه نه دی. او دوی تاسو لره د نيغې لارې څخه اړول غواړي.

## خلاصه تفسير

﴿يُرِيدُ اللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ﴾ الله تعالى ته [پدغه ذکر کړو مضامينوبيانولو کښې اودا شان په نورو مضامينوکښې دخيلے هيڅ څه نفعے غرض نشته ولے چه دا دعقل دوجې محال اوناممکن دی بلکه تاسوته دفائدې رسولو په غرض] دا منظور دی چه [دحکمونو په آيتونوکښې خو] تاسوته [ستاسو دښيگړې جکمونه] بيان کړی ﴿وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ او [دقيصو په آيتونوکښې] ستاسونه مخکښې خلقو احوال تاسوته اوښائی [په دې غرض چه ستاسو ددې تابعدارئی شوق پيداشی اودهغې دمخالفت کولونه مو ويره وی] ﴿وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ﴾ او [دشريک مقصود خلاصه داده چه] په تاسو [رحمت سره] توجه اوکړی [اودغه توجه هم دا بيانول اوخودل دی چه سراسر پکښے هم دبندگانو نفع ده څنگه چه ذکر شو] ﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ اوالله تعالى دلوئې علم خاوند دې[چه دبندگانو په ښيگړو پوهيږی]الوئې دحکمت خاونددې[چه بے دواجبيدو نه ددې ښيگړو لحاظ ساتی] ﴿وَاللَّهُ يُرِيدُ أَن يَتُوبَ عَلَيْكُمْ﴾ اوالله تعالى ته خو احکامو او قيصو بيانولو سره [څنگه چه اوس ذکر شو] ستاسو په حال باندې [رحمت سره] توجه کول منظور دی ﴿وَيُرِيدُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الشَّهَوَاتِ﴾ او کوم خلق [چه دکفارو او فاجرانو نه] شهوت پرست دی هغوی داسې غواړی ﴿أَن تَمِيلُوا مَيْلًا عَظِيمًا﴾ چه تاسو [دسمے لارې نه] په ډير غټ کوږوالی کښې پريوځئ [اوهم دهغوی پشان شئ؛ ځکه چه هغوی به خپل خراب خيالات دمسلمانانو په غوږونو کښې اچول او څنگه چه په احکامو کښې ستاسو په ښيگړه نظر لری دغه شان ستاسو په آسانئ هم نظر لری لکه ارشاد دې چه] ﴿يُرِيدُ اللَّهُ أَن يُخَفِّفَ عَنكُمْ﴾ الله تعالى ته [په احکامو کښې] تاسو سره تخفيف کول [يعنی آسانی کول هم] منظور دی ﴿وَخُلِقَ الْإِنسَانُ ضَعِيفًا﴾ او [وجه ددې داده چه] انسان [په دې وجه نسبت دنورو مکلفينو په بدن او همت دواړوکښې] کمزورې پيدا کړې شوې دې [په دې وجه دهغه دکمزورتيا په مناسب احکام مقرر کړی دی ورنه ښيگړې دلحاظ ساتلو په اعتبار سره دسختو عملونو تجويز کول هم څه بدوالی؛ نه لرلو مگر مونږ د دواړو خبر په جمع لحاظ اوساتلو اودا په لوئې علم حکمت اوهم دغه شان په رحمت او شفقت موقوف دی].

## معارف اومسائل

﴿يُرِيدُ اللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ﴾ دنکاح دډيرواحکاموبيانولونه پس ئې په دې آيتونو کښې دااوښودل چه الله تعالى ښه په واضح ډول تاسوته احکام ښائی اودانبيائې کراموا ولوروصالحانولارې درته هم ښائی چه وړاندې تيرشويدی، تاسو دامهٔ گڼرئی چه دحراموا وحلالوتفصيلات يواځې هم زمونږدپاره دی بلکه تاسونه وړاندې چه کوم اُمتونه تيرشويدی هغوئی ته هم داسې احکام

ښودلي شوي وو، چاچه عمل اوکړواو دالله تعالی په دربار کښې دهغه نزدیکان شو۔

څوک چه دنفساني شهوتونو تابعدار دی، یعنی زناکار خلق او دباطلو مذهبونو خاوندان چه دچاپه نزد حلال اوحرام هیڅ څیز نهٔ وی، هغوئی تاسوهُم دحق لاړې نه اړوی اوخپلو باطلو ارادو ته ستاسو مخ درګرځوی، تاسو هغوئی نه هوښیار اوسئ، ځنې مذهبونو کښې خپلو محرمو ښځو سره هم نکاح کول درست دی او ډیر زیات بې دینه خلق په دې دور کښې دنکاح دختمولو په حق کښې دی، او ځنو ملکونو کښې داخبرې هم کیږی چه ښځې یو مشترک [شریک] اسامان دې، چنانچه داخبرې هغه څوک کوی چه سراسر دنفس بندګان او دخواهشاتو غلامان دی، ځنې دکمزوری ایمان خاوندان چه داسلام کلمه وائی او دې بیدینو خلقو سره کښینې پاسی، چه ددوئی په خبرو کښې راشی نو خیالات ئې دومره بدل شی چه خپل دین ته زاړه او سولیدلی خیالات وائی او د دشمنانو خبرې دانسانیت ترقی ګڼړی او دناپوهئی له کبله په دې کچه خیال کښې راګیرشی، چه څنګه دغه خلق دنوی نظریاتو مرستیالان دی، کاش چه زمونږ دین هم ددې اجازت ورکولې، العیاذ بالله: الله تعالی خبرداری ورکړې دې چه تاسو دداسې بداصله انسانانو دنظریاتو نه خپل ځانونه لرې ساتئ۔

بیائې اوفرمائیل ﴿يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُخَفِّفَ عَنْكُمْ﴾ [الله تعالی ستاسو دپیتی سپکول او درته آسان احکام رالیږل غواړی، ستاسو دتکلیفونو لرې کولو په غرض ئې داسې نرم احکام درکړل چه ټول پرعمل کولې شی، او که آزادو ښځو سره مو دنکاح کولو طاقت نهٔ وی نو درته ئې وینځو سره دنکاح کولو اجازت درکړې دې۔ دمَهر معامله سرته درسولو دپاره ئې اختیار درکړو، دضرورت په موقعه ئې درته دیو نه زیاتو ښځو سره دنکاح کولو اجازت درکړو خو شرط دادې چه بې انصافی تر نه کیږی۔

بیائې اوفرمائیل ﴿وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا﴾ [انسان په پیدائشی ډول کمزوری دې] او پکښې ئې شهوتی ماده ایښې ده، که بیخی دښځو نه دلرې پاتې کیدو حکم ورکړې شوې وې نو دتابعدارئی او فرمانبرداری کولو نه به ئې پاتې راغلې وو۔ دده عاجزئ او کمزورئ ته ئې چه اوکتل نو یواځې ئې ښځو سره دنکاح کولو اجازت ورنکړو بلکه دې دپاره ئې ورله مینه رابیداره کړه او دنکاح نه پس خپل منځ کښې یو بل ته دنفس او نظر دپاکیزګئ نفع او نورې فائدې چه حاصلیږی، دې سره دواړه مخیزه مظبوط تیارسی، پس نکاح دکمزورئی لرې کولو دپاره خپل منځ کښې لوظ، قول کول او یوبې مثاله طریقه ده۔

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| یَاۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ | | | اٰمَنُوْا | | | |
| اې هغه کسانو | | | چې ایمان مو راوړې دې | | | |
| ............ اې دایمان خاوندانو | | | | | | |
| لَا تَاْكُلُوْٓا | اَمْوَالَكُمْ | بَیْنَكُمْ | بِالْبَاطِلِ | اِلَّآ اَنْ | تَكُوْنَ | |
| مه خورئ تاسو | مالونه دیوبل | په خپل منځ کښې | په ناجائزه طریقه | ما سوا ددې نه | چې وی | |
| خپل مینځ کښې دیوبل مالونه په ناجائزه طریقه مه خورئ | ............ خوکه | | | | | |
| تِجَارَةً | عَنْ تَرَاضٍ | مِّنْكُمْ | وَلَا تَقْتُلُوْٓا | اَنْفُسَكُمْ | | اِنَّ اللّٰهَ |
| سوداګری | په رضامندئ سره | ستاسو د طرفه | اومهٔ قتلوئ | ځانونه | خپل | بیشکه الله |
| سوداګری ستاسو په خپل مینځ کښې په رضا اوشی انوخیر دی [اوخپل ځانونه هلاکت کښې مه اچوئ: بیشکه الله | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَانَ بِكُمْ | رَحِيمًا ﴿٢٩﴾ | وَمَنْ يَّفْعَلْ | ذٰلِكَ | عُدْوَانًا | وَّظُلْمًا |
| دي په تاسو باندې | مهربانه | اوڅوک چې کوي | دغه کارونه | په زياتي سره | او په ظلم سره |
| په تاسو ډير مهربان دی ............ اوڅوک چې په ظلم زياتي داسې کارونه کوي ............ | | | | | |
| فَسَوْفَ | نُصْلِيْهِ | نَارًا | وَكَانَ ذٰلِكَ | عَلَى اللّٰهِ | يَسِيْرًا ﴿٣٠﴾ |
| نو ژر به | داخل کړو مونږه هغه | اور ته | او دی دا کار | په الله باندې | آسان |
| نومونږ به ئې د جهنم اور ته ورداخل کړو \| اودا کار الله ﷻ ته ډير آسان دی | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** اې د ايمان خاوندانو اخپلو کښې د يوبل مال په ناحقه طريقه مه خورئ هنه که څه سوداګري خپل مېنځ کښې په رضاء سره وي (نو دا جائز دي) او خپل ځانونه مه وژنئ او يقين وکړئ چه الله ډير مهربانه دي کوم يو کس چه دا کار د زياتي او ظلم په طور وکړي نو مونږ به ده لره په اور کښې داخل کړو او دا خبره الله تعالي لره ډيره آسانه ده.

**د آيتونو ربط:** دسورة نساء په شروع کښې ئې فرمائيلي وو چې ټول انسانان د يو پلار څخه پيدا شوي دي، او ټول د رورلئ په يوه رشته کښې تړلي شوي دی . او دې کښې ئې د عامو انسانانو د حقوقو دحفاظت او ددې د ادا کولوطرفته اشاره کړې شوې ده. بيا د يتيمانو او ښځو تفصيلي بيان تيرشو. بيا د ميراث احکام بيان شو. او دې لړ کښې د يتيمانانو ، ښځو او ددې څخه علاوه درشته دارانو د حقوقو او احکامو تاکيد بيان کړې شو. بيا دې څخه روستو د نکاح احکام راغلل چې کومې ښځې سره نکاح کول حلاله ده . کومې سره حرامه ده . ځکه چې نکاح يو داسې معامله او معاهده ده چې په دې کښې د يوې په مال او ځان کښې د تصرف حق چاته ملاويږي .

دې مذکوره آيتونو کښې د عامو انسانانو د مال او ځان د حفاظت او په دوئ کښې د هر ناجائزه تصرف کولو څخه ممانعت راغلې دې . که هغه انسان سړی وی او که ښځه وی . که رشته دار وی او که غير وی . تر دې که مسلمان وی او که کافر وی او هغه سره د ترک جنګ معاهده شوې وی . [کما صرح به المظهري][1]

## خلاصه تفسير

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ ﴾ ائې دايمان خاوندانو خپل مېنځ کښې ديو بل مال په ناحقه [په غير مباح] ډول سره مه خورئی [مه استعمالوئ] ﴿ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ ﴾ ليکن [که په مباح طريقے سره وی لکه] څه سوداګری وی چه خپل مېنځ کښې په رضامندئی سره کيږی [په شرط ددې چه په کښې نورټول شرطونه هم شرعی وی] نو څه بديت نشته [دا خومالي دخل ورکول وو وريسے په ځان کښې ددخل ورکولو په باره کښې فرمائی] ﴿ وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا ﴾ اوتاسو يو بل وژنئی هم مه بيشکه الله تعالی په تاسو لوئې مهربان دے [ځکه ئے دزيان رسولو صورتونه منع کړل.خاص کر چه دااثر په کښې وی چه بل څوک به تاسو ضرور زيان او نقصان رسوی نو دا د الله ﷻ مهرباني ده چې تاسو ئې هم د

[1]) تفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۸۴

زیان سزا نه اوساتلئ او هر کله چې وژل په دې دوارو خبرو کښې زیات سخت دی ځکه په دې باندې خاصکرزورنه ورکوی چه ﴿وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ عُدْوَانًا وَّظُلْمًا﴾ څوك دغسې کار [یعنی وژل] اوکړی په داسې شان چه [دشرعی] حدنه ورتیر شی او[دغه تیریدل هم خطائې فعل یا رائې د خطایئ دوجې نه نه وی بلکه] په داسې شان چه دې] ظلم اوکړی ﴿فَسَوْفَ نُصْلِيْهِ نَارًا﴾ نو زر دې چې مونږ به ده لره[دمرګ نه پس]د دوزخ په اورکښې داخل کړو ﴿وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا﴾ اودا کار [یعنی داسې سزا ورکول] الله تعالی ته [بیخی] آسان دې [دې دپاره دڅه داسې انتظام کولو ضرورت نشته اونه په کښې ددې احتمال څه ځائې شته چه کیدیشی که د غه انتظام اوسامان جمع کول نه وې نوسزا به ایساره شی].

## معارف اومسائل

**څنګه چه دبل مال په باطلې طریقې سره خوړل ناروادی دغسې خپل مال هم په باطلې طریقې سره لګول ناروادی** په آیت کښې د ﴿أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ﴾ لفظ راغلې دې چه معنی ئې، خپل مینځ کښې خپل مال ،،ده په دې کښې دمفسرینو رحمهم الله په اتفاق سره داخبره داخله ده چه هیڅوک ددبل مال په نارواطریقې سره نۀ خوری-ابوحیان په تفسیربحر محیط کښې فرمائیلی دی چه ددې په مفهوم کښې داهم داخل دی چه هیڅوک دخپل مال په نارواطریقې سره نه خوری، مثلاً په داسې کارونوکښې خپل مالونه لګول هم دآیت له مخه ناروادی چه په شریعت کښې ګناه یابې ځایه اسراف وی[1]-په آیت کښې د ﴿لَا تَأْكُلُوْا﴾ لفظ راغلې دې، معنی ئې داده چه ،،مۀ خورئ، مګردعامې محاورې په اعتبارسره داده چه دبل په مال کښې په ناحقه طریقه څه دخل مۀ ورکوئ، خواه دغه ئې خوړل څکل [چښل] وی یائې استعمالول وی، ولې چه په یوعام دستور کښې دچاپه مال کښې هرقسم دخل ورکول، ددې خوړل بللې شی، اګرچه خاص خوړل نه وی، د،،باطل ترجمه،،ناحق،، شوې ده-چه دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ اودجمهورصحابه کرامو ﷺ په نزدهغې ټولوصورتونولره شامله ده چه دشریعت له مخې بنداوناروا وی، چنانچه غلا، داکه غصب، خیانت، رشوت، سود، جواری [خمار] اوټولې خرابې معاملې پکښې داخلې دی، [بحر محیط][2]

**په باطله طریقه دڅه مال خوړلوتشریح اوتفصیل**: قرآن کریم یولفظ ﴿بِالْبَاطِلِ﴾ اوفرمائیلو اوپه ټولو ناروا طریقوسره ئې حاصل کړې مال حرام اوګرځولو، بیائې ددغه نارواطریقوتفصیلات بیانول ئې درسول الله ﷺ په حواله کړل اودهغې مطابق هغوئی دټولوناروامعاملاتوتفصیلات بیان کړل-

دې نه داهم معلومه شوه چه درسول الله ﷺ په احادیثومبارکوکښې دناروا، خریدوفروخت اوناروااجارې وغیره چه کوم تفصیلات بیان شوې دی، هغه په حقیقت کښې ددې قرآنی حکم تشریح ده، ځکه دغه ټول احکام، په یوحیثیت سره دقرآنی احکاموشان لری، بلکه هغه ټول شرعی احکام هم داشان لری کوم چه درسول الله ﷺ په احادیثوکښې ذکرشویدی، دهغه ټولو په عام دول هم دغه حالت دې، هغه به دیوقرآنی اشارې تشریح وی، اګرچه مونږ ته دامعلوم نشی چه دا د فلانی آیت تشریح ده،،

[1]) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج۳، ص۲۳۸

[2]) تحت هٰذه الآیة: ج۳، ص۲۳۷

دآیت شریف په رمبی جمله کښې په ناحق اوناروا طریقو سره دچاپه مال کښې دخل ورکول حرام ګرځولې شوی دی، په بله جُمله کښې دې نه استثناء اوشوه اوداسې ئې اوفرمائيل ﴿إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٖ مِّنكُمۡ﴾ [یعنی دنورو هغه مال حرام نۀ دې چه دسوداګرئ په طریقه، خپل منځ کښې په رضا، صلاح سره حاصل شوې وی-

ددې نه علاوه دمال حاصلولو نورې رواطریقې هم شته، لکه څه وخت دپاره په سوال حاصلول[عاریت] هبه، بخښیش ورکول، خیرات، میراث وغیره شو___ مګر دبل دمال حاصلول عموماً دسوداګرئ په طریقې سره کیږی چه دامشهوراوجاری صورت دې

په عام ډول دتجارت معنی خریدوفروخت کولې شی خوتفسیرمظهری کښې، داجارې [دملازمت، مزدورئ اوکرائې]معاملات هم په تجارت کښې داخلې بللې شویدی ولې چه خریدوفروخت سره دمال په بدل کښې مال حاصلولې شی اوپه اجاره وغیره کښې دمحنت اوخدمت په بدله کښې مال حاصلولې شي ځکه دتجارت لفظ دې دواړولره شامل دې-

دآیت دمضمون خلاصه داشوه چه دچامال په ناحقه خوړل حرام دی خوپه رضاسره دچامال دخرید، فروخت، ملازمت اومزدورئ وغیره په رواذریعه، که حاصل کړې شی نومالکانه تصرف کول پکښې روا دی-

**دزوند تیرولوپه ذریعوکښې تجارت اومحنت دټولونه زیات غوره دی**:: په جائزطریقو سره دبل چادمال دحاصلولو صرف یوصُورت[دتجارت] په دې آیت کښې ذکرشویدې، ددې وجه داده چه دژوندتیرولوپه ذریعوکښې دټولونه زیاته غوره اوزیاته پاکیزه ذریعه تجارت اومحنت کول دی___ حضرت رافع بن حدیج رضی الله عنه فرمائیلی دی چه رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو چه کومه یوه ګټه حلاله اوپاکیزه ده؟ هغوئ ارشاداوفرمائیلو﴿عمل الرجل بیده وکل مبیع مبرور. رواه احمد والحاکم ﴾[مظهری و ترغیب وترهیب]([1]) دلاس کارروزګاراوهرریشتینې خرید فروخت [چه] دروغ اوتګی پکښې نۀ وی]

دحضرت ابی سعید خدری رضی الله عنه په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلی دی﴿ التاجر الصدوق الامین مع النبین والصدیقین والشهداء ﴾[ترمذی]([2]) رشتونې تاجرچه امانتګروی، هغه به پیغمبران، صدیقانو اوشهیدانوسره وی

دحضرت انس رضی الله عنه په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلی دی-

﴿التاجر الصدوق تحت ظل العرش یوم القیامة﴾ [رواه الاصبهانی ترغیب]([3]) رشتینې تاجربه دقیامت په ورځ دعرش دسوری[سائې] لاندې وی-

**دپاکیزه ګټې خاص شرطونه** دحضرت معاذبن جبل رضی الله عنه په روایت رسول الله ﷺ اوفرمائیل:

دټولونه زیاته پاکیزه ګټه دسوداګرده خوشرط دادې چه په خبروکښې دروغ نۀ وائی اودخپلې کړې وعدې خلاف نۀ کوی، چه ورسره امانت کیښودې شی نوپکښې خیانت نۀ کوی اوکله چه څه سامان[دچانه] واخلی نو[دسوداګردعادت مطابق]هغې سامان لره خراب اوناکاره نه ښکاره کوی

---

[1]) الترغیب والترهیب رقم الحدیث: ۲۳۹۰، باب الترهیب فی الاکتساب ومسند احمد، حدیث رافع بن خدیج رضی الله عنه رقم الحدیث: ۲۲۲۳۸ ومستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۲۱۱۷

[2]) جامع الترمذی، أبواب البیوع، باب ما جاء فی التجار: ج۱، ص ۲۲۹

[3]) الترغیب والترهیب رقم الحدیث: ۱۱۰۹، کتاب البیوع-

اوکله چه خپل سامان خرڅوی نو[دواقعي خلاف] ده غې تعریف نه کوی، چه په ذمه ئې دچاقرض وی نوپکښې ډیل اوتاخیر او ټال متول نه کوی اوچه قرض ئې دچاپه ذمه وی نوهغه نه تنګوی۔ اخرجه الاصبهانی په حواله دمظهری دحاشیې [۱]

په دې وجه یو حدیث پاک کښې ارشاد دې چې: ﴿ان التجار یبعثون یوم القیامة فجارا الامن اتقی الله وبر وصدق﴾ [اخرجه الحاکم عن رفاعة بن رافع] [۲] د قیامت په ورځ سوداګر خلق دبدکارو او ګناهګارو په صف کښې به وی سوداهغه چانه چه الله تعالی نه ویرېږی دنیکئ معامله کوی او رښتیاوائی۔

**ډېل ډمال حلالېدوډپاره دتجارت اوخپل منځ خښې دراضي کېدوډوه شرطونه:** دآیت شریف په دې جُملهٔ کښې تجارت سره د، ﴿عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ﴾، فرمائیلوسره ئې دا اوښودل چه چرته تجارت دَسره نهٔ وی بلکه دتجارت په نوم جواری [خمار] ، سټه اوسودی معامله وی، یامال په موقعه موجود نه وی محض په ذهنی قرارداد باندې ددې سوداشوې وی نودغه بیع باطله اوحرامه ده داشان که تجارت یعنې دمالونوتبادله خووی لیکن دفریقینو رضامندی نه وی نودا هم بیع فاسد اوناروا ده اوددواړه صورتونه په ، باطله سره په مال خوړلو، کښې داخل دی، فقهائې کرام ﷭ رومبې صورت د ، بیع باطل، په نوم یادوی اودوئم صورت د ، بیع فاسد ، په نوم یادوی۔

تشریح ئې داده چه مال په مال سره بدلول تجارت دې، که دې کښې یواړخ ته مال وی اوبل اړخ ته پیسې وغیره وی نودا تجارت دې، که دې کښې یواړخ ته مال وی اوبل اړخ ته دَسره مال نه وی نوداتجارت نه دې بلکه خطا ایستل دی، چنانچه سود هم دغه شې دې چه سُود په عوض دهغه میعاد اونیته کښې وی چه دقرض واپس کولودپاره مقرروی اونیته څه مال نهٔ دې، داشان سټه اوجواری [خمار] کښې یواړخ ته مال تاکلې اوموجودوی اوبل اړخ ته دَمال کیدل یانه کیدل مشکوک وی۔ داشان دوعدې هغه سوداګانې چه مال پکښې لاتر اوسه شته شوې نه دې اوسودائې شوې ده نودې کښې هم یواړخ ته مال اوبل اړخ ته وهمی وعده ده، نودحقیقت په اعتبار سره دادَسره تجارت نهٔ دې بلکه یوقسم تیرویستل دی، څکه ورته فقها بیع باطل وائ۔

دویم صورت دادې چه دواړو اړخونه مال وی اومال په مال بدلول وی، مګریواړخ ته رضانهٔ وی، دااګرچه تجارت خوشومګرفاسد اوغلط قسم تجارت دې څکه ورته بیع فاسد وئیلې شی اوناجائزه ده۔

په دې تشریح سره دَخرید وفروخت اوتجارت ټول ناجائز قسم صُورتونه وُخی۔

**ډېول ډ رضامندئ حقیقت:** البته دریم قسم تجارت داسې وی چه مال په مال بدلول وی، دواړه اړخ ته مال وی اوپه ظاهره رضامندی هم ددواړو خوښکاری خوپه حقیقت کښې یواړخ ته دَمجبورئ رضامندی وی، لهذا شریعت داهم په دویم قسم کښې داخله کړه. مثلاً دَعام ضرورت څیزونه ټول راغونډولوسره یوسړی یایو کمپنۍ ته حواله شی، هغه ئې ذخیره کړی اوپه خپله خوښه ئې قیمت زیات کړی اوپه هغې ئې په ګرانه خرڅوی په بازار کښې بل چرته دغه څیز نشی موندې کیدې [انه پیدا کیږی] نوګاهګ په دې مجبوره وی چه هم په دغه ګرانه بیع ئې واخلی په دې صُورت کښې

---

[۱] ) تفسیر المظهری: ج ۲، ص ۸۱، وشعب الإیمان للبیهقی، باب أطیب الکسب: رقم الحدیث ۴۴۱۰

[۲] ) المستدرک للحاکم رقم الحدیث ۲۱۴۳

اګرچه ګاهګ پخپله اخستلو دپاره هلته راځي اوپه ظاهره دهغې په اخستلو رضاهم ښکاري لیکن دارضاپه مجبورۍ اره لري نودادسره رضامندي نه شوه-

داشان که یوخاوند خپلې ښځې سره داسې ګذران، رويه اوسلوک کوي چه دهغې په وجه ورته خپل مهر معاف کولوباندې مجبوره شي، ګوچه هغه دمهر معاف کولوپه وخت کښې خپله رضامندي ښکاره کوي لیکن په حقیقت کښې دارضامندي نه وي -

یاڅوک سړې چه هرکله دااوګوري چه زماروا کاربه درشوت ورکولونه بغیر نه کیږي اوهغه په رضاسره رشوت ورکوي نودارضاپه شريعت کښې نارضاحسابیږي-

دې نه معلومه شوه چه ﴿إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ﴾ دخرید وفروخت اوتجارت یواخې دهغه صورتونوروا والې ثابتوي چه درسول الله ﷺ داحاديثونه ثابت وي اوفقهاؤ محفوظ کړي وي اودخرید وفروخت څومره صورتونه چه منسوخ اوناروادي هغه ټول دې نه خارج دي ــــــ دقرآن کريم دې یولفظ دفقهې پوره ،، کتاب البیوع ،، او ،، کتاب الاجاره ،، مکمل بیان کړو-

دآیت دریمه جمله داده ﴿وَلَا تَقْتُلُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ﴾ [تاسوخپل خانونه مه وژنئ] چنانچه دمفسرينو ﷺ په اتفاق سره په دې کښې خودکشي [ځان وژل] داخل دی اوداهم چه یوبل په ناحقه قتل کړي-

دآیت په رومبۍ جمله کښې دعام انسانانو دمالي حقونواودې دحفاظت بیان ؤو، په دې جمله کښې، ددوی دځان دحقوقو دحفاظت بیان راغلو.

دلته مال وړاندې راؤړل اوځان روستوراؤړل کیدې شي چه په دې وجه شوی وي چه په مالي حقوقو کښې ،زورظلم، کوتاهي اوغفلت ډیرعام دې، ناحق قتل کول، اووینې تویول اګرچه ددې نه زیات سخت دی مګر دعادت له مخه په دې کښې اخته کیدل کم دي-

دآیت په آخر کښې ارشاددې ﴿إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا﴾ یعنی کوم احکام چه په دې آیت کښې ورکړې شوي دي چه دخلقو مالونه په ناحقه مه خورئ یاڅوک په ناحقه مه وژنئ، داټول احکام ستاسو په حق کښې دالله تعالی رحمت دی، مطلب ئې دادې چه تاسو ددې کارونو دآخرت دوبال نه هم محفوظ شئ اودنیوی سزاګانونه هم بچ شئ-

وریسې په بل آیت شریف کښې ارشاددې ﴿وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ عُدْوَٰنًا وَظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا﴾ یعنی د قرآني هدایاتوباوجود، که څوک سړې ددې خلاف ورزي اوکړي اوځان ناجائزه او ناخبره کولو سره، دزورظلم په طريقه، دچامال په ناحقه واخلي، یاڅوک په ناحقه اووژني نوزردې چه مونږ به ئې جهنم کښې داخل کړو ـــــــ دزیاتۍ اوظلم [عدوان اوظلم] دقید لګولونه معلومه شوه که دهیرې، غلطۍ یاخطاله کبله داسې اوشونوهغه به دې وعید درکې، لاندې نه راځي-

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِن تَجْتَنِبُوا۟ | كَبَآئِرَ | مَا | تُنْهَوْنَ | عَنْهُ | نُكَفِّرْ | عَنكُمْ |

که تاسو ځان اوساتلو | دلویو ګناهونو | هغونه | چې تاسو منع کړې شوي ئې | دهغې نه | نومونږ به ختم کړو | ستاسو نه

که تاسو [هغې] لویو ګناهونونه پرهیزاوکړئ دکومونه چې منع کړې شوي یئ | ......... نومونږ به ستاسو

| | | | |
|---|---|---|---|
| سَيِّـَٔاتِكُمْ | وَنُدْخِلْكُم | مُّدْخَلًا | كَرِيمًا ۝٣١ |

ګناهونه ستاسو | اومونږ به داخل کړو تاسو | ځائې دداخلیدو | عزتمندته |

واړه ګناهونه معاف کړو | اودعزت ځائې ته به مو داخل کړو

**آسان ترجمه قرآن:** که تاسو د هغه لوئ لوئ ګناهونو نه ځان اوساتئ د کومو نه چه تاسو منع کړې شوی یئ نو ستاسو واړه ګناهونه به مونږ خپله معاف کړو، او تاسو به یو عزتمند ځائ ته داخل کړو.

**د آیتونو ربط او خلاصه:** ددې څخه مخکښې آیت مبارك کښې د څو لویو لویو ګناهونو ذکر شو بدې. او په دې کښې په اخته کیدو باندې د شدید عذاب بیان شوې دې. دقرآن پاك دبیان یو مخصوص انداز دادې چې کله په یو جرم یا سزا باندې ویره ورکولې شی کومې ته چې ترهیب وئیلې کیږی نو دې سره سره د ترغیب د اړخ ذکر هم کیږی چې کوم کس ددې څخه منع شی نو هغه دپاره به دا انعامات وی.

دې آیت مبارك کښې هم د الله ﷻ د یو خاص انعام ذکر کیږی او ترغیب ورکولې شی. او هغه دا که تاسو د لویو ګناهونو څخه ځان بچ کړو نو ستاسو واړه واړه ګناهونه به معاف کړې شی. او داشان به تاسو د وړوړ لویو ګناهونو څخه پاك اوصفا شئ. او تاسو به د راحت مقام ته داخل کړئی شئ چې دهغې نوم جنت دې.

﴿ إِن تَجْتَنِبُوا۟ كَبَآئِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ ﴾ دکومو کارونو نه چه تاسو [په شریعت کښې] منع کولې شئ [یعنی دګناه دکارونو نه] په دې کښې چه کوم لوئې لوئې کارونه دی [یعنی لوئې لوئې ګناهونه دی] که تاسو دهغې نه ځان ساتلو نو [په دې ځان ساتلو باندې مونږ وعده کوو چه ستاسو دنیکو عملونو کولو نه چه هغه قبول شی] ﴿ نُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ ﴾ مونږ به ستاسو سپکې بدئی [یعنی واړه ګناهونه چه دوزخ ته بوتلل کولې شی] تاسو نه لرے کړو [یعنی معاف به مو کړو نو دوزخ نه به محفوظ پاتې کیږئ] ﴿ وَنُدْخِلْكُم مُّدْخَلًا كَرِيمًا ﴾ او مونږ به تاسو یو عزتمند ځائې [یعنی جنت] کښې داخل کړو.

## معارف او مسائل

**دګناهونو دوه قسمه ﴿إِن تَجْتَنِبُوا۟ كَبَآئِرَ﴾:** دذکرشوی آیت نه معلومه شوه چه دګناهونو دوه قسمه دی، څه کبیره یعنی لوئې ګناهونه او څه صغیره، یعنی واړه ګناهونه دی، او داهم معلومه شوه چه که څوک همت اوکړی او لویو ګناهونو نه بچ شی نو دالله تعالی وعده ده چه ددوئ واړه ګناهونه به پخپله معاف کړی۔

لویو ګناهونو نه په بچ کیدلو کښې داهم داخل دی چه ټول فرض او واجب اداکړی ولې چه فرض او واجب پریښودل پخپله یوه لویه ګناه ده۔ نو حاصل دا شو چه څوک دټولو فرضو او واجبو ادا کولو پوره بندوبست اوکړی او دټولو لویو ګناهونو نه ځان بچ کړی نو الله تعالی به پردَده واړه ګناهونه اورژوی.

**نیکو عملونو سره واړه ګناهونه رژولې شی:** دکفارې کیدو او رژولو مطلب دادې چه ددوئ نیک عملونه به ددوړو ګناهونو کفاره جوړ کړی او حساب به ئې بیباقه او ختم کړی، دعذاب په ځائې به ئې ثواب او دجهنم په ځائې به ئې جنت نصیب شی. لکه په صحیح احادیثو کښې راغلی دی چه کله څوک مونځ دپاره اودس کوی نو دهر اندام وینځلو سره سره دګناهونو کفاره شوه، په مخ وینځلو سره، دستر ګو، غوږونو پوزې وغیره دګناهونو کفاره شی، چه په خُله کښې اوبه واچوی نو دژبې دګناهونو کفاره پرِ اوشی، چه پښې ئې او وینځلې نو دپښو ګناهونه ئې اووینځلې شو، بیاچه

جومات ته ځي نو په هر قدم ئې د ګناهونو کفاره کیږي([1])-

**لویو ګناهونه بواځې د توبې سره معاف کیږي** آیت نه معلومه شو چه اودس مونځ وغیره غوند د نیکو عملونو په ذریعه، د حدیثو د روایاتو مطابق چه کوم ګناهونه معاف کیږي هغې نه مراد واړه ګناهونه دی، اولوئې ګناهونه د توبې نه بغیر نه معاف کیږي، د وړو ګناهونو د اشرط دې چه انسان همت او کوشش کولو سره د لویو ګناهونو نه بچ شوې وی. معلومه شوه که څوک په لویو ګناهونو کښې اخته وی، او دس او مونځ په مخه اداکوی نو یو اځې په دې او په نورو نیکو عملونو سره به د ده د نورو ګناهونو هم کفاره نه کیږي اولوئې ګناهونه خو یه خپل ځائې هم د غسې پراته دی. نو د لویو ګناهونو یو لوئې تاوان پخپله د دې ګناهونو موجودګی ده چه پر قرآن او حدیث کښې سخت وعیدونه راغلی دی او بغیر د ریښتینې توبې نه نه معاف کیږي، د دې نه علاوه بله بې نصیبی دا هم ده چه د دې په وجه واړه ګناهونه هم نهٔ معاف کیږي، او داسې کس بانـدې بـه پـه محشر کښې د وړو او لویو ګناهونو پیټې باروی او څوک به تر د غه پیټې نشی سپکولې-

**ګناه او د هغې دوه قسمونه وړه او لویه ګناه:** په آیت کښې د ،، کبائر ،، الویو الفظ راغلې دې، نو پوهیدل پکار دی چه لوئې ګناهونه څه ته وائی، او ټول په څومره شمیر کښې دی، واړه ګناهونه څه ته وائی او شمیرئې څومره دې؟

د اُمت علماؤ ﷭ په دې مسئله بانـدې مختلف انداز کښې مستقل کتابونه لیکلی دی-

د لویو او وړو ګناهونو او د دې دواړو د تعریفونو کولو نه ړومبې په دې خان بنه پوهـه کړئ چه مطلق ګناه د هر یو داسې کار نوم دې چه د الله تعالی د حکم او مرضئ نه خلاف وی ، د دې نه به درته اندازه شوې وی چه په اصطلاح کښې کومې ګناه ته چه وړه وئیلې شی ، په حقیقت کښې هغه هم وړه نه وی ولې چه د الله تعالی نافرمانی کول او د هغه د مرضئ خلاف کول په هر حالت کښې ډیر زیات سخت جرم دې، په دې حیثیت سره امام الحرمین او د اُمت ډیرو علماؤ فرمائیلی دی چه د الله تعالی هره نافرمانی او د هغـه د مرضئ خلاف کـول هـم لویـه ګناه ده .د لـوئې او وړې ګنـاه فـرق صـرف د ګناهونو تر منځه د مقابلې او موازنې په وجه سره کیدې شی، په دې معنی کښې د حضرت عبد الله بن عباس ﷠ نه منقول دی چه: ﴿کل مانهی عنه فهو کبیرة﴾([2]) [د کوم کار نه چه د اسلام په شریعت کښې منع کړې شوې ده هغه ټول لوئې ګناهونه دی-

خلاصـه دا ده چـه کومې ګنـاه تـه پـه اصـطلاح کـښې وړه ګنـاه وئیلې شـی، د هیچا په نزد د هغې دا معنی نهٔ ده چه په داسې ګناهونو کولو کښې د غفلت یا سستی او کړې شی او په معمولی ګڼړلو سره د تربې فکره شی، بلکه واړه ګناهونه چه په داسې بې پرواهئ سره کولې شی نو د غـو وړو ګناهونو نه هم لوئې ګناهونه جوړیږی. چابزرګ فرمائیلی دی چه پـه محسوساتو کښې د وړې او لوئې مثال داسې دې لکه وړوکې او غټ لړم یاد اور وړوکوټې [کشنی] بڅرې او غټـه سکروټه ، چه انسان د دې دواړو تکلیف نشی زغملې، ځکه خو محمد بن کعب قرظی او فرمائیل چه د الله تعالی د ټولو نه لوئې عبادت دا دې چه ګناهونه پریښودل شی، څوک چه مونځ کولو او تسبیحاتو وئیلو سره ګناهونـه هم نه پریږدی، د هغوئ عبادت مقبول نهٔ دې، او حضرت فضیل بن عیاض ﷫ فرمائیلی دی چه تاسو څومره پورې چه ګناه سپکه ګڼړئ هومره به هغه د الله تعالی په نزد لوئې جرم

[1] ) موطا مالک رقم الحدیث:۵۵، کتاب الطهارة، باب جامع الوضوء-

[2] ) مجمع الزوائد، کتاب الإیمان، باب فی الکبائر: ج ۱، ص ۵۶

شي، اوتيرو شوؤ بزرګانو فرمائيلي دي چه هره ګناه د کفر ريبار قاصد ده، چه انسان ته کفري عملونو او اخلاقو ارخ ته بلنه ورکوي، او په مسند احمد کښې منقول دي چه حضرت عائشې ﷦، حضرت معاويه ﷜ ته يو خط اوليږلو چه بنده هر کله د الله تعالى نافرماني کوي نو د هغه تعريف کوونکي ئې هم بدي بيانول شروع کړي او دوستان ئې هم دشمنان جوړ شي، ګناهونو نه بې پرواه کيدل د انسان د هميشه تباهئ سبب دې(١). په صحيح حديث شريف کښې راغلي دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه مؤمن هر کله لويه ګناه اوکړه نو په زړه ئې يو تور داغ اولګي، بيائې که توبه او استغفار اوکړو نو دغه داغ وران شي، که توبه ئې اونکړو نو دغه داغ په مخه غټيږي تردې چه په ټول زړه ئې خورشي، چه قرآن کريم کښې د ،،رين،، په نوم ياد کړې شوې دې لکه فرمائي: ﴿كَلَّا بَلْ رَانَ عَلٰى قُلُوبِهِمْ مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ [د دوئ په زړونو د دوئ بدو عملونو زنګ اولګولو] (٢)____ البته د ګناهونو د خرابيؤ بدو نتيجو او ضررې ثمراتو په اعتبار سره د دې په خپل منځ کښې فرق ضروري دې، د دغې په وجه، څه ګناه ته لويه او څه ته وړه وئيلې شي-

**کبيره [لويه] ګناه**: د قرآن کريم، احاديثو او د پخوانو بزرګانو د تشريحاتو له مخه د ګناه کبيره تعريف دادې چه په کومه ګناه، په قرآن کريم کښې شرعي حد [سزا] په دنيا کښې مقرر کړې شوې دی، يا په کومه چه د لعنت الفاظ راغلي دي، يا په کومه چه د جهنم وغيره وعيد راغلې دې، هغه ټولې ګناه کبيره دي، دغه شان هره هغه ګناه به هم په کبيره کښې داخله وي چه د هغې خرابئ او بدې نتيجې، کبيره ګناه سره برابرې يا د دې نه زياتې وي، دغه شان کومه وړه ګناه چه په زړورتيا او بې پروايئ سره کولې شي، يا هميشه د پاره په مخه کولې شي نو هغه هم کبيره ګناه جوړيږي

د حضرت ابن عباس ﷜ په وړاندې، چا کبيره ګناهونو شميره اوه او ښودلو، هغه اوفرمائيل چه اوه نه بلکه که اوه سوه اووئيلې شي نو زيات مناسب دي(٣)-

امام ابن حجر مکي ﷫ په خپل کتاب،،الزواجر،، کښې د دې ټولو ګناهونو پوره شمار، او د هر يو مکمل تشريح بيان کړې ده-چه د ښره کړې شوې تعريف له مخه، په کبائرو کښې داخل دي، د دوئ په کتاب کښې د لويو ګناهونو شمير څلور سوؤ او اوه شپيتو ته رسيدلې دې او حقيقت دادې چه څنو د ګناه د بابونو په شمير لو بس والې کړې دې څکه ئې د ګناهونو شمير کم ښودلې دې-او څنو ئې تفصيلات او قسمونه پوره ليکلي دي څکه ئې شمير زيات ښودلې دې په دې بنا دا، څه تکراؤ او اختلاف نشي کيدې-

رسول الله ﷺ په خپلو مقاماتو کښې د ډيرو ګناهونو کبيره کيدل بيان کړې دي او د حالاتو په مناسبت سره ئې چرته درې، چرته شپږ، چرته اوه او چرته د دې نه زيات بيان کړيدي، دې نه د امت علماؤ ﷭ دا مطلب واغستو چه په يو خاص شمير کښې ئې راګيرول مقصود نه وي بلکه د موقعو او حالاتو مناسب، څو مره چه اوګڼرلې شو هو مره ئې بيان کړل(٤)-

---

١) دا حديث حاجز بندره ته په مسند احمد کښې ملاونشو، البته مسند الحميدي رقم الحديث: ٢٨٣، مسند عائشه کښې دا حديث موجود دے۔

٢) جامع الترمذي، کتاب التفسير ومن سورة ويل للمطففين: ج ٢، ص ١٧١

٣) تفسير ابن ابي حاتم تحت هٰذه الآية رقم الحديث: ٥٢٥٤

٤) صحيح البخاري، کتاب الشهادات ما قيل في شهادة الزور: ج ١، ص ٣٦٢ وصحيح مسلم، کتاب الإيمان، بيان الكبائر واكبرها: ج ١، ص ٣

دَ بخاری او مُسلم شریف په یو حدیث کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل په گناهونو کښې هم چه ټولونه لوئي دې، زۀ تاسو دهغې نه خبر داره کوم چه درې دی، الله تعالی سره څه مخلوق لرهٔ شریک جوړول، دَمور پلار نافرمانی او دَدروغو گواهی ورکول یا دروغ وئیل۔

دغه شان دَبُخاری او مُسلم په روایت کښې دی چې رسول الله ﷺ نه چاتپوس اوکړو چه دَټولونه لویه گناه کومه ده؟ وې فرمائیل چه تاسو الله تعالی سره څوک شریک جوړ کړئ حالانکه هغه، تاسو پیدا کړي یئ، بیائې تپوس اوکړو چه دې نه پس لویه گناه کومه ده؟ وې فرمائیل چه تاسو خپل ماشوم ددې ویرې [ابیرې] مر کړئ چه دې به ستاسو په خوراک کښې شریک شي نو تاسو به ورته خامخا خوراک ورکوئ بیائې تپوس اوکړو چه دې نه پس کومه گناه دَټولونه لویه ده؟ وې فرمائیل د خپل همسایه سره زناکول(۱)، بدکاری کول خپله هم لوئې جرم دې او دَخپل گاونډی دَبال بچ حفاظت کول هم هر کله چه دَخپل بال بچ پشان دانسان په ذمه لازم دی، خکه به ددې جرم دوچند وی۔

دَصحیحینو په یو حدیث کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دا خبره دَلویو گناهونو څخه ده چه څوک خپل مور پلار ته کنځل اوکړی، صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ دا څنگه کیدې شی چه څوک به خپل مور او پلار ته کنځل کوی؟ وې فرمائیل چه داسې کیدې شی چه څوک دَبل مور پلار ته کنځل کوی او دَهغې په بدل کښې ورته دغه بل دَمور پلار کنځل اوکړی(۲) نو دا هم داسې شوه لکه پخپله ئې چه خپل مور پلار ته کنځل کړی وی خکه چه باعث ئې دادې. دَصحیح بخاری په یو روایت کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ، شرک ،ناحق، قتل دَیتیم مال په ناجائزه لاندې کول، سودی گټه خوړل، دَجهاد میدان نه تښتیدل، په پاک لمنو بیبیانو تور پورې کول، دَمور پلار نافرمانی کول او دَبیت الله شریف بې عزتی کول په لویو گناهونو کښې شمیرلی دی(۳). دَحدیثو په څنو روایتونو کښې دا هم لویه گناه گرخولې شوې ده چه دار کُفر نه څوک هجرت دار اسلام تهٔ اوکړی او بیا دغه خائې پریږدی او دار کُفر ته لاړ شی(۴)۔

دَاحَادیثو په نورو روایاتو کښې دا صورتونه هم دَگُناه کبیره په لړ کښې راوستل شوی دی چه مثلاً په دروغه قسمونه خوری، دَخپل ضرورت نه زیاتې اوبه ایسار او بند وی او دَنورو دَضرورت پُوره کولو دَپاره ئې ورته نه پریږدی دی، جادو کوی. او وې فرمائیل چه شراب څکل ،اکبر الکبائر [په لویو کښې دَټولونه لویه گُناه] ده، او وې فرمائیل چه شراب څکل ام الفواحش [دناکاره کارونو جرړه] ده، ولې چه هر کله دې سره نشه شی نو دَبدنه بد هر یو کار کولې شی. دا شان په بل حدیث کښې ئې ارشاد اوفرمائیلو چه دَټولونه ډیره لویه گُناه دا ده چه انسان په خپل مسلمان رور، داسې یو عیب اولگوی چه ورسره دَهغه بې عزتی کیږی(۵). په یو بل حدیث کښې راغلې دی چه چا بغیر دشرعی عذر نه، دوه مونځونه په یو وخت کښې جمع کړل نو هغه لویه گناه

(۱) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، باب قوله تعالٰی فلا تجعلوا الآیة: ج ۲، ص ۷۲ و صحیح مسلم، کتاب الإیمان: ج ۱، ص ۳

(۲) صحیح البخاری، کتاب لادب، لا یسب الرجل والدیه: ج ۲، ص ۸۸۳، و صحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب بیان الکبائر و اکبرها: ج ۱، ص ۷۔

(۳) سنن ابی داود، کتاب الوصایا، باب ما جاء فی التشدید: ج ۱، ص ۳۹۷

(۴) المعجم الأوسط للطبرانی رقم الحدیث: ۵۸۷۵، باب المیم من اسمه محمد۔

(۵) سنن ابی داود، کتاب الأدب، باب فی الغیبة: ج ۲، ص ۳۱۹

او کړه(۱). مطلب دادې چه چادَیو وخت مونځ قضا کړو اوچه دَبل وخت مونځ پرراغلونو هغې سره ئې داهم یوځائې کړو. دحدیث په ځنې روایتونو کښې راغلی دی چه دَالله تعالی دَرحمت نه نا امیده کیدل هم لویه ګناه ده اودَهغه دَعذاب اوسزانه بې فکره اوبې ویرې کیدل هم لویه ګناه ده(۲). په یوروایت کښې راغلی دې چه وارث ته زیان رسول او دَهغه میراث کمول دَپاره څه وصیت کول هم لویه ګناه ده(۳). دصحیح مسلم په روایت کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ یوځل اوفرمائیل چه خراب شو ،زیان کاراوتباه شو ،درې وارې ئې داکلمه بیابیااوفرمائیله. حضرت ابوذرغفاری ﷺعرض اوکړوچه یارسول الله: دابدقسمته اوتباه، برباد خلق څوک دی؟هغوی جواب ورکړویو هغه څوک دې چه دَتکبرله کبله، پرتوګ، لنګ، قمیص یاچغه وغیره دَخپود ګیټونه لاندې ښکته ساتی-بل هغه چه دَالله تعالی په لارکښې څه مال اولګوی، اوبیااحسان ئې خیژوی-دریم هغه بودَاسرې چه بد کارئ کښې اخته وی، څلورم هغه بادشاه یاافسرچه دروغ وائی، پنځم هغه څوک چه سره دنیستمن کیدولوئ کوی، شپږم هغه څوک دې چه دَیوامام [امیر المؤمنین] په لاس خالص دَدُنیاپه خاطربیعت [لاس نیوې] اکوی(۴).

اودصحیحینوپه یوحدیث کښې دی چه چُغل خوربه جنت ته نه ځی(۵). دَنسائی اودَ مسند احمد وغیره په یوحدیث کښې راغلی دی چه څوکسان به جنت ته نهٔ ځی ،شرابی ،دَمور پلار نافرمان، بې وجې خپلوانوسره خپلولی پریښودونکې، احسان خیژوونکی، دَپیریانو، شیطانانو، یانوروذریعوسره دَغیبودخبروښودونکې، دیوث چه بال بچ دَبیحیایئ دکارونونه نهٔ منع کوی(۶).

دمسلم شریف په یوحدیث کښې رغلې دی چه دَالله تعالی لعنت دې په هغه چاچه یو ځاروې، دَ الله تعالی نه سوا بل چادپاره قربان کړی(۷).

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا تَتَمَنَّوْا | | | | | | |
| اومهٔ کوئ آرزوتاسو دهغه څیز | | | | | | |
| .. او الله تعالی چه | | | | | | |
| مَا فَضَّلَ اللّٰهُ | بِهٖ | بَعْضَكُمْ | عَلٰى بَعْضٍ ؕ | لِلرِّجَالِ | نَصِيْبٌ | |
| چی زیات ورکړې وی الله | هغه څیز | بعضو ته په تاسوکښې | په مقابله دبعضو | دهٔ دپاره دنارینو | حصه | |
| یو کس ته دبل په مقابله کښې کوم فضیلت ورکړې دې تاسو دهغې خواهش مه کوئ | نارینا و چې | | | | | |
| مِّمَّا اكْتَسَبُوْا ؕ | وَلِلنِّسَآءِ | نَصِيْبٌ | مِّمَّا اكْتَسَبْنَ ؕ | | | |
| مطابق دهغې عمل چی کړې وی هغوئ | او ده دپاره دزنانو | حصه | مطابق دهغه عمل چی کړې وی هغوئ | | | |
| پخپل عمل څه ګټلی وی هغه دهغوئ حصه ده | اوزنانوچې پخپل عمل څه ګټلی دی هغه دهغوئ حصه ده | | | | | |

۱) جامع الترمذی، کتاب الصلاة، باب ما جاء فی الجمع بین الصلاتین: ج ۱، ص ۲۸
۲) شعب الإیمان للبیهقی، باب الثانی عشر من شعب الإیمان رقم الحدیث: ۱۰۶۵
۳) کنز العمال، رقم الحدیث: ۳۶۱۱۲۶، ج ۱۶، ص ۱۳۸
۴) صحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب بیان غلظ تحریم اسبال: ج ۱، ص ۷۱
۵) صحیح البخاری، کتاب الادب، باب ما یکره من النمیمة: ج ۲، ص ۸۹۵، وصحیح مسلم، کتاب الإیمان باب بیان غلظ تحریم النمیمة: ج ۱، ص ۷۰
۶) سنن النسائی، کتاب الزکاة، باب المنان بما اعطی: ج ۱، ص ۳۵۸، ومسند احمد رقم الحدیث: ۵۸۳۶
۷) صحیح مسلم، کتاب الأضاحی، باب تحریم الذبح لغیر الله.

وَسْـَٔلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمًا ۝ وَلِكُلٍّ

اواوغوارئ دالله نه | فضل دهغه | بیشکه الله | دي | په هر خیز باندي | علم لرونکي|او دپاره دهریو

دالله ﷻ نه دهغه دکرم او فضل سوال کوئ | بیشکه الله ﷻ په هرڅهٔ پوهه دي | او اوګورئ| ..........

جَعَلْنَا مَوَالِیَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ ؕ وَالَّذِیْنَ

مقرر کړی دی مونږه| حقداران | دهغه مال| چی پریږدی| مور اوپلار| اورشته داران | اوهغه کسان

کوم یومال چي مورپلار او|نور|خپلوان پریږدی |نومونږ هریودپاره وارثان مقرر کړی دی | اوچاسره

عَقَدَتْ اَیْمَانُكُمْ فَاٰتُوْهُمْ نَصِیْبَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ

چی غوټه شوی دی |قسمونه ستاسو|نوورکړئ هغوئ ته |حصه دهغوئ|بیشکه الله|دي په هرخیز باندي

چي تاسولوظونه کړی دی | نوهغوئ ته هم خپلي خپلي حصي ورکړئ |بیشکه الله |حاضرناظردي| په هر

شَهِیْدًا ۝

نظر لرونکي |

څیزباندي ګواه دي |

**آسان ترجمه قرآن:** او کومو څیزونو کښې چه مونږ تاسو ته په یوبل غوره والي درکړي دي نو دهغي آرزو مه کوئ سړي چه څه وکړي نو هغه ته به د هغې نه حصه ملاؤ شي او ښځې چه څه وکړي نو هغوی ته به د هغې نه حصه ملاؤ شي او د الله نه دهغه فضل غوارئ بې شکه الله په هر څه باندې پوهیږي او مونږ د هر هغه مال وارثان مقرر کړي دي چه کوم مورپلار او نژدي خپلوان پریږدی او کومو خلقو سره چه تاسو څه وعده کړي وي نو هغوی ته د هغوی حصه ورکړئ بې شکه الله په هریو څیز ګواه دي.

**د آیتونو ترون:** پورتنی آیتونو مبارکو کښې د میراث احکام تیر شو. هغې کښې داهم وئیلې شوی دی که د مړده وارثانو کښې ښځې او سړی وی ، او د مړده د طرفه د رشته دارئ نسبت ورسره یو شان وی نو سړی ته به د ښځې په مقابله کښې دوه چنده ملاویږی. داشان د سړو نور هم فضائل ثابت شو یدی. دې باره کښې یو ځل سلمه ﷺ نبی کریم ﷺ څخه تپوس اوکړو چې یارسول الله ﷺ مونږ ته نیم میراث ملاویږی ، او دا شان فلانې فلانې بل فرق هم په مونږ کښې او سړو کښې دې.

ددې مقصد اعتراض کول نه وو بلکه دا خواهش وو چې مونږ خلق هم د سړو سره برابر شو په فضائلو کښې. ځینې ښځو دا خواهش ښکاره کړو که مونږ سړی وې نو مونږ به د سړو په پشان جهاد کښې حصه اخستې. او مونږ ته به هم دجهاد فضیلت حاصلیدې.

یوې ښځې نبی کریم ﷺ ته عرض اوکړو چې سړی ته په میراث کښې دوه چنده حصه ملاویږی او د ښځې ګواهی هم نیمه ده. نو آیا ښځې ته په عبادت او عملونو کښې هم نیمه حصه ملاویږی ؟ نو پدې باندې دا آیت مبارك نا زل شو. او په هغې کښې د دوؤ اقوالو جواب ورکړې شوې دې. د ام سلمه ﷺ د قول جواب ﴿وَلَا تَتَمَنَّوْا﴾ ورکړې شو ، او ددې ښځې د قول جواب ﴿لِلرِّجَالِ نَصِیْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوْا ؕ﴾ سره ورکړې شو[1].

[1]) جامع الترمذي، أبواب التفسير ومن سورة النساء: ج۱، ص۲۳۱، وتفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث: ۵۳۳

## خلاصه تفسیر

﴿ وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ ؕ﴾ او تاسو [ټولو نارینه او زنانه او ته حکم کولے شی چه وهبی یعنی دالله ﷻ وربخښلی]او فضیلتونو نه د یوداسې خبرې تمنا مه کوی چه په هغه کښې الله ﷻ خینوته [لکه نارینه و ته مثلا] په خینې باندې [لکه په ښځو بغیر د عملی دخل دهغوی نه] پورته والئ بخښلے دې [لکه نارینه کیدل یا د نارینه او دوچنده برخه رسیدل یا دهغوی ګواهی کامله کیدل یا دغسې نور] ځکه چې ﴿لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوْا ؕ وَلِلنِّسَآءِ نَصِيْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ ؕ﴾ نارینه او لره دهغوی داعمالو [دثواب] برخه [په آخرت کښې] ثابته ده او زنانه او لره ددوی د عملونو [دثواب] برخه [په آخرت کښې ] ثابته ده [او په قانونی طور هم په دې عملونو نجات او خلاصے اړه لری چه په کښې دهیڅ تخصیص نشته.نوکه دنورو نه د پورته والی دحاصلولو شوق وی نو په اعمالوکښې په کوشش کولو سره دنورو نه زیات ثواب حاصل کړئی هر کله چه تاسو په دې قادر یئ نو دذکر شوو خاصو فضائلو آرزو لرلو صرف خواهش لرل خالص هوس او عبث کار دې ﴿وَاسْئَلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا۝﴾ او [که دالله ﷻ د وربخښلو هغه او فضیلت مینه لرئ کوم چه په عملونو اړه لری لکه باطنی احوال اوکمالات یا نور داسې نو څه بدیت ئې نشته.څو طریقه ئې یواځې د آرزوګانو کول نه دی بلکه پکار دی چه] الله ﷻ نه دهغه د [خاص] فضل خواست [یعنی دعا] کوئی بیشکه الله ﷻ هر څیز ښه پیژنی [په دې کښې هرڅه راغلل یعنی د الله ﷻ وربخښلی وهبی غوروالی د تخصیص وجه هم په کسبی غوروالو باندې ثواب ورکول هم او دویم قسم الله ﷻ وربخښلی غوروالی خواست کول هم نودا جمله دغه ټولو سره تعلق لری]. ﴿وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ ؕ﴾ اوهر داسې مال دپاره چه مورپلار او [نور] خپلوان ﴿ وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ اَيْمَانُكُمْ فَاٰتُوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ ؕ ﴾ خلق ئې [دخپلو مرکیدونه پس] پریږدی مونږ وارثان مقرر کړیدی او چاسره چه ستاسو لوظونه [مخکښې څخه] تړلے شویدی [دے ته مولی الموالات وئیلې شی] هغوی ته [اوس هرکله چه په شریعت کښې خپلوان خلق وارثان مقرر شول ټول میراث مه ورکوئی بلکه صرف] دهغوی برخه [یعنی شپږمه] ورکوی ﴿اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا۝﴾ بیشکه الله ﷻ په هر څیز خبر دار دے [پس هغوی ته دټولو میراث نه ورکولو حکمت او دشپږمې برخے مقرر کولو مصلحت اودا چه شپږمه برخه هغوی ته څوك ورکوی او څوك نه ورکوی په دې ټولو خبرو خبردار دې].

## معارف او مسائل

**داختیاری او غیر اختیاری څیزونو[شیانو] آرزو لرل ﴿وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ ؕ﴾**: په آیت کښې د هغه غیر اختیاری فضیلتونو دآرزو لرلو نه منع کړې شویده چه نوروته حاصل دی،وجه ئې داده چه انسان،هرکله خپل ځان دبل نه په مال،دولت،آرام اوعیش،ښکلا اوښه والی،علم اوفضل وغیره کښې کم بیا وینی،نودعادت له مخه په ده کښې دحسد یوه جذبه روالاړه شی،چه تقاضائې کم ناکم داوی چه زهٔ هم دهغه برابریاتر زیات شم.حالانکه په اکثروختونو کښې په دې قدرت نشی لرلې،ولې چه ډیر کمالات داسې دی چه دانسان په کوشش اوعمل هیڅ قسم اړه نهٔ لری او محض دقدرت الهی انعامات وی لکه دچانارینه کیدل ،دپیغمبرئ په اعلی خاندان کښې یا د حکومت په خاندان کښې ئې پیدا کیدل ،یاښکلې اوښائیسته پیدا کیدل وغیره شو،یعنی چاته چه دا

انعامات حاصل نه دي هغه كه تهول عمر كوشش اوكړي اوډير زوراولګوي نوددې د حاصلولو قدرت نې هيڅكله نشته اونه په دارو[دوا] ،علاج يانورو تدبيرونو او انتظاماتوسره دا حاصلولې شي ،هركله چه داسې دسره نشي كيدې نوددهٔ داجذبه راوچته [راولاړه] شي چه ددغه بل نه هم دغه نعمت اوشوكولې شي چه هغه هم دده سره برابرياتركم شي ،داسې خواهش اوجذبه حسد نوميږي چه په انساني اخلاقوكښې بيحده زيات شرمناك اوضررناک خصلت دې ،هم دې نه په دنيا كښې ډيرې جګړې ،فسادونه ،وژل اولوټ ماروالازيږي -دقرآن كريم دې آيت ،ددې فساد د دروازې بندولوپه غرض ارشاد اوفرمائيلو: ﴿وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾ [يعنى هركله چه الله تعالى دخپل حكمت اومصلحت په تقاضاپه خلقو باندې كمالات اوغوروالى ويشلى دى ،چاته نې يوصفت وركړواوچاته نې بل صفت وركړو ،چاته نې كم وركړل اوچاته نې زيات، نوهريود په خپل قسمت راضى اوخوشحاله پاتې كيږى ،دبل چادفضيلتونو اوكمالاتوآرزو كول نهٔ دى پكارولې چه نتيجه نې غم ،خفګان اودحسد دلوئې ګناه نه سوا بل څه نه راخيژى -

نارينه دې په خپل نارينتوب شكراداكړي ،ښځه دې په خپل ښځوالى راضى شى اوداخيال دكوى چه دالله تعالى دحكمت تقاضابه داوه چه كه زهٔ نې نارينه جوړه كړې وې نود نارينه ذمه دارى به م نشوه پوره كولې اوګناهګاريدم به ،ښكلې بنده داهاشمى كيدل دالله تعالى په دې وركړى نعمت شكرګذاراوسى ،بدشكله دې په دې راضى وى چه دې كښې به دالله تعالى ضرور څه حكمت وو، مالره به په دې كښې خيرووً ،كه راته ښكلااوښائيست راكړې شوې وې نوكيدې شوه چه په څه فتنه اوفساد كښې اخته شوې وم ،دهاشمى خاندان يوغړې د دالله تعالى انعام اوګڼرى اودهغه شكريه داداكړى ،اوڅوک چه ددې خاندان غړې نهٔ وى نونهٔ دې په دې فكركښې اخته كيږى اونهٔ دې ددې آرزوكوى ،څكه چه داپه عمل اوكوشش باندې اره نهٔ لرى ،نودغسې آروزولرل به نې په ګناه كښې اخته كړى ،دغم ،خفګان نه سوا به ورته بل څه په ګتورانهٔ شى ،ددې فكرپه ځائې دنيكوعملونوفكركول پكاردى ،ولې چه په دې صورت كښې داسې كول ممكن دى چه دالله تعالى په نزدددغه لوئې نسبوخلقونه زيات شى.

ځنې قرآنې اونبوى ارشادات په دې كښې واردشوى دى چه تاسوپه نيكوكښې يوبل نه د وړاندې كيدومقابله كوئ يعنى دهغه عملى اوكسبى غوروالواوكمالاتو ليدلو سره دې د هغه دحاصلولو دپاره كوشش كوئ كوم چه دانسان په اختياراووس كښې كيدې شى ،داسې قسم عمل اوكوشش په حديث شريف كښې ډيرښه اوخوښ ګنړلې شوې دې ،داآيت ددې ترديدنه كوى بلكه په آخرى برخه كښې نې تائيد كوى لكه فرمائى: ﴿لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوا وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ﴾ يعنى كه نارينو په كسب اوعمل سره څه ترلاسه كړل نودهغې برخه به وركولې شى اوكه زنانو دكوشش اوعمل په ذريعه څه حاصل كړل نوورته به دهغې برخه ملاويږى -

دې كښې دااشاره موجوده ده چه دفضيلتونو اوكمالاتو په حاصلولو كښې كوشش اوكسب وعمل كول بيكاره نهٔ دى بلكه هرنارينه اوزنانه ته به دهغوئ دعمل اوكوشش برخه ضرور ملاويږى دې نه داهم معلومه شوه چه دبل چا ،علمى ،عملى اواخلاقى غوروالى چه څوک اوګورى ،دهغې آرزواولرى اوبيادآرزوپوره كولودپاره كوشش اوعمل كوى نوهم دامقصودى اوښه كاردې -

دلته يوه مغالطه داشان دمنځه اوځى چه ډيرناخبره مسلمانان پكښې اخښتى دى ،يوخواځنې خلق ،دغير اختيارى فضيلتونو په آرزو كولوسره ،خپل ژوند ،آرام اواطمينان هم په دنيا كښې تباه اوبرباد كړى اوكه په دې كښې نې حسدهم ،داشان شروع كړوچه ددغه وركړى نعمت په باره كښې

داآرزولرل شروع کړي چه دهٔ نه د واغستې شي نوآخرت ئې ځان له برباد کړو ولې چه حسد ئې اوکړو، کوم چه بې غيرته ورته هم ونيلې شي چه د اختياري غورواليؤ حاصلولو کوشش هم نه کوي اوکه څوک ورته څه دغسې خبره اوکړي نوپه خپلې کم همتۍ، سستۍ، بې عملۍ، بلکه بيغيرتۍ باندې پردې اچولو دپاره دغه خبره قسمت اوتقديرته سپاري.

دې آيت راته يوه حکيمانه اوعادلانه ضابطه داسې اوښودله چه لوړنسبي، ښکلي اوښائيسته کيدل وغيره غوندې غير اختياري فضيلتونو کښې هرکله چه کسب اوعمل پکارنهٔ راځي نوتقديرته ئې حواله کول ضروري دي، هرچالره په تقديراودتقديرپه کړوراضي کيدل اودالله تعالى شکريه اداکول پکاردي، ددې نه دزيات آرزولرل هم عبث بې فائدې اونغد [ددنيا] غم اوخفگان هم دې. اوپه اختياري غوروالیؤ کښې هرکله چه کسب اوعمل پکارراځي نوآرزوئې لرل مفيددي، په شرط ددې چه وردپاره کسب اوعمل، کوشش کوي او په دې کښې د آيت مبارك دا وعده هم چې دعمل اوکارکسب کوونکي خوارې به نشي بربادولې، بلکه هريوته به دخپلې خپلې خوارۍ په جوړبرخه حاصليږي خواه نارينه وي اوکه زنانه په بحرمحيط تفسيرکښې دی چه ددې آيت نه وړاندې ﴿لَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ﴾ او ﴿وَلَا تَقْتُلُوٓا أَنفُسَكُمْ﴾ احکام راغلي وؤ چه پکښې دچامال په ناحقه استعمالول اوچالره ناحقه وژل ناروا اګرځولې شويدي( ) اوددې دواړوجرمونو دسرچينې بندولو دپاره داهدايت ورکړې شوې دې چه چاته دمال، دولت، دعيش، عشرت دعزت اومرتبې پورته والې، الله تعالى په تاسوورکړيدې، تاسودهغې آرزوهم مه لرئ ولې چه غلا، داکه اونورونارواؤطريقوسره دچادمال اغستلو، دقتل اولوټ کولووغيره دتولوجرمونواصلي منشاهم داوی چه يوانسان هرکله چه بل چالره په مال، دولت وغيره کښې دځان نه پورته اوزيات اووينې، نواول ئې زړهٔ کښې ورسره دبرابرۍ ياترې دپورته کيدوخواهش اوآرزولري اوبيائې دغه خواهش اوآرزودغې جرمونوته اورسوي چنانچه قرآني هدايت ددې تولوجرمونوسرچينه داسې بنده کړه چه د نورو خلقو د فضيلتونو اوکمالاتوآرزولرل ئې بند کړل.

په آيت کښې وړسې ارشاددې: ﴿وَسْـَٔلُوا ٱللَّهَ مِن فَضْلِهِۦٓ﴾ دې کښې داهدايت دې چه هرکله دځان نه څوک پورته په مال، دولت وغيره کښې اووينې نوپه دغه خاص کمال کښې هغه سره دبرابريدو دآرزوکولوپه ځائې داپکاردې چه الله تعالى نه دهغه دفضل وکرم خواست اوکړئ ولې چه دالله تعالى فضل، هرچادپاره په بيلوبيلوصورتونوکښې ښکاره کيږي، چالره مال، دولت دالله تعالى فضل وي، يعني که هغه فقيروې نوپه گناه اوکفرکښې به اخته شوې وو مگرچالره نيستي او غريبۍ کښې پريښودل دالله تعالى فضل وي، که هغه غني اومالدارشوې وې نو دزرګونو گناهونو ښکار شوې به وؤ، دغه شان چالره فضل خداوندي دهغه په گمنامۍ اوبې آسرې والي کښې ښکاره کيږي اوکه دحال په حقيقت باندې نظر اوکړې شي نوده ته به په عزت اومرتبې ملاويدو کښې ډيروگناهونوکښې اخته کيدل راتلل په دې وجه الله تعالى په دې آيت کښې هدايت ورکړو چه کله، الله تعالى نه غواړي نودېرخاص تاکلې څيزغوښتوپه ځائې دالله تعالى فضل غواړئ، دپاره ددې چه هغه دخپل حکمت په مطابق په تاسودخپل فضل دروازه خلاصه کړي.

په آخرد آيت کښې ئې اوفرمائيل: ﴿إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمًا﴾ [الله تعالى هرڅيزلره پيژندونکې دې] دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه دالله تعالى ويش بعينه دهغه حکمت اوعدل اوانصاف

---

[1] قدمرمزتخريجه.

دي، څوک ئې چه په څه حالت کښې پيدا کړل اووې لړل هم دغه مقتضا دَحکمت او انصاف ده، خو انسان دخپل انجام نه خبرنهٔ وی مګر الله تعالی ئې ښه پيژنی، چه چالره په کوم حال کښې لړل هغه لره مقصود دی؟ دَذکرشوی آيت په شان نزول کښې بيان کړې شوی دی چه هر کله په ميراث کښې دَسړو دوچنده برخه مقرر شوه نو ځنې ښځو دا آرزو اولړله چه که مونږه سړی دې نو غبرګه برخه به مونږه هم اغسته، دَدې په مناسب په بل آيت کښې دَميراث قانون په دې انداز دوباره بيان کړې شو چه په دې کښې تاکلې شوې برخې بعينه حکمت دې او دا دَعدل مطابق دی-هر کله چه انسانی عقل دَټول جهان ښيګړې او خرابئ په خپله ګيره کښې نشی راوستې نو دا هغه حکمتونو ته هم نشی رسيدې چه دَالله تعالی په مقرر کړی قانون کښې ئې لحاظ ساتلې شوې دې نو هر څوک دِ په هغې شکر ګذار اوسی چه کومه برخه ورد پاره تاکلې شوې ده-

**دَعقد موالات په ذريعه دَميراث مونږدلو حکم**: خپل منځ کښې دَلوظ قول کولو په بنا چه دَبرخې ورکولو ذکر دې، دا دَاسلام دَاولې زمانې خبره ده کله چه: ﴿وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ﴾ نازل شو نو دغه حکم منسوخ شو، يعنی هر کله چه نور شرعی وارثان موجود وی نو دَدوو کسانو تر منځه په لوظ، قول پخولو سره په شرعی ميراث باندې هيڅ اثر نهٔ غورځيږی-

اَلرِّجَالُ　قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ　بِمَا فَضَّلَ　اللّٰهُ　بَعْضَهُمْ

| سړی | حاکمان دی | په　ښځو | په سبب ددې چې فضيلت ورکړې دې | الله | بعضو دهغوی ته

خيز باندې ګواه دې | سړی په زنانو حاکمان دی | ځکه چې الله ﷻ يو ډلې ته په بله باندې فضيلت

عَلٰى بَعْضٍ　وَّبِمَآ　اَنْفَقُوْا　مِنْ اَمْوَالِهِمْ ؕ　فَالصّٰلِحٰتُ　قٰنِتٰتٌ

په بعضو | او په سبب ددې | چې خرج کوی نارينه | دمالونو خپلو نه | نو نيکانې صالحانې ښځې | حکم منونکې وی

ورکړې دې | او ځکه چې سړو | په ښځو | خپل مالونه خرج کړی دی |............نو نيکانې ښځې | حکم منونکې ښځې

حٰفِظٰتٌ　لِّلْغَيْبِ　بِمَا　حَفِظَ اللّٰهُ ؕ　وَالّٰتِيْ　تَخَافُوْنَ

حفاظت کونکې وی | دپاره دغائب خاوندانو | سره دهغې | چې ساتلی دی الله | او هغه ښځې | چې يريږئ تاسو

او [دخاوند] په غير موجودګئ کښې [دخپل عزت] حفاظت کونکې ښځې [کومې چې الله ﷻ محفوظ کړې دی] او چه

نُشُوْزَهُنَّ　فَعِظُوْهُنَّ　وَاهْجُرُوْهُنَّ　فِي الْمَضَاجِعِ

دسرکشئ دهغوئ نه | نو نصيحت اوکړئ هغوئ ته | او جدا شئ دهغوئ نه | دخوب په بسترو کښې |

د کومو ښځو د سرکشئ نه ويريږئ | نو [اول ئې] په طريقه پوهه کړئ | او بيا ترې خپلې بسترې جدا کړئ

وَاضْرِبُوْهُنَّ ۚ　فَاِنْ اَطَعْنَكُمْ　فَلَا تَبْغُوْا　عَلَيْهِنَّ　سَبِيْلًا ؕ

او اووهئ هغوئ | نو که تابعداری شوې هغوئ حکم منلو ستاسو ته | نو مه لټوئ تاسو | په هغوئ باندې [لاره د زياتی

او بيانې اووهئ | نو که هغوئ ستاسو خبره اومنله نو هيڅ بې هيڅ ورته بهانې مه جوړوئ

اِنَّ اللّٰهَ　كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا ۝　وَاِنْ　خِفْتُمْ　شِقَاقَ　بَيْنِهِمَا

بيشکه الله | دی | اوچت | لوئ | او که چرې | يريږئ تاسو | دمخالفت نه | په منځ دهغوئ دواړو کښی

او دا يقين اوکړئ چې بيشکه الله ﷻ ډير اوچت او ډير لوئې دې | او که د دواړو [ښځې خاوند] په مينځ کښې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَابْعَثُوْا | حَكَمًا | مِّنْ اَهْلِهٖ | وَحَكَمًا | مِّنْ اَهْلِهَا ۚ |
| نو اوليږئ | يو فيصله كونكې | دخپلوانو دسړي نه | او بل فيصله كونكې | دخپلوانو دښځې نه |
| د مخالفت نه يريږئ نو يو ثالث د سړي دخپلوانو نه مقرر كړئ او يو ثالث د ښځې د خپلوانو نه مقرر كړئ | | | | |
| اِنْ يُّرِيْدَآ | اِصْلَاحًا | يُّوَفِّقِ اللّٰهُ | بَيْنَهُمَا ؕ | |
| كه اراده لرله هغوئ دواړو | د صلحې كولو | نو موافقت به پيدا كړي الله | په منځ دهغوئ دواړو كښې | |
| كه هغوئ دواړه جوړښت غواړي نو الله ﷻ به د دواړو په مينځ كښې موافقت پيدا كړي | | | | |
| اِنَّ اللّٰهَ | كَانَ عَلِيْمًا خَبِيْرًا ۝ | | | |
| بيشكه الله | دې ښه پوه | ښه خبردار | | |
| بيشكه الله ﷻ ښه پوهه او په هرڅه خبردار دې | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** سړي د ښځو نګران دي ځکه چه الله په دوی کښې يو ته په بل باندې فضيلت وركړې دې او ځكه چه سړو خپل مال خرچ كړې دې نو نيكانې ښځې تابعداري وي ، د سړي په نشتوالي كښې د الله وركړې شوي حفاظت سره (دهغه د حقوقو) حفاظت كوي او كومو ښځو نه چه تاسو ته د سركشۍ ويره وي نو (اول) هغوی لره پوهه كړئ او (كه دې سره كار ونه شي ) نوهغوی لره د اوده كيدو په ځايونو كښې يواځې كړئ (او كه دې سره هم اصلاح ونه شي) نو هغوی لره ووهئ بيا كه هغوئ ستاسو خبره اومني نو دهغوی خلاف دڅه كارروائى كولو دپاره څه لاره مه لټوئ يقين وكړئ چه الله دټولو نه اوچت ، ټولو نه لوئ دې كه تاسو ته دښځې خاوند مينځ كښې د اختلاف څه خطره وي نو (ددوی مينځ كښې د فيصلې كولو دپاره) يو فيصله كوونكې د سړي دخاندان نه او يو فيصله كوونكې د ښځې د خاندان د طرف نه اوليږئ كه دواړه اصلاح كول غواړي نو الله به ددواړو مينځ كښې اتفاق راولي بې شكه الله ته د هرې خبرې علم دې او د هرې خبرې نه خبر دې.

**د آيتونو ترون:** د ښځو متعلق چې كوم احكام تير شوي دي په هغې كښې د هغوئ د حق تلفئ ممانعت هم بيان شو ، وړاندې[مخ ته] د سړو د حقوقو بيان دې . ددوئ د مطالبې او ددوئ د فوت كولو په صورت كښې د تاديب اجازت هم وركړې شوې دې . د حقونو د اختلاف په صورت كښې ددې د تصفيه طريقه او د حقونو د ادا كولو فضيلت هم ذكر شويدې . دې سره ددې خبرې هم تصريح شوې ده چې دسړو درجه د ښځو څخه پورته ده . ددې څخه دا جواب هم و اضح شو چې هر كله سړې د ښځې په مقابله كښې افضل دې نو دا اشكال نه دى كول پكار چې په ميراث كښې د ښځو حصه د سړو څخه كمه ولې ده ؟

### خلاصه تفسير

﴿ اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ ﴾ سړي حاكمان دي په ښځو [د دوو وجوهاتو نه يوخو] ﴿ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ﴾ په دې سبب چه الله تعالى بعضو لره [يعنى سړي لره] په بعضو [يعنى په ښځو قدرتى] غورواليئ وركړے دے [دا خو وهبى خبره ده] ﴿ وَّبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ ؕ ﴾ او [بل] په دې سبب سره چه سړو [په ښځو] خپلو مالونو لره [مهر كښې اوپه خرڅ خوراك كښې] لګولى دى [او دمال لګوونكو لاس پورته اوډير ښه وى دهغې نه چه پرے مال اولګوى اوداكار

اختیاري دي؛ ﴿ فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ ﴾ نوکومې ښځې چه نیکانے دی [هغوی دسړو ددې فضیلتونو او حقوقوله وجې] تابعداری کوی [او] دسړی دعدم موجودګئ کښې [هم] ﴿ حٰفِظٰتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ ﴾ په حفاظت [او توفیق] دالله تعالی سره [دهغه دعزت او مال] سارنه کوی ﴿ وَالّٰتِىْ تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ ﴾ او کومې ښځې چه [داسې نه وی بلکه] داسې وی چه تاسو ته [په قرینو سره] دهغوی دبد دماغئ [اقوی] احتمال وی نو [اول] ﴿ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ فِى الْمَضَاجِعِ ﴾ هغوی ته زبانی نصیحت کوئی او [چه نه منی نو] هغوی د پریوتو په ځایونو کښې یواځې پریږدئی [یعنی ورسره مه پریوزئ] ﴿ وَاضْرِبُوْهُنَّ ۚ فَاِنْ اَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوْا عَلَيْهِنَّ سَبِيْلًا ﴾ او که [په دې سره هم منع نشی نو] هغوی [په سمون او اعتدال] سره وهئ بیاکه هغوی ستاسو تابعداری کول شروع کړی نو په هغوی [زیاتی دپاره] بهانے او موقعه] مه لټوئی [ځکه چه] ﴿ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا ۝ ﴾ بیشکه الله تعالی لوئې دبلندئی او لوئې خاوند دے [دده حقونه، قدرت او علم، ټول لوے دی که تاسو داسې کوئی نو بیا هغه هم په تاسو باندې دخپلو حقوقو په باره کښې په زرګونو الزامونه قائمولے شی]. ﴿ وَاِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا ﴾ او که [قرینو سره] ستاسو پورتنو خلقو په دې دواړو خاوند ښځه کښې [دداسې اختلاف] اندیښنه وی [چه هغه به دوی په خپل مینځ کښې نشی سمولے] ﴿ فَابْعَثُوْا حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ وَحَكَمًا مِّنْ اَهْلِهَا ﴾ نو تاسو خلق یوسړې چه دخبرې سپینولو جوګه وی دښځې دخاوند نه [مقررکړئی او ددې اختلاف ختمولو دپاره ئے هغوی ته] اولیږئی [چه هغوی لاړشی او د حالاتو تحقیق اوکړی اوڅوك چه بے لارې وی او یا دواړو څه ناڅه قصور وی نوپوهه دے نے کړی] ﴿ اِنْ يُّرِيْدَآ اِصْلَاحًا يُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَا ﴾ که دغے دواړو سړو ته [د ربښتنی زړه نه] سمے راوستل [دمعاملے] منظور وی نو الله تعالی به په دې ښځه خاوند کښې په دې شرط چه هغوی ددې دواړو په رائې باندې [عمل اوکړی] اتفاق [سمے] راولی ﴿ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا خَبِيْرًا ۝ ﴾ بیشکه الله تعالی لوئې دعلم خاوند او لوئې خبردار دے [په څه طریقه سره چه ددوی ترمینځه صلح کیدیشی په هغې پوهیږی کله چه د دواړو منصفانو نیت سم او روغ اووینی نو هغه طریقه به ددوی په زړونو کښې وراچوی].

## معارف او مسائل

﴿ اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ ﴾: دسورت نساء دشروع نه تردې ځایه پورې زیات احکام او هدایات د ښځو د حقوقو په باره کښې راغلی دی چه پکښې هغه ظلمونه دمنځه اوښکلې شوی دی چه داسلام نه وړاندې به په زنانو باندې کولې شو۔ اسلام ښځوته هغه ټول انسانی حقوق ورکړل چه سړوته حاصل دی، که دښځو په ذمه ئې دسړو څه ناڅه خدمتونه مقرر کړل نو په سړوئې دښځو حقوق فرض کړل۔

دسورت بقره په آیت کښې ئې ارشاد اوفرمائیلو ﴿ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِىْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ﴾ یعنی دښځو حقوق دسړو په ذمه هم هغسې واجب دی څنګه چه دسړو حقوق دښځو په ذمه واجب دی، ددې دواړو د حقوقو دیوشان والی حکم ئې ورکړو او تفصیلات ئې دعرف په حواله سره اوفرمائیل، د جاهلیت او تمامې دنیا دظلم رسمونه ئې د یو مخه ختم کړل، البته دا ضروری نه دی چه د دواړو د حقوقو صورتونه د هم یوشان وی، بلکه دښځې په ذمه چه څنګه کار لازم دې نو د هغې په مقابل کښې په سړی باندې بل قسم کار لازم دې ښځې د کورنو او د ماشومانو د پالنې او ساتنې ذمه وارې

دي نوسري دَدوئ دَضرورتونو پوره کولو دپاره دکارروزګار کولو ذمه واردي، دښځو په ذمه دسړوخدمت اوفرمانبرداری کول دی، دسړوپه ذمه دَدوئ مهر اونفقه، یعنی دټولوضروری خرڅ اخراجاتوانتظام کول دی، غرض داچه دې آیت ښځوته دسړوپشان حقوق ورکړل. مګرداسې هم یوځیزشته چه په هغې کښې سړولره په ښځوپورته والې اویوخاص قسم غوروالې حاصل دې ځکه ئې دآیت په آخر کښې اوفرمائیل:

﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ۗ﴾ یعنی سړولره په ښځو باندې یودرجه غوروالې حاصل دی۔

په قرآن کریم کښې دَدې درجې بیان دَقرآن حکیم دَحکیمانه طرزبیان سره داشان شوې دې چه دَسړوداغوروالې اوپورته والې، پخپله دَښځودښیګړې اوفائدې دپاره دَحکمت خداوندی دَمقتضامُطابق دې، په دې کښې نه دَښځې دَشان کمول دی اونه ئې پکښې څه نقصان دې۔

ارشادئې اوفرمائیلو: ﴿اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ﴾ په عربی ژبه کښې ﴿قوام، وقیام، قیم﴾ هغه چاته وئیلې شی چه دَیوکاریاانتظام چلونکې اوذمه واروی ځکه په دې آیت کښې د ﴿قوام﴾ ترجمه، عموماً حاکم کړې شوې ده، یعنی سړی په ښځو باندې حاکمان دی مراددادی چه هراجتماعی نظام دپاره دعقل اوعرف په لحاظ داضروری دی چه دَدې څوک سرپینچ او سربراه، یا امیر یا حاکم وی، چه دَاختلاف راولاړیدوپه صورت کښې دَده په فیصلې کولوسره کارسرته رسی، ځنګه چه یوملک، سلطنت اوریاست دپاره تول، ده لره ضروری منی، دغه شان قبائلی نظام کښې هم، دا همیشه دپاره ضروری ګڼړلې شوې دې، تردې چه یوسړې دَقبیلې سرداراوحاکم منلې شوې دې، داشان په دې کورنې نظام کښې چه ورته خانه دارې، وئیلې شی، په دې کښې هم دَیو امیر او سربراه ضرورت وی، دماشومانواوښځوپه مقابله کښې، دې کاردپاره الله تعالی سړی منتخب کړل، ولې چه دَدوئ علمی اوعملی قوتونه دَښځواوماشومانوپه نسبت زیات دی، اوداپوداسې ښکاره معامله ده چه هیڅ یوپوهیدونکې ښځه یاسړې ترانکارنشی کولې۔

خُلاصه داده چه دَسورت بقره په آیت کښې ئې ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ۗ﴾ اوفرمائیل اودَسورۂ نسآء په ذکرشوی آیت کښې ئې ﴿اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ﴾ اوفرمائیل اووې ښودل چه اګرکه دَښځوحقوق په سړو باندې هم داسې لازم اوواجب دی ځنګه چه دَسړوپه ښځودی اودَدواړوحقوق ،سره یوشان دی خوپه یوځیزکښې سړی ته بیلتون حاصل دې چه دوئ حاکمان دی، اودَقرآن کریم په نوروآیتونوکښې داهم واضح کړې شو چه داحکومت چه سړولره په ښځودې، صرف دې دپاره نه دې چه بس دې امیروې اوبې واګوحاکم وې بلکه دې داسې حاکم دې چه دَشرعی قانون اومشورې پابند دې صرف دَخپل طبیعت په غوښتنه څه کارنشی کولې، ده ته حکم ورکړې شوې دې چه ﴿وَعَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ﴾ یعنی ښځوسره په معروف طریقه ښه سلوک کوئ. داشان په بل آیت کښې دَ ﴿عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ﴾ تعلیم دی. چه پکښې دَدې هدایت ورکړې شوې دې چه دکورپه کارونوکښې دَښځې په مشورې سره کارکوئ ددې تفصیل نه پس، دَسړی حاکمیت، ښځې دپاره دَڅه خفګان سبب نشی جوړیدې، بیاهم هرکله چه دااحتمال کیدې شوچه دَسړودې غوروالې او دَخپلې ماتحتئ له کبله په ښځه څه ناځه اثراوشی ،ځکه دلته الله تعالی صرف په حکم ښودو او جاری کولو باندې بس والې اونکړو، بلکه هم پخپله ئې دَدې حکمت اووچه هم اوښوده، یو وهبی چه دَچاپه عمل اوکسب څه اړه نه لری، بل کسبی، چه په کسب اوعمل اړه لری.

رُومبی: وجه ئې دااوفرمائیله ﴿بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾ یعنی دلته په دُنیا کښې الله تعالی

دَيو خاص حکمت اوښیګړې لاندې ،یوته په بل لوئی ورکړې ده،څوک ئې افضل[غوره]اوڅوک ئې مفضول جوړکړې دې چه بل پرغوره وی،لکه چه یوخاص کورلره الله تعالی،خپل ، بیت الله، ، او ، ،قبله، ،اوګرځولو ،بیت المقدس ته ئې خاص غوروالې ورکړو ،دغه شان حاکمان جوړول هم یوخداداد غوروالې دې چه دَسړوپه کوشش اوعمل یادَښځوپه کوتاهۍ اوبې عملۍ څه اړه نهٔ لری ـــــ بله وجه کسبی اواختیارِی داسې ده چه سړی خپل مالونه په ښځولګوی،مهرونه ورته اداکوی اودَدوئ دَټولوضروریاتوپوره کولوذمه داری اخلی ـــــ هم دَدې دوؤ وجوهاتوپه بناء سړی په ښځو باندې حاکمان جوړکړې شو-

**فائده**:دلته یوې بلې خبرې کښې دَغورکولوضرورت دې-ابن حبان په بحرِ محیط کښې لیکی چه هرکله دَسړوحاکمیت په دؤووجهوبناء وونو داخبره ترهم ثابتـه شوه چه څوک صرف په زوراوغلبې کولوسره دَوالی اوحاکم جوړیدوحقدارنه وی،بلکهٔ هله والی جوړیدې شی چه دَدغې کاراهلیت اوصلاحیت پکښې وی( ۱ )-

**دَسړودزیات غوروالی بیانولودپاره دقرآن کریم عجیبه طریقه**:دَرومبئ وجهې بیانولولنده طریقه داوه چه سړواوښځوته ئې ضمیرونه داسې راجع کړې وې چه ﴿فَضَّلَهُمْ عَلَيْهِنَّ﴾خوقرآن کښې دَدې په ځائې داسې اوفرمائیل ﴿بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾حکمت پکښې دادې چه سړې اوښځه پکښې دَیوبل برخه ښکاره کولوسره دااشاره کول ؤو چه که په څه څیزکښې،په ښځوباندې دَسړوپورته والې ثابت هم شی نومثال به ئې داوی چه لکه دَانسان سردَهغه دَلاس نهٔ،یاﺯړه ئې دَمعدې نه زیات غوره دې نومطلب ئې دَلاس یامعدې اهمیت اودرجه کمول نه دی.په دې شان هرکله چه سړې دښځې حاکم جوړشونودې مطلب دانهٔ دې چه ګنې دَښځې درجه یامقام کم دې،ځکه چه دَدې دواړو مثال دَیوبدن دَبرخواواندامونودې چه سړې په مثال دَسراوښځه په مثال دَلاس ده-

ځنې مفسرینو ﷭ فرمائیلی دی چه دَدې عنوان سره دَې اړخ تـه هم اشاره شوې ده چه دَسړو زیات فضیلت دَښځونه دَجنس اومجموعې په اعتبارسره دې ،پاتې شوافراد. نوکیدې شی چه څوک ښځه په علمی اوعملی کمالاتوکښې دَسړی نه پورته شی اودحاکمیت په صفت کښې هم دَسړی نه اُوچته شی-

**سړی اوښځې مختلف عملونه دَهغوی په اصولوبناءدی**:بله اختیاری وجه چه داسې بیان کړې شویده چه سړی خپل مالونه په ښځولګوی،په دې کښې هم څواهموخبروته اشاره کړې شویده-مثلاًیوداشبه لرې کول دی چه دَمیراث په آیتونوکښې دَسړوبرخه غبرګه اودَښځو او نیمه ولې ده؟ نو په دې آیت کښې دَدې وجه دااوښودلې شوه چه ټول قسمه مالی ذمه وارئ په سړو دی، دَ ښځو حال خودادې چه دواده نه وړاندې دَدوئ ټول خرڅونه دَپلارپه ذمه دی اودَواده نه پس ئې په خاوند دی، اوس په دې کښې په ژورنظرکتلوسره داخرګندیږی چه دَسړی برخه دوچنده کیدل دا هم هغـه تـه څه زیاتی ورکول نه دی ځنکه چه دَدې فائده هم ښځوته واپس راځی ـــــ بله اشاره پکښې دَژوند دَاهم اصولوپه باره کښې داهم ده چه دَپیدائیش اوفطرت په اعتبارسره ښځه دَدې جوګه نهٔ ده چه خپل خرڅ اخراجات د پخپله پوره کولودَپاره مال ګټی نهٔ دَدې حالات دې سره سمون خوری شی چه محنت ،مشقت اوخواری مزدوری د پخپله کوی اوداشان دکارکسب نورو ذریعو اختیارولو دپاره دَسړوپشان ،په دفترونواوبازارونوکښې ګرځی راګرځی.هم داوجه چه الله تعالی دَدې ټولې مالی

۱ ) تفسیر البحر المحیط، تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۲۱

ذمه داري؛ په سرو واچولې دُواده نه وړاندې دغه ذمه داري؛ پلار پوره کوي اودُواده نه پس ئې خاوند اداکوي. بل اړخ ته دانساني نسل دزياتولو دپاره ،ښځه ذريعه جوړه کړې شويده دماشومانو او دُ کور سنبالولو ذمه داري هم په دې ښځه اچولې شويده ولې چه سړی دغسې نشي کولې لهٰذا دا کنټرل نهٔ دی پکار چه ښځه په خپل خرڅ اخراجاتو کښې سړی ته دمحتاج کيدو په وجه دُدې مرتبه کمه کړې شويده-بلکه دتقسيم کار په اُصولو ديوتيانې تقسيم شويدی،البته دُ ډيوټيانو ترمينځه دفضيلت فرق دلته هم شته-

خُلاصه ئې داده چه دُدې دواړو وجهو په ذريعه دااوښودلې شوچه دَسړو په حاکم جوړيدو سره نهٔ دَښځې درجه کميږي اونهٔ پکښې دَسړی څه فائده شته بلکه فائده ئې بياهم ښځې ته راګرځي

**نيکوکاره بي بي**: دَدې آيت په شروع کښې دَضابطې په ذول دااوښودلې شوچه سړې په ښځه حاکم دې،بيائې دَنيکانو اوبدانو ښځو بيان داسې اوکړو: ﴿فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ حٰفِظٰتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ﴾ يعنې نيکانې ښځې هغه دي چه دَسړي حاکميت منې اودَهغوی؛ تابعداري کوي او دُ خپلو خاوندانو پشې شاهم دَخپل نفس اودَدوی؛ دَمال حفاظت کوی، ،يعنې دَخپلې پاکی؛ اوپاک لمنې؛ اودکور دَمال حفاظت په داسې شان کوي چه سړی ورسره موجود هم نهٔ وی،داد کور زيات ضروری انتظام کول دی،چه نيکانې ښځې ئې په ښه شان سره پوره کوی يعنې که خاوندئې په کور کښې ورسره وی نو په دواړو حالاتو کښې دوی؛ دغه خپل فرض پوره کوی داسې نهٔ ده چه دخاوندانو مخامخ خودې غم کوی ليکن که دوی؛ دکورنه بهرشي نو په دې کښې بې پروای؛ کوی-

چنانچه رسول الله ﷺ دَدې آيت دَتفسير په ډول داسې فرمائيلی دی:

﴿خير النساء امراة اذا نظرت اليها سرتك واذا امرتها اطاعتك واذا غبت عنها حفظتك في مالها ونفسها﴾(۱)يعنې ډيره غوره ښځه هغه ده چه کله ورته اوګورې نوخوشحاله شې اوچه ورته څه حکم ورکړې نوهغه منی اوکله چه ترغائب شې نودَخپل مال اوځان ساتنه کوی.

اوهر کله چه دَښځو دا ذمه واری؛ دواړه [خپلې پاکی؛ اودَخاوند دَمال ساتنه]پوره کول څه آسان کارنه دې خکه وړاندې فرمائی ﴿بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ﴾ يعنې په دې حفاظت کولو کښې الله تعالی دَښځو امداد کوی چه دَهغې په ادانړه اوبرکت دا ،خپله دغه ذمه واری پوره کولې شی،ورنه دَنفس اوشيطان مکرونو ،هروخت هرانسان سړې اوښځه راګير کړی دی،اوخصوصاً ښځې په خپلو علمی اوعملی قوتونو کښې دَسړونه زياتې مضبوطی ښکاری خکه چه داتول دَالله تعالی توفيق اوامداد دې،هم دغه وجه ده چه دبې حيايی؛ په ګناهونو کښې دَسړو په نسبت،ښځې،ډيرې کمې اخته کيږی،دَتابعدارو اوفرمانبردارو ښځو غوروالې ځنګه چه دَدې آيت نه معلوميږی په دې سلسله کښې احاديث هم راغلی دی. چنانچه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه کومه ښځه دَخپل خاوند تابعداره وی هغې دَپاره دَهوامارغان دَدرياب و نو کبان [ماهيان]،دَآسمانونو فرښتې اودَځنګلونو درندګان دَالله تعالی نه بخښنه غواړی(۲)-

**نافرمانه ښځه اودهغې دسمولو طريقه**: وروسې دَهغه ښځو په باره کښې بيان دې چه دَخپلو خاوندانو فرمانبرداری بيخی نهٔ کوی،ياکوتاهی پکښې کوی،دَدې اصلاح اوسمولو دپاره سړوته په ترتيب سره درې طريقې ښودلې شويدی،لکه فرمائی ﴿وَالّٰتِيْ تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ

۱) تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث: ۵۲۴۴
۲) تفسير البحر المحيط، تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۱

﴿وَاضْرِبُوهُنَّ﴾ يعنى كه ښځې نافرمانى كوى ياتر دې اندېښنه لرئ نو دوى دسمولو طريقه داده چه ددوى كټ بستره ځان نه بېل كړئ چه ددې بېلتون له كبله ورسره دخاوند دخفګان احساس اوشى اوپه خپلو كړوپښېمانه شى. دلته قرآن كريم كښې د ﴿فِي الْمَضَاجِعِ﴾ لفظ راغلى دې، فقهاؤ دې نه دامطلب راؤښكلې دې چه صرف بستره تربيله كړئ، ځائې، مكان مۀ بدلوئ، داسې چه په يوځان له مكان كښې پرېښوې شى په دې سره به ښځې ته خفګان هم زيات وى او د فساد زياتېدو ويره پكښې هم شته. يوصحابى روايت كړې دې:

﴿قلت يارسول الله ﷺ ماحق زوجة احدناعليه قال ان تطعمها اذا طعمت وتكسوها اذا اكتسيت ولاتضرب الوجه ولاتقبح ولاتهجر الا في البيت﴾ [مشكوٰة] ([1]) مارسول الله ﷺ ته عرض اوكړو چه زمونږ دبيبيانو په مونږه څه حق دې؟ هغوئ اوفرمائيل چه تاسو خورئ نو په هغوئ هم خورئ او چه تاسو اغوندئ هغوئ ته هم اغوندوئ او په مخ ئې مه وهئ او كه تربيليږئ نو دومره كوئ چه [بستره تربيله كړئ] مكان تر مه بيلوئ-

او چه ښځې په دې شريفانه سزا خبردارولوا باندې هم منع نشى نو بيا دهغوئ دمعمولى شان وهلو اجازت هم دې چه په بدن ئې څه اثرنۀ پريوځى، هډوكى ماتيدو ،زخمى كيدو ته ئې خبره نۀ رسى او په مخ باندې ئې وهل مطلقًا منع كړې شويدى-

رومبئ دوه سزاګانې خوشريفانه سزاګانې دى چه انبياؤ او نيكانو خلقونه دخبرې دمخه هم ددې اجازت منقول دې او عمل پر هم ثابت دې-ليكن ددريمې سزا [وهلو ټكولو] اګرچه دمجبورئ په درجه كښې، په يوخاص انداز سره ،سړى ته ددې اجازت وركړې شوې دې ،مګر دې سره په حديث كښې داهم ارشاددې ، ﴿لن يضرب خياركم﴾ ([2]) يعنى ښه سړى به دوهلو داسزا ښځوته نۀ وركوى، چنانچه انبياؤ ﷺ نه ،چرته داسې عمل منقول نۀ دې-

ابن سعد او بيهقى رحمه الله دحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه دلوربى بى رضي الله عنها نه داروايت نقل كړيدې، چه رومبى سړى ،مطلقًا دښځو دوهلونه منع كړې شوى وو ،مګر بيا ښځې زمرئ [زړورې] اشوې نو دااجازت دوباره وركړې شو ([3])-

دذكرشوى آيت تعلق هم دا قسم يوې واقعې سره دې، شانِ نزول ئې دادې چه زيدبن ابى زهير رضي الله عنه دخپلې لوربى بى نكاح، حضرت سعدبن ربيع رضي الله عنه سره كړې وو، ددوئ ترمنځه څه اختلافات راغلل ،خاوندئې يوه څپيره اووهله، حضرت حبيبه رضي الله عنها خپل والدته ددې شكايت اوكړو، والدئې درسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضره كړه، هغوئ حكم وركړو چه حبيبې ته اختياردې چه هغه هومره په زوره څپيرې سره دسعدبن ربيع رضي الله عنه نه بدل واخلى څومره په زوره چه هغه څپيره وركړې ده. دې نه پس هغوئ دواړو دبدلې اغستلو دپاره كورته روان شو خو په دغه وخت كښې داآيت شريف نازل شو، چه پكښې دآخرى درجې په حيث دښځې دوهلو اجازت راغلې دې او په دې سره ئې دسړى نه دقصاص ،انتقام يابدل اغستو اجازت نه دې وركړې، دآيت په نازليدو رسول الله ﷺ دغه دواړه [پلار او لور] راؤبلل دالله تعالى حكم ئې ورته ښكاره كړو او دبدل

[1] ) مشكوٰة، كتاب النكاح، باب عشرة النساء: ج۲، ص۲۸۱
[2] ) المستدرك للحاكم رقم الحديث: ۲۷۷۵
[3] ) طبقات ابن سعد، باب ذكر ضرب النساء: ج۸، ص۲۰۴

اغستو رومبې حکم ئې منسوخ کړو([1])۔

دآیت په آخر کښې ئې ارشاداوفرمائیلوچه ددې درې طریقوپه ذریعه که هغوئ تابعدارې شي نوبیاتاسوهم دَستر ګوپټولونه کاراخلئ، په معمولي خبرو باندې تورونه پرِ مه پورې کوئ اوپو هه شئ چه دالله تعالی قدرت، ټولونه راچاپیره دې۔

**دمضمون خلاصه** آیت نه، دَبنیادي اُصولوپه حیثیت سره چه کومه خبره مخې ته راځي، هغه داده چه دَتیرشوي آیتونو مطابق، اګرچه دَښځواوسړو حقوق یوشان دي، بلکه دَښځو دَحقوقودپوره کولوپه دې وجه زیات انتظام کړې شوې دې، چه دوئ دَنارینؤنه کمزورې دي، دَخپلومټوپه زور، دسړونه خپل حقُوقه نشي ترلاسه کولې، خوددې مساوات اوبرابرئ دامعنې نۀ ده چه دَښځې اوسړي ترمنځه دِهیڅ قِسم غوروالي اودرجې دسره څه فرق شته دې نۀ، بلکه دَحکمت اوانصاف دَتقاضامطابقِ ددوؤسببونه، سړي په ښځو، حاکمان جوړشوي دي۔

اول داچه دجنسِ سړي په جنسِ ښځه باندې دَخپلوعلمي اوعملي کمالاتوپه اعتبارسره یوخداداد غوروالي اوپورته والي حاصل دې چه جنس ښځه ئې دَسره نشي حاصلولې. دَخانِ خاني ،انفرادي اواتفاقي واقعاتومعامله بیله ده، بل داچه سړې په خپل مال اوګټې سره دَښځې دَټولوضروریاتوپوره کولوذمه داردې۔ رومبې سبب وهبي [غیراختیاري]اوبل کسبي اواختیاري دې اوداهم وئیلې شي چه دَیوموړپلارپه اولاد کښې ځنې لره حاکم اوځنې لره محکوم جوړولو دپاره، دَعقل اوانصاف له مخې دوه څیزونه ضروري وو۔ یوداچه حاکم جوړیدونکې دَعلم اوعقل په اعتبارسره دَحاکم کیدوجوګه کیدل اوبل داچه دَدۀ په حاکم کیدو باندې محکوم خلق راضي وي، رومبې سبب داواضح کوي چه سړې دَحاکم جوړیدووړدې اودویم سبب دَمحکوم پرِ راضي کیدل واضح کوي. ځکه چه هر کله دَنکاح په وخت ښځه دَخپل مَهر اوخرڅ اخرجاتو دذمه دارئ اغستوپه شرط باندې دَنکاح اجازت ورکوي، نوسړي [خاوند] دَغه حاکمیت منی اومنظُوروِلي۔

غرض داچه ددې آیت په رومبئ جمله کښې دکورنئ اوبال بچه دارئ دَنظام یوبنیادي اُصول اوښودلې شوچه په اَکثروڅیزونو کښې اګرچه دسړي اوښځې حقوق سره برابروي خوبیاهم سړي ته داغوِروالي ثابت دې چه دَحاکم جوړیدوجوګه دې اوښځه ئې دَحُکم لاندې اوتابع ده۔

ددې بنیادي اصولو لاندې په عملي دنیاکښې دَښځودوه ډلې شوې، یوه داچه چا، دَدغه بنیادي اُصولواودَخپل لوظ، قول پابندي اوکړه، سړې ئې حاکم اومنلوودهغه تابعداري کوي. بله هغه چه په دې اصولو باندې په پورِه شانِ سره ولاړه اوټینګه پاتې نشوه. رومبئ ډله خود کورنئ امن اواطمینان پخپله ذمه واره ده، ددې دَسمولوهیڅ حاجت اوضرورت نشته. دَبلې ډلې دَسمون راوستودپاره، دآیت په دوئمه جُمله کښې یوداسې ترتیب کړې نظام اوښودلې شوچه دَهغې په ذریعه کورنئ سمې راوستل په کور کښې دننه اوشي اودَښځې خاوندجګړه ددې دواړونه بهرته لاړه نشي، اوبهرنئ هیڅوک دریمګړې پکښې رانشي، په دې کښې سړوته داسې خطاب شوې دې چه که ښځې نافرماني کوي یاپه فرمانبردارئ کښې ترڅه کمې محسوس کړئ نوټولونه اول داکاراوکړئ چه پوهه راپوهه ئې کړئ اوذهن ئې سم کړئ که ې سره کار او شو نو خیر خیریت شو، ښځه دهمیشه ګناه نه، اوسړې دَزړۀ دکړاؤنه اودواړه دَغم اوخفګان نه بچ شو، اوکه په دې پوهولو کاراونۀ شونودریمه درجه داده چه دوئ ته دَخبردارئ ورکولو اوترِ نه دَخپل خفګان ښکاره

---

[1]) التفسیر الکبیر للرازي تحت هٰذه الآیة: ج۵، ص ۷۲

کولو په غرض ئې کټ بستره بیل کړئ چه یو قسم معمولي سزا او دیر زیات غوره خبرداري ورکول دی، که په دې سره ښځه خبرداره شوه نو جګړه هم دغلته ختمه شوه، او که په دې شریفانه سزا هم دَخپلې نافرمانۍ او دکوږ تګ نه منع نه شوه په دریمه درجه کښې دمعمولي وهلو اجازت هم ورکړې شو، حدئې دادې چه په بدن ئې ددې وهلو اثر او زخم نه وی، خو دا قسم سزا، رسول الله ﷺ نهٔ ده خوښه کړې. بلکه وې فرمائیل چه شریف او ښهٔ خلق بهٔ داسې نهٔ کوی۔
په هرحال په دې معمولي وهلو ټکولو که معامله سمه شوه نو هم ئې مقصد حاصل شو، په دې کښې دَښځو دَسمولو په غرض چیرته چې سړو ته دادرې اختیارات ورکړې شوی وی، هلته ئې دآیت په آخر کښې دا هم اوفرمائیل:
﴿فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا﴾ یعنی که په دې درې قسمه تدبیرونو سره هغوئ ستاسو خبره منل شروع کړل نو زیات ملامته کول ئې مه کوئ بلکه سترګې پټوئ، او ښه پوهه شئ چه که الله تعالی په ښځو باندې تاسو ته څه لوئ درکړیده نو دَالله تعالی لوئ په تاسو دپاسه هم سوره ده، تاسو که زیاتې کوئ نو سزا به ئې تاسو څکئ:
**که جګړه اوږده شوه نو ده وه ارخیزو دوړونو دمنصفانو په ذریعه دروغه راوستو شي:** دا نظام خو هغه وړ چه دَهغې په ذریعه ئې دکورجګړه هم په کور کښې ختمه شی، لیکن خنې وختونو کښې داسې هم کیږی چه جګړه اوږده شی چه دښځې په طبیعت کښې سرکشی وی، یا په دې بنا، چه دسړی قصوروی او هم دَهغه دا ړخه بې خایه سختی کول وی، په هرحال دې صورت کښې دَخبرې بهرته وتل خو لازمی دی لیکن دَعام عادت مطابق خودا کیږی چه ددواړه اړخو مرستیالان یو بل ته بدرد وائی او الزامونه پرِ باندې لګوی نتیجه ئې دَجانبینو کسان راپارول وی چه بیا ددوؤ کسو جګړه دَخاندانی جګړی صورت اختیار کړی۔
په دې دویم آیت کښې، قرآن کریم ددې لوئې فساد دروازې بندولو دَپاره دَوخت حاکمانو دَ دواړو فریقو اختیارمنو، مرستیالو او دَمسلمانانو جماعتونو او دلو ته خطاب کړې دې، ورته ئې داسې پاکیزه طریقه ښودلې ده چه دَفریقینو راپاریدل پرختم او سوړشی او دَالزامونو لګولو لړې پرهم بندې شی او ددوئ ترمنځه دَصُلح راوستو څه لار اُوخی، او دکورجګړه که په کور کښې ختمه نشی نو کم ناکم په خاندان کښې دختمه شی، دَمقدمې په ډول دعدالت ته ورنشی او نهٔ دپه کوڅو، بازارونو کښې داجګړه چلیږی. هغه طریقه دا ده چه دَحکومت خلق، یا دَ فریقینو اختیارمن، یادَمسلمانانو څه بااثره ډله داکار او کړی چه ددوئ ترمنځه روغې راوستو دَپاره دوه منصفان، ،حَکَم، ،مقرر کړی یو د سړی د خاندان نه او بل د ښځې د خاندان نه او په دې دواړو خایونو کښې ئې په لفظ د حکم سره تعبیر اوکړو قرآن کریم ددې دواړو ضروری صفتونه متعین کړل او وې تاکل چه دادواړه دَجګړ فیصله کولو او هوارولو جوګه وی، ښکاره خبره ده چه داسې جوګه کیدل به هله کیدې شي چه دعلم او دیانت خاندان وی۔
خُلاصه ئې دا شوه چه یو، ،حَکَم، ،دسړی دَخاندان نه او بل ددښځې دَخاندان نه او ټاکلې شی او دواړه ددغه ښځې خاوند ته اولیږلې شی. هلته چه ورشی نو دادواړه به څه کوی او ددوئ اختیارات به څه وی؟
قرآن کریم دانهٔ دی ټاکلی، البته په آخر کښې ئې داسې اوفرمائیل ﴿إِن يُرِيدَا إِصْلَاحًا يُوَفِّقِ اللَّهُ بَيْنَهُمَا﴾ که دادواړه حَکمان، دَحالاتو سمولو او ددوئ په منځ کښې دَروغې جوړې راوستو اراده

اولري نو الله تعالی به دَدوئ په کار کښې ورسره امداد اوکړي او دَښځې خاوندترمنځه به اتفاق راولي. دې جُملې نه دوه خبرې پوهـ کښې راغلې اول داچه روغه جوړه راوستونکي دواړه حَکَمان که نیک نیته وی اودښځې خاوندترمنځه دزړَنه صُلح اوروغه جوړه راوستل غواړي نو دَالله تعالی داړخه به ورسره غیبي امداد کیږی دوئ به خپل مقصد کښې کامیاب شي اودَدوئ په ذریعه به ددواړوښځې، خاوند، په زړونو کښې الله تعالی ،اتفاق اومحبت راولي، دَدې دَنتیجې نه داپه پوهـ کښې راځی، چه چرته روغه جوړه رانشي نو دَدواړو حَکَمینو په زړونو کښې به دَروغې جوړې راوستو دپاره اخلاص نه وی یا به په کښې کمې وی بلکه خبره تردامعلومیږی چه دَدې دواړو حاکمانو دَلیږلو مقصد دَښځې ،خاوند تر منځه صُلح کول دی،دَدې نه زیات بل کار ،دَکمانو دَلیږلو په مقصد کښې شامل نه دی،دابله خبره ده چه فریقین راضی شي اوهم دغه دواړه حَکَمین خپل وکیلان، اختیارمن یادریمګړی جوړکړي اودې ته هم تیارشي چه دوئ دواړه دَدوئ [ښځې ،خاوند ]ترمنځه څه فیصله اوکړی ،هغه به دوئ ته منظوره وی، لهذا په دې صورت کښې به دغه دواړه [حَکَمین]دَدوئ دَمعاملې په فیصلې کولو کښې په کلی توګه مختاروی،که دواړه په طلاق باندې متفق شي نوطلاق به اوشي،که دواړه په اتفاق سره دَخُلع وغیره په څه صورت راجمع شي نوهم دوئ به دَفریقینواوسرې دَجانب نه دورکړواختیاراتوپه بنابښځې ته طلاق ورکړی چه فریقین به ئې مَنی په پخوانوبزرګانو کښې ،دحسن بصري رحمه الله اوابو حنیفه رحمه الله تحقیق هم دادې [روح المعانی] [1]

دَحضرت علي رضی الله عنه په وړاندې یوداشان واقعه پیش شوه په هغې کښې هم دَدې ګواهی موجوده ده چه دادواړه حکمین، دَخپله ځانه، سوادَصُلح کولونه بل څه اختیارات نۀ لري،ترڅوچه ورته فریقین ،کُلی اختیارورنکړي. داواقعه په سُنَن بیهقی کښې دَعبیده سلمانی په روایت داشان ذکر شویده].

یوسړې اوښځه دَحضرت علي کَرم الله وجهه په خدمت کښې حاضرشوچه دواړوسره ډیرې ګنړې دلې وې، حضرت علي حَکم اوکړوچه یوحَکم دَښځې داړخه اوبل حَکم دسړی داړخه اوټاکئ، چه دواړه اوټاکلې شونوحضرت علي ورته داسې اوفرمائیل تاسوته پته ده چه څه ذمه واری موده اوڅه به کوئ؟ واوړئ که تاسودواړه، دې ښځې خاوندلره په یوځائې ساتلو اودَدوئ ترمنځه په روغې جوړې راوستومتفق شوئ نوهم دغسې اوکړئ اوکه داسې درته ښکاریده چه دَدوئ ترمینځه به روغه جوړه رانشي، یابه دا، په ځائې پاتې نشي اوستاسودَدواړوپه دې اتفاق اوشي چه دَدوئ ترمنځه بیلتون کول دَخیر کاردې نوهم دغسې اوکړئ-دَدې په آوریدوښځې اوئیل چه داماته منظوره ده چې دادواړه حَکمان که دَالله تعالی په قانون، څه فیصله اوکړی، که زمادَمرضئ مطابق وی یائې خلاف وی ماته منظوره ده. لیکن سړی اوئیل چه بیلتون اوطلاق خوبه په هیڅ حال کښې منظورنۀ کړم-البته حَکم ته دااختیارورکوم چه که په ماهرڅومره تاوان راولی هغه به ورکړم خوچه ښځه راله راضی کړی——حضرت علي رضی الله عنه اوفرمائیل چه داسې نۀ ده بلکه تۀ به هم دغه حکمینوته هغسې اختیارورکوې څنګه چه ښځې ورکړی دې[2]-

دې واقعې نه څنې مجتهدینو امامانو دامسئله راغستې ده چه داحَکَمین دخامخادَپوره اختیار خاوندان وی لکه چه حضرت علي رضی الله عنه فریقینوته اووئیل اودوئ ئې پوره اختیارمن

[1] ) روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۵

[2] ) السنن الکبریٰ للبیهقی: ج ۷، ص ۳۰۵

جوړ کړل امام ابوحنیفه رحمه الله او حسن رحمه الله دا خبره په کُتبه کړه چه که د شریعت له مخه، حکمین اختیارمن کیدل ضروري وي نو د حضرت علي رضي الله عنه د دغې ارشاد او د فریقینو د رضامندۍ حاصلولو ضرورت به نه وو، د فریقینو د رضا کولو کوشش پخپله د دې دلیل دی چه دا حکمین په اصل کښې اختیارمن نه وي، البته که ښځه، خاوندئې اختیارمن جوړ کړي نو هله به اختیارمن وي. د قرآن کریم په دې تعلیم سره، د خلقو د یو تر بله جګړو او مقدمو د فیصلو کولو یو باره کښې یو ډیر فائده من نوي باب زیات شو، د کوم په ذریعه چه عدالت او حکومت ته رسیدو نه وړاندې، د بهائۍ بندۍ او ورورولۍ په پنچایتونو او جرګو کښې د ډیرو مقدمو او جګړو فیصلې کیدې شي.

**په نورو جګړو کښې دهم دحکم په ذریعه ښلح صفائۍ کول شي** فقهاؤ رحمهم الله فرمائیلي دي چه یو تر بله د صُلح راوستو د پاره، د دوؤ حکمینو د لیږلو دا تجویز یواځې د ښځې خاوند تر منځه د جګړو د پاره خاص نه دی، بلکه په نورو جګړو کښې هم داسې کیدې شي او پکار هم داسې دی، خصوصاً په هغه حالت کښې چه جګړې کوونکي خپل منځ کښې خپل خپلوان هم وي، ولې چه عدالتي فیصلو سره خو ختي جګړې ختمیدې شي، خو دغه فیصلې په زړونو کښې د خیري او دشمنۍ جراثیم پریږدي، چه روستو په ډیرو خراب و شکلونو کښې ښکاره کیږي. حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه د خپلو قاضیانو د پاره دا فرمان جاري کړې وو.

(ردوالقضاء بین ذوي الارحام حتی یصطلحوا فان فضل القضاء یورث الضغائن) [معین الحکام][1]
د خپلوانو تر منځه مقدمې هم دوی ته واپس کوئ چه هغوئ پخپله په روورولئ کښې د صُلح کولو څه صورت راؤباسي، ولې چه د قاضي فیصله په زړونو کښې کینه او دشمني پیدا کوي.

داحنافو فقهاؤ رحمهم الله څخه قاضي قدس، علاؤالدین طرابلسي په خپل کتاب، معین الحکام، کښې، او ابن شحنه رحمه الله په، لسان الحکام، کښې، دا فاروقي رضي الله عنه فرمان په داسې پنچایتي او جرګیزو فیصلو کښې خاص بنیاد جوړ کړې دی، چه د دې په ذریعه د فریقینو په رضامندۍ د صُلح کولو څه صورت راؤښکلې شي، او ورسره ئې دا هم لیکلې دی چه اګرکه فاروقي رضي الله عنه فرمان کښې، دا حکم د خپلوانو تر منځه جګړو سره تعلق لري مګر دې کښې ذکرشوې علت او حکمت (چه عدالتي فیصلې په زړونو کښې خیرې او دشمنې پیدا کوي، په خپلوانو او پردو دواړو کښې عام دي، او د دې قسم خیرې او دشمنۍ نه تولو مسلمانانو له بچ کول دی، ځکه حاکمانو او قاضیانو د پاره مناسب دا دي چه د مقدمو د آوریدو نه وړاندې د دې کوشش کوي چه په څه صورت سره د دوئ تر منځه په رضامندۍ سره روغه جوړه راشي.

غرض دا دې چه دې دوؤ آیتونو کښې د انسان د کورنی او د بال بچه دارۍ د ژوند، یو داسې تول ارخیز او مکمل نظام بیان شوې دی چه که پوره عمل پر اوشي نو د دُنیا اکثر جګړې او جنګونه جدلونه به ختم شي، سړی او ښځې تولې به په آرام شي او خپل کورنی ژوند به جنتي ژوند محسوسوي او د کورنو جګړو په اداره راولاړې شوې قبائلي، بیا د لنیزې او ملکي جګړې او جنګونه به د منځه اوخي او امن و امان به قائم شي.

په آخر کښې بیا په دې عجیبه، غریبه، محکم قرآني نظام باندې یو اجمالي نظر واچوئ چه کور نو جګړو ختمولو د پاره ئې دنیا ته ورکړې دې.

① کورنۍ جګړه دهم په کور کښې په درجه بند انتظامونو سره خلاصه کړې شي.

[1] معین الحکام، الباب الرابع، فصل فی سورة القاضي فی الأحکام: ج ۱، ص ۵۷

④ که دا صورت قابونه بهرشونو حاکمان یادَ عزیزولی: خلق د دَدوؤ حَکمینو په ذریعه په دوی کښې روغه جوړه راولې یعنی که خاص په کورکښې داجنجال نشو ختمیدې نوبیاپه خاندان ،عزیزولی، کښې دنې ختم کړی، چه عدالتونو اولاړو کوڅوته اونه خی|۔

④ که داهم دَوَس نه بهرشی اوپه آخر کښې معامله عدالت ته اورسی نوهغه د ددواړو دَ حالاتو او معاملاتو تحقیقات اوکړی اومنصفانه فیصله داوکړی۔

په آخر دآیت کښې ئې ﴿ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيمًا خَبِيرًا ﴾ فرمائیلوسره دواړه حَکمین ئې خبرداره کړل، چه که تاسو څه بې انصافی اوکړې تګ موکولونو علیم اوخبیرسره به مو پیښه راځی، داخپلې مخې ته راولی۔

| |
|---|
| وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهٖ شَيْئًا |
| او عبادت کوئ دالله \| اومهٔ شریکوئ \| دهغه سره \| هیڅ څیز |
| \| اوصرف دالله ﷻ عبادت کوئ! اوهیڅ څیزورسره مه شریکوئ |
| وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّبِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ |
| او دمور او پلار سره \| احسان کوئ \| او دخپلوانو سره \| او دیتیمانو سره \| او دمسکینانو سره |
| اوموریلار سره ښهٔ سلوک کوئ! او خپلوانو سره ............او یتیمانو سره......... او مسکینانوسره |
| وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبٰى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْۢبِ وَابْنِ السَّبِيْلِ |
| اودګاونډیانو سره چه رشته داردی\|اوهغه ګاونډیانو سره چه پردی دی \|اودملګری\| دخنګ سره\| او دمسافر سره |
| اودخپلوانو ګاونډیانو سره \| اودناستې ملګری سره \|لکه د دفترملګرې د سفرملګرې! \| او مسافرسره |
| وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ |
| او دهغه وینځو غلامانو سره \| چې مالکان وی دهغوئ \| ښی: لاسونه ستاسو\| بیشکه الله \| نهٔ خوښوی |
| اواهغې وینځومریانوسره!چې تاسونې مالکان ئې \|.......................... بیشکه الله ﷻ نه خوښوی |
| مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرًا الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَاْمُرُوْنَ |
| هغه څوک \| چې وی \| کبرژن \| فخرکونکې \| هغه کسان \| چې بخل کوی \| او حکم کوی |
| هغه سړې چې چاکښې تکبر وی \| اوفخرکونکې وې \| هغه کسان چې بخیلان وی اونورو ته |
| النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُوْنَ مَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ |
| خلقو ته \| د بخل \| او \| پټوی \| هغه څه \| چې ورکړی وی هغوئ ته الله \| دفضل خپل نه |
| هم دبخل حکم کوی\| اوالله ﷻ چې ورته پخپل فضل څه\|مال متاع\|ورکړی ده هغه پټوی |
| وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا وَالَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ |
| او تیار کړې دې مونږه \| دپاره دکافرانو \| عذاب رسواکونکې \| او هغه کسان \| چې خرچ کوی\| |
| اومونږ کافرانو دپاره رسواکونکې عذاب تیار کړې دې\| اوهغه کسان اهم دالله پاک خوښ نه دی\|چې هغوئ خپل |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَمْوَالَهُمْ | رِئَآءَ | النَّاسِ | وَلَا يُؤْمِنُوْنَ | بِاللّٰهِ | | وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۭ |
| مالونه خپل | دپاره دښودنې | د خلقو | اونه لري يقين | په الله باندې | | او نه په ورځ دآخرت باندې |
| مالونه صرف دنوم دپاره خرچ كوي | اونه په الله ايمان راوړي اونه په ورځ د آخرت باندې | | | | | |
| وَمَنْ يَّكُنِ | الشَّيْطٰنُ | لَهٗ | قَرِيْنًا | فَسَآءَ | قَرِيْنًا ۝ | |
| اوهغه څوك چې وي | شيطان | د هغه | ملگرې | نو بد دې | داملگرې | |
| اوربنتيا خبره داده چې شيطان دچاملگرې شي نودغه ډيربدملگرې دې | | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** او دالله عبادت كوئ او ده سره څوك مه شريكوئ، او د مور پلار سره ښه سلوك كوئ، د خپلوانو، يتيمانانو، مسكينانو، نږدې كاونډيو، لرې كاونډيو، يو ځائې ناست (يا يو ځائې ولاړ) كس او مسافر سره او خپلو غلامانو او وينځو سره هم (ښه سلوك كوئ) بې شكه الله هيڅ يو ځانته غاوره او لاپو سړي نه خوښوي داسې خلق خپله هم بخل كوي اونورو لره هم د بخل ترغيب وركوي او الله چه دوی ته د خپل فضل نه څه وركړي دي هغې لره پټوي — او مونږ داسې ناشكرو لره شرموونكې عذاب تيار كړې دې او هغه خلق چه خپل مال د ځان ښودلو د پاره خرچ كوي، او نه په الله ايمان راوړي او نه په ورځ د آخرت، او شيطان چه د چاملگرې شي نو هغه ډير بد ملگرې وي.

**د آيتونو ترون:** تاسو د سورة نساء په تفسير كښې كتلى دى چې په دې سورة كښې د حقوق العباد اهتمام كړې شوې دې د سورة د شروع څخه تر دې ځائې پورې د عام انسانى حقوقو اهميت اجمالى تذكره فرمائيلو څخه روستو يتيمانانو او ښځو حقوقو اهتمام كړې شوې دې او په دې كښې د كوتاهئى كولو باندې وعيد او دې دنيا كښې چې په دوئ كښې دوه نازك صنفونه يعنى ماشومان او ښځو سره ظلم كول روا كړې شوى وو. او د ظلم رسمونه اختيار كړې شوى وو. بيا ددوئ د اصلاح او بيا د وراثت دحقوقو بيان راغلې دې. دې نه پس د مور پلار او نورو رشته دارو او خپلوانو او گوانډيانو او عامو انسانانو د حقوقو ښۀ په تفصيل سره بيان راغلې دې. او دا حقوق هغه كس ادا كولې شى چې هغه په الله ﷻ او قيامت په ورځ باندې ايمان لرى. دا شان بخل، كبر او د رياء څخه هم ځان ساتى. څكه چې دا امور د حقوقو په ادا كولو كښې هم يو بنديز جوړيږى. په دې وجه ئې دې آيتونو كښې د توحيد او ترغيب و ترهيب مضامين بيان فرمائيلې شوى دى. د قيامت څخه دانكار، د عصيان رسول ﷺ، او بخل وغيره اخلاق ذميمو مذمت او غندنه راغلې ده.

## خلاصه تفسير

﴿وَاعْبُدُوا اللّٰهَ﴾ اوتاسو دالله تعالى عبادت كول اختيار كړئى [چه توحيد په كښې راځى] ﴿وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا﴾ اوورسره څه څيز [كه انسان دى غير انسان دى په عبادت كښې يا دهغه په خاصو صفاتو كښې اعتقاد كښې] شريك مه گرځونى ﴿وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّبِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبٰى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْۢبِ﴾ او[خپل]مورپلارسره ښه معامله كوئى او[نورو] خپلوانو سره هم او يتيمانو سره هم او غريبانو مسكينانو سره هم او دخوا گوانډى سره هم اود لرې گوانډى سره هم او په مجلس كښې شريك سره هم [كه دا دهميشه مجلس وى داوږد سفر

ملګرتیا وی اوپه څه مباح کار کښې شریکیدل یا عارضي وی لکه په لنډسفر کښې یا اتفاقی وی جلسه کښې شریکیدل] ﴿وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ اولاروی سره هم [چه هغه ستاسو خاص میلمه وی اوکه نه وی] او هغوی [غلامانو وینځو] سره هم چه [دشریعت په وجه] ستاسو په مالکانه قبضه کښې دی [غرض داچه دے ټولو سره ښه معامله کوئی چه شریعت ئے تفصیل په بله موقعه خودلې دې او څوک چه دا حقونه نه ادا کوی اکثر ددې څو سببونه دی یا خو ددوی په طبیعت کښې تکبر دې چې څوک په خاطر کښې نه راولی اونه چاته ګوری اویا ددوی په طبیعت کنجوسئ غلبه کړې ده چه چاته په ورکړه کولو یا بل ته ئے وئیلو سره ساه خیژی یا رسول الله ﷺ سره ددوی اعتقاد په دې شان نه وی چه دهغوی حکمونه د حقوقو د ادا کولو دثواب وعدې د حقوقو برباد کولو دعذاب وعیدونه صحیح نه ګنړی چه دا کفر دے یاددوی عادت دنوم نمائش کولووی چرته چه نوم نمائش وی هلته پخپله هم ورکړه کوی اوبل ته هم د ورکړې دپاره وائی اګر چه حق نه وی یے نومه اوبے نمائشه ځائې کښې ئے همت نه کیږی یا دسره په الله ﷻ عقیده نه لری یا قیامت نه منی اودا هم کفر دے په دې وجه په دې ترتیب سره وی څوک چه ځان ځان له یا په جمع دا کارونه کوی دهغوی حال هم واورئی چه] ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا﴾ بیشکه الله ﷻ داسې بې سړیتوب کسانوسره محبت نه لری چه [په زړه کښې] خپل ځان لوئې ګنړی [په ژبه دخپل] ﴿الَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ﴾ ښه سړیتوب خبرې کوی چه بخل کوی او نورو خلقوته هم د بخل ښودنه کوی [که په ژبه وینا کوی یا دده په لیدو نور خلق هم دغسې کوی] ﴿وَيَكْتُمُونَ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ﴾او هغوی هغه څیز پټ ساتی چه الله تعالی ورته په خپل فضل ورکړې دې [دے نه مراد یا خو مال دولت دې چې د حفاظت په خاطر نه بلکه خالص دبخل دوجې نه څکه پټ ساتی چه حقداران ترې ددې څه امید اونه لری یا ترې مراد علم دین دې چې یهودو به دپیغمبرئ خبرونه پټول نوبخل به هم عام شی چه په کښې بخیلان اود پغمبرئ نه منکر خلق دواړه راغلل] ﴿وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُهِينًا﴾ اومونږ داسې ناشکرو دپاره [چه دمال دنعمت او درسول ﷺ د رالیږلو حق نه پیژنی] د سپکاوی سزا تیاره ساتلې ده﴿وَالَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾اوکوم خلق چه خپل مالونه خلقوته خودلو دپاره لګوی اوپه الله ﷻ اوپه آخری ورځ [یعنی دقیامت په ورځ] اعتقاد نه لری [دهغوی هم دغه حال دې چې دالله ﷻ ورسره مینه نشته] ﴿وَمَنْ يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا فَسَاءَ قَرِينًا﴾او [خبره داده چه] شیطان دچا ملګرې شی [څنګه چه ددې ذکر شوو خلقو شوې دې] نوهغه دده خراب ملګرې دې [داسې مشوره ورکوی چه په کښې په آخر انجام کښې سخت ضرر وی].

## معارف اومسائل

**دحقوقودبیان نه وړاندې دتوحید ذکرولې ﴿وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا﴾**: دحقونو دتفصیل بیانولو نه وړاندې دالله تعالی دفرمانبرداری، عبادت اوتوحید مضمون داسې بیانیږی ﴿وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا﴾ یعنی دالله تعالی عبادت کوئ اوورسره په عبادت کښې هیڅوک مهٔ شریکوئ.

دحقوقو دبیانولو نه رومبې دعبادت اوتوحید په ذکر کولو کښې ډیر حکمتونه دی یو یې کښې دادې چه څوک دالله تعالی نه نهٔ ویریږی اودهغه دحقوقو پوره خیال نه ساتی نو دنورچا دحقوقو به

څه پرواه لري ،دَرورولئ اودَخپلې دلې دَشرم ،يادَحکومت دَقانون نه دَبچ کيدودَپاره زرګونه لارې لټوي ،هغه څيزچه انسان لره دَانساني حقوقو په احترام باندې مخامخ ياپټي شامجبوره کوي هغه يواځې دَالله تعالى نه ويره اوتقوي کيدې شي چه يواځې دَتوحيدپه ذريعه حاصليږي په دې وجه دَمختلفوتعلقاتو اودَخپلوانو دَحقونو دَتفصيل نه وړاندې دَالله تعالى دَتوحيد اوعبادت بيان کول مناسب وو-

**توحيدنه پس دَمورپلار حقونه:** وروسته دَټولو خپلوانو اوتعلقدارانو دَحقونوبيانولو نه وړاندې دَمور ،پلار دَحقوقو بيان دې-الله تعالى دَخپل عبادت اوخپلو حقوقوسره پيوست د مور پلار حقوق بيانولو کښې دااشاره اوفرمائيله چه دَاصل اوحقيقت په اعتبارسره خوټول احسانات اوانعامات دَالله تعالى له اړخه دي ليکن که دَظاهري اسبابوپه اعتبارسره اوکتې شي نودَالله تعالى نه پس ،په انسان باندې زيات احسانات دَمورپلاردي ،ولې چه په عامواسبابو کښې هم هغه دَانسان دَموجوديدوسبب دي ،دَپيداکيدونه چه واخلې دَده ترځوانيدوپورې چه څومره سختې مرحلې دي ،په دغه ټولو کښې دده دَموجوديدو ،دده دَباقي پاتې کيدواوو دې ترقي کولوظاهري اسباب هم موراوپلاردي ،اوهم په دې وجه دَقرآن کريم په نوروځايونو کښې هم دَمورپلار حقوق ،دَالله تعالى دَعبادت اوفرمانبردارئ سره پيوست راغلي دي لکه يوځائې کښې فرماي:

﴿أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ﴾ زما اودَمورپلار شکراداکوئ-

بل ځائې کښې ارشاددې: ﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ لَا تَعْبُدُونَ إِلَّا اللَّهَ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾ په دې دواړو آيتونو کښې دَوالدينو [مورپلار] په باره کښې ئې دا، اوند فرمائيل چه دَدوئ حقونه اداکوئ ،يائې خدمت کوئ ،بلکه دَاحسان لفظ ئې راوړلوچه په عام مفهوم کښې ئې داهم داخل دي چه دَضرورت په مطابق دَدوئ په نفقه کښې خپل مالونه لګوئ ،اوداهم پکښې داخل دي چه څنګه ضرورت وي دَهغې مطابق ئې جسماني خدمت کوئ ،دا هم پکښې داخل دي چه ورسره دَخبرواترو کولوپه وخت داسې سخت ياپه زوره آوازېر مهٔ راوځياسئ چه ورسره دَدوئ بې ادبي کيږي-داسې څه کلمه مه وايئ چه زړهٔ ئې ورسره ماتيږي ،دَدوئ دوستانو اوتعلقدارانوسره هم داسې رويه مه کوئ چه دَمورپلار زړهٔ ته پرِ آزاررسي بلکه دوئ ته دَآرام رسولو اودَخوشحاله ساتلوپه غرض ئې چه څه طريقه کيدې شي هغه کوئ-تردې هم که مورپلار دَاولادپه حقوقو کښې کوتاهي هم کړې ده ،بياهم اولادلره دَخرابې رويې ورسره کولوهيڅ موقعه نشته-

حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه فرمائيلي دي چه ماته رسول الله ﷺ لس وصيتونه کړي وو يوداچه الله تعالى سره څوک شريک مهٔ ګرځوئ اګرچه تاسواوژلې شئ ياپه اور کښې اوسوځولې شئ-بله داچه دَخپل مورپلار نافرماني يازړهٔ آزارول مه کوئ ،اګرچه هغوئ درته دَاهل اومال پرېښنو حکم درکوي [مسنداحمد] ([1])

دَرسول الله ﷺ په ارشاداتو کښې چه څنګه دَمورپلار دَفرمانبردارئ اوورسره دَښه سلوک کولو تاکيدات راغلي دي ،دغه شان دَدې بې حده زيات فضيلتونه اوثوابونودرجې هم ذکرشوي دي. دَبخاري اومُسلم په يوحديث کښې راغلي دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه څوک په روزئ او

[1] ) مسند احمد رقم الحديث: ٢٢٠٦٠، حديث معاذ بن جبل رضي الله عنه.

عمر کښې دبرکت کیدلو خواش کوی نو ېکاردی چه خپلولی پالی؛ یعنی دخپلوانو حقونه ادا کوی([1])۔ دترمذی شریف په روایت کښې راغلی دی چه دالله تعالی رضا ، دپلار په رضا او دالله تعالی ناراضګی دپلار په ناراضګئ کښې ده([2])، په شعب الایمان کښې بیهقی روایت کړې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ، کوم خوئې چه دمور پلار تابعدار او فرمانبردار وی نو کله چه هغه خپل مور او پلار ته دعزت او محبت په نظر سره ګوری نو په هر خل کتلو ورته دقبول شوی حج ثواب ورکړې کیدې شی([3])۔

هم دبیهقی په یو روایت کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ټول ګناهونه الله تعالی معاف کوی لیکن څوک چه دمور پلار نافرمانی اوزړه ازار ول کوی نو هغه دآخرت نه وړاندې وړاندې ، هم په دنیا کښې آفتونو کښې راګیرولې شی([4])۔

**خپلوانو سره دښې رویې ساتلو تاکید**: په آیت کښې مور پلار نه پس عامو خپلوانو یعنی ټولو خپلوانو سره دښې روېې ساتلو تاکید راغلې دې دقرآن کریم په یو جامع او مشهور هغه آیت کښې چه رسول الله ﷺ به اکثر ، دخپلو خطبو په آخر کښې تلاوت کولو هغه داسې دې۔

﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَىٰ﴾ یعنی الله تعالی حکم درکوی، ټولو سره انصاف او ښه سلوک کولو او دخپلوانو دحقوقو ادا کولو ، چه پکښې دخپل وس په جوړ دخپلوانو ، مالی او خانی خدمت هم داخل دې او دوئ سره ملاقات کول او خبرئې پوښته کول هم دی۔

دحضرت سلمان بن عامر رضی الله عنه په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه عامو مسکینانو او فقیرانو ته په خیرات ورکولو کښې خو صرف دخیرات کولو ثواب ملاوېږی او که خپل نزدې خپلوانو ته ورکړې شی نو دوه ثوابونه ئې کیږی ، یو دخیرات کولو او بل دخپلوئ پاللو ، یعنی دخپلوئ دحقوقو اداکولو ۔ [مسند احمد ، نسائی ، ترمذی]([5])

په ذکرشوی آیت کښې اول ، دمور ، پلار دحقونو تاکید راغلې دې بیا دعامو خپلوانو۔

**دیتیم او مسکین حق**: په دویم ځائې کښې ئې ارشاد اوفرمائیلو ﴿وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ﴾ دیتیمانو او مسکینانو دحقونو تفصیلی بیان ، اګرچه دسورت په شروع کښې راغلې دې ، مګر د نورو خپلوانو په ترڅ کښې ، ددې یادګیرنې کولو کښې دې خبرې ته اشاره ده چه دبې وارثه ماشومانو او بې اسرې خلقو لاس ، مدد کول هم داسې ضروری او ګڼړئ څنګه چه دخپلوانو ګڼړئ او کوئ ئې۔

**دګاونډی [همسایه] حق**: په څلورم ځائې کښې ئې اوفرمائیل ﴿وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ﴾ په پنځم ځائې کښې ﴿وَالْجَارِ الْجُنُبِ﴾ دجار ، معنی ګاونډی [همسایه] ده چه دلته ئې دوه قسمونه بیان شوی دی یو ﴿وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ﴾ بل ﴿وَالْجَارِ الْجُنُبِ﴾ صحابه کرامو رضی الله عنهم ددې دواړو تفسیر او تشریح په مختلف شان سره کړې ده۔

---

[1]) صحيح البخاري، كتاب البيوع، باب من أحب الخ: ج ۱، ص ۲۷۷، وصحيح مسلم: ج ۲، ص ۳۱۵، كتاب البر والصلة، باب صلة الرحم الخ۔

[2]) جامع الترمذي، أبواب البر والصلة، باب ما جاء من الفضل في رضا الوالدين: ج ۲، ص ۱۲

[3]) شعب الإيمان، باب الخامس والخمسون رقم الحديث: ۷۸۵۶

[4]) شعب الإيمان للبيهقي، باب الخامس والخمسون رقم الحديث: ۷۸۹۰

[5]) مسند احمد حديث سلمان بن عامر رضی الله عنه رقم الحديث: ۱۷۸۳۲ وسنن النسائي، كتاب الزكاة، باب الصدقة على الأقارب: ج ۱، ص ۳۶۱۔ وجامع الترمذي، أبواب الزكاة، باب ما جاء في الصدقة على ذي القرابة: ج ۱، ص ۱۴۲

عامو مفسرینو ﷬ فرمائیلی دی چه ﴿جَارِذِی الْقُرْبٰی﴾ نه مُراد هغه گواندی دي چه ستاسو کور سره جُخت او پیوست اوسیږی ﴿جَارِالْجُنُبِ﴾ نه مراد هغه گواندی دي چه ستاسود کورنه لږ شان وروسته لرې اوسیږی-

حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائیلی دی چه ﴿جَارِذِی الْقُرْبٰی﴾ نه هغه څوک مرادذی چه گواندی او خپلوان دواړه وی چه دَدوَو حقوقو حقداروی او ﴿جَارِالْجُنُبِ﴾ نه مُراد صرف گواندی دي چه خپلوان نهٔ وی([1]) ځکه ئې درجه روستو کیښودل شوه-

څنو مفسرینو حضراتو فرمائیلی دی چه ﴿جَارِذِی الْقُرْبٰی﴾ نه مُراد داسلامی رورولئ مسلمان گواندی او دَ ﴿جَارِالْجُنُبِ﴾ نه مُراد غیر مسلم گواندی [همسایه] دي-

قُرآنی الفاظ دَدې ټولو معنو احتمال لری، او دَحقیقت له مخې هم په درجو کښې فرق راتلل، عقل منی او اعتبار ېر کولې شئ-یعنی داچه گواند، خپلوان او غیر خپلوان ،یامسلمان او غیرِ مسلمان کیدې شی اودَ ټولو ېر اتفاق دي چه دا ټول قسمه گواندیان دَوس په جوړ مدد کولو او دَ خبر اغستو حقدار دی-

کوم گواندی چه دگواندیتوب نه علاوه زیات حقوق لری هغه به دَنورو گواندیانو [همسایه گانو] په درجه کښې زیات او وراندې وی،لکه رسول الله ﷺ ئې چه وضاحت هم کړې دې،فرمائی:چه څنې گواندیان یوحق لری،څنې دوه او څنې درې حقونه لری،دیوحق خاوند گواندی [همسایه] غیر مُسلم دې چه خپلوان هم نه وی،دَدوَو حقونو خاوند گواندی [همسایه] هغه دې چه مسلمان هم وی،اودَدرې حقونو گواندی [همسایه] هغه دې چه مسلمان او خپلوان هم وی-[ابن کثیر]([2])

رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه جبرائیل امین همیشه دَپاره ماته دگواندی [همسایه] دَرعایت او امداد تاکید کړې دې،تردې چه گمان م راغلو چه گواندی به هم دَخپلوانو پشان دَمیراث حقدار جوړشی -[بخاری ومسلم]([3])

دَترمذی ﷫ او مسند احمد ﷫ دَیوروایت له مخه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دَمحلې په خلقو کښې الله تعالی ته نزدې اودَ ټولو نه زیات غوره،هغه څوک دې چه دَخپلو گواندیانو [همسایاگانو] په حق کښې زیات ښه وی([4])-

دَمسند احمد په یوحدیث کښې داسې راغلی دی چه چالره په مړه گیډه خوراک روانهٔ دې چه گواندی ئې اوږې وی([5])-

دَ نزدې ملګروحق: په شپږم ځائې کښې ئې ارشاد او فرمائیلو:﴿وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ﴾ دَدې لفظی معنی دَ نزدې ملگری، ،ده-چه دَسفر ملگری پکښې هم داخل دي،چه اورگاډی، جهاز،بس ،گاډی کښې

---

[1] ) تفسیر ابن ابی حاتم تحت هٰذه الآیة رقم الحدیث: ٥٣٢٥، و٥٣٢٨، وشعب الإیمان رقم الحدیث: ٩٣٠٢ فصل فیما یقول العاطس الخ.

[2] ) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ٢، ص ٣٠٠، ومجمع الزوائد رقم الحدیث: ١٣٥٣٦

[3] ) صحیح البخاری، کتاب الادب، باب الوصایة بالجار: ج ٢، ص ٨٨٩، وصحیح مسلم کتاب البر والصلة، باب الوصیة بالجار: ج ٢، ص ٣٢٩

[4] ) جامع الترمذی، أبواب البر والصلة، باب ما جاء فی حق الجار: ج ١، ص ٢٤ ومسند احمد، مسند عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما، رقم الحدیث: ١٩٤٨

[5] ) مسند احمد، اول مسند عمر بن الخطاب رضی الله عنه رقم الحدیث: ٣٦٧

چاسره په خواکښې وی او هغه څوک پکښې هم داخل دې چه په يو عام مجلس کښې دَچاخواکښې ناست وی۔

اسلامی شريعت څنګه چه دَهميشه ګواند يانو حقوق واجب کړيدی، دغه شان ئې دَهغه چا دَ ملګرتيا حق واجب کړو چه لږ ساعت دَپاره هم چاسره په يو مجلس په يو مجلس او سفر کښې خواته ناست وی، چه مُسلم، غير مُسلم، خپلوان او غير خپلوان ټول پکښې برابر دی، دوئ سره ئې هم دَښه سلوک هدايت کړې دې، ادنی درجه ئې داده چه ستاسو دَڅه خبرې او فعل نه ورته څه زيان او نه رسی، څه داسې خبرې اترې کول پکار نۀ دی چه زړۀ ته ئې پر تک رسی۔ دَتکليف ورکولو کارنۀ دې پکار، مثلاً دَسګريټ لوګې [دود] ئې مخې ته ور پريښودل نۀ دې پکار، دَپاندتو کانړې ئې مخې ته توکل نۀ دی پکار، داسې کښيناستل نۀ دی پکار چه په هغه ځائې تنګ شې۔

که دَقرآن کريم په دې هدايت خلق عمل کول شروع کړی نو دَاورګاډی دَمسافرو ټولې جګړې به ختم شی، يعنی که هر څوک داخيال اوکړی چه په اورګاډی کښې م دَيو کس دَځائې نيولو حق دې دَزيات ځائې نيولو حق م نشته او دَبل چانزدې کَس هم دومره حق دې څومره چه زماحق دې نو اوږد نه اوږد سفر به دَټولو ښه په آرام وی،

څنې مفسرينو حضراتو فرمائيلی چه، صاحب بالجنب، کښې هر هغه څوک هم داخل دی چه په کاراو په څه پيشه کښې درسره شريک وی . په کاريګرئ، مزدورئ کښې، دفتری ملازمت کښې په سفراو په حضر [خپل کلی، ښار] کښې [روح المعانی] [1]

**دلاروی حق** په اوم ځائې کښې ئې اوفرمائيل ﴿وَابۡنِ السَّبِيۡلِ﴾ يعنی لاروې، دې نه هغه څوک مُراد دی چه دَسفر په دوران کښې دخواته راشی ميلمه دشې، هر کله چه دَدې پردی بنده هيڅ تعلقدار دلته نشته نو قرآن کريم په اسلامی او انسانی لحاظ، دَدۀ حق هم په تالازم کړو، چه دَخپل وَس، طاقت مطابق ورسره ښه سلوک کوه۔

**دمريئ وينځې اوملازمانو نوکرانو حق**: په اتم ځائې کښې ئې ارشاد اوفرمائيلو ﴿وَمَا مَلَكَتۡ أَيۡمَانُكُمۡ﴾ دې نه مُراد ملکيتی وينځې غلامان دی چه ورسره ښه سلوک کول لازم کړی شو، دَخپل وَس مطابق په خوراک، څکاک، جامې پيزار [څپلئ] ورکولو کښې څه کوتاهی نۀ دی کول پکار، او دَهغوئ دَوس نه تر زيات کارهم مۀ اخلئ، اګرچه دآيت دَالفاظو ښکاره مُراد وينځې غلامان دی، ليکن دَعلت دَشريکيدو له کبله او دَرسول الله ﷺ دَارشاداتو په بناء، دا احکام، نوکرانو او ملازمانو دَپاره هم دی، يعنی دوئ هم داحق لری چه په خپل وخت ورته مقرره تنخواه او مزدوری ورکولې شی، په خوراک، څکاک وغيره ورکولو کښې دَشو متوب او مهلت نه دِ کارنشی اغستې او دَدوئ دَطاقت نه زيات کار دِ تری وانغستې شی۔

**په حقوق اداکولو کښې کوتاهی هغه خلق کوی چه زړونو کښې ئې لوئی اوتکبروی**: په آخر دَ آيت کښې ئې اوفرمائيل: ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَنۡ كَانَ مُخۡتَالًا فَخُورًا﴾ يعنی الله تعالی داسې کَس نه خوښوې چه متکبر الوئ کوونکې او په نورو خلقو باندې خپله لوئ ضباطوونکې وی .دآيت دا آخری جمله دَتيروشوؤ ټولو ارشاداتو تکمله داسې ده، چه دآتـه قسمه خلقو دَحقونو تاکيد چه وړاندې تير شوې دې، په هغې کښې داسې خلق کوتاهی کوی چه په زړونو کښې ئې تکبر فخر او غرور دې الله تعالی

[1] روح المعانی تحت هٰذه الآية: ج۲، ص۲۸

دمونږ تول مسلمانان دي نه اوساتي- دتکبر او جاهلانه فخر کولو په وعید [درکي ورکولو] کښې ډير احاديث راغلي دي:-

﴿عن ابن مسعود ﷛ قال قال رسول الله ﷺ لا يدخل النار احد فی قلبه مثقال حبة من خردل من ايمان ولا يدخل الجنة احد فی قلبه مثقال حبة من خردل من كبر﴾ [مشكوة بحواله مسلم] (١) د حضرت عبد الله بن مسعود ﷛ نه روايت رسول الله ﷺ فرمائيلي دى ،هغه څوک به [هميشه دپاره] جهنم ته نه ځي ،دچا په زړه کښې چه داوري ددانې قدرې ايمان وى او په جنت کښې به داسې څوک لاړنشي دچا په زړه کښې چه داوري د دانې قدرې تکبر وى

يو بل داسې حديث شريف چه دکبر پيژند ګلي پکښې هم ذکرشويده،

﴿عن ابن مسعود ﷛ قال قال رسول الله ﷺ لا يدخل الجنة من كان فی قلبه مثقال ذرة من كبر فقال رجل ان الرجل يحب ان يكون ثوبه حسنا ونعله حسنا قال ان الله جميل يحب الجمال الكبر بطر الحق وغمط الناس﴾ [مشكوة بحواله مسلم] (٢) دحضرت عبد الله بن مسعود ﷛ نه روايت رسول الله ﷺ فرمائيلي دى جنت ته به هغه څوک لاړنشي چه په زړه کښې ئې لږ قدرې تکبر وى، موجود خلقو کښې يو کس اووئيل چه خلق خوداخوښوې چه جامې ئې ښې وى دهغه پيزار ښه وى [نو داهم تکبر دې؟] هغوئ اوفرمائيل چه تکبر نوم دې دحق رد کولو او دخلقو دسپک ګڼړلو.

وريسې په ﴿الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ﴾ کښې بيان دې چه څوک لوئي کوونکې وى هغوئ په واجبو حقوقو کښې هم شومتوب کوى خپلې ذمه وارئ نه پيژني او دنورو هم په خپلې ويناو عمل سره ددې خراب صفت داختيارولو شوق راپيدا کوى-په آيت کښې دراغلى لفظ ،،بُخل،، اطلاق په عام عُرف کښې په دې کيږى چه په مالي حقونو کښې کوتاهي اوکړې شي ليکن د آيت دشان نزول نه معلوميږى چه دلته د ،،بُخل،، لفظ په معنى عامه کښې استعمال شوې دې چه مالي او علمي شومتوب دواړه پکښې داخل دي-

دحضرت عبد الله بن مسعود ﷛ د روايت څخه معلوميږى چه دا آيت ،دمدينې منورې يهودو په باره کښې نازل شويدې دغه خلق ډير زيات لوئ کوونکي وو ،ډير زيات بخيلان وو ،په مال لګولو کښې به ئې هم بخل کولو او هغه علم به ئې هم پټولو چه ورته دخپلو الهامي کتابونو نه حاصل شوې وو ،په دغې کتابونو کښې درسول الله ﷺ دپيغمبر کيدو زيرې ؤو او دهغوئ نخښې نښانې پکښې هم ښودلې شوې وې ،ليکن يهودو په هغې يقين اوکړو او سره دهغې ئې هم دشومتوب نه کار اغستو -نه ئې پخپله ددې علم په تقاضا عمل اوکړو او نۀ ئې نورو ته اوښودل چه هغوئ پرعمل کړې وې ــــــ وريسې ئې اوفرمائيل چه کوم خلق دالله تعالى په ورکړې مال ،دولت کښې هم بُخل کوى او دعلم او ايمان په معامله کښې هم شُومان دى ،دغسې خلق دالله تعالى دنعمت ناشکره دى او دوئ دپاره دسپکاوى عذاب تيار کړې شوې دې-

دمال دلګولو غوروالې او دشومتوب دبدئ په باره کښې نبى کريم ﷺ فرمائيلي دى:

(١) مشكوٰة ،كتاب الاداب: ج ٢، ص ٤٣٣، باب الغضب والكبر-

(٢) مشكوٰة ،كتاب الاداب: ج ٢، ص ٤٣٣، باب الغضب والكبر-

﴿عن ابی هريرة ﷛ قال قال رسول الله ﷺ ما من يوم يصبح العباد فيه الا ملكان ينزلان فيقول احدهما اللهم اعط منفقا خلفا ويقول الاخر اللهم اعط ممسكا تلفا﴾ [بخاری و مسلم] (۱)
دَحضرت ابی هريرة ﷛ په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه دَهر صبا [سهار] په وخت کښې دوه فرشتې اکښته کيږي، په دوئ کښې يوه داوائي، اې الله: په نيکه لاره کښې خرچ کوونکي ته بنه بدله ورکړې اوبله وائي، اې الله، بخيل [سره دَمال دولت تباهئ سره مخامخ کړې].

﴿عن اسماء ﷦ قالت قال رسول الله ﷺ انفقي ولا تحصي فيحصي الله عليك ولا توعي فيوعي الله عليك وارضخي ما استطعت﴾ [بخاری ومسلم] (۲) دَحضرت اسماء ﷦ په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلي دي اې اسماء دَخير په لاره کښې مال لګوه، په شمير ئې مه ورکوه، ګينې الله تعالى به هم ستا په حق کښې شمير ل شروع کړي دَخرچ نه بچ کيدو دَپاره ډير انتظامونه مه کوه، ورنه الله تعالى به هم درسره دغسې کوي، په ورکړه کښې صرفه مه کوه تر څود چه وَس کيږي.

﴿عن ابی هريرة ﷛ قال قال رسول الله ﷺ السخي قريب من الله قريب من الجنة بعيد من النار والبخيل بعيد من الجنة بعيد من الناس قريب من النار، والجاهل السخي احب الى الله من عابد بخيل﴾ [ترمذی] (۳) دَحضرت ابی هريرة ﷛ په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلي دي سخي بنده الله ته نزدې دې، جنت ته هم نزدې دې، اوخلقوته هم خوښ دې، اودَجهنم دَاورنه لرې دې، اوشوم د الله نه هم لرې دې جنت نه هم لرې دې دَخلقونه هم لرې دې اواورته نزدې دې –اوجاهل سخی [چه فرض اداکوی، حرامونه خان ساتی] دَعبادتګذار نه غوره دې

﴿وعن ابی سعيد قال قال رسول الله ﷺ خصلتان لا تجتمعان فی مؤمن، البخل وسوء الخلق﴾ [ترمذی] (۴) دحضرت ابی سعيد په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه دوه عادتونه په يو مؤمن کښې نشي جمع کيدې -شومتوب اوبدخوئ.

﴿وَالَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ﴾ سره ئې دَلوئ کوونکويو بل صفت اوښودو چه داخلق دَالله تعالى په لار کښې پخپله هم مال نۀ لګوی اونوروخلقوته هم دَشومتوب شوق ورکوی، البته خلقوته ښودلو دَپاره په مخه مال لګوی، اوهر کله چه داخلق، په الله اودآخرت په ورځ ايمان نۀ لری، ځکه دَالله تعالى دَرضااودآخرت دَثواب په نيت سره ئې دَمال لګولو هډوسوال نۀ پيدا کيږی داسې خلق خودَشيطان ملګری وی ځکه به ئې انجام هم هغه وی کوم به ئې چه دَملګری شيطان وی، دې آيت نه معلوم شوچه څنګه په واجبو حقوقو کښې کوتاهی کول، شومتوب کول عيبناک دی، دغه شان خلقوته دَښوولو دَپاره اوپه بې ځايه ځيزونو کښې مال لګول هم ډير بد دې هغه خلق چه خالص الله تعالى دَپاره نۀ بلکه خلقوته دَښودلو دَپاره نيکی کوی دَهغوئ دغه عمل به دَالله تعالى په نز د قبول نۀ وی اوپه حديث کښې ورته شرک ونيلې شوی دی-

---

(۱) صحيح البخاری، كتاب الزكاة، باب قول الله تعالى فأما من أعطى: ج ۱، ص ۱۹۳، وصحيح مسلم، كتاب الزكاة، باب مثل المنفق الممسك: ص ۳۲۸

(۲) صحيح البخاری، كتاب الزكاة، باب الصدقة فيما استطاع: ج ۱، ص ۱۹۳، وصحيح مسلم، كتاب الزكاة، باب الحث على الانفاق الخ: ج ۱، ص ۳۳۱

(۳) جامع الترمذی، أبواب البر والصلة، باب ما جاء فی السخاء: ج ۲، ص ۱۷

(۴) جامع الترمذی، أبواب البر والصلة، باب ما جاء فی البخيل: ج ۲، ص ۱۷

﴿عن ابی هریرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ انا اغنی الشرکاء عن الشرک من عمل عملا اشرک فیه معی غیري ترکته وشرکه﴾(۱) دَحضرت ابی هریرة ﷺ نه روایت رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه الله تعالی فرمائی: زهٔ دَشرک نه بیخي بې حاجته یم، څوک چه څه نیک عمل کوی او په هغې کښې راسره بل څوک هم شریک گرځوی، نو عمل ئې د هغه شریک دپاره پرېږدم، او دغه عمل کوونکې هم پرېږدم.

﴿وعن شداد بن اوس قال سمعت رسول الله ﷺ من صلی یرائی فقد اشرک ومن صام یرائی فقد اشرک و من تصدق یرائی فقد اشرک﴾[احمد بحواله مشکوة](۲) دشداد ابن اوس ﷺ نه روایت دې وائی چه ما دَ رسول الله ﷺ نه واورېدل چه فرمائیل ئې چاچه مونځ اوکړو خلقوته ښودلو دپاره نو شرک ئې اوکړو او چاچه خیرات اوکړو ښولو دپاره نو شرک ئې اوکړو.

﴿عن محمود بن لبید ان النبی ﷺ قال ان اخوف ما اخاف علیکم الشرک الاصغر قالوا یا رسول الله ﷺ! وما الشرک الاصغر، قال الریاء﴾[احمد بحواله مشکوة](۳) دمحمود بن لبید ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ستاسو په باره کښې زمازیاته اندیښنه د ورکوټی [کشنی] شرک ده، صحابه کرامو تپوس اوکړو، شرک اصغر څه دې ؟وې فرمائیل: ریاء ده

اودَبیهقی په روایت کښې دا زیات دی، چه دَقیامت په ورځ کله به چه دَنیکو عملونوثواب تقسیمېږی نو الله تعالی به ریاکاروته فرمائی: هغې خلقوله ورشئ چاته دَښودلو دپاره به چه تاسو په دنیاکښې نیک عمل کولو او گورئ چه آیا: هغوئ سره ستاسو دَعملونو ثواب اودَهغې جزاء [بدله] شته؟(۴)

| |
|---|
| وَمَاذَا |
| [ اوڅه نقصان وو ] |
| [او ددوئ څه نقصان کیدو] |
| عَلَيۡهِمۡ لَوۡ اٰمَنُوۡا بِاللّٰهِ وَالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَاَنۡفَقُوۡا |
| هغوئ دپاره \| که ایمان راوړي وي هغوئ \| په الله باندي \| او په ورځ دآخرت باندي \| او خرچ کړي وي هغوئ \| |
| که دوئ په الله ﷻ او په ورځ دآخرت باندي ایمان راوړئ وي \| او [د الله په لاره کښې هغه څه] خرچ کوئ |
| مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِهِمۡ عَلِيۡمًا ۝ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظۡلِمُ |
| دهغې نه \| چې ورکړی دی هغوئ ته الله \| او دي الله \| په هغوئ ښهٔ عالم \| بیشکه الله \| نهٔ کوی ظلم \| |
| کوم چې ورته الله ﷻ ورکړی دی \| او الله ﷻ ته ددوئ حال ډېر ښهٔ معلوم دې \| بیشکه الله ﷻ په چاباندې |
| مِثۡقَالَ ذَرَّةٍ ۚ وَاِنۡ تَكُ حَسَنَةً يُّضٰعِفۡهَا وَيُؤۡتِ مِنۡ لَّدُنۡهُ اَجۡرًا |
| په قدر \| د ذرې \| او که وی نیکی \| نو دوچند کوی هغه \| او ورکوی \| دطرف خپل نه \| اجر |
| دذرې برابر ظلم نه کوی \| اوڅوک چې یوه نیکی اوکړی نو هغه ورته په څوچنده زیات ورکوی \| اودخپل طرفنه ورته |

(۱) صحیح مسلم، کتاب الزهد، باب تحریم الریاء: ج ۲، ص ۴۱۱
(۲) مسند احمد، حدیث شداد بن اوس ﷺ رقم الحدیث: ۲۶۵۱۷
(۳) مسند احمد، حدیث محمود بن لبید ﷺ رقم الحدیث: ۲۲۵۲۳
(۴) شعب الایمان للبیهقی، الخامس والاربعون من شعب الایمان: رقم الحدیث ۷۷۳

عَظِيمًا ۞ فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ

لوئ | نو څرنګ حال به وي | په هغه وخت | چې راولو مونږ | د هر امت نه | يو ګواه

ډيرلوئ اجر ورکوي | نوهغه وخت به دوئ څه کوي چې مونږ به د هر امت نه يويو ګواه راوبلو

وَجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا ۞ يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا

اوراولو مونږ تا لره | په دې خلقو باندې | ګواه | په دغه ورځ به | آرزوکوي | هغه کسان | چې انکار ئې کړې وو

اوپه دې خلقوباندې به تاګواه کړو | چا چې کفر کړې وی اود رسول صلی الله علیه وسلم نافرمانی ئې کړې

وَعَصَوُا الرَّسُولَ لَوْ تُسَوَّىٰ بِهِمُ الْأَرْضُ وَلَا يَكْتُمُونَ

اونافرمانی ئې کړې وه درسول | افسوس چې هواره کړې شوې وی | په هغوئ | زمکه | اونه به شي پټولې

وی هغوئ به دا وائی کاش چه زمکه په دوی باندې هواره شي | او دوی سره هډو حساب اونشی |

اللَّهَ حَدِيثًا ۞

دالله نه | هيڅ خبره |

اوهلته به دالله ﷻ نه هيڅ پټولې نشی

**آسان ترجمه قرآن:** بې شکه د دوی به څه وران شوي وو که دوی په الله او په ورځ د آخرت ايمان راوړې وو او الله چه دوی ته کوم رزق ورکړې دې د هغې نه ئې څه (نيک کاروتو کښې) خرچ کړې وې؟ اوالله ته ددوئ حال ښه معلوم دې الله لږ غوندې هم په چا ظلم نه کوي او که څه نيکي وي نو هغه هم په څو چنده زياتوي اوخپله دخپل طرف نه لوئ ثواب ورکوي بيا (دې دا خلق سوچ وکړی چه) هغه وخت (ددوی) به څه حال وي چه د هريو امت نه به يو ګواه راولو او اې پيغمبره ا)مونږ به تا لره ددوی خلاف ګواه راولو ؟ او کوموخلقوچه کفر کړې دې او د خپل رسول نه ئې نافرماني کړې ده. په هغه ورځ به هغوی دا آرزو کوي چه کاش چه دوی په زمکه کښې (ښخ کړې شي) او برابر کړې شي. او د الله نه به څه خبره نه شي پټولې.

**د آيتونو ربط** :: دې مخکښې آيتونو کښې د الله ﷻ څخه انکار ، د آخرت څخه انکار ، اود بخل وغيره مذمت او غندنه ذکر شوې وه . او دې آيتونو مبارکو کښې په الله ﷻ باندې او په ورځ د آخرت باندې د ايمان او دالله ﷻ په لار کښې د خرچ کولو ترغيب دې . او په آخر کښې ئې د حشر د مواقفو بيان کړې دې او خلق ئې د بد انجام څخه ويرولی دی . اودا هغه خلق دی چې ايمان نه راوړی او نيك عملونه نه کوی.

## خلاصه تفسير

﴿ وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ آمَنُوا بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ﴾او په دوی به څه نقصان وی که ايمان يې راوړی په الله ﷻ اوپه آخری ورځ [يعنی دقيامت] ﴿ وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللَّهُ ﴾ اوالله ﷻ چه ورته څه ورکړی دی دهغې نه څه [قدرې په اخلاص سره] په مخه لګوئ [يعنی هيڅ زيان ئې نشته خالصه نفع ده] ﴿وَكَانَ اللَّهُ بِهِمْ عَلِيمًا ۞﴾ او الله ﷻ ددوی [نيك اوبد] ښه پيژنی [نوپه ايمان او مال لګولو به ورته ثواب ورکوی اوپه کفروغيره به ورته عذاب ورکوی] ﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ﴾ بيشکه الله ﷻ به يو

ذره قدري ظلم هم نه کوي [چه دچا ثواب اووهي يا بےوجې عذاب ورکول شروع کړي چه ښکاره ظلم دې] ﴿ وَاِنْ تَكُ حَسَنَةً يُّضٰعِفْهَا ﴾ او [بلکه هغه خوداسې رحيم دې چې]که يونيکي وي نوهغه به څو چنده کړي [ثواب به يې ورکړي څنګه چه په بل يو آيت کښې ئے وعده راغلې ده] ﴿ وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴾ او [ددغه وعده شوي نه علاوه به] دخپلې خوانه [يې دعمل دبدلے نه دانعام په ډول او] لوئي اجر به [بيل] ورکوي. ﴿ فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍۭ بِشَهِيْدٍ وَّجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰۤؤُلَآءِ شَهِيْدًا ﴾نودغه وخت به هم څه حال وي کله چه دهر امت نه يو يو ګواه حاضر کړواو تاسو به په دغه خلقو [چه ورسره ئے لاتجه راغلې وه] دګواهۍ ورکولو دپاره راحاضر کړو [يعني کومو خلقو چه په دنيا کښې دالله ﷻ احکام نه وو منلي دهغوي دمقدمے دپيشۍ په وخت به دسرکاري ګواهانو په ډول دانبياء کرامو ښکاره بيانات واوريدے شي کومے معاملے چه د نبيانو په مخکښې شوي وے ټولې په ښکاره کړي.ددې ګواهۍ نه پس به پدغه مخالفو خلقو جرم ثابت شي او سزا به ورکړې شي پورته ئے فرمائيلي وو چه دغه وخت به څه حال وي وروسے دغه حال پخپله بيانوي چه] ﴿ يَوْمَئِذٍ يَّوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَعَصَوُا الرَّسُوْلَ ﴾ په دغه ورځ به [داحال وي چه په دنيا کښې ئے] کفر کړي وي او درسول ﷺ خبره ئې نه وي منلے هغوي به ددې خبرے آرزو کوي ﴿ لَوْ تُسَوّٰى بِهِمُ الْاَرْضُ ۭ وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا ﴾چه کاش [دغه وخت]مونږ زمکې سره سم شوه [چه ددې شرميدو او آفت نه په امان شو] او [دګواهۍ نه غلاوه پخپله به هغوي اقراري مجرمان هم شي ځکه چه] الله ﷻ نه به هيڅ خبره [چه پدنيا کښې ئے کړې وي] پټه نه کړې شي [نو په دواړو طريقو سره به پرے فردجرم اولګولے شي].

## معارف اومسائل

په رومبي آيت کښې ئې اوفرمائيل: ﴿وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ﴾ دوئ ته به څه نقصان اورسي اوڅه مصيبت به ورته پيښ شي، که داخلق په الله اوآخرت ايمان راوړي اودالله تعالى دَورکړي مال نه خرچ کړي، داټول آسان کارونه دي چه په اختيارولوکښې ئې هيڅ تکليف نشته ،بياولې نافرمان جوړيدوسره دآخرت تباهي په خپل سراخلي.

وريسې ئې اوفرمائيل: ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ﴾ يعني الله تعالى دَچا ،دَنيکوعملونوپه ثواب او جزائې خير کښې ذره برابر کمي نه کوي بلکه د خپل طرف نه په هغه کښې نور زياتي کوي او په اخرت کښې بهٔ ئې څوڅوچنده ثواب نورهم زيات کړي اودخپل اړخ نه بهٔ لوئې ثواب ورکوي-

دَالله تعالى دَاړخه،دَثواب کم ازکم پيمانه داده چه يوه نيکي په لسونيکومنظوروَلې شي اوبياپه مختلفوبهانوسره پکښې زياتې په زياتي کولې شي،دَحديثودَخنورواياتونه معلوميږي چه دَبعضې نيکوعملونوثواب شلولاکهوچندوته زياتولې شي اودَالله سخي اوکريم ذات خو،خپل بې انتهارحمت سره دومره زياتوي چه حساب اوشميرنه بهرشي ﴿وَاللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾هغه لوئې اجربه په فکرکښې څنګه راشي چه دَرب العزت دَبارګاه نه ملاويږي ﴿وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ اَجْرًا عَظِيْمًا﴾

په آيت کښې دَ﴿ذَرَّةٍ﴾لفظ چه راغلې دې دَهغې دَمشهورې ترجمې ذکر وړاندې تيرشويدې،څنې حضرات دَدې ترجمه سُوررنګې ورکوتې ميږې کوي چه عربويه دسپکوالي اوبې وزنۍ دپاره په مثال کښې پيش کولو-

﴿فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ﴾ سره دې اړخ ته محه راګرځول دي چه دآخرت ميدان خپل خان ته مخامخ اوګنړلې شي اودقريشو کفاروته زورنه ورکول هم مقصود دي.
دهغه خلقوبه څه حال وي چه دحشرپه ميدان کښې به دهريو اُمت نبي دخپل خپل اُمت په نيکواوبدو عملونو باندې دګواه په ډول پيش کيږي اوتاسوبه هم په خپل اُمت باندې دګواه په ډول حاضريږئ اوخصوصاً دکفارواومشرکانوبه باره کښې به په خدائي عدالت کښې ګواهي ورکوئ چه هغوئ دداګيزومعجزوپه ليدوبياهم ورته دروغ اونيل-اوستاسوپه وحدانيت اوزماپه پيغمبري ئې ايمان رانوړلو-
دبخاري شريف دېوروايت مطابق رسول الله ﷺ عبد الله بن مسعود ؓ ته اوفرمائيل چه ماته قرآن کريم واوروه ،حضرت عبد الله ؓ عرض اوکړوچه تاسوزماڅخه قرآن کريم آوري حالاتکه داخوپه تاسونازل شويدې؟هغوئ اوفرمائيل چه ، ،او وائې-ابن مسعودوائي چه مادسورة نساء تلاوت شروع کړواوکله چه ﴿فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ﴾ ته اورسيدم نوهغوئ اوفرمائيل چه اوس بس کړه،چه ماورته اوکتل نودسترګومبارکونه ئې اوښکې بهيدلې[۱]-
علامه قسطلاني ليکلي دي چه رسول الله ﷺ ته ددې آيت نه دآخرت ننداره رامخې ته شوه اودخپل اُمت لندعملواوبې عملوخلقوته ئې چه خيال شونوسترګومبارکوکښې ئې خکه اوښکې راغلې-
**فائده** ځنې حضراتووئيلي دي چه ﴿هٰٓؤُلَآءِ﴾ کښې اشاره هغه کسانوته ده چه درسالت په زمانه کښې موجود کفاراومنافقان وو-اوځنې وائي چه ترقيامته پورې ټول اُمت ته اشاره ده،ولې چه ځنې روايتونوداحاديثونه معلوميږي چه ددوئ دأمت اعمال دوئ ته په روضه مبارکه کښې پيش کولې شي-
په هرحال دې نه معلومه شوه چه دتيروشوؤاُمتونوانبياء ؑ به په خپلوخپلواُمتونو باندې دګواه په ډول پيش کيږي اودوئ به هم دخپل اُمت په عملونوګواهي ورکوي.دقرآن کريم ددې طرزنه معلوميږي چه دوئ نه پس بل راتلونکې نبي نشته چه دخپل يواُمت په باره کښې به ګواهي ورکوي ورنه په قرآن کريم کښې به دهغه دپيغمبر کيدواودګواهئ ورکولوياد ګيرنه هم وه،په دې اعتبارسره،داآيت دنبوت دختميدودليل هم دې-
﴿يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ کښې دآخرت دميدان دکافرانودبدحالئ داسې ذکردې چه داخلق به دقيامت په ورځ تمناکوي چه کاش امونږه زمکې سره زمکه شوې وې،کاش!زمکه چودې وې اومونږ پکښې ښخيدوسره خاورې شوې وې اوددې وخت دسوال،جواب اودعذاب وحساب نه خلاص شوې وې-
دحشرپه ميدان کښې چه کله کفارداننداره اووينې چه ټول ځناور،يوبل نه دظلمونودبدل اغستونه پس خاورې کړې شي نوارمان تمنااوافسوس به کوي،چه کاش!مونږه هم دغسې خاورې شوې وې لکه سورة نباء کښې ئې چه فرمائيلي دي- ﴿وَيَقُولُ الْكَافِرُ يَا لَيْتَنِي كُنتُ تُرَابًا﴾
اپه آخر کښې ئې اوفرمائيل ﴿وَلَا يَكْتُمُونَ اللَّهَ حَدِيثًا﴾ يعنې داکفاربه دخپلوعقيدواوعملونوڅخه هيڅ څيز پټ اونشي ساتلې،ددوئ خپل لاسونه خپې به اقرار اوکړي،انبياء به ګواهي ورکوي اوپه عملنامه کښې به هم هرڅه موجودوي-

---

[۱] صحيح البخاري، كتاب فضائل القرآن، باب قول المقرئ الخ: ج ۲، ص ۷۵۵

حضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه تپوس اوشوچه دقران کریم په یو ځائې کښې ارشاددې چه کفاربه هیڅ هم پټ نکړې شی اوبل ځائې کښې داسې راغلی دی چه هغوی به په قسم اووائی چه ﴿وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ﴾ مونږ شرک نه دې کړې-نوپه ظاهره دې دواړو آیتونوکښې تعارض اوټکر دې؟هغوی جواب ورکړوچه هرکله په شروع کښې کفارداوینی چه دمسلمانانونه سوا ،جنت ته بل څوک خی نهٔ،نوداخبره به خان سره په زړه کښې غټه کړی چه مونږ لره دځپل شرک اوبدوعملونونه بیخی انکارکول پکاردی،کیدې شی چه په دې شان سره مونږه خلاصې بیا پیدا کړو،لیکن ددې انکار نه پس به پخپله ددوی اندامونه،ددوی خلاف ګواهی اوکړی،اوددې دپټولو کومه منصوبه به ئې چه جوړه کړې وه هغه به بیخی بیکاره ثابته شی اوپه دغه وخت به دوی ټول اقراراوکړی خکه ئې اوفرمائیل:﴿وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا﴾چه هیڅ خبره به دالله تعالی نه نشی پټولې.

| |
|---|
| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ |
| اے هغه کسانو\| چی ایمان مو راوړې دې \| مه نزدې کیږئ \| مانځه ته \| |
| \| ائې مومنانو تاسو د نشې په حالت کښې مونځ ته مه نزدې کیږئ |
| وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى حَتّٰى تَعْلَمُوْا مَا تَقُوْلُوْنَ وَلَا جُنُبًا |
| په دا حال چی تاسو\| په نشه کښی یئ\| تردې پورې\| چی پوهه شئ\| په هغه څه\| چی تاسوئې وایئ\| اونه په حال دجنابت کښی |
| البته چه څه وائې په هغې پوهیږئ انوبیا مونځ کوئ\| اونه په حالت د جنابت کښې \|مانځه ته |
| اِلَّا عَابِرِيْ سَبِيْلٍ حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا ۭ وَاِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى |
| ماسوا ددې نه\| چی تیریدونکې یئ\| په لاره \| تر دې پورې \| چی تاسو غسل اوکړئ\| اوکه ئې تاسو \| ناجوړه |
| نزدې کیږئ البته که په لاره تیریدونکې ئې ترڅوچې موغسل نه وی کړې \| اوکه ناجوړه ئې \| |
| اَوْ عَلٰى سَفَرٍ اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ |
| یا په سفر کښې \| یا راشی\| یو له تاسو نه\| اودس ماتی نه\| یاګوتی وروړئ تاسو\| ښځو ته |
| یاپه سفر کښې یئ\|یا په تاسو کښې څوک د اودس ماتی نه واپس شی \|یاښځوسره نزدیکت اوکړئ\| |
| فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ |
| او پیدا نه کړئ\| اوبه \| نو تیمم اوکړئ \|په خاوره \| پاکه \| او مسح اوکړئ \| په مخونو خپلو \| |
| اواوبه اونه مومئ\|نوپه پاکه خاوره باندې تیمم اوکړئ\| اوپه مخونواو لاسونومسح اوکړئ |
| وَاَيْدِيْكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُوْرًا ﴿٤٣﴾ |
| اوپه لاسونو خپلو\| بیشکه الله \| دې عفو کونکې \| بښونکې \| |
| بیشکه الله ﷻ نرمی کونکې او بخښونکې دې\| |

**آسان ترجمه قرآن:** اې د ایمان خاوندانو! کله چه تاسو دنشې په حالت کښې یئ نو هغه وخته پورې تاسو مونځ ته مه نزدې کیږئ ترڅو چه تاسو څه وایئ په هغې پوهه شوي نه یئ ، او د جنابت په حالت کښې هم ترڅوچه مو غسل نه وي کړې (مونځ جائز نه دې) خوکه مسافر یئ (اوبه ملاو نشې نوکه تیمم

وكړئ مونځ كولې شئ) اوكه تاسو ناجوړه يئ او يا په سفر يئ يا په تاسو كښې څوك د قضاء حاجت د ځاى نه راغلې وي يا تاسو ښځو لره مسح كړې وي بيا تاسو ته اوبه ملاو نه شي نو بيا كه خاوره تيمم وكړئ او د خپلو مخونو او لاسونو (دې خاورې سره) مسح وكړئ بې شكه الله ډير معاف كوونكې، ډير بخښونكې دې.

**شان نزول**: ترمذى شريف كښې د على ﷺ دا واقعه ذكر ده چې د شرابو د حرمت نه مخكښې وړاندې يو ځل عبد الرحمن بن عوف ﷺ نورو صحابه كرام ﷺ د پاره دعوت كړې وو. او په دې كښې د شرابو انتظام هم وو. هر كله چې دې ټولو حضراتو اوڅکل نو ماښام د مونځ وخت وو. او على ﷺ امام شو. دوئ ﷺ څخه د ﴿قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْكَٰفِرُونَ﴾ تلاوت كښې د نشې په وجه غلطى اوشوه. نو په دې باندې دا آيت مبارك نازل شو[1] چې د نشې په حالت كښې مونځ مه كوئ.

**خلاصه تفسير**

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَقْرَبُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنتُمْ سُكَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَعْلَمُوا۟ مَا تَقُولُونَ ﴾ اے د ايمان خاوندانو تاسو د مونځ خواته هم په داسې حالت كښې مه ځئ [يعنى په داسې حالت كښې مونځ مه كوئى] چه تاسو په نشه كښې يئ تر دې چه ستاسو پوهيدل شروع شى په دې چه په خلې څه وائې [تر دغه وخته پورې مونځ مه ادا كوئى مطلب دادې چه مونځ ادا كول خو په خپلو وختونو كښې فرض دې. اودا حالت مونځ اداكولو سره جوړ نه لرى. نو د مونځ په وختونو كښې د نشے استعمال مه كوئى چه ستاسو خلے نه په مونځ كښې څه خلاف كلمه اونه اوځى] ﴿ وَلَا جُنُبًا ﴾ اود جنابت په حالت كښې هم [يعنى كله چه غسل درباندې فرض وى] ﴿ إِلَّا عَابِرِى سَبِيلٍ ﴾ سوا د مسافر كيدو د حالت نه [چه حكم ئے دادې راروان دې د مونځ خواته مه ځئ] ﴿ حَتَّىٰ تَغْتَسِلُوا۟ ﴾ تر دې چې غسل اوكړئى [يعنى د جنابت نه غسل كول د مونځ د صحيح كيدو شرط دې. اودا حكم يعنى د جنابت نه پس بغير د غسل كولو د مونځ نه اداكول په هغه حالت كښې دى چه څه عذر ئے نه وى] ﴿ وَإِن كُنتُم مَّرْضَىٰٓ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ ﴾ اوكه تاسو [څه عذر لرئ لكه] بيماران يئ [او اوبه استعمالول تاسو له ضررى وى لكه دے پسے راځى] يا په حالت د سفر كښې يئ [چه پورته ئے استثناء شوې ده او ددې حكم هم راروان دې او اوبه نشئ موندې لكه چه دا هم راځى نو ددې دواړو عذرونو په وجه به د تيمم اجازت وى. اوتيمم رواكيدل څه دے عذرونو پورې خاص نه دى بلكه تاسو ته خاص دا عذر نه وى] ﴿ أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ ٱلْغَآئِطِ أَوْ لَٰمَسْتُمُ ٱلنِّسَآءَ ﴾ يا [دا خاص عذرونه نه وى داسې چه نه خو تاسو بيماران يئ اونه مسافر بلكه هم داسې د چا اودس مات شى يا غسل پرې لازم شى لكه] تاسو نه څوك بنده [د لوئي يا وړكوټى اودس ماتى د] استنجاء نه [فارغ شوې] راشى [چه ورسره اودس ماتيږى] يا تاسو بيبيانو سره نزديكت كړې وى [او ددې په وجه درباندې غسل اوړيدلې وى او] ﴿ فَلَمْ تَجِدُوا۟ مَآءً ﴾ بيا [په دې ټولو صورتونو كښې كه د مرض اود سفر د عذر صورت وى يا مرض اوسفر نه وى خو هسې د اودس او غسل ضرورت وى] تاسو ته اوبه [يعنى د استعمالولو موقعه ئې] په لاس درنشى [يعنى د بيمارتيا په وجه درته ضرر رسوى يا د سره اوبه نه مومئ سفروى اوكه نه وى] ﴿ فَتَيَمَّمُوا۟ صَعِيدًا طَيِّبًا فَٱمْسَحُوا۟ بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ ﴾ نو [په دې ټولو حالتونو كښې] تاسو په پاكه زمكه تيمم كوئى [يعنى په دغه زمكه دواړه لاسونه اووهئ او] په خپلو مخونو او

[1] جامع الترمذى، أبواب التفسير، تفسير سورة النساء: ج ۲، ص ۳۲

لاسونو [لاس] تیروئ ﴿ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا ﴾ بیشکه الله ﷻ ډیر معاف کوونکې لوني بخښونکې دې [او دچا چه داسې عادت وي هغه آسان حکم ورکوي خکه الله ﷻ داسې داسې آسان حکمونه درکړل چه تاسو ته تکلیف او تنگی نه وي]۔

## معارف او مسائل

**د شرابو حرامولو درجه په درجه خصوصیت:** ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَىٰ ﴾ الله تعالی، اسلامی شریعت ته دا یو خصوصیت ورکړې دې چه دَدې احکام ئې نرم او آسان کړې دی، دَدغې زنځیرو کړئ داده چه شراب څکل دعربو زوړ عادت وو چه ټول قوم پکښې اخته وو، سوا دَیو څو خاصو حضراتو نه چه دَهغوئ طبیعت الله تعالی داسې سلیم جوړ کړې وو چه هغوئ دَدې خبیث څیز خواته هم کله نهٔ وو تلی، لکه رسول الله ﷺ چه دَپیغمبر کیدونه وړاندې ئې کله هم شرابو ته لاس نهٔ وو وراوړې، او دا هم هر چا ته معلومه ده چه کله دَیو څیز عادت دَچا جوړ شی نو دَهغې نه خان خلاصول ورته ډیر زیات گران وی، خصوصاً دَنشې عادت خو دَانسان په طبیعت باندې داسې قبضه کوی چه دَهغې پریښولو کښې ورته خپل مرگ ښکاری۔

دَالله تعالی په نزد ، شراب څکل او نشه کول، حرام وو او کله چه خلقو اسلام راوړو نو هغوئ لره دَدې حکم په منلو کښې سخت مُشکلات راپیښیدل، په دې وجه په اول سر کښې، په دې باندې څهٔ جزوی پابندی اولگولې شوه او دَدې په خرابو اثراتو باندې خبرداری ورکولو سره، دَدې پریښوتو ته تیار کړې شو، په دې بِنا اول سر کښې دا حکم اوکړې شو چه دَنشې په حالت کښې دَمونځ خواته مهٔ ځئ څنگه چه دا آیت نه واضح کیږی۔ حاصل ئې دا وو چه دَمونځ په وخت کښې دَمونځ کولو اراده کول فرض دی، دَمونځونو په وختو کښې د شراب استعمال نکړیشی، چه مسلمانانو تړ دا محسوسه کړه چه دا، داسې خراب څیز دې چه انسان لره دَمونځ نه ایساروی او هم په دې وجه ډیرو حضراتو هم دَدغه وخت نه دَدې دَپریښولو بندوبست اوکړو او نورو حضرات هم په سوچ کولو مجبوره شو چه دا ناکاره او خراب څیز دې۔ بالآخر دَسورهٔ مائده هغه آیت شریف نازل شو چه دَهغې له مخه شراب قطعاً ناپاک او حرام او گرځولې شوا و په هر حال کښې ئې څکل حرام کړې شو۔

**مسئله** څنگه چه دَنشې په حالت کښې مونځ کول حرام دی، څنو مفسرینو ﷺ فرمائیلی دی چه هر کله خوب په چا باندې دومره غلبه اوکړی چې دَهغې په وجه دَهغه ژبه په خپل قابو کښې پاتې نشی نو په داسې حالت کښې هم، مونځ کول درست نهٔ دی، لکه په یو حدیث شریف کښې ارشاد دی:

﴿اذا نعس احدکم فی الصلوة فلیرقد حتی یذهب عنه النوم فانه لایدری لعل یستغفر فیسب نفسه﴾ [قرطبی] [1] که تاسو ته په مانځه کښې چا ته خوب ورتلو نو څه وخت دَپاره ئې اوده کیدل پکاردی چه دَخوب اثر ترې لاړ شی ورنه دَخوب په حالت کښې به هغه په خان نه پوهیږی او دَدُعا او استغفار په ځائې به خپل خان ته کنځل کول شروع کړی۔

**دَتیمم حکم یو انعام دې چه دَدې امت خصوصیت دې** ﴿فَتَيَمَّمُوا﴾ دَالله تعالی څومره لوئې احسان دې چه

[1] ) صحیح البخاری، باب الوضوء، باب الوضوء من النوم: ج۱، ص ۳۴

اودس او پاکئ حاصلو دپاره نې داسې څيز داوبو په ځائې اودرولو چه داوبو نه زيات په آسانه پيدا کيد يشي، چنانچه هرچاته معلومه ده چه زمکه اوخاوره هرځائې کښې موجوده ده. په حديث شريف کښې راغلي دی چه داآسانی يواځې اُمت محمديه ته ورکړې شوې ده. دتيمم ضروری مسائل دفقهې په کتابونو اودأردو په رسالو کښې ډيرزيات چاپ شوی دی، هغه داوکتلې شي۔

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ

| آيا اونه کتل تا | هغه کسانو ته |

| آيا تادهغې خلقو حالت نه دې ليدلې

أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَٰبِ يَشْتَرُونَ الضَّلَٰلَةَ وَيُرِيدُونَ

چې ورکړې شوی ده ورته | څه حصه | د کتاب نه | هغوئ اخلي | گمراهی | اوغواړي دا |

چې د کتاب (علم) نه ورته لويه برخه ورکړې شوې وه | اوبيا هم گمراهی اخلی | اودا غواړی

أَن تَضِلُّوا السَّبِيلَ ﴿٤٤﴾ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِأَعْدَائِكُمْ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَلِيًّا

چې تاسو ورکه کړئ لار | اوالله ښۀ پيژنی | دشمنان ستاسو | اوکافی دې الله دوست

چې تاسود حقې لارې نه بې لارې کړی | اوالله ﷻ ته ستاسو دشمنان ډيرښه معلوم دی | اوتاسو دپاره دالله ﷻ ملگرتيا کافی ده

وَكَفَىٰ بِاللَّهِ نَصِيرًا ﴿٤٥﴾ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا

او کافی دې الله | مددگار | بعضې دهغه کسانونه | چې يهوديان دی |

اوتاسو دپاره دالله پاک مدد کافی دې | ............ د هغه کسانو نه چې يهوديان شوی دی

يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِ وَيَقُولُونَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا

اړوی | خبری | دځايونو دهغې نه | اووايئ هغوئ | واوريدله مونږ | اوونه منل مونږه |

ځينې خلق لفظونه دخپلو مناسبو ځايونونه اړوی را اړوی (اوچه تاسوته راشی) نو وائی چې سمعنا وعصينا

وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَرَاعِنَا لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ

اووائی هغوئ واوره | چې نه نی ته قابل داوريدلو | اولفظ راعنا وائی | په تاوولو | دژبو خپلوسره

اود اسمع غيرمسمع دغه شان د راعنا په الفاظو ژبې تاؤ راتاؤ کړی

وَطَعْنًا فِي الدِّينِ ۚ وَلَوْ أَنَّهُمْ قَالُوا سَمِعْنَا

او په عيب ويلوسره | په دين کښې | او که چرې هغوئ | ونيلې وې | چې واوريده مونږ وينا [ستا]

اود دين اسلام په قبلولو (مسلمانانو ته) پيغورونه ورکوی (۱) اوکه ددې (الفظونو) په ځائې دوی ونيلې چې مونږ واوريدل

---

۱) د نبی کريم ﷺ په حق کښې گستاخی کول:- او [رَاعِنَا] به نې ونيل چه ددې نه به په ظاهره دا گنړلې کيدل چه دا خلق وائی چه مونږ طرفته غوږ کيږده. ليکن هغوئ به ددې نه مراد دا اخستو چه تاسو ډيرلو نې والا يئ، ددې پوره مطلب [ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَقُولُواْ رَٰعِنَا ] تفسير کښې تير شوې دې. مقصد دادې چه کوم نې ظاهرول ، دهغې خلاف خپلې ژبې اړوی او د طعن په طور خپلو زړونو کښې پټ ساتی. در اصل دا به دوی د نبی کريم ﷺ بې ادبی او گستاخی کوله. نو ..... [بقيه په راروانه صفحه...

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَأَطَعْنَا | وَاسْمَعْ | وَانْظُرْنَا | لَكَانَ | خَيْرًا | لَّهُمْ |
| اواومنلو مونږه حکم | اولفظ واوره | او اوګوره مونږ ته | خامخاوه داخبره | بهتره | دهغوی دپاره |
| اوتابعداری کوو [استاسو] او واوره [خبره زمونږ] او زمونږ لحاظ اوکړه [ نو دابه ددوی دپاره ډیره بهتره وه | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأَقْوَمَ | وَلَٰكِن | لَّعَنَهُمُ | اللَّهُ | بِكُفْرِهِمْ | فَلَا يُؤْمِنُونَ | إِلَّا | قَلِيلًا ۝ |
| اوزیاته صحیح | خو لیکن | لعنت کړې دی په هغوی | الله | په سبب دکفر دهغوی | نو نه راوړی ایمان | مګر | لږ |
| اودموقعې مطابق خبره به وه [خو په دوی باندې الله ﷻ دکفر په وجه لعنتونه وروّلی دی نو ډیر کم په کښې ایمان راوړی | | | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** کومو خلقو ته چه دکتاب (یعنې د تورات د علم نه) یوه حصه ورکړې شوې وه آیا تا هغوی لره نه دی لیدلی چه څنګه ئې ګمراهي خوښه کړه او غواړي چه تاسو هم د صحیح لارې نه واوړئ او الله ستاسو دښمنانو لره ښه پیژني ، او کافي دې الله دپاره دحفاظت او کافي دې الله دپاره دمدد. په یهودو کښې څه هغه دی چه هغوی (د تورات) الفاظ دهغې دموقعې او محل نه لرې کوی او خپلې ژبې تاوې راتاوې او په دین کښې طعنې کولو سره وائی چه سمعنا وعصینا او اسمع غیر مسمع ، او راعنا . حالانکه که چرې هغوی دا وئیلي وې چه: سمعنا واطعنا، او اسمع وانظرنا، نو ددوی دپاره بهتره او ښه لاره وه لیکن ددوی دکفر په وجه چه الله تعالی په دوی باندې لعنت کړې دې، په دې وجه د لږو خلقو نه سوا دوی ایمان نه راوړی.

**خلاصه تفسیر**

[ائې مخاطبه] ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ ﴾ آیا تا هغه خلق نه دی کتلی [یعنی دلیدو جوګه دی چې وې وینې نوتعجب به اوکړئې] چاته چه کتاب [یعنی دتورات دعلم] یوه لویه برخه ورکړې شوې ده [یعنی د تورات علم لری سره ددې] ﴿ يَشْتَرُونَ الضَّلَالَةَ ﴾ چه دغه خلق ګمراهی [یعنی کفر] اختیاروی [اوپخپله خو ګمراه شوی دی خوهغوی] ﴿ وَيُرِيدُونَ أَن تَضِلُّوا السَّبِيلَ ۞ ﴾ داسې غواړی چه تاسو [هم] دلارې [سمې] نه [بېلیدو سره بې لارې شئ [یعنی قسماقسم انتظامات ددې کوی لکه څنګه چه د دریمې سیپارے په آخر اود څلورمې سیپارې په اول کښې څه ذکر شوی هم دی] ﴿ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِأَعْدَائِكُمْ ﴾ او [که تاسوته تراوسه پورې ددې خلقو خبرنه وی نو څه اوشو] الله ﷻ [خو] ستاسو [دغه] دښمنان ښه پیژني [څکه ئې تاسو ته اوښودل نوتاسو ترځان ساتلی لرئ] ﴿ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَلِيًّا وَكَفَىٰ بِاللَّهِ نَصِيرًا ۞ ﴾ او [ددوی دمخالفت جال چه واورئ نو زیات فکر مند کیږئ مه څکه چه] الله ﷻ [ستاسو] ښه جخت ملګرے دې [چه ستاسو د ښیګړو لحاظ به ساتی] اوالله ﷻ [ستاسو] کلك مرستیال دے [چه ددوی د نقصان درکولو نه به موساتی. ﴿ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا ﴾ دا خلق [چه ذکر ئې شوې دې] دیهودیانو نه دی [او ددوی ګمراهی اختیارول چه پورته ئې بیان اوشو دا دی چه] ﴿ يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِ ﴾ کلام [الهی یعنی تورات] لره ددې د موقعو [او ځایونو] نه [لفظ یا معنا ئې] بل خوا اړوی او [ددوی داسې

...بقیه د تیرمخ] .دوی ته هدایت کولې شی چه دوی دې داسې الفاظ پریږدی چه دهغې معنې دوه وی.او صفا صفا دې اووائی چه مونږ واوریدل ، تاسو څمونږ عرض واورئی ، تاسو څمونږ طرفته اوګورئی. دا وینا ددوی دپاره بهتر ده او هم دا صفا او ربښتونې او مناسب خبره ده.خو ددوی زړونه د نیکئ نه لرې دی. اصل ایمان دپاره ددوی زړونو کښې ځائې نشته دې.ددې جملې تفسیر هم مخکښې تیر شوې دې ، مطلب دادې چه نفع ورکولو والا ایمان دوی کښې نشته دې.(ابن کثیر)

بله ګمراهي چه ساده قسم خلق خطاوتلو له وجې په کښې انښتلے[مښتلی] شي داده چه دوی درسول الله ﷺ سره دخبرو اترو کولو په وخت] ﴿وَيَقُولُونَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَرَاعِنَا لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِي الدِّينِ﴾ دا کلمات وائی [چه مخکښې راروان دی ددغې کلماتو دوه معنے دی.یوه معنا ئے ښه ده او بله بده ده.دغه خلقو به یئ غلط مطلب اخستلو اونورو ته به یئ دا ښکاره کوله چه مونږ ئے په ښه مطلب وایو او مسلمانان په دې خطاوتل او په بعضې داسې کلماتو سره ئے رسول الله ﷺ لره مخاطب کول څه لرې خبره نه وه.چنانچه سورت بقرې په دولسمه رکوع کښې مومنان د "راعنا" د لفظ استعمالولو نه منع کړې شوی وو.نوپه دې لحاظ سره دیهودو دغه کلمات استعمالول یو قسم نورو لره ګمراه کول هم دی که څه هم لفظاً وی نو په دې کښې د ﴿یریدون ان تضلوا﴾ لفظ چه پورته راغلې دې بیان هم شو لکه چه په ﴿من الذین هادوا﴾ کښې د ﴿الذین اوتوا نصیبا﴾ بیان وو.اوپه ﴿ یحرفون﴾ کښې دهغه کلماتو بیان وو چه یو دهغې نه ﴿سمعنا وعصینا﴾ ده . ترجمه ئے داده چه مونږ واوریدل اومنلې نه ده. ددې ښه مطلب داکیدیشی چه ستاسو ارشاد مونږ واوریدلو او ستاسو دچا مخالف وینا مونږ اونه منله چه مونږئے دهوکه کولو.او خراب مطلب ئے ښکاره دې چې مونږ ستاسو خبره خو واوریده خو عمل پرې نه کوو] او [بله داده] ﴿ اسمع غیر مسمع﴾ [ددې لفظی ترجمه داده چه تاسو زمونږ خبره واورئی او الله ﷻ دې اوکړی چه تاسو هیڅ خبره واو نه رئی .ښه مطلب ئے دا اخستلے شی چه تاسو ته دې څه مخالفه او غم رسونکے خبره واو نه رولے شی بلکه تاسو دې داسې بختور یئ چه دخپلے هرے یوې خبرې په جواب کښې درته خلق روغه خبره آوروی.او خراب مطلب ئے دادې چه تاسوته څه سمه او د خوشحالئ خبره واونه رولےشی.بلکه چه څه خبره کوئی نو دهغې جواب دے وران.ستاسو غوږونوته د راورسولې شی] او [دریمه کلمه داده] راعنا [ددې دواړو مطلبونو نه ښه او خراب په سورت بقره کښې بیان شوی دی.ښه مطلب ئے دا کیدیشی چه زمونږ لحاظ اوساتئی. او خراب مطلب ئے دیهودو په لغت کښې کنځل دی.غرض دا چه دا کلمات] په داسې شان [دوی وائی] چه خپلے ژبے [دعزت دانداز نه د ذلت انداز ته] را اړوی او [دزړه نه] په دین کښې دپیغور درکولو [اوهم دسپکاوی] نیت لری [وجه داده چه نبی ته پیغور ورکول او توقے ورپورې کول بعینه دین ته پیغور ورکول اوتوقے ورپورې کول دی] ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ وَأَقْوَمَ﴾ اوکه دےخلقو [د دوو معنو ورکوونکو الفاظو په ځائې] داکلمات ئے وئیلې [دسمعنا وعصینا په ځائې] سمعنا واطعنا [یعنی مونږ واوریدل او مو منل] او [د اسمع غیر مسمع په ځائې صرف] اسمع [یعنی تاسو واورئی] او [د راعنا په ځائې ئے] انظرنا [یعنی زمونږ دښیګړې خیال کوئی چه دا کلمے ورانئ نه خالی اوپاکے دی نوکه دا کلمات ئے وئیلې] نودا خبره دوئ دپاره غوره [او فائده منده هم] وه او [په حقیقت کښې هم] دموقعے خبره وه ﴿ وَلَكِن لَّعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ﴾ مګر [خو دوی داسې دنفعے او موقعے خبره دسره کړې نه ده بلکه بې بنسته خبرےئے دخلے نه ویستلے څکه ورته دا تکلیف اورسیدو چه] دوی لره دالله ﷻ ددوی دکفر په وجه [چه دا کلمات په کښې هم راغلل اونور ټول کفری اعمال اواقوال هم په کښې راغلل.نو ددې ټولو کفریا تو په سبب الله ﷻ دوی لره] دخپل [خاص] رحمت نه لرے اوغورزول ﴿ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ اوس به دوی ایمان نه راوړی مګر لږ شان خلق [په وجه ددې چه

دغه خلق ددغه ناکاره حرکتونو نه لرے اوسیدل چه دالله ﷻ خاص رحمت ته پرے نزدے شولاو ایمان ئے هم راوړو لکه عبدالله بن سلام غیره].

## معارف او مسائل

دا هونونو ون په تیروشوؤ آیتونو کښې دتقوی دموقعوبیان راغلې ووچه زیاتې پکښې یوتربله خپل منځ کښې معاملې وې، اوپه مینځ کښې دعبادت، مونځ اودمتعلقاتواحکام ذکرکړې شو، چه په انسان کښې دالله تعالی ویره اوداخرت فکرپیدا کوی، اودمعاملاتوسمیدل آسانوی، دتیرو شوؤ آیتونوراسې، مخالفینوسره دمعاملاتوبیان کړې شوې دې چه پکښې دیهودودورانئ علاج او مسلمانانوته، په الفاظو اوعنوانونو کښې دادب دلحاظ ساتلوښودنه کړې شوه-

| |
|---|
| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ · اُوْتُوا الْكِتٰبَ · اٰمِنُوْا · بِمَا · نَزَّلْنَا |
| اې هغه کسانو \| چې درکړې شوې دې کتاب \| ایمان راوړئ \| په هغه [قرآن] \| چې نازل کړې دې مونږه |
| انې دکتاب خاوندانو [یهودو] په هغه کتاب ایمان راوړئ کوم چه مونږ نازل کړې دې ............ |
| مُصَدِّقًا · لِّمَا · مَعَكُمْ · مِّنْ قَبْلِ · اَنْ نَّطْمِسَ · وُجُوْهًا |
| چې تصدیق کونکې دې \| دهغه کتاب \| چې تاسوسره دې \| وړاندې ددې نه \| چې مونږه بدل کړو \| مخونه |
| چې ستاسو دکتاب تصدیق کونکې دې \| د دې نه وړاندې [ایمان راوړئ] چې مونږ مخونه بدل کړو |
| فَنَرُدَّهَا · عَلٰٓى اَدْبَارِهَآ · اَوْ نَلْعَنَهُمْ · كَمَا · لَعَنَّآ · اَصْحٰبَ السَّبْتِ ؕ |
| اوګرخوو هغه \| شاګانو طرف ته \| یالعنت اوکړوپه هغوئ \| لکه چې \| لعنت کړې وو مونږه \| د خالی د ورځې په خلقو |
| او هغه شاطرف ته واړوو \| یاپرې داسې لعنت اوکړو چې دخالی د ورځې په خاوندانو چې موکړې وو |
| وَكَانَ · اَمْرُ اللّٰهِ · مَفْعُوْلًا ۝ |
| اودې \| حکم دالله \| خامخا کیدونکې \| |
| اودالله ﷻ حکم ضرور پوره کیدونکې دې \| |

**آسان ترجمه قرآن:** اې اهل کتابو! کوم (قرآن) چه اوس مونږ نازل کړې، چه هغه تاسو سره د مخکښې نه د موجود کتاب تصدیق هم کوی په دې بانديې ایمان راوړئ، مخکښې ددې نه چه مونږ بعضې مخونه وُران کړو اود ستې په شان ئې اوګرځوو، یا په هغوی بانديې داسې لعنت اوکړو لکه څنګه لعنت چه مونږ په سبت والو بانديې کړې وو اودالله حکم همیشه ضرور پوره کیږی.

## خلاصه تفسیر

﴿ يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ﴾ انې خلقو چه کتاب [تورات] درکړې شوې دے ﴿ اٰمِنُوْا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ ﴾ تاسو په هغه کتاب [یعنی قرآن] ایمان راوړنی چه مونږ نازل کړې دې [اوتاسو لره په دې باندې ایمان راوړلو نه بوګنیدل اومتنفرکیدل نه دی پکار څکه چه مونږ دې] په دې سے حالت [نازل کړو] چه هغه رښتیا بولی هغه کتاب لره چه تاسو سره دے [چه ستاسو اصل کتاب لره هغه رښتیا بولی اوبدله شوې برخه تر بیله ده نو تاسو په قرآن باندې] ﴿ مِّنْ قَبْلِ اَنْ نَّطْمِسَ وُجُوْهًا فَنَرُدَّهَا عَلٰٓى اَدْبَارِهَآ اَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّآ اَصْحٰبَ السَّبْتِ ؕ ﴾ ددې [نه یقینی کار کیدلو چه ستاسو پرے یقین نه راځی] نوړاندې وړاندے [ایمان راوړنی] چه مونږ [ستاسو] څیرے [نخښے

نبناني اورغونږه يعنى سترګې پوزه وغيره ئې] بيخي وراني کړو اودا [مخونه] ددې خلاف طرف ته واړ وو [او دغې پشان ئې صفا هوار کړو] يا په دې [ايمان نه راوړونکو] باندې مونږ داسې [په خاص شان سره] لعنت اوکړو څنګه مو چه د خالې د ورځې په خاوندانو کړې وو [چه په يهودو کښې تير شوى دي] چه ذکر ئې په سورت بقره کښې راغلې دې يعنى دهغوى پشان به دوى هم د بيزوګانو [په شکل کړو] ﴿ وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ مَفْعُولًا ﴾ اودالله ﷻ [چه کوم] حکم [صادر اوجارى شى هغه] پوره کره کيدونکى وى [نوکه الله ﷻ ستاسودا ايمان نه راوړلو په وجه ددې مخ مسخ کيدو حکم اوکړى پوره کول به يې ضرور شى لهذا تاسو لره ويريدل او ايمان راوړل پکار دى].

## معارف او مسائل

① فائده: ﴿ فَنَرُدَّهَا عَلَىٰٓ أَدْبَارِهَآ ﴾ [مونږه ئې واړووشاړخ ته، په اپوټه او اړولو کښې دوه احتمالونه دى چه د مخونو نخښې نبناني تولې ورانې کړو اوپوره مخ نقشه يې شاړخ ته واړووا وداهم کيدې شى چه مخ ئې دګدې پشان بيخي هوارسوار کړو اوشاته ئې وانړو [مظهرى روح المعاني] (۱).

② فائده: دلته داسوال پيدا کيږي چه دا مخونو ورانيدل اوبل مخ ته اړيدل به کله کيږي؟ څنې وائى چه داعذاب به په يهودو د قيامت نه وړاندې راځى اوځنې وائي چه داعذاب څکه پرې رانغلوچه دوئ کښې ځنې خلقوايمان راوړې وو.

حضرت حکيم الامت تهانوى رحمه الله فرمائيلي دي چه زما په نزد د سره دغه سوال واردېدې څکه نشي چه په قرآن کريم کښې هيڅ يو لفظ نه داسې معلوميدل نشته چه د ايمان نه راوړلو په صورت کښې به ئې خامخا مخونه خرابيږي، بلکه ددې احتمال دى، مطلب ئې دادې چه ددوئ جرم که اوکتې شى نو ددې سزا حقدار دى، اوکه عذاب ورنکړى نو داهغه رحمت دى (۲).

إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ

| بيشکه الله | نه معاف کوى دا خبره | چې شريك جوړ کړې شى | دهغه سره

| ......الله ﷻ خو بس يوشرک نه معاف کوى

وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ ۚ وَمَن يُشْرِكْ

اومعاف کوى | هغه ګناه | چې ماسوا وى دهغې نه | هغه چاته چې خوښه ئې شى | او هغه څوك چې شريك جوړ کړى

اوددې نه سوا چه هرڅومره ګناهونه وى چې غواړى نو معاف کوى ئې | او چا چې

بِاللَّهِ فَقَدِ افْتَرَىٰٓ إِثْمًا عَظِيمًا ﴿۴۸﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ

دالله سره | نو هغه جوړ کړل | دروغ | لوئ | آيا تاونه کتل | هغه کسانو ته | چې پاك ښکاره کوى

الله ﷻ سره شريک پيدا کړو | نوهغه ډيرلوئې دروغ جوړ کړل | او ډيره لويه ګناه ئې اوکړه | آياته هغه خلقو ته نه ګورې

أَنفُسَهُم ۚ بَلِ اللَّهُ يُزَكِّي مَن يَشَاءُ وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴿۴۹﴾

خانونه خپل | بلکه الله | پاکوى | هغه څوك | چې اوغواړى | اوکولې به نشى ظلم په هغوى | دذرې هومره

چې خپل خانونه پاک ښکاره کوى | بلکه الله ﷻ چې د چاباره کښې اوغواړى نوهغه پاکوى | اوپه

(۱) تفسير المظهرى تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۳۶، وروح المعاني تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۴۸

(۲) بيان القرآن تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۲۲

| أُنْظُرْ | كَيْفَ | يَفْتَرُوْنَ | عَلَى اللهِ | الْكَذِبَ ؕ | وَكَفٰى | بِهٖٓ | اِثْمًا مُّبِيْنًا ۟ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوگوره | څرنگې | تري هغوی | په الله باندې | دروغ | اوكافي دی | دادروغ | گناه ښکاره |

هغوئ به د ذرې هومره ظلم اونشی | اوگوره دوئ څنگه په الله ﷻ باندې دروغ تړی | اودا ښکاره گناه كافي ده

بې شكه الله پاك دا خبره نه معاف كوی چه دهغه سره څوك شريك اوگرځولې شي، او ددې نه كمتره هرې خبرې چا دپاره چه اوغواړی معاف كوی ئې. او كوم سړې چه دالله سره څوك شريك گرځوی، هغه داسې بهتان تړی چه هغه ډېره سخته گناه ده آيا تا هغه خلقو لره نه دي كتلي چه خپل ځانونه ډېرپاكوي؟ حال دا چه پاكوالې خو الله چه چاته وغواړی نو وركوي . او (دې وركولو كښې) په دوی باندې د تار هومره ظلم هم نه كيږي وگوره دا خلق څنگه په الله باندې د دروغو بهتان تړي . او د صفا گناه دپاره دا كافي دي.

**خلاصه تفسير**

﴿ اِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ ﴾ بيشكه الله ﷻ به دا خبره [په سزا وركولو هم] نه بخښې چه ورسره چالره شريك اوگرځولې شي [بلكه تل دپاره به يئ په هميشه سزا كښې راگير لرى] ﴿ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ ۚ ﴾ او ددې نه سوا چه نور څومره گناهونه دی [وركوتي دی كه غټ] چا دپاره چه ورته منظور وی [بېشكه دڅه سزا به ئې] دغه گناهونه بخښي [البته كه دغه مشرك مسلمان شي نو بيا مشرك پاتې نشو سزا به يئ هم دهميشه دپاره پاتې نشی] ﴿ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللهِ فَقَدِ افْتَرٰٓى اِثْمًا عَظِيْمًا ۟ ﴾ او [ددې شرك دنه بخښلو وجه داده چه] څوك الله ﷻ سره [چالره] شريك گرځوی نوهغه د لوئې جرم كوونكې شو [چه دخپل لوئې والی په وجه د بخښلو جوگه نه دې].

[اتې مخاطبه]﴿ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ يُزَكُّوْنَ اَنْفُسَهُمْ ؕ ﴾ آيا تاهغه خلقوته نه دی كتلی [يعنی دتعجب جوگه دی] چه خپل ځانونه پاكيزه بولی [دے بللو نه هيڅ نه جوړيږی] ﴿ بَلِ اللهُ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ ﴾ بلكه الله ﷻ چه چالره غواړی پاكيزه ئې بولی [اودا اعتبارى خبره ده الله ﷻ قرآن كريم كښې مسلمانان پاكيزه بللې دی لكه په سورت سبح اسم كښې د " اشقى " [كافر] په مقابله كښې د مومن په حق كښې ئې اوفرمائيل ﴿ قد افلح من تزكى ﴾ هم دا خلقو به پاكيزه وی نه چه كفر كوونكی لكه يهود دی] او [دے يهودو ته به په قيامت كښې دهغې دروغژنې دعوے په سبب چه كفر ئې ايمان گنړلے دے كومه سزا چه وی په دغه سزا كښې به] ﴿ وَلَا يُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ۟ ﴾ په دوی د تار برابر ظلم هم نشی كيدې [يعنی دغه سزا به يئ دجرم نه زياته نه وی اوپه دې سے جرم باندې دغسې سزا لائقه ده لږ شان] ﴿ اُنْظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللهِ الْكَذِبَ ؕ ﴾ اوگوره [په دې دعوى كښې] دا خلق په الله ﷻ باندې څنگه د دروغو تور پورې كوی [اولے چه هركله هغوی سره د كفر دا دعوى لرى چه مونږ د الله ﷻ مقبول يونو دے نه صفا لازم شو چه كفر دالله ﷻ په نزد غوره دے سره ددې چه دا خالص تور پورې كول دی چه الله ﷻ په ټولو شريعتونوكښې دا په ډاگه فرمائيلی دی چه كفر زمونږ په نزد سخت ناخوښه او رد كړې شوې دې] ﴿ وَكَفٰى بِهٖٓ اِثْمًا مُّبِيْنًا ۟ ﴾ اوهم دا خبره [چه په الله ﷻ توريورې كړې شی] ښكاره مجرم كيدو دپاره پوره دی [آيا بيا په دې سے ښكاره لوئې خبرے باندې سزا وركول څه ظلم او زياتی ده].

## معارف او مسائل

**د شرک تعریف او ددې څو صُورتونه:** قوله تعالٰی: ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ﴾ دَ الله تعالی دَ ذات او صفاتو په باره کښې چه کوم عقائد دی دغه شان څه عقیده، چا مخلوق دپاره لرل شرک دې، څه تفصیلات ئې دا دی:

**په علم کښې لې شرک څرګول:** یعنی یو بزرګ او پیرسره دا اعتقاد لرل چه زمونږ دَ ټولو حالاتونه هغه هروخت خبر دې، نجومی یا پنډت نه دَ غیبو خبرونه معلومول، یا دَ یو بزرګ په کلام فال لټول او بیا ئې یقینی ګنړل، یا دَ یو لرې نه [یې ذریعې] اورته آواز کول او دا ګنړل چه هغه پرِ خبرشو، یا دَ چا دَ نوم روژه نیول.

**اشراك في التصرف:** یعنی چا لره دَ نفع، نقصان اختیار من ګنړل، چا نه مُرادونه غوښتل روزی یا اولاد تر غوښتل.

**په عبادت کښې شرک څرګول:** چا ته سجده کول، دَ چا دَ نوم څه څاروې خُوشې پریښودل دَ چا دَ نوم قربانی یا منښته [دروږ] کول، دَ چا دَ قبر یا دَ یو مکان طواف کول، دَ الله تعالی دَ حکم په مقابله کښې دَ بل چا قول یا رسم لره غوره ګنړل، دَ چا مخې ته دَ رکوع هومره ټیټیدل، دَ چا په نوم باندې څاروې ذبح کول، دَ دُنیا کاروبار دَ ستورو تاثیر ګنړل، یوه میاشت ورځ وغیره سپیره ګنړل.

**خپل ځان په والې بخپله پاکول او دعیبونونه دپاکیدو دعوې لرل روانه ده:** ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنفُسَهُم﴾ یهودو به خپل ځانونه پاکیزه بلل، په دې وجه الله تعالی په دې آیت کښې دَ هغوی بدی بیانوی او فرمائی چه او ګوری هغه خلق چه خپله پاکی بیانوی په هغه تعجب کول پکار دی.

دې نه معلومیږی چه خپله یا دَ بل پاکی بیانول روانه دی، دَ دې درې وجهې دی.

① خپله پاکی بیانول اکثر په خپلې لویۍ اداتره وی، نو په حقیقت کښې لویۍ کول منع کړې شو.

② دَ آخر انجام حال باندې صرف الله تعالی پوهیږی چه دا به په تقوی او پاکۍ وی او که نه وی؟ په دې وجه خپل ځان پاکیزه بلل، الله تعالی نه دوبرې ګولو خلاف دی. چنانچه په یو روایت کښې حضرت زینب بنت ابی سلمه رضي الله عنها فرمائیلی دی چه رسول الله ﷺ مانه زما دَ نوم تپوس او کړو ما ورته خپل نوم برّة او ښودلو [چه معنی ئې دَ ګناهونونه پاکه ده] هغوی او فرمائیل ﴿لا تزکوا انفسکم الله اعلم بأهل البر منکم سموها زینب﴾ [1] [یعنی تاسو خپل ځانونه دَ ګناهونونه پاکیزه مه بولئ، ولې چه دا علم صرف الله تعالی لره دې چه تاسو کښې څوک پاک دې، بیائې دَ، برّة، په ځائې دَ هغې نُوم، زینب، کیښو [مظهری]

[۳] دې نه دَ منع کولو دریمه وجه دا ده چه دا سې دعوې لرونکو خلقو ته اکثر دا ګمان کیږی چه دا بنده، دَ الله تعالی په نزد ځکه مقبول دې چه دې دَ ټولو نقصانونو او عیبونونه پاک دې، حالانکه دا دروغ دی، ولې چه ډیر عیبُونه په بنده کښې موجود وی. [بیان القرآن] [2]

**مسئله:** که چرې دا قسم عوارض موجود نهٔ وی نو دَ نعمتِ خداوندی دَ ښکاره کولو په ډول دَ خپل صفت دَ بیانولو اجازت دې. [بیان القرآن] [3]

---

[1] ) مشکوٰة، کتاب الآداب، باب الاسامي: ج ۲، ص ۴۰۷

[2] ) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۳۲

[3] ) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۳۲

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ

آیاتا ونه لیدل | هغه کسان | چي ورکړي شوي ده | حصه | د کتاب | هغوئ ایمان راوړي

نه هغه خلقو ته نه ګوري چي دکتاب [تورات دعلم نه] څه حصه ورته ورکړي شوي ده | اوحال دادي چي ایمان راوړي

بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا هَٰؤُلَاءِ

په وهمي خبرو | اوپه طاغوت باندي | او وائي | په حق دهغه کسانو کښي | چي کافران دی | دا

په وهمي اوشیطاني څیزونو باندي | ..........اودکافرو باره کښي وائي چي دا خلق

أَهْدَىٰ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا سَبِيلًا ۝ أُولَٰئِكَ

زیات په نیغه لار دی | دهغه کسانو نه | چي ایمان ئې راوړي دی | دحیثیته دلاري | دا [وینا کونکی]

دمسلمانانو په نسبت په بهتره لار روان دی | ..........دوی داسي خلق دی

الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ ۖ وَمَن يَلْعَنِ اللَّهُ

هغه کسان دی | چي لعنت کړي دي په هغوئ الله | اوهغه څوك | چي لعنت اوکړی پري الله |

چي الله ﷻ پري لعنت کړي دي | ..........اوپه چا چي الله ﷻ لعنت اوکړی

فَلَن تَجِدَ لَهُ نَصِيرًا ۝

نو هرګز به بیا پیدا نه کړي ته | هغه دپاره | څوك مددګار |

نوهیڅوک به دهغه مددګار بیانه مومي |

**آسان ترجمه قرآن:** کومو خلقو ته چه د کتاب (یعني د تورات د علم نه څه حصه ورکړي شوي وه، آیا تا هغوی لره نه دي لیدلی چه هغوی (څنګه) د بتانو او د شیطانانو تصدیق کوي او د کافرانو (یعني د بت پرستو) په باره کښې وائی چه دوی د مؤمنانو نه زیات په سمه لاره دي داهغه خلق دي چه الله په دوی باندې لعنت کړې دې او څوك چه الله ئې په لعنت کړي، نو هغه لره به ته څوك مددګار ونه مومي.

**خلاصه تفسیر**

[انې مخاطبه] ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ ﴾ آیا تا هغه خلق اونه لیدل چاته چه [دالله ﷻ] دکتاب یوه برخه ملاوشوي ده [بیا سره ددې نه] ﴿ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ هغوی بتان اوشیطان منی [ولې چه د مشرکانو دین بت پرستی اودشیطان تابعداری وه چه دا دین ئې ښه اوبللو نو دبتانو اوشیطانانو ربنتینی ثابته شوه] ﴿ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا هَٰؤُلَاءِ أَهْدَىٰ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا سَبِيلًا ﴾ اودغه خلق [یعنی اهل کتاب] دکفارو [یعنی دمشرکانو] په باره کښې وائی چه دا خلق دمسلمانانو نه زیات په سمه لار دی [داخو دوی په ښکاره وئیلی وو] ﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ ۖ ﴾ دا خلق [چه دکفر طریقه ئې داسلامی طریقې نه زیاته غوره اوخودله] هغه دی چه هغوی لره الله ﷻ ملعون جوړ کړی دی [اوهم ددې ملعون کیدو اثر دادې چه په دې سې بیباکئی سره کفریات وائی] ﴿ وَمَن يَلْعَنِ اللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُ نَصِيرًا ﴾ اوالله ﷻ چه چالره ملعون جوړ کړی دهغه به [د عذاب په وخت کښې] هیڅوك مرستیال بیانه مومئ [مطلب دادې چه په دې به دوی ته په آخرت کښې یا دنیا کښې هم سخته سزا وی چنانچه په دنیا کښې بعضې قتل شو بعضې قید

او بعضې ذليله رعيت جوړ شو او په آخرت کښې به ورسره چه څه کيږي نو هغه به بيل وي].

**دآيتونو ربط:** وړاندې آيت ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يَشْتَرُونَ الضَّلَالَةَ﴾ الخ ، کښې د يهودو قبائح او دخرابو خصلتونو ذکر راروان دې. ددې آيتونو مبارکو تعلق هم ددې قبائحو د ذکر سره دې.

## معارف او مسائل

**الجبت والطاغوت نه څه مراد دې؟** پورته آيت ۵۱ کښې، ،الجبت والطاغوت، ،الفاظ راغلي دي چه مرادونې درته ښکاره کولې شي- مفسرينو رحمهم الله نه په دې کښې ګڼړ اقوال منقول دي- حضرت ابن عباس رضي الله عنه، ابن جبير رحمه الله او ابوالعاليه رحمه الله فرمائيلي دي چه ، ،جبت، ، په حبشي ژبه کښې ساحر ته وئيلې شي او ، ،طاغوت، ، نه مراد کاهن [جوګي] دې-

حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمائيلي دي چه ، ،جبت، ، نه مراد سحر دې او ، ،طاغوت، ، نه مراد شيطان دې، حضرت مالک بن انس رحمه الله نه منقول دي چه دالله تعالى نه سوا د کومو څيزونو چه عبادت کولې شي، دغې ټولو ته ، ،طاغوت، ، وئيلې شي،

امام قرطبي رحمه الله فرمائيلي دي چه دمالک بن انس رحمه الله قول زيات غوره ځکه دې چه ثبوت ئې دقرآن کريم نه هم کيږي لکه فرمائي ﴿أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ﴾ (۱) خو دغه ګڼړو اقوالو کښې هم څه ټکر نشته، ځکه ئې ټول مراد اغستل کيدې شي چه په اصل کښې جبت، ، دبُت نوم وو ليکن بيا ددې استعمال هغه څيزونو دپاره هم اوشو چه دالله تعالى نه بغيرئې عبادت کولې شي [روح المعاني] (۲)

**د ذکر شوؤ آيتونو شان نزول** دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې، چه ديهودو سردار حيي بن اخطب او کعب بن اشرف دجنګ أحد نه پس ديوې ډلې مشرى کوله چه دمکې مکرمې دقريشو سره دملاقات دپاره ورغلل، ديهودو سردار کعب بن اشرف ابوسفيان ته راغلو او درسول الله ﷺ په خلاف ئې ورسره دامداد کولو وعده او کړه- دمکې خلقو کعب بن اشرف ته او وئيلې چه تاسو خطا ايستونکې قوم يئ نو ستاسو رشتينولى په دې شان غواړو چه زمونږ ددې دؤو بتانو ، جبت، او ، ،طاغوت، ، په وړاندې سجده او کړئ هغه دقريشو دتسلئ دپاره هم دغسې او کړل، بيا کعب بن اشرف داتجويز وړاندې کړو چه زمونږ او ستاسو ديرش، ديرش کسان درا وړاندې شي چه دکعبې پروردګار سره ددې خبرې لوظ او کړو چه مونږ به په شريکه دمحمد ﷺ په خلاف جنګ کوؤ-

داتجويز ددۀ قريشو خوښ کړو، او په دغه شان دوئ يوه شريکه ډله جوړه کړه، بيا ابوسفيان کعب بن اشرف ته او وئيل چه تاسو دعلم خاوندان يئ، تاسو سره دالله تعالى کتاب دې خو مونږه بيخي جاهلان يو، ځکه دا راته او وايه چه مونږ په حقه يو او که محمد ﷺ ؟

کعب تر دَدوئ دَدين تپوس او کړو، ابوسفيان ورته او وئيل چه مونږ خپل اوښان ذبح کوؤ او پيئ ئې په خلقو څکوؤ، ميلمنوله ميلمستيا ورکوؤ، خپلو او نږدې خپلوانو سره اوچت تعلقات ساتو، د بيت الله طواف او عُمره هم کوؤ، ددې په عکس محمد ﷺ دخپل پلار نيکه زوړ دين پريښې دې، دخپلو خپلوانو نه بيل شوې دې او زمونږ د زوړ دين په مقابله کښې ئې نوې دين پيش کړې دې-

ددې په آوريدو کعب بن اشرف او وئيل چه تاسو خلق په حقه يئ او محمد ﷺ [معاذ الله] ګمراه شوې دې په دې وجه الله تعالى دغه ذکر شوى آيتونه نازل کړل ددوئ دګتکو دهوکه بازئ او

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج۵، ص۲۴۹
(۲) روح المعاني تحت هذه الآية: ج۳، ص۸۸

خطا ايستلو بدي ني بيان کړه[روح المعاني]([1])

**په ځنو وختونوکښې د يو انسان نفساني خواهشات هغه لره د دين ايمان نه هم بې نصيبه کوي:** کعب ابن اشرف د يهودو يو نامتو عالم وو چه په الله ئې هم عقيده لرله او هم د هغه عبادت ئې کولو ليکن چه په زړهٔ او دماغو ئې د نفساني خواهشاتو بلاسوره شوه نو د مسلمانانو خلاف ئې قريشو سره ځان غټه کړو، قريشو ورته دې د پاره دا يو شرط کيښودو چه د دوئ بُتانو ته سجده اوکړی هغه دا خبره هم اومنله او هم د غسې ئې اوکړل چه وړاندې بيان شو، دا د خپل مذهب په خلاف خو د قريشو شرط پوره کړو ليکن د خپلو مذهبی عقائدو قائم لرلو د پاره ئې دوئ نه بيليدلو ته ئې غاړه کښې نښوه. لکه قرآن کريم چه داسې يوه واقعه د بلعم بن باعوراء هم بيان کړې ده فرمای: ﴿وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ الَّذِيٓ اٰتَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَاَتْبَعَهُ الشَّيْطٰنُ فَكَانَ مِنَ الْغٰوِيْنَ﴾.

مفسرينو فرمائيلي دی چه بلعم بن باعوراء د لوئې عزت خاوند عالم او د تصرُّف صاحب درويش وو، ليکن هر کله چه خپل نفساني خواهشات پوره کول ئې اوغوښتل او د موسی عليه السلام خلاف ئې ناپاکه تدبيرونه کول شروع کړل نو د هغوئ هيڅ نقصان ئې اونشو کړې او پخپله رد کړې شوې او گمراه شو۔

دې نه معلومه شوه چه صرف علم د کتاب نفعمند نشي کيدې، ترڅو چه په صحيح معنی کښې د هغې تابعداری نهٔ کوی او محض دُنيوی لالچ او ذليله خواهشات د يو مخه پريږدی، که داسې نهٔ وی نو انسان بيا، د خپل مذهب غوند اعلی ترين څيز هم په خپلو خواهشاتو باندې قربانی کولو نه ډډه نهٔ کوی، نن صبا هم داسې قسم خلق شته چه د دُنيوی او سياسی غرضونو او مقصدونو حاصلولو د پاره خپل حق مسلک په آسان پريږدې او د بيدينئ عقيدو او نظرياتو ته د اسلام د جامو اغوندولو پوره کوشش کوی، نهٔ د الله تعالی د لوظ او پوخ قول څه پرواه لری او نه د آخرت خوف لری، دا ټول د دې وجهې نه کيږی چه صحيح او حق مسلک پريږدی او د شيطان په اشارو چليږی۔

**د الله ﷻ لعنت په دُنيا او آخرت کښې د شرمنده کيدو سبب دې:** د الله ﷻ د رحمت نه د لرې والی نوم لعنت دې، او د ډيرې رسوائی او ذلت نوم دې. په چا چې د الله ﷻ لعنت وی هغه د الله ﷻ قرب نشی حاصلولې. د دوئ باره کښې ډير سخت وعيد راغلې دې. فرمائی چې: ﴿مَّلْعُوْنِيْنَ ۚ اَيْنَمَا ثُقِفُوْٓا اُخِذُوْا وَقُتِّلُوْا تَقْتِيْلًا﴾ په چا چې د الله ﷻ لعنت وی نو هغه چې چرته هم ملاؤ شی نو ختم ترې وهئ. دا خو د دوئ دنيا کښې رسوائی شوه. او د آخرت رسوائی خو به د دې څخه هم زياته سخته وی.

**د الله ﷻ د لعنت مستحق کوم خلق دی:** ﴿وَمَنْ يَّلْعَنِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ نَصِيْرًا﴾ دې آيت نه معلوميږی چه د الله تعالی له اړخه د لعنتی کيدونکی بنده هيڅوک مدد گارنهٔ وی، اوس دا کتل دی چه دغه لعنتی خلق څوک دی؟ د يو حديث له مخه رسول الله ﷺ سود ورکوونکې، سودخور، سود ليکونکې او د دې گواه، ټول لعنتيان گرځولی دی او ټول په گناه کښې برابر دی۔[مسلم په حواله د مشکوة]([2])

په يو بل حديث کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ﴿ملعون من عمل عمل قوم لوط﴾[رزين په حواله د مشکوة]([3]) د لوطيانو پښان، د لواطت عمل کوونکی لعنتيان دی بيانې ارشاد اوفرمائيلو چه الله

---

[1]) روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج۲، ص۸۸

[2]) صحيح مسلم، كتاب البيوع، باب الربا: ج۲، ص۲۷، ومشكوٰة، كتاب البيوع باب الربا: ج۱، ص۲۴۴

[3]) مشكوٰة، كتاب الحدود، باب قطع السرقه: ج۲، ص۲۳

تعالی په غل باندې لعنت لیږي چه ډاګې: [اندې] اوړسې: غوند سپک څیزپه غلا کولو هم صرفه نهٔ کوي او په سزا کښې ئې لاس پرېکولې شي، [متفق علیه په حواله دمشکوة] (۱)

په بل حدیث شریف کښې ارشاد دې ﴿لعن الله آکل الربو ومؤکله والواشمة والمستوشمة والمصور رواه البخاري بحواله مشکوة﴾ (۲) دالله تعالی لعنت دې په سود خور، سود خوروونکی او په هغه ښځو چه په ستنو ورمندلو سره په بدن کښې دنته خالونه وهي- [چه ښکلې ښکاري] یادوی: ته خالونو وهلو دپاره ورځي او دغه شان په تصویرو یستونکو باندې ئې هم لعنت کړې دې]-

په یو بل حدیث کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه الله تعالی لعنت لیږي په شرابو، ددې په څکونکی، په خرید کوونکی، په کشید کوونکی، په ورپورته کوونکی او په راغوښتونکی ټولو باندې [ابوداؤد، ابن ماجه په خواله دمشکوة] (۳)-

یو حدیث کښې رسول الله ﷺ ارشاد فرمای: چه شپږ کسان داسې دی چه ما پرِ لعنت لیږلې دې او الله پرِ هم لعنت لیږلې دې او دهرنبی دعا قبلیدونکې وی، هغه شپږ کسان دا دی:

① دالله تعالی په کتاب کښې زیاتې کوونکې ② هغه څوک چه په زور ظلم سره اقتدار حاصل کړی، هغه چاته عزت ورکوی چه الله تعالی ذلیله کړې وی او هغه څوک ذلیله کوی چه الله تعالی ورته عزت ورکړې وی ③ دالله تعالی تقدیر، دروغ بولی ④ دالله تعالی حرام کړی څیزونه حلال ګڼړی ⑤ زما په اولاد کښې هغه څوک چه حراموله حلالوونکې وی، ⑥ او زما دسنتو پرېښودونکې ابیهقی په مدخل کښې په حواله دمشکوة] (۴)-

په یو بل حدیث کښې ئې اوفرمائیل: ﴿لعن الله الناظر والمنظور الیه﴾ (۵) [څوک چه نامحرم ته بدنظر اوکړی او چاته چه بدنظر اوکړې شی [خو هغه چه خان ئې دې ته تیار کړې وی چه خلق دورته اوګوری]-

دحضرت ابی هریرة رضي الله عنه په روایت کښې دی چې ﴿لعن رسول الله ﷺ الرجل یلبس لبسه المرءة والمرءة تلبس لبسه الرجل﴾ [رسول الله ﷺ په داسې سړی لعنت کړې دې چه دښځو پشان جامې اغوندی او په داسې ښځه ئې هم لعنت کړې دې چه دسړی پشان جامې اغوندی، مشکوة] (۶)

﴿عن عائشة رضي الله عنها ان امراءة تلبس النعل قالت لعن رسول الله ﷺ الرجلة من النساء﴾ [رواه ابوداؤد بحواله مشکوة] (۷) حضرت عائشه رضي الله عنها ته چا عرض اوکړو چه یوه ښځه [دسړو پشان] پنړې [چپلکې] په پښو کوی، هغې ورته اوفرمائیل چه دالله تعالی رسول په داسې ښځه باندې لعنت کړې دې چه دناریننؤ پشان کړه وړه کوی]-

---

(۱) صحیح البخاری، کتاب الحدود، باب لعن السارق: ج ۲، ص ۱۰۰۳- وصحیح مسلم، کتاب الحدود، باب حد السرقة ونصابها: ج ۲، ص ۷۳

(۲) صحیح البخاری، کتاب اللباس، باب من لعن المصور: ج ۲، ص ۸۸۱

(۳) مشکوٰة، کتاب البیوع: ج ۱، ص ۲۴۲، وسنن ابی داود، کتاب الأشربة، باب العصیر للخمر: ج ۲، ص ۵۱۷

(۴) مشکوٰة، کتاب الإیمان، باب الإیمان بالقدر: ج ۱، ص ۲۲

(۵) مشکوٰة، کتاب النکاح، باب النظر الی المخطوبة: ج ۲، ص ۲۷۰

(۶) مشکوٰة، کتاب اللباس، باب الترجل: ج ۲، ص ۳۸۳

(۷) سنن ابی داود، کتاب اللباس، باب ما جاء فی لباس النساء: ج ۲، ص ۵۲۹ ومشکوٰة، کتاب اللباس، باب الترجل: ج ۲، ص ۳۸۳

﴿عن ابن عباس رضي الله عنه قال لعن النبي ﷺ المخنثين من الرجال والمترجلات من النساء وقال اخرجوهم من بيوتكم﴾ [رواه البخاري بحواله مشكوة] (۱) دحضرت ابن عباس نه روايت دي چه نبی کريم ﷺ په هغه سړو لعنت کړي دي چه ځان نه دښځو پشان هجړا [ترښځي] جوړ کړي او په هغه ښځوني هم لعنت کړي دي چه خپل شکل صورت دسړو پشان جوړ کړي او وي فرمائيل چه دوئ دخپلو کورونو نه اوباسئ.

په بخاري شريف کښې دي چې عبد الله بن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل چې:

﴿لعن الله الواشمات والمستوشمات والمتنمصات والمتفلجات للحسن المغيرات خلق الله﴾ (۲)

دالله لعنت د وی په هغه ښځوچه په ستنو ورمندلو سره په بدن کښې دننه خالونه لګوی او څوک چه دداغه قسم خالونو لګولو دپاره ورځی، اوپه هغه ښځوچه دوری خوويښته اوباسی [چه نرئ شی اوبائسته ښکاری] اوپه هغه ښځو دلعنت وی چه ښکلا دپاره دغاښونو ترمنځه ځائې خالی کوی چه دالله تعالی خلقت [پيدائش] بدلوونکی دی-

**دلعنت احکام**: لعنت څومره چه بدڅيزدې هومره ئې په کولو هم پابندئ لګولې شوی ده په چامسلمان لعنت کول حرام دی اوپه کافرهم صرف په هغه صورت کښې کولې شی چه مړکيدل ئې په کفريقينی وی-چنانچه رسول الله ﷺ ددې په باره کښې فرمائيلی دی-

﴿عن ابن مسعود رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ليس المؤمن بالطعان ولا باللعان ولا البذي﴾ [رواه الترمذي بحواله مشكوة] (۳)

دابن مسعود رضي الله عنه په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه مؤمن هغه نهٔ دې چه پيغور باز او لعنت بازوی اونهٔ بدګو [چه ناکاره خبرې کوی]-

﴿عن ابي الدرداء قال سمعت رسول الله ﷺ يقول العبد اذا لعن شيئاً صعدت اللعنة الى السماء فتغلق ابواب السماء دونها ثم تهبط الى الارض فتغلق ابوابها دونها ثم تاخذ يميناً وشمالاً فاذا لم تجد مساغاً رجعت الى الذي لعن فان كان لذلك اهلا والارجعت الى قائلها﴾ [رواه ابوداؤد بحواله مشكوة] (۴)

حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه فرمائې چه رسول الله ﷺ نه م واوريدل فرمائيل ئې چه يوبنده په څه څيز باندې لعنت کوی بيا هغه د زمکې طرفته راکوزيږی نو د زمکې دروازې بندې کړې شی نو دغه لعنت آسمان ته خيژی چه ورته دآسمان دروازې بندې کړې شی [يعنی زمکه هم دغه لعنت نهٔ قبلوی] بيا هغه ښی اوګس اړخ ته ځی، چرته هم چه ورته لارملاؤنشی نوهغه چاته ورشی چه لعنت پر کړې شوې وی، که هغه واقعی دلعنت حقداروی نوپه هغه ورا وغورځيږی ورنه ددې په ويونکی اوکوونکی ورا وغورځيږی-

﴿عن ابن عباس رضي الله عنه ان رجلا نازعته الريح رداءه فلعنها فقال رسول الله ﷺ لا تلعنها فانها مامورة وان من لعن شيئاً ليس له باهل رجعت اللعنة عليه﴾ [رواه الترمذي بحواله مشكوة] (۵)

---

۱) صحيح البخاري، كتاب اللباس، باب اخراج المتشبهين: ج ۲، ص ۸۷۴، مشكوٰة، كتاب اللباس، باب الترجل: ج ۲، ص ۳۸۰

۲) صحيح البخاري، كتاب اللباس، باب المتفلجات للحسن: ج ۲، ص ۸۷۸

۳) جامع الترمذي، أبواب البر والصلة، باب ما جاء في اللعنة: ج ۲، ص ۱۱، ومشكوٰة، كتاب الأداب، باب حفظ اللسان والغيبة: ج ۲، ص ج ۴۱۳

۴) سنن ابي داود، كتاب الأدب، باب في اللعن ومشكوٰة كتاب الأداب، باب حفظ اللسان والغيبة: ج ۲، ص ۴۱۳

۵) مشكوٰة، كتاب الأداب: ج ۲، ص ۴۱۳، باب حفظ اللسان والغيبة۔

دَحضرت عبد الله بن عباس ﷺ نه منقول دی چه هوا دَیوسړی څادر والوځولو نو هغه په هغه هوا لعنت اوکړو په دې باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ته په هوا لعنت مه کوه ځکه چه دا دَالله تعالی له اړخه ماموره ده [حکم ورته شوې دې] او [یاد لره] چه څوک ده داسې څیز لعنت کوی چه هغه ئې حقدار نهٔ وی نو دغه لعنت ددې ویونکی ته راواپس کیږی [او هم په هغه ورغورځیږی]

**مسئله** په یوتاکلی بنده باندې ترهغې پورې لعنت کول ناروادی ترڅوچه دَهغه مړکیدل په کُفر باندې معلوم نهٔ وی اګرچه هغه فاسق اوبدکاره هم وی او هم ددې اصولو په بنا باندې ،یزید ته لعنتی وئیلو نه ،علامه شامی ﷫ منع کړې ده ،لیکن په هغه تاکلی کافر باندې لعنت وئیل روادی چه مړکیدل ئې په کُفر باندې یقینی وی لکه ابی جهل ،ابی لهب شو [شامی] (۱)-

**مسئله** دَچادَنوم اغستونه بغیر داسې لعنت کول روادی چه په ظالمانو په دروغژنو ،دَالله تعالی لعنت دې-

**مسئله** دَلُغت په اعتبار سره ،دَلعنت معنی دَالله تعالی دَرحمت نه لرې کیدل دی دَشریعت له مخې دکفارو په باره کښې دَدې معنی دَالله تعالی دَرحمت نه لرې کیدل دی او دَمُؤمنانو په باره کښې دابرارو [نیکانو] ددرجې نه لاندې پرېوتل دی [شامی دَقهستانی نه نقل کړیدی] (۲) په دې وجه چامسلمان دَپاره داسې دُعاکول هم ناروادی چه دده نیک عملونه دکم شی.

| |
|---|
| اَمۡ لَهُمۡ نَصِيۡبٌ مِّنَ الۡمُلۡكِ |
| ایا شته دوئ دپاره \| څه حصه \| د بادشاهئ نه |
| آیا ددوئ د [د الله تعالی] په بادشاهئ کښې څه حصه شته |
| فَاِذًا لَّا يُؤۡتُوۡنَ النَّاسَ نَقِيۡرًا ۙ اَمۡ يَحۡسُدُوۡنَ النَّاسَ عَلٰى مَاۤ |
| که وی نو بیا به \| ورنکړی \| خلقو ته \| یوه ماته پیسه هم \| ایا حسد کوی دوئ \| خلقو سره \| په هغه څیز |
| که داسې وی نودوئ به نوروخلقو ته لږ څیزهم نه وې ورکړې \| آیا دوئ نوروخلقوسره په دې حسد کوی |
| اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنۡ فَضۡلِهٖ ۚ فَقَدۡ اٰتَيۡنَاۤ اٰلَ اِبۡرٰهِيۡمَ الۡكِتٰبَ |
| چې ورکړې دې هغوئ ته الله \| دفضل خپل نه \| نو ورکړې وو مونږه \| اولاد د ابراهیم ﷶ ته \| کتاب |
| چې الله ﷻ په هغوئ خپل فضل کړې دې \| [نوورته دې معلومه وی چې] مونږ دابراهیم اولاد ته کتاب |
| وَالۡحِكۡمَةَ وَاٰتَيۡنٰهُمۡ مُّلۡكًا عَظِيۡمًا ۞ فَمِنۡهُمۡ مَّنۡ اٰمَنَ |
| اوحکمت \| اوورکړې وه مونږه هغوئ ته \| بادشاهي لویه \| نوځینی دهغوئ نه \| هغه دی \| چې ایمان ئې راوړې |
| او حکمت ورکړې وه \| اولویه بادشاهی موورکړې وه \| نوبیا په هغوئ کښې چاخو پرې ایمان راوړو |
| بِهٖ وَمِنۡهُمۡ مَّنۡ صَدَّ عَنۡهُ ؕ وَكَفٰى بِجَهَنَّمَ سَعِيۡرًا ۞ |
| په هغې \| اوبعضې دهغوئ نه \| هغه دی \| چې مخ ئې وارلو دهغې نه \| اوکافی دې \| دوزخ \| المبو والا \| |
| اوچا ترې نه مخ اوګرزولو [او ایمان ئې راونړلو] \| او د جهنم ګرم اور دوی دپاره کافی دې \| |

(۱) شامي، كتاب النكاح، باب الرجعة مطلب في حكم لعن العصاة: ج ۲، ص ۲۴۳

(۲) شامي، كتاب النكاح، باب الرجعة مطلب في حكم لعن العصاة: ج ۲، ص ۲۴۳

**آسان ترجمه قرآن:** نو آیا دوی ته (د کائنات) د بادشاهۍ څه حصه ملاو شوي ده؟ که داسې شوي وو نو دوئ به خلقو ته د کجورې د هډوکي هومره هم څه شي نه وو ورکړي. دوی دخلقوسره دې وجې نه حسد کوي چه الله دوی ته خپل فضل (ولې) ورکړي دي؟ نو مونږ خود ابراهیم علیه السلام خاندان ته کتاب او حکمت ورکړي وو او دوی ته مو لوئې سلطنت ورکړي وو نو دوی کښې څې خلقو په هغه باندې ایمان راوړو او څنو مخ واړولو او جهنم د یو بلیدونکی اور په شکل کښې (دې کافرو دخبراخستو دپاره) کافی دي.

## خلاصه تفسیر

﴿اَمْ لَهُمْ نَصِیْبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَاِذًا لَّا یُؤْتُوْنَ النَّاسَ نَقِیْرًا﴾ بیه آیا دوی سره څه برخه شته د سلطنت نو په دې سے حالت کښې خوبه یې نورو خلقو ته لږ قدرې څیز هم نه ورکولے ﴿ اَمْ یَحْسُدُوْنَ النَّاسَ عَلٰی مَاۤ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ﴾ یا د نورو خلقو نه [لکه رسول الله ﷺ نه] په دې څیزونو سوزی چه الله ﷻ ورته خپل فضل نه ورکړی دی نو [تاسو ﷺ ته داسې څیز ملاویدل څه نوے خبره نه ده خکه چه] ﴿ فَقَدْ اٰتَیْنَاۤ اٰلَ اِبْرٰهِیْمَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَاٰتَیْنٰهُمْ مُّلْكًا عَظِیْمًا ﴾ مونږ [رومبے نه] دحضرت ابراهیم ؑ خاندان [خلقو] ته [آسمانی] کتاب هم ورکړي دي اوعلم مو هم ورکړي دي او مونږ ورته ډیر درووند حکومت هم ورکړي دي [چنانچه په بنی اسرائیلو کښې څه ډیر نبیان تیر شوی دی بعضې نبیان بادشاهان شوی هم وو لکه حضرت یوسف ؑ، حضرت داود ؑ چه ډیر ودونه کول ئے هم معلوم اومشهور دي. او ددوی خونې حضرت سلیمان ؑ چه ټول دحضرت ابراهیم ؑ په اولادکښې دی نو هر کله چه رسول الله ﷺ دحضرت ابراهیم ؑ اولاد کښې دي که ورته نعمتونه اوبخششونه ورکړې شو نوتعجب ولې کوئ] ﴿فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ بِهٖ وَمِنْهُمْ مَّنْ صَدَّ عَنْهُ﴾ نو [دحضرت ابراهیم ؑ خاندان کښې دتیر شوو پیغمبرانو په زمانه کښې چه کوم خلق موجود وو] دهغوی نه بعضو خو په دې [کتاب او حکمت] ایمان راوړو اوبعضې داسې وو چه ددې نه مخ اړوونکی پاتې شو [نوکه ستاسو په پغمبرئ او قران باندې هم ستاسو دزمانې بعضې خلق ایمان راونړي نو څه دغم خبره نه ده] ﴿ وَكَفٰی بِجَهَنَّمَ سَعِیْرًا ﴾ او [که دے کفارو مخ ګرځونکو ته په دنیا کښې کمه سزا ورکړې شي یا بیخی ورنه کړې شي نو څه اوشو دوی دپاره په آخرت کښې] د دوزخ سوزونکے اوور [سزا دپاره] پوره دې.

## معارف اومسائل

**دحسدکولوله کبله دیهودوسخته بدی بیانول :**قوله تعالیٰ: ﴿اَمْ یَحْسُدُوْنَ النَّاسَ عَلٰی مَاۤ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ﴾

رسول الله ﷺ تـه دالله تعالی لـه اړخه پـه وربخښلی علم، فضل، مرتبې اولویئ باندې یهودیان سوخیدل الله تعالی په آیت ۵۳ او ۵۴ کښې دَدغې حسد اوبُغض سخته بدی بیان کړیده، دَدوئ داحسدئې دَعقل خلاف ګرځولودپاره دوه وجهې بیان کړیدې یوه وجه ئې په ۵۳ آیت کښې اوبله ئې په ۵۴ آیت کښې بیـان کړیده، خودَداړوحاصل هم یودې یعنی ستاسوحسدپه کومه خبره دې؟که په دې دې چه دسلطنت اصلی خاوندان تاسویئ اوهغه دوی ته ورکړې شو؟ داخوبسکاره غلطه خبره خکه ده چه تاسودَسلطنت نه پخپله محرومه یئ اوکه څه لږه برخه دَسلطنت درتـه هم ملاؤوې نویوه کُنجکه به موهم چاته نه وه ورکړې ،اوکه په دې ورسره حسد کوئ چه سلطنت خو زمونږ لـه طرفـه دوئ تـه نـه دي ورغلي نوبیـاهم ورتـه څنګـه ملاؤشو؟ دَدوئ سلطنت سره څه

کار دي؟ نو د دې جواب ئې داور کړو چه دوئ هم د انبیاؤ ﷺ د خاندان نه دی چه رومبې نه پکښې سلطنت راروان دې چرته بې روره دغیر د طرفه ورته نه دې راغلې لهذا استاسو حسد کول د عقل نه خلاف دی.

**د حسد تعریف، حکم او ددې د زیانونو بیان:** د مسلم شریف شارح علامه نووی رحمه الله د حسد تعریف داشان کوی ﴿الحسد تمنی زوال النعمة﴾ [مسلم جلد ۲] (۱) احسد دې ته وائی چه د بل نه دلرې کیدو خواهش کولې شی اچه حرام دی.

رسول الله ﷺ فرمائیلی دی:

﴿لاتباغضوا ولا تحاسدوا ولا تدابروا وكونوا عباد الله اخوانا ولا يحل لمسلم ان يهجر اخاه فوق ثلاث﴾ (۲)

تاسو په خپل منځ کښې بغض او حسد مه کوئ او مه یو بل ته شا اړوئ بلکه د الله تعالی بندګان اوورونړه جوړ شئ اوروانه دی چا مسلمان د پاره چه هغه د خپل رورنه د دریو نه زیاتو ورځو پورې تعلق پریږدی.

په یو بل حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی:

﴿اياكم والحسد فان الحسد ياكل الحسنات كما تاكل النار الحطب﴾ [رواه ابو داؤد بحواله مشكوٰة] (۳)

تاسو د حسد نه ځان ساتئ، ځکه چه حسد نیکیانو لره داسې خوری څنګه چه اور لرګی لره خوری.

﴿عن الزبير رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ دب اليكم داء الامم قبلكم الحسد والبغضاء هي الحالقة لا اقول تحلق الشعر ولكن تحلق الدين﴾ [رواه احمد والترمذي] (۴)

حضرت زبیر رضي الله عنه فرمائیلی دی چه رسول الله ﷺ او فرمائیل: ستاسو خواته [هم] د رومبو قومونو مرض په پټه راغلې دې چه حسد دې او بغض داسې یو خصلت دې چه خرایونکې دې، زۀ دانۀ وایم چه هغه ویښته خرایئ بلکه دین لره خرایئ.

په دینی کمال حسد کول وی او که په دنیوی کمال، دواړه قسمه حرام دی چنانچه د الله تعالی دا فرمان ﴿أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ﴾ اولې خبرې ته اشاره معلومیږی او ﴿الْكِتَٰبَ وَالْحِكْمَةَ﴾ دوئمې خبرې ته اشاره ده.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ الَّذِينَ | | | | | | | |
| ابیشکه هغه کسان | | | | | | | |
| ابیشکه چاچې | | | | | | | |
| كَفَرُوا | بِآيَاتِنَا | سَوْفَ | نُصْلِيهِمْ | نَارًا | كُلَّمَا | نَضِجَتْ | |
| چې انکار ئې کړې دې | د آیتونو زمونږ نه | ازرده چه | امونږ داخل کړو هغوئ | اور ته | هر کله چې | اوسوزی | |
| زمونږ د آیتونو منلو نه انکار کړې دې | اهغوئ به مونږ د جهنم اور ته داخل کړو | هر کله چې د هغوئ څرمنې اوسوزی | | | | | |

(۱) شرح صحيح مسلم للنووي: ج ۲، ص ۳۱۶
(۲) صحيح مسلم، كتاب البر والصلة والأدب، باب تحريم التحاسد: ج ۲، ص ۳۱۵
(۳) مشكوٰة، كتاب الادب، باب ما ينهٰى عنه من التهاجر: ج ۲، ص ۴۲۸
(۴) مشكوٰة، كتاب الادب، باب ما ينهٰى عنه من التهاجر: ج ۲، ص ۴۲۸

| |
|---|
| جُلُوۡدُهُمۡ بَدَّلۡنٰهُمۡ جُلُوۡدًا غَيۡرَهَا لِيَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ ؕ |
| څرمني دهغوئ \| نو بدلې به کړو مونږ د هغوئ \| څرمني \| نورې \| دپاره ددې چې وڅکي \| عذاب |
| نو مونږ به ورته نورې څرمني ورواچوندؤ \| ............ چې دعذاب خوند په ښه شان اوڅکي |
| اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيۡزًا حَكِيۡمًا ۝ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ |
| بیشکه الله \| ادي \| غالب \| او صاحب دحکمت \| اوهغه کسان \| چې ایمان ئې راوړو \| اوعمل ئې اوکړو نیک |
| الله ﷻ غالب دي اودحکمتونو صاحب دي \| اوچا چې زمونږ آيتونه اومنل \| اونیک عملونه ئې اوکړل |
| سَنُدۡخِلُهُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِيۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَآ |
| داخل به کړو مونږ هغوئ \| باغونو ته \| چې بهیږی به \| لاندې دهغې نه \| نهرونه \| همیشه به وی هغوئ \| په هغې کښې |
| هغوئ به داسې باغونو ته داخل کړو \| چې دهغې لاندې به ولې بهیږی \| همیشه همیشه به په هغې کښې اوسیږی |
| اَبَدًا ؕ لَهُمۡ فِيۡهَآ اَزۡوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۫ وَّنُدۡخِلُهُمۡ ظِلًّا |
| تل همیشه \| اوی به دپاره دهغوئ \| په هغې کښې \| بیبیانې \| پاکې \| اومونږ به داخل کړو هغوئ \| سورې |
| ددوئ ملګر تیادپاره به پاکې بیبیانې ورکولې شی \| اوخپلو سیورو \|سایو\| ته به ئې داخل کړو |
| |
| ظَلِيۡلًا ۝ |
| ګڼرته \| |

**آسان ترجمه قرآن:** بې شکه کومو خلقوچه څمونږ د آیتونو نه انکار کړې دې مونږ به دوی لره اور کښې داخل کړو چه کله ددوی څرمنې سوزېدو سره پخې شې نو مونږ به ددې په بدله کښې دوی ته نورې څرمنې ورکړو دې د پاره چه دوی د عذاب مزه وڅکې بې شکه الله قدرت والا هم دې اوحکمت والاهم او کومو خلقوچه ایمان راوړې دې اونیک عمل ئې کړې دې مونږ به دوی لره داسې باغونو کښې داخل کړو چه دهغې د لاندې به نهرونه بهیږې دوی به همیشه همیشه په دې کښې اوسیږې هلته به دوی لره پاکې پاکې بیبیانې وې اومونږ به دوی لره ګڼړ سورې ته داخل کړو.

### خلاصه تفسير

﴿ اِنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا بِاٰيٰتِنَا ﴾ بیشکه کوم خلق چه زمونږ د آیتونو [او احکامو] نه منکر شو ﴿ سَوۡفَ نُصۡلِيۡهِمۡ نَارًا ؕ ﴾ [مونږ به دوی ته زر تر زره په یو سخت اوور کښې داخل کړو [او هغه ځائې کښې به ددوی په مخه دا حالت جاری وی] ﴿ كُلَّمَا نَضِجَتۡ جُلُوۡدُهُمۡ بَدَّلۡنٰهُمۡ جُلُوۡدًا غَيۡرَهَا ﴾ کله به چه ددوی څرمن [په اوور] اوسوزوی نو مونږ به ددغې اولې څرمنې په ځائې [سمدستی] بله [تازه] څرمن پیدا کړو ﴿ لِيَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ ؕ ﴾ دپاره ددې چه [همیشه] عذاب همداسې تیروی [ځکه چه د ړومبۍ څرمنې په سوزیدو سره داشبه کیدې شوه چه شاید ددې د سوزیدو پوهه اواحساس به پاتې نه وی نو ددې شبې دلرې کولو دپاره ئې دا واورول چه] ﴿ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيۡزًا حَكِيۡمًا ۝ ﴾ بیشکه الله ﷻ زبردست دې [چه هغه دا سزا ورکولې شی او] د حکمت خاوند دے [سوزیدلې څرمنې ته دتکلیف ورکولو قدرت لری خوبیا ئې هم دځه حکمت په وجه بدله کړه ځنګه چه اوس دیو حکمت بیان شوې دې] ﴿ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدۡخِلُهُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِيۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ ﴾ اوچا چه ایمان راوړو

اوښه کارونه يئ اوکړل مونږ به يئ زر ترزره داسې باغونو کښې داخل کړو چه دهغوی [بالاخانو] لاندې به نهرونه جاری وی ﴿ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۭ لَهُمْ فِيْهَآ اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ﴾ په هغې کښې به هميشه پاتې کيږی هغوی دپاره به دغه [باغونو] کښې پاکې صفا بيبيانې وی ﴿ وَّنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيْلًا ﴾ او مونږ به هغوی لره [د] ډير ګڼې سيورې [په ځائې] کښې داخل کړو.

## معارف او مسائل

حضرت معاذ رضی الله عنه د ﴿ كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُوْدُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ ﴾ په تفسير کښې فرمائيلی دی چه کله ډډوی څرمن اوسوځی نوبدله به کړې شی اوداکاربه دومره زرزر کيږی چه په يوساعت کښې به نې سل ځله څرمن بدلولې شی.

او حضرت حسن بصری فرمائيلی دی:

﴿تأكل النار كل يوم سبعين الف مرة كلما اكلتهم قيل لهم عودوا فيعودون كما كانوا [اخرجه البيهقی عن الحسن بحواله مظهري ج:۲] (۱) اوربه ئې هره ورځ اويازره کرتې خوری کله چه اوخوری نودغه خلقوته به ونيلې شی چه تاسو بيا رومبی حالت ته راواپس شئ نو هغوی به راواپس شی څنګه چه وو [بيهقی په حواله دمظهری ج ۲]

﴿عن النبی صلى الله عليه وسلم قال ان اهون اهل النار عذابا رجل فی اخمص قدميه جمرتان يغلی منهما دماغه كما يغلی المرجل بالقمقم﴾ [رواه البخاری ومسلم بحواله الترغيب والترهيب] (۲).

نبی عليه السلام فرمائيلی دی چه جهنميانو کښې به دټولونه کم عذاب والاهغه څوک وی چه دهغه دخپوپه تلوکښې دوه سکروټې وی چه دهغې په وجه به ئې دماغ لکه دکټوئ پشان خوټکيږی. [بخاری، مسلم، په حواله دترغيب اوترهيب جلد ۴ ص ۲۳۹]

د (ازواج مطهرة) تفسير: په حواله دحاکم دابی سعيد خدری رضی الله عنه په روايت رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلی دی چه دجنت ښځې به پاکې وی، يعنی هغوئ به دحيض، لويوورو بولواودپوزې نه رابهيدونکې ګندونونه پاکې وی (۳).

حضرت مجاهد رحمه الله په کښې داسې زياتې کړې دی چه هغوئ به دماشوم خيږولواوناپاکې نطفې نه هم پاکې وی [مظهری] (۴)

﴿ ظِلًّا ظَلِيْلًا ﴾ ظل پسې دظليل لفظ په راوړوسره ئې دې ته اشاره اوکړه چه دغه سورې [سايه] به تل دپاره وی چه ګڼړ ګوربه وی لکه چه ونيلې شی شمس شامس او ليل لئيل دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه دجنت نعمتونه به هميشه پاتې کيدونکی وی.

﴿عن ابی هريرة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال ان فی الجنة لشجرة يسير الراکب فی ظلها مائة عام ما يقطعها اقرء وا ان شئتم وظل ممدود﴾ [متفق عليه بحواله مظهری] (۵)

---

(۱) شعب الإيمان للبيهقی رقم الحديث: ۶۱۹
(۲) صحيح البخاری، كتاب الرقاق، باب صفة الجنة والنار: ج ۲، ص ۹۷۱، وصحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب شفاعة النبی صلى الله عليه وسلم: ج ۱، ص ۱۱۵، والترغيب والترهيب رقم الحديث: ۳۶۸۵
(۳) تفسير ابن ابی حاتم رقم الحديث: ۲۲۲۰
(۴) تفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۶
(۵) صحيح البخاری، كتاب بدء الخلق، باب ما جاء فی صفة الجنة: ج ۱، ص ۴۶۱، وصحيح مسلم، كتاب الجنة وصفة نعيمها الخ: ج ۲، ص ۳۷۸

دَحضرت ابی هریره رضی الله عنه په روایت رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په تحقیق سره په جنت کښې یوه داسې اونه [درخته] ده چه سور [سپور] به روان وی سوری [سوېرې] ادهغې کښې سل کاله اوهغه به ختم نۀ کړی، تاسو که اوغواړئ نو دا آیت اولولئ.

ربیع بن انس دَ ﴿ظِلًّا ظَلِيلًا﴾ په تفسیر کښې فرمائیلی دی، هوظل العرش الذي لايزول [یعني دغه به دعرش سوېرې وی چه چرې به هم نۀ ختمیږی].

إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا

| بیشکه الله | حکم کوی تاسوته | چې وسپارئ تاسو | امانتونه | دامانت خاوندانوته |

[مسلمانانو] الله ﷻ تاسوته حکم درکوی چې امانتونه خپلو مالکانو ته واپس کړئ ..........

وَإِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ إِنَّ اللَّهَ

اوهر کله چې فیصله کوئ تاسو | په منځ دخلقو کښې | نوفیصله کوئ | په انصاف سره | بیشکه الله |

اوکله چې تاسو دخلقو ترمینځه فیصله کوې | نو په عدل اوانصاف سره فیصله کوئ | بیشکه الله

نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ سَمِيعًا بَصِيرًا

ښه خیز دې هغه | چې نصیحت کوی تاسوته | په هغې سره | بیشکه الله | دی | ښۀ اوریدونکی | اوښۀ لیدونکی |

تاسوته ډیرښکلې نصیحت کوی | ..............بیشکه الله ﷻ هرڅه آوری او هرڅه وینی گوری

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ

اې هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دی | حکم اومنئ | دالله | اوحکم اومنئ د رسول | اودخاوندانو دحکم

اې مومنانو دالله ﷻ حکم منئ | اود رسول حکم منئ | اودخپلو [مسلمانانو] حاکمانو حکم منئ

مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ

ستاسونه | انو بیا که | ستاسو په منځ کښې جګړه راشی | په څه خبره کښې | انو واپس کوئ هغه | الله ته |

نو که تاسوخپلو کښې په یوخبره کښې مختلف شئ | نو هغه الله ﷻ اورسول ته اوسپارئ

وَالرَّسُولِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ

اورسول ته | که یئ تاسو | چې ایمان لرئ | په الله | اوپه ورځ د آخرت | دا کار | اغوره دی | اودیر ښۀ دی

که تاسو په رښتیا په الله او په ورځ دآخرت ایمان راوړئ | دا خبره ډیره ښه ده | اوددې انجام ډیر ښه دی

تَأْوِيلًا

دانجام په لحاظ سره |

**آسان ترجمه قرآن:** (مسلمانانو!) یقینًا الله تاسوته حکم درکوي چه تاسو امانتونه خپلو حقدارو ته درسوئ او چه کله د خلقو په مینځ کښې فیصله کوئ نو د انصاف فیصله کوئ یقین وکړئ چه الله تاسو ته د کومې خبرې نصیحت کوي هغه ډیره ښکلې وي بې شکه الله هره خبره آوري هرڅه ویني اې دایمان خاوندانو! دالله تابعداري کوئ اودهغه د رسول هم تابعداري کوئ اوتاسو کښې چه کوم خلق صاحبان د اختیار دي دهغوی هم. بیا که ستاسو مینځ کښې یو څیز کښې اختلاف راشي نو که واقعي تاسو په الله او په

ورځ دآخرت ایمان لرئ نوهغه الله او هغه رسول ته حواله کړئ دا غوره طریقه ده او ددې انجام هم دټولونه بهتردې.

**خلاصه تفسیر**

[اې دحکومت خاوندانو چه په لږو خلقو حکومت کوئی اوکه په ډیرو خلقو] ﴿ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا ﴾ بیشکه تاسوته الله ﷻ ددې خبرے حکم درکوی چه حقدارانو ته دهغوی حقوق [چه ستاسو په ذمه وی] رسوئی ﴿ وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ النَّاسِ ﴾ او [تاسوته] دا [هم حکم درکوی] چه هرکله د [محکومو] خلقو تصفیه کوئی [دداسې حقونو په باره کښے چه ددوی ترمینځه ډیوبل په ذمه دی] ﴿ أَن تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ ﴾ نوبه عدل [انصاف] سره صفائی کوئی ﴿ إِنَّ اللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُم بِهِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ سَمِيعًا بَصِيرًا ﴾ بیشکه الله ﷻ دکومے خبرے چه درته نصیحت کوی هغه خبره ښه ده [ددنیا په اعتبار سره هم ورسره حکومت مضبوط پاتې کیږی او دآخرت په اعتبار سره هم چه الله ﷻ ته پرے نزدیکت اودهغه له طرفه ثواب حاصلیږی] بیشکه الله ﷻ [ستاسو خبرے چه دامانت او تصفیے په باره کښې ستاسو دخلے نه اوځی] ښه اوری [او ستاسو هغه افعال یعنی کارونه چه دے باره کښې تاسونه کیږی] ښه ګوری [نوکه کمے اوکوتاهی په کښې کوئی الله به درباندې خبریږی سزا به درکوی دا خطاب خو حاکمانو ته شو.بیاورپسے محکومو خلقوته ارشاد دی].

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ ﴾ اې دایمان خاوندانو تاسو دالله ﷻ خبره منئ اود رسول الله ﷺ خبره منئ [اودا حکم خوستاسو او حاکمانو ټولو دپاره عام دی] ﴿ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ ﴾ او تاسو [مسلمانانو] کښې کوم خلق چه دحکومت خاوندان دی دهغوی هم [خبره منئ او حکم خاص دے ستاسو محکومینو دپاره] ﴿ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ ﴾ بیا [که د محکومو او حاکم دواړو په معتبر اتفاق سره دا خبره ثابته شی چه ددوی احکام د الله ﷻ اود رسول الله ﷺ دوینا مخالف نه وی.نو خیر دے، دے کښې خوبه دحاکمانو تابعداری خامخا کوئی اوبیا]که [ددی حکمونو نه] په څه خبره کښې ستاسو خپل مینځ کښې اختلاف راتلل شروع شی [چه دا دالله ﷻ او درسول الله ﷺ دوینا نه خلاف ده اوکه نه د ه]

﴿ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ ﴾ نو [درسول الله ﷺ په حیات کښې خو هغوی نه تپوس کوئ اودهغوی د وفات نه پس د مجتهدینو امامانو او د دین عالمانو ورانډې دغه پش کړئی] دغه خبره [کتاب د] الله ﷻ او [سنت د] رسول الله ﷺ ته حواله کوئی [اوددې حضراتو له طرفه چه څنګه فتوی اوشی په هغې ټول حاکمان او محکومان عمل کوئی]

﴿ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ﴾ که تاسو په الله ﷻ او دقیامت په ورځ ایمان لرئی [ځکه چه ددې ایمان مقتضی داده چه د قیامت په ورځ د الله ﷻ هغه داراونیولو]نه ویریږی چه دهغه [مخالفت کولو په وجه به کولې شی]﴿ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴾دا څیزونه [چه بیان کړې شو دالله ﷻ اطاعت او د هغه درسول الله ﷺ اودمسلمانانو حاکمانو فرمانبرداری، خپل اختلافات کتاب الله او سنت ته وړاندې کول] ټول [په دنیا کښې هم] غوره دی او [آخرت کښې هم] دهغې انجام ډیر غوره دے [ولے چه په دنیا کښې امن او آرام اوپه آخرت کښې خلاصے اوخوش بختی ده].

## معارف او مسائل

**دآیتونو شان نزول** ﴿إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمٰنٰتِ إِلٰى أَهْلِهَا﴾: ذکرشوؤ آیتونو کښې درومبی آیت دنازلیدو یوه خاصه واقعه داسې وه چه داسلام نه وړاندې هم دخانه کعبې خدمت کول هم ډیرلوئې عزت ګڼړلې شو او دبیت الله شریف خاص خدمت دپاره به چه څوک چوڼړ کړې شونو هغه به په ټول قوم کښې عزت من اوناموتو ګڼړلې شو، په دې وجه به دبیت الله مختلف خدمتونه په مختلفو خلقو ویشلې شو، دجاهلیت دزمانې راسې، دحج په ورځو کښې حاجیانوته دزمزم داوبو څکولو خدمت، درسول الله ﷺ تره مبارک حضرت عباس ؓ ته سپارلې شوې وو، چه، سقایه، به نومیدلو، دغه شان ،نورخنې خدمتونه، درسول الله ﷺ بل تره ابی طالب ته سپارلې شوی وو، دغه شان دبیت الله کُنجی خان سره ساتل اوپه ټاکلوورځوکښې دبیت الله شریف پرانستل، خلاصول اوبندول دحضرت عثمان بن طلحه ؓ په لاس کښې وو.

دعثمان بن طلحه ؓ خپل بیان دې چه دجاهلیت په زمانه کښې به مونړه دپیر [دوشنبه] اوزیارت [پنجشنبه] په ورځ بیت الله شریف خلاصولو اوبندولو اوخلقوبه پکښې ددننوتوسعادت حاصلولو، دهجرت نه وړاندې یوځل رسول الله ﷺ سره دصحابه کراموبیت الله شریف ته دننوتوپه غرض تشریف یوړو [دغه وخت] حضرت عثمان بن طلحه ؓ په اسلام کښې لاداخل شوې نه وو اوهغوئ لره ددننه تلونه منع کړواوډیره تُرشی ئې ورته ښکاره کړه، هغوئ په ډیرزغم سره دهغه سختې خبرې واوریدې، بیائې اوفرمائیل: اې عثمان، کیدې شی چه ته به یوورځ، دبیت الله شریف داکُنجی زماپه لاس کښې اووینې هغه وخت به زۀ اختیارلرم چه دابه چاته سپارم، عثمان بن طلحه ؓ اووئیل که داسې اوشونو قریش به هلاک اوذلیل شی، هغوئ اوفرمائیل چه، داسې نۀ ده بلکه دغه وخت به قریش آباداو دعزت خاوندان شی، چه دائې اوفرمائیل نوهغوئ بیت الله شریف ته ورننوتل، حضرت عثمان ؓ وائی چه دغه وخت ماخپل زړۀ اولټولونویقین م اوشوچه د رسول الله ﷺ دافرمائیل به خامخاپوره کیږی، دغه وخت نه م دمسلمانیدواراده اوکړه خوهرکله چه دخپل قوم شان م بدل اولیدلو، هغوئ ټولوزۀ سخت ملامته کولم څکه م خپله اراده پوره نکړې شوه، دمکې مکرمې دفتح کیدوپه موقع، رسول الله ﷺ زۀ راؤبلم کُنجی ئې رانه اوغوښته، هغه ورته ماپیش کړه-

په خنې روایاتوکښې راغلی دی چه عثمان بن طلحه ؓ دغه وخت بیت الله شریف دپاسه ختلې وواو کُنجي هم ورسره وه، حضرت علی ؓ درسول الله ﷺ دحکم پوره کولوپه غرض دهغه دلاس نه په زور کُنجی راواغسته اوهغوئ ته ئې ورکړې وۀ، هغوئ چه بیت الله شریف ته ورددننه شو، هلته ئې مونځ اوکړو، چه راووتی، نوعثمان بن طلحه ؓ وائی چه کُنجی ئې بیرته راکړه اوراته ئې اوفرمائیل:

واخله، اوس به ترقیامته پورې داکُنجی ستاخاندان سره وی، که څوک تاسونه داکُنجی اخلی نوهغه به ډیرظالم وی، مطلب ئې داشوچه بل هیڅوک تاسونه ددې کُنجی اغستلوحق نۀ لری-په دې موقعه ئې داهم اوفرمائیل: دبیت الله شریف ددې خدمت په بدله کښې چه درته کوم مال ګټوله درخی هغه به دشرعی قاعدې په جوړاستعمالوې-

عثمان بن طلحه ؓ وائی چه کُنجی م واغسته په خوشحالۍ بیرته روان شوم، هغوئ بیاراؤبللم اوراته ئې اوفرمائیل: کومه خبره م چه درته کړې وه هغه رشتیاشوه، که نۀ؟ وائی چه ماته هغه خبره

را یاده شوه چه رسول الله ﷺ راته دهجرت نه وړاندې داسې کړې وه چه یوورځ به داکُنجی زمالاس کښې وینې .وای: چه ماداعرض اوکړوچه بیشکه ،ستاسوفرمان پوره شواوهم دغه وخت م کلمه اوونیله اومسلمان شوم [مظهری په روایت دابن سعد] (١)-

حضرت فاروق اعظم، عمربن خطاب ؓ فرمائیلی دی چه هرکله په دغه ورځ رسول الله ﷺ دَبیت الله شریف نه بهرراووتوداآیت مبارک ئې اولوستلو: ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا﴾ هغه ؓ اوونیل چه دې نه وړاندې ماچرته دَدوی: دَخُلې مبارکې نه داآیت نهٔ وو آوریدلې ،ښکاره خبره ده چه داآیت هم دغه وخت په کعبه کښې دننه نازل شوې وو ،چنانچه په دې آیت شریف باندې دَعمل کولوپه غرض ئې دوباره حضرت عثمان بن طلحه ؓ راوبللواوکُنجی ئې ورته اوسپارله ،ولې چه هرکله حضرت عثمان بن طلحه ؓ داکُنجی هغوی: ته ورکوله نوداالفاظ ئې ورته وئیلی ووچه، ،داامانت ز: درته سپارم، ،اګرچه دضابطې په لحاظ دَهغه ؓ داخبره کول صحیح نهٔ وهٔ ،بلکه ټول اختیار ،رسول الله ﷺ سره وو ،چه څه ئې غوښتل هغه ئې کولې شو ،بیاهم قرآن کریم دَامانت دَصورت لحاظ اوساتلواورسول الله ﷺ ته ئې داهدایت اوفرمائیلو چه کُنجی حضرت عثمان ته اوسپارئې-حالانکه دغه وخت حضرت عباس ؓ اوحضرت علی ؓ هم رسول الله ﷺ ته داخواست کړې وو چه څنګه دَبیت الله شریف دَصفائی وغیره خدمت مونږ ته سپارلې شوې دې دَکُنجی: ساتلوخدمت هم مونږ ته اوسپاری: ،خوهغوی: داخواست منظورنهٔ کړو بلکه کُنجی ئې هم ،حضرت عثمان ؓ ته بیاواپس کړه [تفسیر مظهری] (٢)-

تردې دَشان نزول بیان وو ،په دې خبره دَټولواتفاق دې چه شانِ نزول اګرچه یوخاص واقعه وی خوحکم ئې عام شی ،په ټول اُمت ئې پابندی کول لازمی وی-اوس ئې معنی اومطلب باندې هم خان پوهٔ کړئ:

فرمای:﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا﴾ [الله تعالی حکم ورکوی چه امانتونه خپلوحقداروته رسوئ:]دَدې مخاطب عام مسلمانان هم کیدې شی اوخاص حاکمان هم ،زیاته ښکاره خبره داده چه هرهغه څوک مخاطب دی چه څه امانت لرونکې وی خواه عام مسلمان وی یامسلمان حاکم وی

**دامانت داداکولوتاکید:** دَدې ارشادخُلاصه داده چه چاسره څه امانت وی هغه دَپاره ضروری دی چه دغه امانت د قابل اومستحق بنده ته اورسوی ،چنانچه رسول الله ﷺ دَامانت دَادا کولولو ئې تاکید کړې دې ،دَحضرت انس په روایت ،رسول الله ﷺ به دیرکم داسې کړی وی چه خطبه کښې به ئې داسې ارشادنه وی فرمائیلې-

﴿لا ايمان لمن لا امانة له ولا دين لمن لا عهد له﴾ (٣) څوک چه امانتګرنهٔ وی دَهغه ایمان نشته اوڅوک چه په لوظ قول ټینګ نهٔ وی په هغه کښې دین نشته-

داروایت بیهقی په شعب الایمان کښې نقل کړې دې-

**خیانت کول دمنافق: نخښه ده:** دَحضرت ابی هریره ؓ اوابن عمر ؓ په روایت دَبخاری اومسلم په حواله یوځل رسول الله ﷺ دَمنافق: یوه نخښه داهم اوښودله ،چه امانت ورسره کیښودلې شی

(١) تفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ٢، ص ١٣٦ تا ١٣٨ پورے
(٢) تفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ٢، ص ١٣٦ تا ١٣٨ پورے
(٣) شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث: ۴۱۸۳

نو خیانت پکښې کوي (۱)..

**د امانت قسمونه** دلته دجمع صیغه ﴿اَلْاَمٰنٰتِ﴾ راوړل دا مطلب لري چه ټول قسم امانتونه اداکول مراد دي خواه مالي وي یا بل قسم امانت وي لکه په دې موقعه چه قرآن کریم ، کُنجي سره متعلق خدمتونه بیرته حضرت عثمان ﷺ ته سپارل هم امانت بللې دي-

**دحکومت منصبونه هم دالله تعالی امانتونه دي** دې نه دا هم معلومه شوه چه دحکومت ټولې مرتبې او عهدې دالله امانتونه حسابیږي چه هغه حاکمان او افسران ئې امانتداران دي کوم چه دبرطرفۍ او تقررۍ اختیارات لري دوئ لره دا بیخي نارواده چه څه عهده یا مرتبه چاته اوسپاري چه په علمي یا عملي لحاظ سره هغه ددې اهل نه وي، بلکه ضروري دي چه دهرې عهدې دپاره دخپل حکومت په دائره کښې دننه ددې حقداران اولټوي-

**په یو منصب باند نااهل لره مقررکوونکي ملعون دي** چه دپوره قابلیت خاوندا او ټول شرطونو پوره کوونکي څوک ترلاسه نشي نو په موجوده خلقو کښې دقابلیت او امانتدارۍ په لحاظ چه څوک دټولو دپاسه وي هغه دغوره کړې شي-

په یو حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه چاته دعامو مسلمانانو څه ذمه داري اوسپارلې شوه او هغه داهلیت او قابلیت په بُنیاد نهٔ بلکه خالص ددوستۍ تعلقاتو او خپلوۍ په بناء چاته څه عهده ورکړې نو په هغه دالله تعالی لعنت دي، نهٔ ئې فرض قبلیږي، نهٔ نفل، تردې چه جهنم ته به داخل شي- [جمع الفوائد صفحه ۳۲۵]

په ځنې روایتونو کښې راغلي دي چه څوک په دې پوهه وو چه دیو منصب دپاره اهل بنده شته او بیا هم هغه پریږدي او داسې بنده پرمقرر کړي کوم چه دهغې اهل او جوګه نهٔ وي نو هغه دالله تعالی، درسول الله ﷺ او دټولو مسلمانانو خیانت ئې اوکړو (۲). نن دحکومت انتظام کښې چه ګډوډي لیدې شي نو دا دقرآني تعلیماتو نه دبې پرواکیدلو نتیجه ده، د تعلقاتو، رشوتونو او سفارشو نو په بُنیاد عهدې تقسیمولې شي په نتیجه کښې نااهل او ناقابله خلق په عهدو قبضه اوکړي او دحکومت ټول انتظام بربادشي-

په دې وجه درسول الله ﷺ ارشاددي: ﴿اذا وسد الامر الی غیر اهله فانتظروا الساعة﴾ [کله چه نااهلو او ناقابلو خلقو ته څه ذمه داري اوسپارلې شي نو ددې فساد هیڅ علاج نشته، دقیامت انتظار اوکړئ [صحیح بخاري کتاب العلم] (۳)-

خلاصه دا شوه چه.. ﴿اَمٰنٰتِ﴾ په صیغې دجمع سره دراوړلو مطلب دادي چه دلته یوازې مالي امانت مُراد نهٔ دي بلکه ټول قسم امانتونه ترمُراد دي چه دحکومت عهدې پکښې هم داخلې دي-

رسول الله ﷺ یو بل ارشاد داسې فرمائیلې دي:

﴿المجالس بالامانة﴾ (۴) مجلسونه هم په امانتدارۍ سره کیدل پکار دي،

---

(۱) صحیح البخاري، کتاب الإیمان، باب علامة المنافق: ج ۱، ص ۱۰ وصحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب بیان خصال المنافق: ج ۱، ص ۵۶

(۲) کنز العمال، حرف الخاء رقم الحدیث: [illegible]

(۳) صحیح البخاري، کتاب العلم، باب من سئل علماً: ج ۱، ص ۱۴

(۴) سنن ابي داود، کتاب الأدب، باب في نقل الحدیث: ج ۲، ص ۳۶۸

مطلب داچه دَیو مجلس دننه خبره بهر، بل ځائي ته اوړل او خوروَل ئې ناروادي۔ ترڅوچه دغه مجلس نه ئې دَخورولو اجازت نهٔ وی اغستې شوې۔

داشان په یوحدیث کښې راغلې دی: ﴿المستشار موتمن﴾ (۱) هغه څوک امانتدار دې چه مشوره ترې واخستې شی. داسې کَس دپاره ضروری دی چه مشوره داسې ورکړی چه دَمشورې غوښتونکی دپاره مفیده اوغوره وی۔ که سره دپوهې ئې څه غلطه اوخلاف مشوره ورکړه نوامانت کښې ئې خیانت اوکړو، دَرازخبره چه چاسره اوکړې شوه نوداورسره یوامانت شوچه بغیردَهغه دَاجازت نه ئې بل چاته ښکاره کول خیانت دې. لهذا په آیت شریفه کښې دَدې ټولو امانتونودَحق ادا کولو تاکید دې. تردې پورې دَرومبی آیت دَرومبی: جملې تفسیروواوس وریسې دَدغې آیت دَدویمې جملې تفسیردې فرمائی:

﴿وَاِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ﴾ [یعنی کله چه تاسو، دَخلقوترمینځه دَراولاړوشوؤ جګړو فیصله کول غواړئ نوعدل اوانصاف سره ئې کوئ] ښکاره خبره ده چه داخطاب حاکمانو او امیرانو ته دې چه دراپیښو، جګړو اومقدموفیصلې کوی اوهم دَدې قرینې په بِنا، ځنې حضراتو دَ رومبی: جملې مخاطب هم، حاکمان اوامیران ګرځولی دی، اګرچه دَرومبۍ جملې پښان په دې کښې هم دَدې خبرې ګنجائش موجوددې چه حاکمان اوعوام دواړه په دې خطاب کښې شامل وی، ولې چه عوامو کښې اکثرهم داسې کیږی چه فریقین خپل مینځ کښې څوک دریمګړې فیصلې دپاره تاکی مګردې کښې شبه نشته چه په اول نظر کښې دَدې دواړو جملومخاطب یواځې حاکمان اوامیران معلومیږی ، ه دې بِنا داوئیلې شی چه اول دَدې مخاطب حاکمان اوامیران دی او بیا [په دویم وار کښې] داخطاب هرهغه چاته دې چه ورسره دَچاامانتونه وی یادَفیصلې دپاره دریمګړې جوړکړې شوې وی۔

دلته الله تعالی ﴿بَيْنَ النَّاسِ﴾ اوفرمائیل ﴿بین المسلمین﴾ یا ﴿بین المؤمنین﴾ ئې اونه فرمائیل، ځکه چه دَمقدموپه فیصلوکښې ټول بنیادم برابر دی، یعنې دَټولوانسانانواوبنیادموترمنځه دَدَحق اوانصاف په جوړفیصله کولې شی، دَمسلم او غیر مسلم، دَدوست یادشمن، وطن، رنګ اوژبه کښې دَشریک اوغیر شریک ترمنځه دِ فرق نشی کولې۔

**عدل اوانصاف دَټول جهان دامن ضامن دې:** غرض داچه دَآیت په رومبی: جمله کښې دَامانتونو اداکولو حکم دې اوپه بله جمله کښې دَعدل اوانصاف کولوحکم دې خو دَ امانتونو ادا کولو وړاندې ذکرکول غالباً داوجه لری چه په ټول ملک کښې عدل اوانصاف بغیردَدې نهٔشی کیدې، مطلب داچه دَاقتدارخاوندان ددَامانتونوادا کولوفرض په صحیح توګه داسې اداکوی چه حکومتی عهدې دیواځې هغه خلقوته ورکوی چه صلاحیت اواستعداد لری ، دې دپاره جوګه وی، پوره امانتدار اودیانتدار وی اودنوروپه نسبت دې دَپاره غوره ښکاری، دَدوستې، تعلقاتو یاصرف دَ سفارش یارشوت په بنیاددداچاته نهٔ سپاری، ورنه نتیجه به ئې دا راوځی چه نااهله، ناقابله یاخیانتګر اوظالمان خلق به په عُهدوقبضه اوکړی، بیاکه دَاقتدارخاوندان هرڅومره د زړهٔ نه هم اوغواړی چې په ملک کښې عدل او انصاف رائج شی نو هغوئ دپاره به دا نا ممکن وی ځکه چه دَعهدې خاوندان ګویاکښې دَحکومت لاس ، خپې وی، چه داخراب اوناکاره وی نوانصاف اوعدل به څنګه قائیمیدې شی؟۔

(۱) سنن ابی داود، کتاب الأدب، باب فی المشورة: ج ۲، ص ۳۳۹

په دې آیت کښې داخبره په خاص شان دَیادلرلوجوګه ده چه په دې کښې الله تعالی دَحکومت عهدې هم امانتونه اوبلل اوپه دې باره کښې ئې اول داخبره په ډاګه کړه چه څنګه امانتونه یواځې خپلو مالکانوته اداکول پکاردی، که په چافقیر، مسکین باندې رحم اوکړې شی اودَبل چاامانت ورته اوسپارلې شی نوداناروادی داسې ناروا هغه هم دِی چه دبل چاامانت خپلوانویادوستانوته ورکړې شی- یعنی هغه حکومتی عهدې چه تعلق ئې دعوامو کارونوسره وی، داهم امانتونه دی چه داسې خلقوته ئې سپارل پکاردی کوم چه دې دَپاره مناسب، جوګه دی، دَدې دَچلولوصلاحیت اواستعدادلری اوپه موجوده خلقوکښې دې دَپاره دَټولونه زیات غوره وی، دَټولونه زیات امانتګراودیانتداروی که داسې خلقونه سوابل چاته دغه عهدې اوسپارلې شوې نوامانت ادانکړې شو-

**دَعلاقو او صوبو په بنیاد حکومتی عهدې چاته سپارل اصولی غلطی ده** په دې جملې سره قرآن کریم هغه عامه غلطی هم په ګُته کړه چه دَاکثروملکونودارواج جوړشوې دې چه حکومتی عهدې دَملک دَاستوګنوحق ګرځولې شوی دی اوهم دَدې اصولی غلطئ په بناداقانون جوړکړې شویدې چه دغه عهدې ددآبادئ په جوړاوویشلې شی، اودَهرې صوبې اوعلاقې دَپاره پکښې بیله بیله تاکلې برخه ورکړې شی- مثلاً په یوصوبه کښې دَبلې صوبې بنده ته عهده نشی ورکولې اګرچه دغه بنده زیات قابل اوامانتګروې اودَخپلې صُوبې بنده غلط کار، نارامه اونااهل وی، چنانچه قرآن کریم صفااعلان اوکړو چه داعهدې دَچاحق نهٔ دې بلکه امانتونه دی چه یواځې مالکانوته به ورکولې شی کوم چه دَدې اهل اومستحق وی اګرچه هغوئ دَبلې صُوبې یادَبلې علاقې استوګن وی البته په یوه خاصه علاقه اوصوبه باندې دَحکومت کولودَپاره هم ددغه علاقې اوصوبې بنده هله غوره ګڼرلې شې چه ډیرصلاحیتونه لری اوداشان ددهٔ په امانتګرئ دَخلقوتسلی وی-

**دَحکومت دَدستوریو څو زرین اصول**: داشان په دې ورکوتی آیت کښې دَحکومتی د ستوریو څو بنیادی اصول راغلل چه دادی-

① اول داچه دآیت رومبئ جُمله ئې دَ ﴿إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكُمْ﴾ نه شروع کولوسره ئې دې خبرې ته اشاره اوکړه چه اصلی امراوحُکم دَالله تعالی دې، دَدُنیاټول بادشاهان په دې ماموردی، لهذادې نه ثابته شوه چه په ملک کښې، اعلی اقتداریواځې، دَالله تعالی دې-

② دویمه خبره داده چه حکومتی عُهدې دَملک دَاوسیدونکوحقوق نه جوړیږی چه هغه دَآبادئ د اصولوپه بناویشلې شی، بلکه دَالله تعالی دَاړخه ورکړې شوی امانتونه دی چه یواځې، جوګه، اهل او لائقوخلقوته ورکولې شی-

③ دریمه داچه په زمکه باندې حکمران انسان، صرف دَنائب اوامانتګرشان لری دې به دَملک په قانون جوړولو کښې دَهغه اصولوپابندوی چه رنګ، ژبې څه چه، بلکه دَمذهب اومسلک فرق اوبیلتُون پکښې رانهٔ ولی-

په دې آیت کښې دَزرین اواعلی اصولوښودلو نه پس په آخرکښې ئې اوفرمائیل چه کوم نصیحت درته الله تعالی کړې دې هغه ډیرښه څکه دې چه الله تعالی دَهرچاآورې اوڅوک چه دَوینا او فریاد کولوس هم نهٔ لری دَهغوئ حالات پخپله وینی، په دې وجه دَالله تعالی ښودلی اوجوړ کړی، اصول داسې دی چه په هرملک اوهره زمانه کښې پر، تل دَپاره عمل کیدې شی- دَانسانی دماغو جوړ کړې شوی اصول اودَوئ دستوردَخپل ماحول ترحده پورې وی چه دَهغې په بدلیدوسره ددې

بدلول هم ضروري وي، څنګه چې رومبی آیت کښې دَخطاب مخه حاکمانو او امیرانو ته وه په دویم آیت کښې دَخطاب مخه عوامو ته په دې شان وه چه، اې دَ ایمان خاوندانو تاسو دَالله تعالی او دَرسول الله او دَخپلو حاکمانو حُکم منئ.

**اولوالامر [حاکمان] څوک دي؟:** اولوالامر په لُغت کښې هغه چاته وئیلې شي چه په لاس اختیار کښې ئې دَڅه څیز، نظام او انتظام وي، لهذا دَقرآن کریم مفسرینو، حضرت ابن عباس ﷛ مجاهد ﷫ حسن بصري ﷫ علماؤ او فقهاؤ ﷭ لره اولی الامر ویللی دي ځکه چه دوی دَ رسول الله ﷺ نائبان دي او دَدین انتظام دَدوی په لاس کښې دي.

او دَمفسرینو یوه بله ډله چه حضرت ابوهریره هم پکښې شامل دي، دا فرمائیلي دي چه اولی الامر نه مُراد حاکمان او امیران دي چه په لاس ئې دَحکومت انتظام دې.

تفسیر ابن کثیر او تفسیر مظهري کښې دغې دواړو ډلو [عالمانو او حاکمانو] ته اولی الامر ځکه وئیلې شي چه دَامر، نهي نظام دَ دواړو سره تړلې دي[1].

په دې آیت کښې په ښکاره ډول دَدرې قسمه حُکم منلو، حُکم شوي دي یعنی دَالله تعالی، دَ رسول الله ﷺ او دَاولی الامر، لیکن دَقرآن کریم نورو آیتونو دا خبره په ډاګه کړه چه حُکم کول، او حُکم منل په اصل کښې یواځې دَالله تعالی دي لکه فرمائي: ﴿ان الحکم الا لله﴾ مګر دَدې عملي صورت په دریو برخو کښې ویشلې شوي دي.

**۔ حُکم کولو او منلو ئې درې عملي صُورتونه:** یو صُورت ئې دا دې چه الله تعالی په ډاګه یو حُکم په قرآن کریم کښې نازل کړې وي او پکښې دَڅه تفصیل او تشریح حاجت نۀ وي لکه شرک او کُفر چه انتهائي زیات لوئې جرم دې، یواځې دَالله تعالی عبادت کول او په آخرت او قیامت یقین لرل، محمد ﷺ لره دَالله تعالی آخري او په حقه رسول منل، مونځ، روژه، حج او زکواة لره فرض ګڼل، چه نیغ په نیغه احکام الهي دي چه عمل پر کول، نیغ په نیغه دَالله تعالی حکم منل دي.

دوئیمه برخه دَاحکامو هغه ده چه پکښې دتفصیل او تشریح ضرورت وي، په دې کښې قرآن کریم، اکثر، مُجمل یا مُبهم حُکم ورکوي چه تشریح او تفصیل ئې دَرسول الله ﷺ په حواله، یعنی دَاحادیثو په ذریعه کولې شي، داهم یو قسم وحي وي، مطلب دا چه که دَدې په تشریح یا تفصیل کښې په اجتهادي ډول څه کمي یا کوتاهي پاتې کیږي نو دَوحي په ذریعه ئې اصلاح کولې شي او په آخر کښې دَرسول الله ﷺ قول او عمل مبارک دَحُکم الهي ترجمان جوړ شي،

دا قسم احکام منل اګرچه په حقیقت کښې دَالله تعالی احکام منل دي، لیکن هر کله چه دغه احکام په ډاګه په قرآن کریم کښې موجود نۀ وي او دَرسول الله ﷺ دَخُلې مبارکې نه اُمت ته رسیدلي وي نو په ظاهري لحاظ سره دې ته دَرسو ل الله ﷺ حُکم منل وئیلې شي اګرچه په حقیقت کښې دا هم دَالله تعالی حُکم منل دي لیکن په ظاهري اعتبار سره هر کله چه دا بیل بیل شان لري ځکه په قران کریم کښې دَالله تعالی دَحُکم منلو سره دَرسول الله ﷺ دَحُکم منلو امر کول په مستقل ډول سره ځان له ذکر شوي دي.

دریمه درجه دَهغه احکامو ده چه په قرآن او حدیث دواړو کښې په ډاګه نه وي ذکر شوي، یا دَ احادیثو روایات په دې باره کښې مختلف او دَیو بل مخالف راغلي وي، په داسې احکامو کښې مجتهدین عُلمائې کرام دَقرآن او سُنت په منصوصاتو یا دَ دغې لزیرِ غور [ مسئلې په نورو نظیرونو

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۳۲۵، تفسیر المظهري تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۸۱، ۱۸۲

[مسائلونو] باندې ژور فکر اولټون کولو سره دې حکم منل څکه ګنړلې شي چه دا د قرآن او سُنت نه راغستي شوي دی مګر د ظاهر له مخې، دې ته فقهي فتاوي وئیلې شي او نسبت ئې مجتهدینو علماؤ ته کیږي-

په دې دریم قسم کښې داسې احکام شته چه د کتاب او سُنت له مخې داسې قسم څه پابندي پرنشته چه کول یا نه کول ئې ضروري دي بلکه د کولو او نه کولو اختیار دې پکښې، نو دې ته مُباحات [مُباح] او ئیلې شي چه عملي انتظام ئې حاکمانو او امیرانو ته سپارلې شوې دې چه هغوی حالات اوښیګروته او ګوري او دهغې په جوړدڅه قانون جوړ کړي او ټول دې پر باندې دعمل کولو د پاره تیار کړي مثلاً په کراچۍ ښار کښې د اکخانې پنځوس پکاردی که سل، تهانړې څومره پکاردي، د اورګاډي انتظام دڅنګه وي، آباد کاري د په کوم قواعدو او کړې شي؟ خو هر کله چه د دې مباحاتو انتظام کول عوام نشي کولې نو څکه د دې ذمه داري هم حکومت سره پکارده-

په تیر شوی آیت کښې د اولي الامر د فرمانبرداري: کولو نه مُراد په فقهي تحقیقاتو کښې د علماء فرمانبرداري کول دی او په انتظامي خبرو کښې د حاکمانو او امیرانو فرمانبرداري کول مُراد دی چه دواړه واجب دی-

دا فرمانبرداري هم په حقیقت کښې د الله تعالی د حکمونو منل دی، خو هر کله چه داسې احکام په قرآن کریم او په سنت نبوی کښې په ډاګه نهٔ دی راغلي، بلکه د علماؤ او حاکمانو له اړخه بیان شویدی نو څکه په مستقل ډول ورته دریمه درجه ورکړې شوه او د اولي الامر د اطاعت نوم ورکړې شو. او څنګه چه د قرآن کریم په ډاکیزو څیزونو کښې د هغوی تابعداري لازمه او واجبه ده، دغه شان په هغه خبرو او څیزونو کښې چه په دې دواړو [قرآن او سُنت] کښې په ډاګه نهٔ وي راغلي، د فقهاء رحمهم الله اطاعت په فقهي څیزونو کښې او د حاکمانو او امیرانو اطاعت په انتظامي امورو کښې واجب دی-

**شریعت نه په خلاف کارونو کښې د امیر اطاعت واجب نهٔ دی:** ﴿وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ النَّاسِ أَن تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ﴾ په دې آیت کښې الله تعالی ارشاد او فرمائیلو چه د خلقو تر مینځه فیصلې عدل او انصاف سره کوئ، وریسې الله تعالی، خلقو ته د اولي الامر د اطاعت تعلیم ورکړو، اشاره پکښې دې اړخ ته وه چه د امیر اطاعت هله واجب دې چه هغه په عدل باندې ولاړوي، که عدل او انصاف پریږدي، د شریعت نه خلاف احکام صادر کړي نو د امیر اطاعت به نشي کولې لکه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي ﴿لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق﴾ (۱) د مخلوق داسې اطاعت کول ناروا دی چه د خالق نافرماني پکښې راځي]

دلته الله تعالی دا ارشاد فرمائي چه د خلقو تر منځه فیصله په عدل سره کوئ، دې نه دا خبره معلومه شوه چه څوک د عدل او انصاف قائم لرلو طاقت او وَس نهٔ لري نو هغه د قاضي هم څکه نهٔ جوړیږي چه په انصاف سره حُکم کول هم یو امانت دی چه حفاظت ئې کمزوري او نااهل بنده نشي کولې لکه چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې هر کله چه ابوذر رضي الله عنه دا خواست وړاندې کړو چه تاسو ما له دیو ځائې حاکم جوړ کړئ نو هغوی جواب ورکړو ﴿ياأباذر انك ضعيف وانها امانة وانها يوم القيامة خزي وندامة الامن اخذ بحقها وادي الذي عليه فيها﴾ [رواه مسلم بحواله مظهری] (۲)

---

(۱) مشکوة، کتاب الامارة: ج ۲، ص ۳۲۱
(۲) صحیح مسلم، کتاب الامارة باب کراهة الامارة: ج ۲، ص ۳۱

چه اې اباذر ته يو کمزورې سړې ئې او منصب [عهده] داسې يو امانت دې چه دهغې په وجه به دقيامت په ورځ ذلت او رسوائي وی سوا دهغه کس نه چې هغه د امانت حق پوره کړو [چه داسې کَس به دَذلت نه بچ شی]-

**عدل کوونکې دالله تعالی محبوب ترین بنده دې:** په يو حديث کښې رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلې دې چه عدل کوونکې بنده، دَالله تعالی محبوب او ورته ډير نزدې بنده دې او ظالم دَالله تعالی درحمت او د کرم دَنظرنه لرې وی(۱). په يو بل حديث شريف کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته اوفرمائيل چه دَټولو نه اول به دَالله تعالی دَسوری لاندې څوک خی؟ هغوئ جواب ورکړو چه يو ازې الله تعالی او دَهغه رسول ته دَدې خبرې زيات علم دې، نوبيا هغوئ ارشاد اوفرمائيلو چه دا به هغه خلق وی چه مخې ته ئې حق راشی نو سمدستی ئې قبلوی، چه سوال تر اوکړې شی نو مال خرچ کوی او معامله په داسې انصاف سره فيصله کوی ګويا کښې چه خان دَپاره ئې کوی(۲)-

**داجتهاد او قياس ثبوت:** ﴿فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ﴾ په دې آيت کښې الله تعالی دَدې حکم ورکړې دې چه که ستاسو ترمنځه څه د اختلاف خبره را وړاندې شی نو الله تعالی او دَهغه رسول الله ﷺ اړخ ته رجوع [ماتې] کوئ-

کتاب او سنت اړخ ته دَماتې کولو او راګرځيدلو دوه صُورتونه دی، يو دا چه دکتاب او سُنت هغه احکامو ته رجوع [ماتې] اوکړې شی په کومو کښې چه نص وارد شوې وی-بل صُورت ئې دا دې چه که ښکاره نص، [دَقرآن او سنت] دواړو کښې نۀ وی راغلې نو دَهغې په نظيرونو [مثالونو] باندې قياس کولو سره ورته ماتې اوکړې شی ولې چه دَ﴿فَرُدُّوهُ﴾ الفاظ عام دی چه دواړو صُورتونو لره شامل دی-

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ تَرَ | إِلَى الَّذِينَ | يَزْعُمُونَ | أَنَّهُمْ | آمَنُوا |
| ايا اونۀ ليدل تا | هغه خلق | چې دعوی کوی | چې بيشکه هغوئ | ايمان راوړې دې |
| ته هغه کسانو ته نه ګورې | چې په خولې خو دا دعوی کوی چې مونږ په تا | | | |
| بِمَا | أُنْزِلَ | إِلَيْكَ | وَمَا | أُنْزِلَ | مِنْ قَبْلِكَ |
| په هغه کتاب | چې نازل کړې شوې دې | تاته | او په هغه کتابونو | چې نازل کړې شوی دی | مخکښې ستانه |
| نازل شوې کتاب هم منو | ...........او ستا نه مخکښې نازل شوی کتابونه هم منو | | | |
| يُرِيدُونَ | أَنْ يَتَحَاكَمُوا | إِلَى الطَّاغُوتِ | وَقَدْ أُمِرُوا | |
| هغوئ غواړی | چې يو سی فيصلې دمقدماتو خپلو | طاغوت ته | حالانکه حکم شوې وۀ هغوئ ته | |
| اخو عمل نې دادې | چې خپلې جګړې شيطان ته وړاندې کوی | او حال دا چې هغوئ ته حکم شوې دې | | |
| أَنْ يَكْفُرُوا | بِهِ | وَيُرِيدُ | الشَّيْطَانُ | أَنْ يُضِلَّهُمْ | ضَلَالًا |
| چې کفر اوکړی | په طاغوت | او غواړی | شيطان | چې ګمراهه کړی دوئ | په ګمراهئ |
| چې دهغه نه به انکار کوی | ...... او شيطان خو دا غواړی چې دوئ دسمې لارې نه | | | |

---

۱) ددې هم معنی حديث په سنن ترمذی. أبواب الأحکام عن رسول الله ﷺ. باب ما جاء في الامام العادل: ج ۱، ص ۲۲۸ کښې موجود دې-

۲) مسند احمد حديث السيدة عائشة رضي الله عنها رقم الحديث: ۲۳۲۲۳

بَعِيْدًا ۝ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

لرې سره | او هر کله چې | اووئیلې شي دوئ ته | راشئ | هغه کتاب ته | چې نازل کړې دې الله |

ډېر لرې کړي | هر کله چې دوئ ته اووئیلې شي چې کوم حکم الله ﷻ رالیږلې دې هغې ته راشئ

وَاِلَى الرَّسُوْلِ رَاَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ صُدُوْدًا ۝

او راشئ رسول ته | ته وینې | دا منافقان | چې بېچ کوي خانونه | تا ته در اتلونه | په بېچ کولو سره

او د هغه رسول ته مخامخ شئ | نو ته دا منافقان ګورې چې تا سو ته د پیش کېدونه مخ اړوي |

فَكَيْفَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ

نو څه حال به وي | کله چې | اورسېږي دوئ ته | مصیبت | په سبب د هغه عمل | چې مخکښې لیږلې دې

............ بیا هغه وخت به ئې څه حال وي چې د کړو په وجه پرې مصیبت راشي |

اَيْدِيْهِمْ ثُمَّ جَآءُوْكَ يَحْلِفُوْنَ ۖ بِاللّٰهِ اِنْ اَرَدْنَآ اِلَّآ

لاسونو د دوئ | بیا | راځي تا ته | قسمونه خوري | چې قسم په الله | نه وه | اراده زمونږه | مګر صرف

نو بیا تاسو ته راځي | او په الله ﷻ باندې قسمونه خوري چې زمونږ غرض خو صرف [د مسلمانانو سره]

اِحْسَانًا وَّتَوْفِيْقًا ۝ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَعْلَمُ اللّٰهُ مَا

د ښیګړې | او د موافقت راوستو | دا هغه کسان دي | چې معلوم دی | الله ته | هغه څه |

ښیګړه او اتفاق راوستل دی | د دغه کسانو د زړونو حال الله ﷻ ته معلوم دې |

فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۖ فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُلْ لَّهُمْ

چې په زړونو د دوئ کښې دي | نو مخ واړوه | د دوئ نه | او نصیحت اوکړه دوئ ته | او اووایه | دوئ ته

............ | نو ته د هغوئ د خبرو هیڅ پرواه مه کوه | هغوئ ته نصیحت کوه | او د هغوئ

فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ قَوْلًاۢ بَلِيْغًا ۝ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا

په حق د نفسونو د دوئ کښې | وینا | کوزېدونکې زړونو ته | او نه دي لیږلي مونږ | یو رسول | مګر

په زړونو کښې اثر پیدا کونکې وعظ ورته کوه | او مونږ هر یو پیغمبر صرف د دې د پاره رالیږلې دې

لِيُطَاعَ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ وَلَوْ اَنَّهُمْ اِذْ ظَّلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

چې د هغه حکم اومنلې شي | په حکم د الله سره | او که چرې دوئ | چې څه وخت ئې | ظلم کړې وؤ | په ځانونو خپلو

چې د الله ﷻ په حکم د هغه خبره اومنلې شي | او څه وخت چه دوی په ځانونو زیاتې کړې وې

جَآءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا

راغلي وې تا له | او معافي ئې غوښتې وې د الله نه | او معافي غوښتې وې | د پاره د دوئ | رسول | نو خامخا به موندلې وؤ دوئ

تا ته راغلي وې | او د الله نه ئې بخښنه غوښتې وې | او پیغمبر دوی د پاره هم معافي غوښتې وې | نو یقینا

اللّٰهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا ۝

الله | توبه قبلونکې | رحم کونکې | نه

الله به ئې ښنونکې مهربانه موندلې وې |

**آسان ترجمه قرآن:** اې پیغمبره! آیا تا هغه خلقو ته نه دي کتلي چه هغوی دا دعویٰ کوی چه دوی په هغه کتاب باندې ایمان راوړې دې کوم چه تا باندې نازل شوې دې او په هغه کتاب باندې چه ستا نه مخکښې نازل شوې دې (لیکن) ددوی حالت دادې چه دوی خپله مقدمه فیصلې د پاره طاغوت ته اوړي؟ حال دا چه دوی ته ددې حکم شوې دې چه هغهٔ نه صفا انکار وکړي او شیطان دا غواړي چه دوی لره واړوي او د ګمراهۍ په آخری درجه کښې ئې مبتلا کړي او کله چه دوی ته ووئیلې شي چه راشئ هغه حکم طرف ته چه الله رالیږلې دې او راشئ رسول طرف ته نو ته به دغه منافقانو لره ګورې چه ستا نه په پوره توګه آوړي بیا به هغه وخت ددوی څه حال وي چه کله دوی ته دخپلو لاسونو په وجه څه مصیبت ورسي؟ هغه وخت به دوی تا ته راځي قسمونه به خوری چه ځمونږ اراده د ښیګړې او اصلاح نه سوا نور څه نه وه داهغه خلق دي چه الله ددوی د زړه په خبرو ښه پوهیږي نو ته دوی نه مخ واړوه او دوی ته نصیحت وکړه او دوی ته پخپله ددوی په باره کښې داسې خبره وایه چه کومه زړه کښې پریوتو والاوي او مونږ یو رسول د دې نه سوا بل مقصد دپاره نه دې لیږلې چه د الله په حکم باندې دهغه تابعداري وشي او چه کله دي خلقو په خپلو ځانونو ظلم کړې وو که دوی هغه وخت تا څخه راغلې وې او د الله نه ئې بخښنه غوښتې وه او پیغمبر هم دوی لره د بخښنې دعا کړې وه نو دوی به الله ډیر معاف کوونکې ډیر مهربان موندلې وو.

## خلاصه تفسير

[انې محمد ﷺ] ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ ﴾ آیا تاسو دغه خلق نه دی کتلی چه [په ژبه خو] دعوے کوی چه هغوی [یعنی مونږ] په دې کتاب هم ایمان لرو چه په تاسو نازل شوې دے [یعنی په قران کریم] ﴿ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ ﴾ اوپه هغه کتاب هم چه تاسونه مخکښې نازل کړې شوې دے [یعنی په تورات ځکه چه په دې کښې دمنافقانو بیان دې او اکثر منافقان دیهودوڅخه وو.مطلب دا چه په ژبه دعوی کوی چه څنګه تورات منو دغه شان قرآن کریم هم منو یعنی داسلام دعویدار دی او سره ددې حالت ئې دادې چه] ﴿ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ ﴾ خپله مقدمه دشیطان خواته اړول غواړی [ولے چه دشرعے نه بل خوا د مقدمے اړولو شیطان خودنه کوی نوپه دې عمل کول داسې شولکه چه شیطان ته مقدمه یو سی] ﴿وَقَدْ أُمِرُوا أَن يَكْفُرُوا بِهِ ﴾ حالانکه ددې نه دوه منع کوونکې خبرے موجودے دی یو دا چه] دوی ته [دشریعت له طرفه] دا حکم شوې دې چه دغه [شیطان] نه مننی [یعنی په اعتقاد او عمل دواړو سره دے دده مخالفت کوی]﴿ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ﴾ او [بل منع کوونکې دا چه] شیطان [ددوی داسے دښمن او بدغوښتوونکې دې چه] دوی لره [دحق دلارې نه] په اړولو سره ډیر لرے بوتلل غواړی [پس سره ددې دواړو خبرو ددې تقاضے چه د شیطان په وینا دے عمل نه کوی بیا هم دوی د هغه خبره منی].

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَا أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ﴾اوکله چه ورته اووئیلې شی چه راځئ هغه حکم طرف ته چه الله ﷻ نازل کړې دې او [راځئ] درسول الله ﷺ طرف ته [چه ددغې حکم په جوړ فیصله اوکړی] ﴿ رَأَيْتَ الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودًا ﴾ نوتاسو به [دغه وخت] دمنافقانو دا حالت اوګورئی چه تاسو [ته دراتلو] نه به مخ اړوی ﴿فَكَيْفَ إِذَا أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ﴾ بیا به څه پرے تیریږی چه کله پرے څه مصیبت پریوځی ددوی دهغې کړو دکبله چه [ددې مصیبت په

پریوتلو نه ئے] وړاندې کړي وو [مراد د حرکت نه شریعت پرېښودول اومقدمه بل خواه اوړل دي اوپښ مصیبت پرېوتونه مطلب خو قتل، خیانت او ددوی منافقي ښکاره کېدل اودهغې حساب کتاب ورسره کېدل دي یعني په دغه وخت کښې بیا سوچ کوي چه مخ روښې کېدلو دپاره دے له څه پرتوګ جوړولو په کوشش کښې شي] بیا [چه څه پرتوګ ورله جوړ کړي نو] ﴿ ثُمَّ جَآءُوكَ يَحْلِفُونَ ۖ بِاللَّهِ﴾ ستاسو خواته راځي په الله ﷻ قسمونه خوري چه [دشریعت نه بل طرف ته په وتلو کښې] ﴿ إِنْ أَرَدْنَآ إِلَّآ إِحْسَانًا وَتَوْفِيقًا ﴾ زمونږ بل څه مقصود نه وو سوا ددې نه چه [دمعاملې د دواړو فریقو] څه ښېګړه اوشي [او ددوی دواړو ترمینځه] جوړښت [اوغه جوړه] راشي [مطلب دا چه قانون یواځې شریعت ګڼړو خو بل ځائې په دې غرض تلي وو چه قانوني فیصله کښې حاکم دچا څه مخ ملاظه او رعایت نشي کولې او خپل مینځ کښې فیصله اکثر داسے کېدیشي چه د چا لحاظ اورعایت په کښې راشي. دقتل په قیصه کښې پرتوګ جوړول داسې وو چه هغه مقتول بےګناه ثابت کړې شي اوحضرت عمر ﷺ دغه مجرم ثابت کړې شي خوالله ﷻ دا پرتوګ جوړول داشان په دروغه بولي].

﴿أُولَٰٓئِكَ الَّذِينَ يَعْلَمُ اللَّهُ مَا فِي قُلُوبِهِمْ﴾ دا هغه خلق دي چه الله ﷻ ته معلوم دي څه [منافقت] او کفر [چه ددوی] په زړونو کښې دے [یعني دا خلق دمنافقت کفر اوددې دوجې بل ځائې ته ځي چه شرعي حکم ئے خوښ نه دې اوپه ټاکلې وخت به ددې سزا هم بیا مومي] ﴿ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ ﴾ نو [اوس خیر هغه په دې کښې څه چه] تاسو [دالله ﷻ علم اودهغه ګرفت ته خبره اوسپارئ] په دوی باندې ځان ناغرضه لرئ [یعني تاسو ګرفت مه کوئ] ﴿ وَعِظْهُمْ وَقُل لَّهُمْ فِي أَنفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا ﴾ او [صرف دخپلې پیغمبرئ تقاضا په دې ډول پوره کوئ چه] دوی ته په مخه نصیحت کوئ [اوورته فرمائي چه دغه حرکتونه پرېږدئ] او دوی ته خاص ددوی د ذات [ښېګړې] په غرض پوره مضمون بیانوئ [چه دځان خلاصولو اوتیښتے څه روئے هم پاتې نشي].

﴿ وَمَا أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ او مونږ ټول پغمبران خاص دے دپاره لیږلي دي چه دالله ﷻ په حکم [چه درسولانو د تابعدارئ په باره کښې داسې کړې دې چه] ددوی تابعداري دےاوکړې شي [نو په دوی خو اول د سره تابعداري کول دپیغمبر ﷺ واجب وو] ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوٓا أَنفُسَهُمْ ﴾ اوکه څه وخت [دبدبختئ له وجې څه بےقوفي تړې کېدلې او ددغې ګناه کولو په وجه] خپل څه نقصان ئے کولې [بیا] ﴿ جَآءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ ﴾ دغه وخت [ښېمانه کېدلې او] ستاسو په خدمت کښې [په دې غرض] حاضرېدلې چه دالله ﷻ نه یئ [دخپلې دغے ګناه] معافي غوښتلے ﴿ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ ﴾ اورسول الله ﷺ [یعني تاسو هم] ددوی دپاره معافي غوښتلے ﴿ لَوَجَدُوا اللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴾ نوخامخا به یئ الله ﷻ توبه قبلوونکے او رحمت کوونکې بیا موندلے. [یعني الله ﷻ به یئ په خپل رحمت سره توبه قبوله کړې وے].

## معارف اومسائل

**دآئتونو نزول:** په رومبو آیتونو کښې داحکم وو چه دالله تعالی اودرسول الله ﷺ حکمونو ته دپه ټولو معاملاتو کښې ماتې اورجوع اوکړې شي اوس په دې آیتونو کښې ددې خبرې بدې بیان کړې شویده چه خلاف شریعت قوانینوته ماتې اوکړې شي.

**دآیتونوشان نزول:** دا آیتونه دیوې خاصې واقعې په موقعه نازل شویدی هغه داسې چه یو یهودی سره دبشر نومې منافق څه جګړه پیښه شوه، یهودی داغوښتل چه ددې فیصله درسول الله ﷺ اوکړی اوبشر منافق ددې په ځائې داغوښتل چه کعب ابنِ اشرف [یهودی] ته دا فیصله کول یوړل شی- داځومره دتعجب اوحیرانتیا خبره وه چه یهودی خودخپل یهودی سردار [کعب بن اشرف] په ځائې رسول الله ﷺ ته خپله مقدمه راوړل غوښتل اوتش په نوم مسلمان [بشر منافق] دامقدمه کعب بن اشرف یهودې ته اوړل غوښتل، وجه ئې داوه چه بشر منافق پړ وواودغه یهودی په دغه مقدمه کښې وړ و اوددواړو یقین ووچه رسول الله ﷺ به صحیح فیصله کوی اودهیچاڅه رعایت به نۀ کوی-

آخر، مقدمه هم رسول الله ﷺ ته وړاندې شوه، هغوئ دحقیقت مطابق فیصله دیهودی په حق کښې اوکړه، دبشر منافق خیال داووچه حضرت عمر ؓ دکفاروپه باره کښې ډیرسخت دی نوهغه به دیهودی خلاف زما په حق کښې فیصله اوکړی، ځکه ئې دغه یهودی په دې خبره راضی کړو چه هم دغه مقدمه دسردوباره حضرت عمر ؓ ته وړاندې کړې شی-

چه هلته ورغلل نو یهودی، درسول الله ﷺ په کړې فیصله باندې حضرت عمر ؓ لره خبرورکړوچه بشر ئې هم اقرار اوکړو، حضرت عمر ؓ اوفرمائیل لږشان صبر اوکړئ زۀ او س ددې فیصله کوم، کورته ئې تشریف یوړو، توره ئې راواغسته اودمنافق سرئې پرقلم کړو اووې فرمائیل چه څوک درسول الله ﷺ په فیصله راضی نۀ وی نو دهغه فیصله هم داسې کیدې شی-[روح المعانی کښې داواقعه دحضرت ثعلبی اوابن ابی حاتم په روایت دحضرت عبدالله بن عباس ؓ نه منقول ده]([1])-

اوعامومفسرینو ؒ داهم لیکلی دی چه بیادَدغه وژلی شوی منافق وارثانودحضرت عمر ؓ په خلاف دادعوی هم اوکړه چه هغه یومسلمان لره بغیردڅه شرعی دلیل نه وژلې دې اودوژلې شوی منافق دمسلمان ثابتولودپاره دهغهٔ دکفری خبرواوعملونو [کارونو] تاویلونه ئې رابرسیرهٔ کړه اوهغه دپاره ئې پرتوګونه جوړول شروع کړل- خوپدې آیت سره الله تعالی دمعاملې اصل حقیقت داسې ښکاره کړوچه وژلې شوې سړې منافق وواوحضرت عمر ؓ ئې بری کړو-

په دې سلسله کښې نورداسې واقعات هم منقول دی چه څنې خلقوشرعی فیصله پرېښوده اود جوګیانواونجومیانوفیصله ئې قبوله کړې وه، په دې وجه کیدې شی چه داآیت ددې ټولو واقعاتوپه باره کښې نازل شوې وی]-

اوس دآیت په تفسیر باندې خان پوهـ کړئ- په رومبی آیت کښې داسې ارشاددې چه، هغه سړی ته اوګورئ چه دعوی ئې داسې کوله چه ماپه رومبی کتابونوتورات اوانجیل هم ایمان راوړې وواوپه تاسو باندې نازل شوی کتاب [قرآن کریم] باندې هم ایمان لرم یعنې اول په اهلِ کتابو کښې شامل وم او بیاپه مسلمانانو کښې داخل شوم، خوپهٔ مسلمانانو کښې ددهٔ داخلیدو دعوی غلطه ځکه ده چه زړهٔ ئې دکفرنه ډک ځکه دې چه دجګړې په وخت ئې رسول الله ﷺ پرېښودلو اوداتجویزئې وړاندې کړې ووچه دامقدمه ددیهودیانوسردار کعب بن اشرف ته یوړلې شی اوهر کله چه بیاهم رسول الله ﷺ ددغې مقدمې په حقه اوداګیزه فیصله اوکړه نو په هغه اوخوښ نۀ وو-

---

[1]) روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۶۷

دَطاغوت لفظ ،لغوی معنی سرکشی کوونکې دې اوپه عُرف کښې شیطان ته طاغُوت ونیلې شی-په دې موقع کعب بن اشرف ته مقدمه اوړل شیطان ته اوړل په دې اعتبارسره اوبللې شوچه یاخوپخپله کعب بن اشرف شیطان وو ،یاپه دې لحاظ شیطان ته اوړل ورته اونیلې شوچه شرعی فیصله پرېښودل اوبل خوامقدمه اوړل دَشیطان تعلیم کیدې شی خکه داسې کول گویاکښې شیطان ته فیصله اوړل شوهم په دې بناء دَآیت په آخرکښې داهدایت اوکړې شوچه څوک دَشیطان تابعداری کوی نوهغه به یې په ډیرلرې گمراهۍ کښې رانښکیل کړی-

په دویم آیت کښې دااوښودلې شوچه هرکله څه جګړې خپل منځ کښې راپیښې شی نودَرسول الله ﷺ دَشرعی فیصلې نه مخ اړول دَیومُسلمان کارنشی کیدې،داسې کارکوونکې،صرف مُنافق کیدې شی،په دې شان هرکله چه دَدغه منافق کُفرپه ډاګه ښکاره شوچه دَرسول الله ﷺ په فیصله راضی نهٔ شونو دهٔ لره دَحضرت عمر ﷛ وژل صحیح ثابت شو،ولې چه هغه اوس منافق پاتې نشوبلکه په ډاګه کافرشو-په دې بناء داسې ارشاداوشوچه،داخلق داسې دی چه ورته دااونیلې شی چه دَالله تعالی هغه حُکم اړخ ته راشئ کوم چه الله تعالی نازل کړې دې اودهغه دَرسول الله ﷺ اړخ ته نودغه منافقان تاسوته دَراتلونه ډډه کوی-

په دریم آیت کښې هغه باطل تاویلونه په ښکاره غلط اوبللې شوچه شرعی فیصلې لره پرېښودونکو اوغیر شرعی فیصلې اړخ ته تلونکو داسې پیش کول،چه مونږه رسول الله ﷺ په دې غرض پرې نښودوچه په ناحقه موګنړلواودَنوروفیصلې مودَدوئ په خلاف حق ګنړلې،بلکه دَخیرښیګړې اوروغې جوړې راوستوپه خاطرمودغسې کړی وو،چه ستاسود قانونی فیصله وه په هغې کښې دَ څه رعایت اومخ ملاظې کولوهیڅ ګُنجائش نشوکیدې او مونږ مقدمه دیم خکه یوړله چې د دواړو فریقو په مینځ کښې د ښیګړې یو صورت راووځی او په دواړو کښې مصالحت اوکړې شی-

داتاویلونه،دغه خلقوهغه وخت پیش کړل چه دَدوئ رازښکاره شو،خبیث توب اومنافقی نې ښکاره شوه،دَدوئ یو کَس دَحضرت عمر ﷛ په لاس اووژلې شو،یعنی هرکله چه دَدوئ دَخراب کردارپه نتیجه کښې دوئ اوشرمیدل اواووژلې شونوقسمې تاویلونه کول ئې شروع کړل،خکه الله تعالې په ډاګه اوفرمائیل چه دَدوئ داقسمونه اوپرتوګونه جوړول په دروغه دی اودوئ دااټول هرڅه دکُفر اومُنافقت په وجه کړیدی-لکه اړشاداوشوچه هرکله چه دَدوئ دَبدوکروپه وجه په دوئ څه پټ مصیبت راپریوځی مثلاً خیانت اومُنافقت ئې ښکاره شواواوشرمیدل یادَدې په نتیجه کښې اووژلې شونوهله دغه خلق قسمُونه خوړونکی تاسوته راغلل چه زمونږ مقصدستاسو د فیصلې نه بل خوا تللوکښې دانهٔ ووچه تاسومویه ناحقه ګنړلئ بلکه زمونږ مطلب دَدې نه احسان اوتوفیق وو،یعنی مونږه دَدواړوفریقوترمنځه دَښیګړې اوروغې جوړې راوستولاز لټوله-

په څلورم آیت کښې دَدې جواب داسې ورکړې شوچه الله تعالې ددوئ دَزړونودَمنافقت اوکُفر نه په ښهٔ شان سره خبرداره دې،خپلوکړودپاره دوئ په غلطه پرتوګونه جوړوی اوپه دروغه قسمونه خوری،خکه ئې عذرمهٔ قبلوئ اودَحضرت عمر ﷛ په خلاف ددعویداراودعوی خارج کړئ ولې چه دَدغه منافق کُفرپه ډاګه شوی وو-وریسې الله تعالی اوفرمائیل چه دغه مُنافقانوته هم ،تاسو دَ خیرخواهۍ په ډول نصیحت کوئ چه په زړونوئې اثرکوی،یعنی دَآخرت نه ئې ویروئ، او دَ یو مُخلص په ډول ئې اسلام ته رابلئ،یاورته دَدُنیوی سزایادګیرنه کوئ اوپوهٔ ئې کړئ چه که تاسو خپل منافقت پرې نښودوانجام به مودَبشرمُنافق پشان وی-

په پنځم آیت کښې دایوعامه ضابطه اوښولې شوه چه د رسول الله ﷺ دلیږلونه زمونږ مقصد دادې چه د الله تعالی دفرمان په جوړ د هغه فرمانبرداری اوکړې شی د هغې لازمی نتیجه به داوی چه د رسول الله ﷺ د احکامو مخالفت کوونکوسره به د د کفارو په شان معامله کولې شی په دې وجه حضرت عمر ؓ چې کوم عمل اوفیصله کړې ده هغه صحیح کار وو، ددې نه بعد بیاورته ددوی د خیر ښیګړې په غرض دا مشوره ورکړې شوې ده چه کـه دوی د باطلوتاویلونو کولواوپه دروغه د قسمونو خوړلوپه ځائې د خپل قصوراقرارکړې وې، تاسوته راغلې وې، پخپله نې هم د الله تعالی نه معافی غوښتلې اورسول الله ﷺ هم د دوی د پاره د بخښنې دعاغوښتلې وې، نو الله تعالی به نې ضرور دعاقبوله کړې وې۔

دلته د توبې قبلولو د پاره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضریدل اوبیا دوی د پاره د هغوی د بخښنې غوښتلو شرط لګول، غالباً دې د پاره ووچه دوی د هغوی د نبوت په منصب حمله کړې وه، او د هغوی د فیصلې شاته د غورځولوپه وجه نې ورته تکلیف رسولې ووچه په داشان به ورته د هغوی د اړخه د معافۍ کولوصورت هم پیداشوې وو۔

داآیت اګرچه د خاصومنافقانوپه باره کښې نازل شوې دې، لیکن د الفاظونه نې یوعامه ضابطه داسې راوځي چه څوک د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شی اوهغوی ﷺ هم هغه د پاره د بخښنې دعاغواړی نوضروربه اوبخښلې شی، داصورت په هغه وخت کښې جوړیدلې شو چه هغوی پخپله په دنیاکښې حیات وو اواوس د هغوی په روضهٔ نې اقدس باندې حاضری ورکول هم د دې په حُکم کښې دی.

دحضرت علی کرم الله وجهه نه روایت دې فرمائی چه هرکله مونږ د رسول الله ﷺ د دفن نه اوزګار شو نو هغې نه درې ورځې پس یوکلې وال راغې د روضې مبارکې په خواکښې راوغورځیدو په ژړافریاد کښې نې ددې آیت په حواله سوال اوکړو چه ستاسوپه خدمت کښې حاضر شوې یم چه تاسوراته د مغفرت اوبخښنې دعااوکړئ، په دغه موقعه چه څوک موجود وو نو هغوی د روضې اقدسې نه داجواب راتلل واوریدل چه ، ، ﴿قد غفرلك﴾ [تاته بخښنه اوکړې شوه [بحر محیط] (۱)۔

| | | | |
|---|---|---|---|
| حَتّٰى | لَا يُؤْمِنُوْنَ | وَرَبِّكَ | فَلَا |
| تر دې پورې | نشی مومنان کیدې دوی | ستا په رب د قسم وی | انه اې محمده |
| استاپه رب مې دې قسم وی چې دوی ترهغه وخته پورې ایماندارکیدې نشی | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَا يَجِدُوْا | ثُمَّ | بَيْنَهُمْ | شَجَرَ | فِيْمَا | يُحَكِّمُوْكَ |
| اونه مومی | اوبیا | په منځ ددوی کښې | چې راشی | په هغه جګړه کښې | چې فیصله کونکې کړی تا |
| ترڅوچې پخپلو جګړو کښې ستاحکم اونه منی اوبیا چې ته فیصله اوکړې نو دوی پخپلو | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَسْلِيْمًا ⑥ | وَيُسَلِّمُوْا | قَضَيْتَ | مِّمَّا | حَرَجًا | فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ |
| په منلوسره | اووې منی دوی | چې اونې کړې ته | د هغه فیصلې نه | څه تنګی | په زړونو خپلو کښې |
| زړونو کښې [د هغې فیصلې په وجه] تنګی بیانه مومی او د هغې منلو ته ښه غاړه بسته شی | | | | | |

(۱) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۱۸۱

**آسان ترجمه قرآن:** نه (اې پیغمبره!) ستا په پروردګار دې قسم وي چه دا خلق هغه وخته پورې مؤمنان نه شي کیدې ترڅوچه دوی تا لره په خپلو جګړو کښې فیصله کن ونه ګرځوي بیا چه ته څه فیصله وکړې د هغې په باره کښې دوی په خپلو زړونو کښې څه تنګي محسوس نه کړي او دې ته مکمل غاړه کیږدي.

## خلاصه تفسير

﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ بيا قسم دے ستاسو دپروردګار چه دا خلق [صرف په ژبه ایمان ښکاره کوی د الله ﷻ په نزد] به ایماندار نه وی ﴿ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ﴾ تر څو چه دا خبره نه وی چه ددوی ترمینځه به چه کومه جګړه راپیښه شی په دې کښې دا خلق تاسو ته [اوچه تاسو نه یئ نو ستاسو شریعت ته] فیصله راوړی ﴿ ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا ۝ ﴾ بيا [چه تاسو ئے تصفيه اوکړئی نو] ستاسو ددغې تصفيې نه په خپلو زړونو کښې [دانکار کولو] تنګی نه بیا پیدا کړئ او [دغه فیصله] پوره پوره [په ظاهره اوپه باطنه] اومنی.

## معارف اومسائل

**درسول الله ﷺ فيصله نه منل کفردې:** ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ﴾ په دې آيت کښې درسول الله الوئ اودمرتبې لوړ والې ښکاره کړې شواوددوئ دفرمانبرداري په ډاګه تشريح اوشوه چه نورو بيشميره قرآني آيتونوسره هم ثابته ده-دلته الله تعالى په قسم سره اوفرمائيل چه هيڅوک تر هغه وخته، مؤمن يامسلمان نشى كيدې ترڅوچه په ښه شان د رسول الله ﷺ فيصلې لره ښه په تسلئ سره اونه منى چه دهغه په زړه کښې ددې فيصلې نه څه تنګى بيانه پيدا شى-

درسول په حيث، رسول الله ﷺ ،پخپله دامت حاكم اوددوئ ترمنځه دهرې راولاړيدونکې جګړې دخلاصولوذمه واردې، ددوئ حکومت اوفيصله ئې منل په دې هيڅ قسم اړه نه لرى چه دوئ لره دڅوک حکم اوثالث جوړ کړى خوبيا مسلمانانوته ددوئ دحکم [ثالث] جوړولوښودنه ځکه کړې شوې ده چه د حکومتی حاکم په فيصله خودډيروخلقوهغسې تسلى نه وى ځنګه چه دخپل جوړ کړى حکم په فيصله ئې وى، خورسول الله ﷺ يواځې حاكم نه دې بلكه يومعصوم [ادهرقسم ګناه نه پاک] رسول هم دى، اورحمة للعالمين هم دې، دامت مشفق اومهربان پلارهم دې، ځکه داتعليم ورکړې شوچه کله هم په څه معامله يامسئله کښې اختلاف ياجګړه راولاړه شى نوددوارو فريقوفرض دادى چه رسول الله ﷺ لره حکم جوړ کړى اوهم په هغه فيصله اوکړى اوبيائې په سرسترګو منظوره هم کړى-

**په اختلافاتوکښې حکم جوړول يواځې درسول الله ﷺ په ژوندمبارک پورې مخصوص نه دى:** مفسرين حضرات ﷺ فرمائ چه دقرآن کريم په دې ارشاد باندې عمل کول يواځې درسول الله ﷺ حيات مبارک سره خصوصيت نه لرى بلکه ددوئ دوفات نه پس هم ددوئ په شريعت مطهره باندې فيصله کول پخپله هم په دوئ فيصله کول دى، په دې وجه داحکم چرته د پاتې کيدونه دې او تر قيامته پورې به جارى وى-

**يوڅوضرورى مسئلې:** ①رومبئ مسئله: داده چه هغه څوک مسلمان نه دې چه دهرې جګړې اومقدمې په باره کښې درسول الله ﷺ په فيصله تسلى نه لرى، هم دغه وجه ده چه حضرت عمر ﷺ هغه سړې اووژلوچه درسول الله ﷺ په فيصله راضى نه شو او فيصله ئې عمر فاروق ﷺ ته يوړله، هركله چه ددغه وژلى شوى وارثانو درسول الله ﷺ په عدالت کښې دادعوى اوکړه چه حضرت

عُمر رضي الله عنه به وجهې یو مُسلمان وژلې دي او دغه وخت هغوئ سمدستي اوفرمائیل ﴿ماکنت اظن ان عمر یجترء علی قتل رجل مؤمن﴾ [اما دا گمان نه کولو چه حضرت عُمر رضي الله عنه به دیو مؤمن دوژلوزړورتیا کړې وي.]

دې نه دا هم معلومه شوه چه هر کله یو اعلی حاکم ته دهغه دماتحت حاکم دفیصلې په باره کښې اپیل او کړې شي نو هغه ددخپل حاکم دطرفدارۍ په ځای دانصاف فیصله کوي خو هر کله چه دا آیت نازل شونو دا حقیقت سرگند شوچه دغه سړي دسره مؤمن نه وو۔

② **دوېمه مسئله:** تردارااوتله چه ﴿فِيمَا شَجَرَ﴾ الفاظ دا ښائي چه دا حُکم یواځې معاملاتو او حقوقو سره خصوصیت نهٔ لري، عقائد، نظریات او نورتول نظري مسائل هم په دې کښې شامل دي [بحر محیط] [1]

په دې وجه دهر مسلمان فرض دی چه خپل منځ کښې راپیښو شوؤ اختلافاتو لره ددجنګ جګړې صورت نهٔ ورکوي بلکه دواړه فریقه دد رسول الله ﷺ په حیات مُبارک کښې هغوئ ته او دوفات نه پس ئې دهغوئ شریعت نه فیصلې دپاره وړاندې کوي.

[۳] **دریمه مسئله:** دا معلومه شوه چه کوم کار درسول الله ﷺ نه قولاً یا عملاً وي دهغې په کولو سره په زړهٔ کښې تنګي محسوس کول هم دایمان دکمزورتیا نخښه ده، مثلاً په کوم صورت کښې چه شریعت په تیمم سره دمونځ کولو اجازت ورکړې دې، هلته چه دچا په دې تسلي نهٔ وي او زړهٔ پرراضي نه وي نو هغه دداخپله تقوی نهٔ ګڼړي بلکه دخپل زړهٔ رنځ دنې ګڼړي، درسول الله ﷺ نه زیات متقي هیڅوک نشي کیدې، په کوم صورت کښې چه هغوئ په ناستې دمونځ کولو اجازت ورکړې وي یائې پخپله په ناسته مُونځ کړې وي، که دچازړهٔ په دې راضي نه وي او سخت تکلیفونو پورته کولو سره په هغه صورت کښې په ولاړه مُونځ او کړي نو هغه دې پوهه شي چې دده په زړه کښې ګندګي ده ، البته که د معمولي ضرورت یا تکلیف په وخت کښې که رخصت پرېږدي او په عزیمت عمل کوي نو داسې کول درسول الله ﷺ دتعلیم په جوړ درست دی، خو مطلقًا په شرعي رُخصتونو دزړهٔ تنګوالې محسوسول څه تقوی نهٔ ده، ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي۔

﴿ان الله تعالی یحب ان یوتی رخصه کما یحب ان توتی عزائمه﴾ [2] یعنی ، څنګه چه الله تعالی په عزیمتونو باندې عمل کولو سره خوشحالیږي دغه شان په رُخصتونو باندې عمل کول هم خوښوي۔

په عامو عبادتونو، وظیفو، درود او تسبیح کښې دټولو نه بهتره طریقه هم هغه ده چه پخپله درسول الله ﷺ خپل معمول پاتې شوې وي او بیا دهغوئ نه پس په کوم چه دصحابه کرامو رضي الله عنهم عمل پاتې شوې وي، دمسلمانانو فرض دادی چه داحادیثو دمستند وروایاتو نه دغه معلوم کړي او په هغې عمل کوي۔

**یوه ډېره ضروري فائده:** دتیر شوي تفصیل نه دا خبره واضحه شوې ده چه رسول الله ﷺ یواځې دأمت اصلاح کوونکې او اخلاقي لارښودونکې نهٔ وو بلکه هغوئ یو انصاف داره حاکم هم وو، حاکم هم په دې شان وو چه دهغوئ فیصله دکُفر او ایمان معیار جوړ کړې شولکه چه دبشر منافق دواقعې نه چه ښکاره دی، په دې بناددې دواضح کولو دپاره الله تعالی د خپل پاکیزه کتاب په ګڼرو ځایونو کښې دخپلې فرمانبردارۍ دتعلیم سره سره درسول الله ﷺ فرمانبرداری هم لازمی ګرځولې ده لکه

[1] ) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۸۰
[2] ) المعجم الأوسط للطبراني رقم الحدیث: ۸۰۳۳ باب من بقیة أول اسمه میم۔

ارشاد دي ﴿أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾ [تاسو د الله تعالى او دَهغه د رسول الله ﷺ تابعداری کوئ] په بل ځاې کښې فرمائي ﴿مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ﴾ [څوک چه د رسول الله ﷺ تابعداری کوی هغه په حقيقت کښې د الله تعالى تابعداری کوی]-

په دې آيتونو که ژور نظر واچولې شي نو دَهغوئ دَحاکميت شان هم په ډير روښانه او روښانه شکل کښې تر مخې ته راځی چه دَهغې دَعملی صُورت ښکاره کولو په غرض الله تعالى ورته خپل قانون راولیږلو چې دَمقدمو فیصلې دَهغې په جوړ اوکړې شی لکه ارشاد دي: ﴿إِنَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ﴾ [مُونږه په تاسو باندې ، حق سره کتاب نازل کړو چه تاسو دَخلقو تر منځه په داسې شان فيصله اوکړئ څنګه چه درته الله تعالى اوښائ اوپرې دې پوهه کړی.

وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ اقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا مِنْ دِيَارِكُمْ

اوکه چرې مونږه | فرض کړې وې | په دوئ | چې قتل کړئ | ځانونه خپل | یا اوځئ بهر | د کورونو خپلو نه |

او که مونږ دوئ ته دا حکم ورکړې وې | چې خپل ځانونه قتل کړئ | یا د خپلو کورونو نه اوځئ | ........

مَا فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ مِنْهُمْ ۖ وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا مَا

نو نه به وو کړې دوئ داکار | سوا | دلږو کسانو | د دوئ نه | او که | دوئ | کړې وې | هغه |

نو په دوئ کښې به ډیرو کمو کسانو په دې عمل کړې وو | او که چرې دوئ په دغه نصیحت عمل کړې وې

يُوعَظُونَ بِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ وَأَشَدَّ تَثْبِيتًا ﴿٦٦﴾

چې نصیحت کیږی دوئ ته | په هغې سره | نو وو به دا کار | غوره | د دوئ د پاره | او زیات به محکم وو | په محکموالی سره

نو دا به د دوئ د پاره ډیره بهتره وه | ................ او د ایمان د مضبوطیا سبب به وو

وَإِذًا لَآتَيْنَاهُمْ مِنْ لَدُنَّا أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٦٧﴾ وَلَهَدَيْنَاهُمْ

او بیا به خامخا ورکړې وو مونږ دوئ ته | د طرفه خپل نه | اجر | لوئې | او خامخا به خودلی وه مونږ دوئ ته

او که داسې نې کړې وې نو مونږ به ورله د خپل طرفنه ډیر لوئې اجر ورکړې وو | او په سمه

صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا ﴿٦٨﴾

لاره | نیغه |

لار به مو روان کړی وو |

**آسان ترجمه قرآن:** اوکه مونږ په دوی باندې دا مقرر کړې وو چه خپل ځانونه ووژنئ یا دخپلو کورونو نه ووځئ نو په دوی کښې به د لږو کسانو نه علاوه څوک هم په دې عمل نه وو کړې او که دې خلقو په هغې باندې عمل کړې وې د کومې خبرې چه دوی ته نصیحت کولې شي نو دا به د دوی په حق کښې بهتره وه او دوی کښې به ئې ښه مضبوطوالې پیدا کړې وو او دې صورت کښې به مونږ دوی ته خپله دخپل طرف نه یقینًا لوئې اجرور کړې وو او دوی به مو ضرور بالضرور صحیح لارې ته رسولې وو.

## خلاصه تفسير

﴿ وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ اقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا مِنْ دِيَارِكُمْ ﴾ او مونږ که په خلقو دا خبره [د مقصدی احکامو په ډول] فرض کولې چه تاسو خپل ځانونه وژنئ یا دخپل وطن نه بې وطنه کیږئ ﴿ مَا

﴿ فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ مِّنْهُمْ ﴾ نو سوا د څو شميرلو خلقو [كاملو مومنانو] نه به دا حكم هيڅا په ځاي نه وو راوړے [د ے نه ثابته شوه چه په پوره شان فرمانبرداری کوونکی کم وی] ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا مَا يُوعَظُونَ بِهِ ﴾ اوكه دے [منافقانو] خلقو ته چه دڅه [درسول ﷺ د فرمانبردارئ په سترګو د قبلولو] ورته نصيحت كولې شي په هغې ئے عمل كولې ﴿ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَأَشَدَّ تَثْبِيتًا ﴾ نودوی دپاره به [په دنيا كښې دثواب دحقدارئى په وجه] ډير غوره وو او [داشان ددين دكاملولو په لحاظ به ددوی] دايمان مضبوطوونكی وو [ځكه چه تجربے سره ثابت شوی دی چه ددين په كار كولو سره پخپله د اعتقاد اويقين باطنی كيفيت ترقی كوی] ﴿ وَإِذًا لَّآتَيْنَاهُم مِّن لَّدُنَّا أَجْرًا عَظِيمًا ﴾ اوپه دې حالت كښې [كله به چه په عمل سره بهتر والے اوددين مضبوطتيا حاصليدے نو] په آخرت كښې به مونږ دوی ته خاص دخپلې خوانه لوئې اجر وركولې ﴿ وَلَهَدَيْنَاهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴾ اومونږ به دوی ته [دجنت] سمه لار خودلې [چه ئے د څه منع نه به جنت ته ننوتل چه دلوئې اجر ملايدو مقام دې].

## معارف اومسائل

**شان نزول:** ﴿ وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ اقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ ﴾ :: دكومې واقعې په بناچه داآيت اودَدې نه وړاندې آيتونه نازل شوهغه دَبشريهودی منافق معامله وه، چاچه دَخپلې جګړې فيصله كولودپاره اول دكعب بن اشرف يهودی تجويزاوكړو، بيادَمجبورئ دَوجهې نه ئې دَرسول الله ﷺ خواته مقدمه وړل منظور كړل، هركله چه دَهغوئ فيصله دَهغه په خلاف وه، ځكه پرِ راضی نشو، بيادَفيصلې دَپاره حضرت عمر ﷺ ته أورسيدو كله چه مدينه منوره كښې داخبره مشهوره شوه نويهوديانو، مُسلمانانوته داپيغورور كول شروع كړوچه تاسوځنګه خلق يئ چه څوک پيغمبرمنئ، دَهغه دَتابعدارئ دعوی كوئ خوفيصلې نې نهٔ منئ؟ يهوديانوته داحُكم ووچه ستاسودګناه توبه داده چه خپل ځانونه اووژنئ مونږه هغه هم اومنلوتردې چه مونږاويازره كسان اووژلې شونوكه تاسوته هم داسې حكم دركړې شوې وې نوڅه به موكول؟ په دې باندې داآيت نازل شو-

﴿ وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ ﴾ يعنی كه دې منافقانويا عاموخلقو [كافرانواومؤمنانو] ته دَبنی اسرائيلو پشان څه سخت حكم [دَځان وژلو ياوطن پريښودو] وركړې شوې وې نو ډيروكموخلقوبه پوره كړې وې، په دې كښې هغه خلقوته سخت خبرداری دې چه دَخپلو جګړو فيصله دَرسول الله ﷺ يادهغوئ دشريعت نه بل خواوړی.

اودَيهوديانودَپيغورجواب هم داسې دې چه داحال دَمنافقانودې دَپخومُسلمانانونهٔ دې، ثبوت ئې دادې چه هركله داآيت نازل شونويوصحابی ﷺ اوفرمائيل چه الله تعالی په مونږ دا ازميښت نهٔ دې كړې، دَصحابی داخبره رسول الله ﷺ ته اورسيده نووې فرمائيل چه زما په أمت كښې داسې خلق هم شته چه په زړونوكښې ئې ايمان دَمضبوطوغرونونه زيات ټينګ دې، دَابن وهب بيان دې چه داكلمه دَحضرت ابی بكر ﷺ وه.

په بل آيت كښې داسې راغلی دی چه حضرت ابوبكرصديق ﷺ دَدې آيت په آوريدوداسې اووئيل چه كه داحُكم نازل شوې وې نوقسم په خدائې چه دَټولونه اول به م خپل ځان اودخپل كورټول خلق په دې قربان كړی وو-

په ځینې روایتونو کښې راغلي دي چه دا دې آیت په نازلید ،رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه که دخپل خان وژلو یا دخپل وطن پریښودو دا حکم دالله تعالی دا ړخ نه راغلي وې نو ابن أم عبد ،یعنی حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ به ضرور په دې عمل کولو ،او دوطن دپریښودلو په حکم خو صحابه کرامو ﷡ عمل کول دنیاته اوښودل ،خپل وطن مکه مکرمه ،خپل ټول جائیدادونه او تجارتونه ئې پریښول او مدینه طیبې ته ئې هجرت اوکړو ،په آخر دآیت کښې ئې اوفرمائیل چه دا کار اګرچه مشکل دې لیکن که زمونږ دفرمان په جوړني هغوئ اومنی نو ددې انجام به ورد پاره ډیر غوره وی او داعمل به ئې ایمان لره نور هم مضبوط کړی او په دې به ورته مونږ لوئې ثواب ورکړو او په سمه لاره ئې روان کړو۔

وروستي په آخری آیت کښې دالله تعالی او دهغه درسول الله ﷺ داطاعت او فرمانبرداری کوونکو دلو یو درجو بیان دې چه پکښې ورته دا زیرې ورکړې شویدې چه داخلق به جنت کښې انبیاؤ ، صدیقانو ،شهیدانو او صالحینو سره وی۔

ددې آیت دنازلیدو دخاص واقعې تفصیل ،په دې آیت کښې ، دانبیاؤ ، صدیقانو شهیدانو او صالحانو دخلورو ذکر شوؤ درجو تشریح او په جنت کښې دوئ سره دیوځائې کیدو تفسیر انشاء الله تعالی وړاندې رارواں دې۔

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ | وَالرَّسُوْلَ | فَاُولٰٓئِكَ | مَعَ الَّذِيْنَ |
| اوخوك چې حكمونه منی دالله | اود رسول | نودغه كسان به | دهغوكسانو سره وی |

| |
|---|
| اوخوک چې د الله او دهغه درسول حکم اومنی انو هغوئ به دهغې خلقو سره وی |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنْعَمَ اللّٰهُ | عَلَيْهِمْ | مِّنَ النَّبِيّٖنَ | وَالصِّدِّيْقِيْنَ | وَالشُّهَدَآءِ |
| چې انعام کړې دې الله | په هغوئ باندې | یعنی دپیغمبرانو سره | او دصدیقانو سره | اودشهیدانو سره |

| |
|---|
| په چا چه الله ﷻ نعمتونه کړی دی چې پیغمبران دی ، صدیقان دی ، شهیدان دی |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ | وَحَسُنَ | اُولٰٓئِكَ | رَفِيْقًا ۞ | ذٰلِكَ الْفَضْلُ | مِنَ اللّٰهِ ؕ |
| او د نیکانو سره | او ښۀ دی | دا کسان | دپاره دملګرتیا | دا حقیقی فضل دې | دطرفه دالله نه |

| |
|---|
| اونیکان دی اودغه کسان ډیر ښۀ ملګری دی ...........دا هغه فضل دې چې دالله ﷻ دطرفنه کیږی |

| | |
|---|---|
| وَكَفٰى | بِاللّٰهِ عَلِيْمًا ۞ |
| او کافی دې | علم دالله |

| |
|---|
| اوددې په حقیقت صرف دالله علم کافی دې |

**آسان ترجمه قرآن:** او کوم خلق چه د الله او د رسول تابعداري کوي نو دوی به دهغه خلقو سره وي چه په هغوي الله انعام کړي دي یعني انبیاء ، صدیقین ، شهداء ، او صالحین او دوی څومره ښه ملګري دي! دا فضیلت د الله د طرف نه ملاویږي او (د خلقو د حالاتو نه) پوره خبریدو د پاره الله کافي دې.

**خلاصه تفسیر**

﴿ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ ﴾ اوخوك چه [په ضروری حکمونو کښې هم] دالله ﷻ او دهغه درسول ﷺ فرمان منی [اګر چه په ډیرو فرمانبردار سره هغه کمال حاصل نه کړې شی] ﴿ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ

أَنْعَمَ اللهُ عَلَيْهِمْ ﴾ نو داسې کسان به هم [په جنت کښې] هغه حضراتو سره وی په چا چه الله ﷻ [کامل] انعام [ددین د نزدیکت اودقبلولو] فرمائیلے دے ﴿ مِّنَ النَّبِيِّنَ وَالصِّدِّيقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ﴾ یعنی نبیان ؑ او صدیقین [چه د نبیانو په امتیانوکښې دټولونه دزیاتې مرتبې خاوندان وی چه باطنی کمال په کښې هم وی اوپه عرف کښې ورته اولیاء وئیلې شی] او شهیدانو [چه ددین په مینه کښې ئې خپل ځانونه قربان کړل] اوصالحانو [لره چه دشریعت پوره تابعدار وی واجبات هم ادا کوی اومستحبات هم او ورته نیك بختان دینداران وئیلې شی] ﴿ وَحَسُنَ أُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ﴾ اودا حضرات [چه دچا ملګری وی] ډیر ښه ملګری دی [اود فرمانبردارو خلقو ورسره ملګرتیا ثابته ده نو حاصل داشو چه د فرمانبردارئ په نتیجه کښې ورته داسې ملګری ملاو شو] ﴿ ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللهِ ﴾ دا [یو ځائیوالئ او ملګرتیا ددې حضراتو خالص] فضل دے دالله ﷻ له طرفه [یعنی دعمل اجر ئې نه دې ځکه چه په دې عمل دوی دغه درجې ته نشو رسیدلے نوځکه دا د انعام په ډول شو] ﴿ وَكَفٰى بِاللهِ عَلِيْمًا ﴾ اوالله ﷻ کافی علم لروونکې دې [چه هر یو عمل دهغې مقتضا اود مقتضا نه زیات دمناسب انعام مقدار ښه پیژنی ځکه چه دے انعام کښې به هم فرق وی ځوك صاحبان خوبه ورسره بیا بیا نزدیکت لری او ځوك به ورسره کله کله اوداشان نورے درجې د نزدیکت هم شته [والله اعلم].

**د آیتونو تړون**:: پورته د الله ﷻ او درسول ﷺ په اطاعت باندې خاص مخاطبینو ته د اجر عظیم وعده وه. اوس دې آیتونو کښې په طور د قاعده کلیه دالله ﷻ اود هغه رسول ﷺ په اطاعت باندې د عامې وعدې ذکر دې.

## معارف اومسائل

**دجنت درجې به دعملونوپه لحاظ سره وي**.-ځوک چه په دې ټولوځیزونوعمل کوی چه دکولوحُکم ئې الله تعالی اودهغه رسول ورکړې دې، دهغه ځیزونونه ځان اوساتی چه دکولونه الله تعالی اودهغه رسول ﷺ منع فرمائیلې ده، نودعمل په اعتبارسره ددوئ مختلفې درجې وی، داولې درجې خلقوته به الله تعالی، انبیاؤ ؑ سره دجنت په لوړومقاماتوکښې ځائې ورکړی اود نورو درجو خلقوته به دهغوئ مناسب ځایونه هغه حضراتوسره ورکوی چه دانبیاؤ ؑ په ښکته مرتبه کښې دی چه ورته صدیقین وئیلې شی، یعنی هغه اولوالعزم صحابه کرام چه داول نه ئې اسلام قبول کړو، هیڅ ویره ترهه اودچادمخالفت پرواه ئې اونه لرله لکه ابی بکر ؓ بیا ددریمې درجې خلق به شهیدانوسره وی، داهغه خلق دی چه دالله تعالی په لارکښې ئې خپل ټول هرڅه یعنی سرومال قربان کړو، بیادڅلورمې درجې خلق به صالحانوسره وی کوم چه په ظاهری اوباطنی شان سره دنیکوعملونوپابندی کوی.

خُلاصه ئې داشوه چه دالله تعالی اودهغه درسول ﷺ مکمل فرمانبرداره خلق به هغه حضراتوسره وی چه دالله تعالی په نزدد ټولونه زیات عزتمند اومقبول دی اوڅلور قسمه درجې لری یعنی انبیاء، صدیقان، شهیدان، اوصالحان

**شان نزول**:: داآیت دیوې خاصې واقعې په بناءنازل شوې دې چه دتفسیر امام، حافظ ابن کثیر په ګنړد اسنادونوسره نقل کړیده-

هغه واقعه دحضرت عائشې په روایت داسې ده چه یوه ورځ یو صحابی ﷛ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه زړهٔ م ستاسو د مینې نه داسې ډک دې چه د خپل خان نهٔ م هم درسره مینه زیاته ده، دخپلې بی بی او اولادنه هم درسره زیاته مینه لرم، کله خوزهٔ په خپل کور کښې هم ډیر زیات بې آرامه شم خو تسلی او آرام هله بیا پیدا کوم چه ستاسو په خدمت کښې حاضر شم او ستاسو زیارت اوکړم-اوس راسره دا فکر مل شوې دې چه په آخرت کښې به تاسو د جنت په لوړو درجو کښې پیغمبرانو ﷺ سره یئ، خو اول راته خپل خان نهٔ دې معلوم چه جنت ته به لاړ شم او که نهٔ؟ او که اورسیږم نو درجه به م تاسو نه ډیره زیاته کمه وی، که هلته م ستاسو زیارت نصیب نشی نو زهٔ خو به ډیر بې آرامه یم، تسلی به م څنګه اوشی؟

رسول الله ﷺ دغه وخت د دې هیڅ جواب ورنکړو، روستو بیا آیت شریف نازل شو ﴿وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ﴾[1] او هم د دې په بنیاد ورته رسول الله ﷺ زیرې ورکړو چه فرمانبردارو خلقو ته به په جنت کښې انبیاؤ ﷺ، صدیقانو، شهیدانو او صالحانو سره دملاقات موقعه په مخه په لاس ورځی اګرچه د درجو د لوړوالی او کموالی فرق به هم ترمنځه وی-

**په جنت کښې دملاقات څو صورتونه:** ① یو صورت د ملاقات دا دې چه د خپل خپل ځائې نه به هرجنتی بل لره لیدلې شی لکه چه د مؤطا امام مالک ﷫ په روایت د ابی سعید خدری ﷛ نه د رسول الله ﷺ دا فرمان منقول دې چه هغوئ اوفرمائیل، جنتیان به د خپلو خپلو کړکیو نه د لوړو مرتبو جنتیان داسې وینی لکه چه تاسو د نیا کښې ستوری وینئ[2]-

② بل صورت به ئې داوی چه د ټیټې درجې خاوندان به د بلې درجې خاوندانو ته ملاقات دپاره ورځی داسې هم کیدې شی چه د کوځې [کښته] درجې خاوندان به د لوړې درجې د خاوندانو ډیرو ته ورځی لکه څنګه چه رسول الله ﷺ د دې آیت په بِنا، ډیرو خلقو ته په جنت کښې هغوی سره د اوسیدو زیرې ورکړې دې[3]-

③ او داسې هم کیدې شی چه د لوړې درجې خاوندان به د کوزې [کښته] او لاندې درجې خاوندانو ته ملاقات دپاره ورځی څنګه چه ابن جریر ﷫ د ربیع په روایت د دې آیت په تفسیر کښې د رسو ل الله ﷺ نه نقل کړیدی-

په صحیح مسلم کښې راغلی دی چه حضرت کعب بن[4] اسلمی ﷛ رسول الله ﷺ دپاره د اودس اوبه، مسواک وغیره، ضروریات راوړل، هغوئ په دې خوشحاله شو او ورته ئې اوفرمائیل چه غواړه، څهٔ غواړې؟ کعب اسلمی ﷛ عرض اوکړو چه زهٔ په جنت کښې تاسو سره ناسته پاسته کول غواړم، رسول کریم ﷺ اوفرمائیل نور څه؟ نو هغه عرض اوکړو نور هیڅ نه غواړم، په دې رسول کریم ﷺ ورته ارشاد اوفرمائیلو چې که ته زما سره جنت کښې یو ځائې کیدل غواړې

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۴۳

[2] ) مسند احمد رقم الحديث: ۱۰۷۷۰ مسند ابی سعيد الخدری رضی الله عنه۔

[3] ) تفسير الطبری تحت هٰذه الآية: ج ۸، ص ۵۳۲

[4] ) تحقیق نه معلومه شوه چه دا واقعه حضرت کعب بن اسلمی د کوم ځای ده-محمد رفیع عثمانی۔

نو، ﴿اعني علی نفسك بكثرة السجود﴾ [مقصد به هله حاصل شي چه ته زما امداد په دې شان کوه چې ډيرې ډيرې سجدې کوه، يعنی ډيرډير نفل مونځ کوه] (۱)۔

په مسند احمد کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ ته يو سړی راغلو او عرض ئې اوکړو چه اې رسول الله ﷺ ما دَ دې خبرې گواهی ورکړې ده چه الله تعالی نه سوا نور هيڅوک دَ عبادت لائق نشته او دَ دې چه تاسو دَ الله تعالی رشتينې رسول يې، اوزهٔ دَ پنځو وختو دَ مونځ هم پابند يم، زکواة هم ادا کوم، دَ رمضان روژې هم نيسم. په دې آوريدو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه څوک په دې حالت کښې مړشو هغه به انبياؤ، صديقينو، شهيدانو سره وی خو په شرط دَ دې چه دَ مور، پلار نافرمانی نهٔ کوی (۲)۔

داشان دَ ترمذی په حواله رسول الله ﷺ اوفرمائيل:

﴿التاجر الصدوق الامين مع النبيين والصديقين والشهداء﴾ (۳) [يعنی کوم سوداگر چه رشتينې امانتگر وی هغه به انبياؤ، صديقينو، او شهيدانو سره وی]

**نزديکت دپاره محبت شرط دی:** رسول الله ﷺ سره به ناسته پاسته او ملگرتيا هغه چاته حاصليږی چه ورسره مينه لری لکه په صحيح بخاری کښې په متواترو طريقو سره صحابه کرامو دَ يو لوئې جماعت نه منقول دی چه رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو چه دَ هغه چا به څه درجه وی چه يو جماعت سره مينه او تعلق لری خو عمل کښې دَ هغوی درجې ته نهٔ دی رسيدلې؟ هغوی ورته اوفرمائيل چه، ﴿المرء مع من احب﴾ (۴) [په قيامت کښې به هر څوک هغه چا سره وی چه محبت ورسره لری]

حضرت انس ﷺ فرمائيلی دی چه صحابه کرام په دُنيا کښې په هيڅ څيز [شئ] دومره نهٔ دی خوشحاله شوی څومره چه په دې حديث سره خوشحاله شويدی (۵) په کوم کښې چه دازيرې ورکړې شويدې چه رسول الله ﷺ سره محبت کوونکی به په ميدانِ محشر او جنت کښې هغوی سره وی۔

**رسول الله ﷺ سره ملگرې کيدل په رنگ او نسل هيڅ اړه نهٔ لري:** طبرانی په معجم کبير کښې دَ حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دا روايت نقل کړيدې چه يو حبشی سړې دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه اې رسول الله ﷺ تاسو مونږ نه په ښه شکل او ښکلی رنگ کښې هم ډير پورته يئ، په نبوت اورسالت کښې هم مونږ نه بالاتريئ اوس که زهٔ هم په هغه څه ايمان اولرم په کوم چه تاسو ايمان لرئ اوزهٔ هم هغه عمل کوم کوم چه تاسو کوئ نو زهٔ هم تاسو سره جنت کښې کيدې شم؟

رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه آو، ضرور، [تهٔ خپل توررنگ باندې مه ويريږه] په هغه ذات م دَ قسم وی دَ چا په قبضه کښې چه زما خان دې، په جنت کښې به توررنگی حبشيان داسې تک سپين او ښکلی شی چه دَ زرو کالو دَ مزل نه به خليږی، او څوک چه دَ [لا اله الا الله] قائل وی نو دَ هغه کاميابی او خلاصی به دَ الله تعالی په ذمه شی او څوک چه، ،سبحان الله وبحمده، وائی نو دَ هغه په عملنامه کښې به لاکهٔ څلير يشت زره نيکئې اوليکلې شی.

۱) صحيح مسلم، کتاب الصلاة، باب فضل السجود والحث عليه: ج ۱، ص ۱۹۳
۲) تفسير ابن کثير بحواله مسند احمد تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۵۵
۳) جامع الترمذی، أبواب البيوع، باب ما جاء في التجار: ج ۱، ص ۲۲۹
۴) صحيح البخاری، کتاب الأدب، باب علامة حب الله عز وجل: ج ۲، ص ۹۱۱
۵) سنن ابی داود، کتاب الأدب، اخبار الرجل الرجل بمحبته اياه: ج ۲، ص ۳۴۸

ددي په اوريدو پوسرې عرض اوکړو چه يارسول الله ﷺ هر کله چه د الله تعالى په دربار کښې د بنيگړو کولو دومره سخي توب دې نو بيا مونږه، څنګه هلاکيدې يا عذاب کښې ښکيل کيدې شو؟ هغوئ اوفرمائيل [داخبره نه ده] حقيقت دادې چه په قيامت کښې به ځني خلق دمره عملونه اونيکئې راوړي چه دغرد برداشت نه به هم زياتې وى خو هر کله چه ددې په مقابله کښې د الله تعالى نعمتونه راشي اوهغې سره ئې انداز اولګولې شى نو د انسان عمل به دهغې په مقابله کښې ختم شى مګر داچه الله تعالى ئې په خپل رحمت کښې اونغاړي-

ددغه حبشي په سوال جواب باندې دسورة دهر، داآيت نازل شو ﴿هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنسَانِ حِينٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُن شَيْئًا مَّذْكُورًا﴾ حبشي په حيرانتيا تپوس اوکړو چه يارسول الله ﷺ زماسترګې به هم هغه نعمتونه وينى کومولره چه ستاسو مبارکې سترګې به وينى؟. هغوئ ورته اوفرمائيل چه،، او،، ضرور،، په دې آوريدو نو مسلم حبشي ژړيدل شروع کړل او هم په ژړا ژړا کښې يې دغلته ساه ورکړه، رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک سره دهغه ګور کفن اوکړو(۱)-

**درجو تفصيل:** ددې آيت تفسير، شان نزول اوورسره ترلى تشريحات بيان شو، خو دزور نظر جوګه يوه خبره پاتې ده، هغه داچه دهغه کسانو څلور درجې په کوم اعتبار سره مقرر شويدى په چاچه الله تعالى انعام کړيدې او ددغې درجو ترمنځه نسبت اوفرق څه دې؟ او،آيا؛ داڅلورواړه درجې په يوکس کښې جمع کيدې شى؟

مفسرينو رحمهم الله په دې باره کښې مختلف اقوال اواورد تفصيل ليکلې دې، بعضو فرمائيلى دى چه دا څلورواړه درجې په يو کس کښې جمع کيدې هم شي اوداتول داسې صفات دى چه يو بل کښې ورننوتى دى ولې چه قرآن کريم بعضې پيغمبرانوته دصديق لقب ورکړې دې لکه دحضرت ابراهيم عليه السلام په باره کښې قرآن فرمائى ﴿إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا﴾ اوداشان دحضرت يحيى عليه السلام په باره کښې قرآن کريم فرمائيلى دى ﴿نَبِيًّا مِّنَ الصَّالِحِينَ﴾ دغه شان دحضرت عيسى عليه السلام په باره کښې فرماى ﴿وَكَهْلًا وَمِنَ الصَّالِحِينَ﴾

حاصل ئې داشو چه اګر که دمفهوم اومعنې په اعتبار سره داڅلورواړه صفتونه اودرجې بيلې بيلې دى خو داټول په يوکس کښې هم جمع کيدې شى، ددې مثال داسې واخلئ لکه مفسر، محدث، فقيه، مؤرخ اومتکلم چه بيل بيل علماء کيدې شى دغه شان داټول صفتونه په يوعالم کښې هم راجمع کيدې شى، بل مثال ئې داسې واخلئ چه ډاکټر، انجينئير، پائلټ څنګه چه بيل بيل کسان هم کيدې شى دغه شان په يوکس کښې هم داصفتونه جمع کيدې شى-

البته په عرف عام کښې قاعده داوه چه په کوم کس کښې يوصفت غالب وى نوهم په هغه نوم هغه مشهوروى په طبقاتو باندې کتابونه ليکونکى حضرات هغه لره هم په دغه کښې شميرى په دې وجه عام مفسرينو رحمهم الله فرمائيلى دى چه دصديقينو نه مراد، دلورې درجې صحابه کرام رضي الله عنهم دى، شهيدانو نه مراد داحد شهيدان دى اودصالحينو نه مراد عام نيکان مسلمانان دى-

امام راغب اصفهانى رحمه الله داڅلورواړه درجې مختلفې بللې دى، تفسير بحر محيط، روح المعانى اومظهرى کښې هم داذکرشوې دى(۲)، يعنى داچه الله تعالى په دې آيت کښې مؤمنان په څلورو قسمو کښې تقسيم کړيدى اودهريوئې اعلى اوادنى درجې مقررې کړى دى او دعامو

---

(۱) المعجم الکبير للطبرانى رقم الحديث: ۱۳۲۸۹

(۲) روح المعانى تحت هذه الآية: ج۳، ص ۱۳۲

مسلمانانو داشوق ئې راپاره ولې دې چه په دې کښې د هیڅا د درجې نه روستوپاتې نشي، علمي اوعملي خواري؛ محنت سره دې درجوته درسیدلو کوشش کوي، په دې کښې نبوت یوداسې مقام دې چه په خوارئ، محنت سره ئې څوک نشي حاصلولې، لیکن انبیاؤ ﷺ سره یوځائیکت پیامم حاصلیږي، امام راغب رحمه الله فرمائیلی دی چه په دې کښې دتولونه اوله درجه دپیغمبرانو ﷺ ده چه دقوت الهیه امدادورته حاصل دې اومثال ئې داسې دې لکه څوک چه یوڅیزلره دنزدې نه وینی، په دې وجه الله تعالی دخپل پیغمبررسول الله ﷺ په باره کښې فرمائیلی دی: ﴿أَفَتُمَارُونَهُ عَلَىٰ مَا يَرَىٰ﴾

**دصدیقینوتعریف**: دویمه درجه دصدیقینوده، داهغه خلق دی چه معرفت کښې انبیاؤ ﷺ ته نزدې وي اومثال ئې داسې دی لکه چه څوک یوڅیزدلرې نه وینی، حضرت علی کرم الله وجهه نه چاتپوس اوکروچه الله تعالی دلیدلې دې؟هغه رضی الله عنه اوفرمائیل چه زۀ دداسې یوذات عبادت نشم کولې چه لیدلې م نۀ وي، بیائې اوفرمائیل چه خلقوخوالله تعالی دسرپه سترګونۀ دې لیدلې، لیکن ددوئ زړونودایمان دحقیقتونوپه ذریعه لیدلې دې-ددې لیدلونه مراد دحضرت علی رضی الله عنه داسې قسم لیدل دی چه دهغه علمي معرفت دسترګودلیدلوپشان دې-

**دشهیدانوتعریف**: دریمه درجه دشهیدانوده داهغه خلق دی چه مقصودلره په دلیلونواوحجتونوسره پیژني، خومشاهده ئې نۀ وي، مثال ئې داسې دې لکه چه څوک یوڅیزپه آئینه [هینداره] کښې دنزدې نه ویني لکه حضرت حارثه رضی الله عنه اوفرمائیل چه راته داسې محسوس کیږي چه دخپل رب کریم عرش وینم-

﴿أن تعبد الله كأنك تراه﴾ کښې دلیدلونه هم دغه قسم لیدل مراد کیدې شي-

**دصالحینوتعریف**: څلورمه درجه دصالحینوده داهغه خلق دی چه مقصودلره دتقلیداوتابعداری کولوپه ذریعه پیژني ددې مثال داسې دې لکه څوک چه څه څیزپه آئینه [هینداره] کښې دلرې نه ویني ﴿فإن لم يكن تراه فإنه يراك﴾ کښې دلیدلونه هم دغه مراددی، دامام راغب اصفهانی ددې تحقیق حاصل دادې چه دادرجې دپروردګاردمعرفت درجې دی، خوهرکله چه دمعرفت درجې مختلفې دی، نولارې چارې ئې هم مختلفې دی.هرڅنګه چه وی دآیت مضمون صفاداسې دې چه پکښې مسلمانانو ته زیرې ورکړې شوې دې چه دالله تعالی اودهغه درسول ﷺ مکمل فرمانبرداری کوونکی به دلوړودرجوخاوندانوسره وي، الله تعالی ددامحبت زمونږدټولو نصیب کړي-آمین-

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | خُذُوا | حِذْرَكُمْ |
| اے هغه کسانو!چی ایمان مو راوړی دې | | اونسئ: | وسلې خپلې |
| ائې مومنانو تاسو خپلې وسلې خان سره اونسئ: | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَانْفِرُوا | ثُبَاتٍ | أَوِ انْفِرُوا جَمِيعًا | وَإِنَّ مِنْكُمْ | لَمَنْ | |
| بیا اوځئ: | په جدا جدا ډلو کښې | یا اوځئ: ټول په جمع | اوبیشکه بعضې په تاسو کښې | خامخاهغه څوك دی | |
| اوپه جدا جدا ډلو یا په جمع سره اوځئ:...........پـه تاسو کښې خینې داسې هم شته چې | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَيُبَطِّئَنَّ | فَإِنْ أَصَابَتْكُمْ | مُصِيبَةٌ | قَالَ | قَدْ أَنْعَمَ | اللَّهُ | |
| چی بچ کوی خان دجنګ نه | نوکه اورسیږي تاسو ته | څه مصیبت | وائی چی | فضل اوکړو | الله | |
| ادجنګ نه!خان بچ کوی!که تاسو ته څه مصیبت اورسی نو دوئ وائی چی الله ﷻ راباندې دیرلوئې فضل اوکړو | | | | | | |

عَلَيَّ إِذْ لَمْ أَكُن مَّعَهُمْ شَهِيدًا ۝ وَلَئِنْ أَصَابَكُمْ فَضْلٌ

په ما باندې | چې نه وم زه | دهغوئ سره | حاضر | اوكه چرې | اورسيږي تاسو ته | فتح

څكه چې زه ورسره موجود نه ووم |...... اوكه په تاسو باندې الله ﷻ [د فتحې يا د مال غنيمت] فضل

مِّنَ اللَّهِ لَيَقُولَنَّ كَأَن لَّمْ تَكُن بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ مَوَدَّةٌ

د الله د طرفه | نو وائي | الكه چې نه وه | په مينځ ستاسو كښې اوپه منځ دهغه كښې | څۀ دوستي

اوكړي انو داسې وائي لكيا شي چې گنې ستاسو او دهغه په مينځ كښې هڅو مينه [پيژندگلو] نه وه

يَا لَيْتَنِي كُنتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا عَظِيمًا ۝ فَلْيُقَاتِلْ

كاش چې زه | وې | دهغوئ سره | نو كامياب شوې به وم | په كاميابئ | لوئ سره | نو جنگيږي دې

كاش چې زه هم ورسره [جهاد دپاره] تلې وې | نو په لويه كاميابئ بۀ كامياب شوې وم | د الله په لار كښې

فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يَشْرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ ۚ وَمَن يُقَاتِلْ

په لاره دالله كښې | هغه كسان | چې خرڅوي | ژوند ددنيا | په آخرت باندې | او څوك چې جنگ اوكړي

هغه كسانو دپاره جهاد كول پكار دي | چې ددنيا ژوند دآخرت بدله كښې خرڅوي | اوڅوك چې

فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا ۝

په لار دالله كښې | نو كه قتل كړې شي | يا غالب شي | نو زر به | وركوؤ مونږ هغه ته | اجر لوئ

دالله ﷻ په لار كښې جهاد اوكړي | اوبيا شهيد كړې شو | ياغلبه اومومي انو مونږ به ورته ډيرلوئي اجر وركړو

**آسان ترجمه قرآن:** اې د ايمان خاوندانو! (دشمن سره دمقابلې په وخت كښې) څان سره د بچاؤ سامان ضرور ساتئ. بيا د جدا جدا دستو په شكل كښې (جهاد دپاره) اوځئ يا ټول په يو ځائې ووځئ او يقيناً په تاسو كښې به داسې ضرور وي چه (جهاد ته تلو نه) په سستئ كوي بيا كه (دجهاد په وخت كښې) په تاسو څه مصيبت راشي نو هغه به وائي چه الله په ما باندې لوئ احسان وكړو چه څه دې خلقو سره موجود نه ووم اوكه د الله د طرف نه څه فضل (يعني فتح او مال غنيمت) تاسو ته ورسي نو هغه به وائي گويا چه ستاسو او ده په مينځ كښې هيڅ څه دوستي نه وه چه كاش څه هم دې خلقو سره وې نو ډير څه به مې په لاس راغلي ووا نو دالله په لاره كښې دې هغه خلق جنگ كوي چه د دنيا ژوند د آخرت په بدله كښې خرڅ كړي او څوك چه د الله په لاره كښې وجنگيږي بيا خواه كه هغه ووژلې شي يا غالب شي (هر يو صورت كښې) هغه ته به ډير لوئي ثواب وركړو.

## خلاصه تفسير

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا خُذُوا حِذْرَكُمْ ﴾ اې د ايمان خاوندانو [د كافرانو په مقابله كښې] پخپله خپل احتياط لرئ [يعني د هغوي د چل اوكتكراو دهوكو نه هم هوښيار اوسيږئ او ورسره دجنګ كولو په وخت په وسله ډال اوتورې سره سنبال اوسئ] ﴿ فَانفِرُوا ثُبَاتٍ أَوِ انفِرُوا جَمِيعًا ۝ ﴾ بيا [ورسره جنګ كولو دپاره [بيل بيل] يا په جمع [دموقعې په مناسبت] ﴿ وَإِنَّ مِنكُمْ لَمَن لَّيُبَطِّئَنَّ ﴾ او څني ستاسو په ډله كښې [چه په كښې بعضې منافقان شامليږي] يونيم كس داسې هم شته [مراد ترې منافقان دي] چه يوخوا كيږي [يعني په جهاد كښې نه شريكيږي] ﴿ فَإِنْ أَصَابَتْكُمْ

مُّصِيبَةٌ﴾ که بیا څه حادثه درته پيښه شوه [لکه شکست وغيره] ﴿ قَالَ قَدْ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيَّ إِذْ لَمْ أَكُنْ مَّعَهُمْ شَهِيدًا ﴾ نو [په خپلو نه تلو باندې خوشحاله شي او] وائي چه بيشکه الله ﷻ په ما باندې لوئې فضل اوکړو چه زه دغه خلقو سره [په جنګ کښې] حاضر [شريک] نه شوم [ورنه په مابه هم دغه مصيبت راغلې وو].

﴿ وَلَئِنْ أَصَابَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ اللَّهِ ﴾اوکه درباندې دالله ﷻ فضل اوشي [يعني برې بيا پيدا کړې او غنيمت په لاس درشي] نو په داسې شان [خو دا غرضۍ سره] ﴿ لَيَقُولَنَّ كَأَن لَّمْ تَكُن بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ مَوَدَّةٌ ﴾ خامخا وائي چه ګويا ستاسو اودده ترمينځه دسره څه تعلق نشته ﴿ يَا لَيْتَنِي كُنتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا عَظِيمًا ﴾ [په دې خبره افسوسونه کوي چه مال ئې د ګوتو اووتلو او] وائي چه هائې څه ښه به وې چه زه هم دغه خلقو سره شريك وې [يعني په جهاد کښې] نو غټه کاميابي به راته شوې وه [چه مال دولت به مې راوړې وې او خود غرضي اوبې تعلقي ئې ددې وينا نه ښکاره ده ورنه د تعلقدارو په کاميابئ هم خلق خوشحاليږي داسې نه وي چه يواځې خپل خان دپاره افسوس او هائې غم کوي اود تعلقدارو دکاميابئ اوخوشحالئ د سره څه نوم نه اخلي الله ﷻ دداسې کس په باره کښې فرمائي چه غټه کاميابي مفته نشي حاصليدلې که څوك دا غواړي] ﴿ فَلْيُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يَشْرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ ﴾ نو داسې کس له پکار دي چه دالله ﷻ په لار کښې [يعني دالله ﷻ دکلمې سربلنده کولو په نيت چه په ايمان اواخلاقو اړه لرې يعني مسلمان وي او مخلص جوړيدو سره]دغه [کافرو] خلقو سره په جنګ شئ چه د آخرت [ړرينبودو] په بدل کښې ئې د دنيا ژوند خوښ کړې دې [يعني که دغه کس د غټې کاميابئ شوق لرې نو زړه دې سم کړې لاس پښې دې خوښوي تکليف دې تير کړې د توري نيزې مخې ته دې سينه ډال کړې بيا دې ګوري چه غټه کاميابي ورته په ګوتو ورځي اوکه نه.او مفته کاميابي موندل څه ګپ خونه دي. نو څوك چه دومره تکليف تير کړې ريښتيني کاميابي هم دهغه ده.ولې چه ددنيا کاميابي اول سپکه ده بيا کله وي اوکله نه وي.يعني چه برې بيا مومي نو وي ګني نه وي.اود آخرت کاميابي چه چاسره ئې وعده شوې وي هغه غټه هم ده اوپه هر حالت کښې هم ده ولې چه دهغې قانون دادې چه] ﴿ وَمَن يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ ﴾ څوك چې دالله ﷻ په لار کښې جنګيږي بياکه [مغلوب شي ترديې چې] اووژلې شي يا برې بيا مومي ﴿ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا ﴾مونږ به [هر حالت کښې] هغه ته [د آخرت] لوئې اجر ورکړو [چه غټه کاميابي ورته ونيل په حقه دي].

## معارف اومسائل

**ضروري فائده**[۱] : ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا خُذُوا حِذْرَكُمْ ﴾ددې آيت په ړومبئ برخه کښې دجهاد دپاره دوسلې برابرولو حکم شوې دې،په بله برخه کښې دجهاد دپاره دکام پورته کولو بيان دې،ددې نه خو يو، داخبره معلومه شوه چه ظاهري اسباب برابرول توکل سره بې سمونه نه دي ځنګه چه په ګنړو خايونو کښې داخبره صفا شويده۔

بله داخبره معلومه شوه چه دلته دوسلې برابرولو حکم خوورکړې شويدې مګرداوعده نه ده کړې شوې چه ددې په وجه به تاسو يقيناً په امن يئ، دا،دې خبرې ته اشاره ده چه اسباب برابرول دزړه دتسلئ دپاره وي،ورنه نفع،نقصان په دې څه اړه نه لرې لکه د الله تعالى ارشاددې:

﴿قُل لَّن يُصِيبَنَا إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَنَا﴾ اي نبي: تاسو او وايئ چه مونږ ته به څه تکليف نۀ رسي مګر هغه چه مونږ دپاره مقرر شوي دي.

① په دې آيت کښې خو اول دجهاد دپاره دتياري حُکم ورکړې شوې دې. ﴿فَانفِرُوا ثُبَاتٍ أَوِ انفِرُوا جَمِيعًا﴾ ثُبَات دثُبَة جمع ده، چه معنی ئې وړه ډله ده چه ورته فوجي دسته او ډله [سريه] وئيلې شي، يعني تاسو جهاد دپاره يو اځې په يو اځې مه اوځئ بلکه دوړو وړو دستو او ډلو په شکل کښې اوځئ يا په ډيره ګڼره دپوره لښکر په شکل کښې اوځئ، ولې چه يو اځې په يو اځې جهاد کولو کښې دنقصان کيدو قوي احتمال وي او دُشمن دداسې موقعې نه پوره پوره فائده پورته کوي.

دا تعليم خو مسلمانانو ته دجهاد موقعې دپاره ورکړې شوې دې ليکن په عامو حالاتو کښې هم دَ شريعت دا تعليم دې چه يو اځې سفر مۀ کوئ، چنانچه په يو حديث شريف کښې يو اځې مسافر ته يو شيطان، دوؤ ته دوه شيطانان او دريؤ ته ډله فرمائيلې شويده(١). دا شان په يو بل حديث شريف کښې ارشاد دې: ﴿خير الصحابة اربعة وخير السرايا اربع مائة وخير الجيوش اربعة الاف [رواه الطبراني بحواله مشكوة](٢) زيات غوره ملګري څلور دي او زيات غوره فوجي دسته څلورسوه دي او زيات غوره لښکر دَ څلورو زرو فوجيانو دي.

② ﴿وَإِنَّ مِنكُمْ﴾ دې آيت نه په ظاهره دا معلوميږي چه دا هم مؤمنانو ته خطاب دې حالانکه وړيسې ذکر شوي صفات دَمؤمنانو نشي کيدې ځکه علامه قرطبي فرمائيلي دي چه دې نه مُراد منافقان دي هر کله چه به هغوئ په ښکاره باندې دَمسلمانيدو دعوی کوله ځکه ورته دلته دَمؤمنانو يوه ډله وئيلې شويده(٣).

| |
|---|
| وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ |
| او آخر څه شوي دي په تاسو \| چې نۀ جنګيږئ \| په لار د الله کښې \| حال دا چه کمزوري \| |
| آخر څه وجه ده چې تاسو دالله ﷻ په لار کښې جهاد نه کوئ \| ............حالانکه هغه کمزوري |
| مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا |
| د سړو نه \| او دښځو نه \| او دماشومانو نه \| هغه کسان \| چې وائي \| اې ربه زمونږه \| راوباسې مونږ |
| سړي او ښځې او ماشومان چې هغوئ فريادونه کوي \| او وائي چې اې زمونږه ربه مونږ اوباسه |
| مِنْ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ |
| د دې کلي نه \| چې ظالمان دي \| او سيدونکي د دې \| او پيدا کړې دپاره زمونږ \| خپل طرف نه |
| د دې کلي [مکې] نه \| ځکه چه د دې خلق ظالمان دي \| او دخپل طرفنه مونږ دپاره څوک ملګري او ګرزوه |
| وَلِيًّا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا ۝ الَّذِينَ آمَنُوا |
| دوست \| او پيدا کړې دپاره زمونږ \| د طرفه خپل نه \| مددګار \| هغه کسان \| چې ايمان ئې راوړې دي |
| او دخپل طرفه مونږ دپاره څوک مددګونکي پيدا کړه \| ............ کوم خلق چې ايماندار دي |

(١) المستدرك للحاكم رقم الحديث: ٢٢٥١، حديث عبد الله بن يزيد الأنصاري رضي الله عنه.
(٢) مشكوٰة، كتاب الجهاد، باب آداب السفر: ج ٢، ص ٣٣٩
(٣) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ٥، ص ٢٧٦

| |
|---|
| يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُقَاتِلُوْنَ |
| هغوئ جنګ کوی\| په لار دالله کښې\| اوهغه کسان \| چې دکفر په لاره روان دي\| هغوئ جنګ کوی |
| هغوئ دالله ﷻ په لار کښې جهاد کوی\| ...... اوکوم چې کافران دی هغوئ د |
| فِيْ سَبِيْلِ الطَّاغُوْتِ فَقَاتِلُوْٓا اَوْلِيَآءَ الشَّيْطٰنِ ۚ اِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ |
| په لار د طاغوت کښې \| نو اوجنګیږئ\| ددوستانو دشیطان سره\| بیشکه تدبیر\| دشیطان |
| شیطان په لار کښې جنګ کوی\| نو دشیطان ملګرو سره په کلکه جنګیږئ\| بیشکه دشیطان تدبیرونه |
| كَانَ ضَعِيْفًا ۟ |
| دی کمزوری\| |
| [د الله د تدبیر په مقابله کښې] ډیر کمزوری دی \| |

**آسان ترجمه قرآن:** او(اې مسلمانانو!) تاسو سره څه جواز دې چه د الله په لاره کښې اودهغه کمزورو سړو، ښځو او ماشومانو دخاطره جنګ نه کوئ چه هغوی دا دعا کوي چه اې څمونږ پروردګاره! مونږ لره دې کلي نه وباسې چه دهغې اوسیدونکي ظلم کوي او مونږته د خپل طرف نه څوك حمایتي پیدا کړې او مونږلره د خپل طرف نه څوك مددګار پیدا کړې کومو خلقو چه ایمان راوړې دې هغوئ د الله په لاره کښې جنګ کوي، او کومو خلقو چه کفر کړې دې هغوی د طاغوت په لاره کښې جنګ کوي نو(اې مسلمانانو!) تاسود شیطان د دوستانو سره جنګ وکړئ (یاد وساتئ چه) دشیطان چلونه په حقیقت کښې کمزوري دي.

**خلاصه تفسیر**

﴿وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾او تاسو سره څه عذر دې چې جهاد نه کوئی [سره ددې چه ددې مضبوط موجب موجود دے ولے چه دا جهاد] دالله ﷻ په لار کښې [وی یعنی دالله ﷻ دکلمے سربلنده کولو دپاره وی چه بندوبست کول ئے ضروری دی] ﴿ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ ﴾ او [ددین دپورته کولو دنخښو نه دیوے خاصے نخښے ضرورت هم په مخکښې دے هغه دا چه] دکمزورو [ایماندارو] په خاطر [هم جهاد کول ضروری دی چه هغوی دکافرو د زور ظلم نه خلاص شی] په کومو [ایروسو کښې] چه څه سړی څه ښځې او څه ماشومان دی ﴿ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا ۚ وَاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا ۚ وَّاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ نَصِيْرًا ۟ ﴾ چه [دکفارو دلاسه په مخه تنګ او سخت پریشان دی او] دعا کوی چه ائې زمونږ پروردګاره مونږ لره [په څه شان] ددې آبادئی نه [یعنی دمکے نه چه زمونږ دپاره قید خانه جوړه شوې ده] بهر نه اوباسے چه اوسیدونکی ئے سخت ظالمان دی چې په مونږ ئې مصیبت مسلط کړې دې اوزمونږ دپاره دغیب نه څوك مرستیال راولیږه [چه زمونږ مرسته اوکړی او ددې ظالمانو دپنجے نه مو خلاص کړی] ﴿ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ ﴾څوك چه پاخه ایماندار دی [هغوی خو ددې احکامو په آوریدو] دالله ﷻ په لار کښې [یعنی د اسلام دغلبے موندلو په قصد] جهاد کوی ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ الطَّاغُوْتِ﴾او کوم خلق چه [ددوی په مقابله کښې] کافر دی هغوی دشیطان په لار کښې [یعنی دکفر دغلبے په قصد سره] جنګیږی [او ښکاره خبره ده چه په دې دارو کښې دالله ﷻ له طرفه امداد به ایماندارو سره وی هرکله چه ایماندارو سره دالله

ﷺ امداددې] نو [اې دايمان خاوندانو] ﴿ فَقَاتِلُوٓا أَوۡلِيَآءَ ٱلشَّيۡطَٰنِ ﴾ تاسو د شيطان ملګرو سره [يعني کفاروسره چه دالله ﷻ د امداد نه بې نصيبه دي] جهاد کوئی [اواګرچه هغوی هم د غلبې موندلو مختلف انتظامونه اوچلونه کوی ليکن] ﴿إِنَّ كَيۡدَ ٱلشَّيۡطَٰنِ كَانَ ضَعِيفًا﴾ په واقع کښې [دغه شيطاني چلونه دي چه شيطان ورته ددغه کفری انتظاماتو حکم کوی] شيطانی چل [پخپله] پرسيدلې وی [ولې چه په هغې کښې غيبی امداد نه وی اوکله دڅو ورځو غلبه کيدل ورته دڅو ورځو مهلت ورکول وی نوغيبی امداد چه مومنانو سره دے دغه چل به دهغې څه مقابله اوکړې شی]. خلاصه داشوه چې دجهاد وجه هم موجوده ده او د نصرت وعده هم نو بيا څه عذر دې ؟لهذا مکرر تاکيد اوکړې شو.

## معارف او مسائل

**دمظلوم فرياداَوريدل داسلام يوه اهمه ذمه داری ده:** ﴿وَمَا لَكُمۡ لَا تُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ په مکه مکرمه کښې دهجرت کولونه داسې مسلمانان پاتې راغلي ووچه په بدن کمزوری وواودهجرت سامان اوذريعې ئې هم نۀ لرې،اوبياکافرانوهم دهجرت کولونه بندکړی ووا وقسماقسم تکليفونه ئې ورکول مطلب ئې داووچه دغه کسان داسلام نه هم واوړی،دې کښې ځنې داسې حضرات شامل ووچه نومونه ئې په تفسيرونوکښې راغلی دی لکه حضرت عبدالله بن عباس ﷺ ددهٔ موربی بی ، سلمه بن هشام ﷺ وليدبن وليد اوابوجندل بن سهل[قرطبی][۱]-خودې حضراتوايمان هرکله چه مضبوط وو،دغه مصيبتونه اوتکليفونه ئې زغمل اوپه اسلام باندې ډيرځخت ټينګ پاتې کيدل ،البته دوئ به ددغه مصيبتونونه دخلاصی دُعاګانې،په مخه دالله تعالی نه کولې،آخرنې الله تعالی دُعاګانې قبولې کړې اومسلمانانوته ئې حُکم ورکړوچه په جهاد کولوسره،دوئ دکفارو دَ زور ظلم نه خلاص کړئ-

په دې آيت کښې ددوهغه ځيزونوبيان دې چه مؤمنانوئې دالله تعالی نه خواست کړې وو،يوداووچه مونږ دې کلی[مکې مکرمې]نه اوباسې،بله داچه زمونږ څوک مرستيال اوامدادی راته راواليږې،اوالله تعالی ددوئ دغه دواړه خواستونه په داشان منظورکړل چه بعضوته ئې دغه ځائې نه دوېستلوموقعې برابرې کړې اوځنې هم دغلته پاتې شول تردې چه مکه مکرمه فتح شوه اورسول الله ﷺ هلته،عتاب بن اسيدلره په دې کارناظم مقررکړوچه دغه مظلومان دظالمانودپنجې نه خلاص کړی-په دې آيت کښې[په صفاتکوکښې]دجنګ کولوپه ځائې قرآن کريم دالهجه اوطريقه اختيارکړه: ﴿وَمَا لَكُمۡ لَا تُقَٰتِلُونَ﴾چه پکښې دې خبرې ته اشاره ده چه په داسې حالاتوکښې جنګ اوجهادکول يوطبعي اوفطری ذمه داری ده چه نۀ پوره کول ئې ډيوشه بنده دشان نه ډيره لوې خبره ده-

**دتولومصيبتونوپه پوره علاج الله تعالی ته دُعاګوښتل دی:** په آيت﴿يَقُولُونَ رَبَّنَآ أَخۡرِجۡنَا﴾کښې دا اوښودلې شوچه دجنګ کولويوسبب دکمزورو مسلمانانو،نارينوزنانودُعاوه،داالله تعالی داسې قبوله کړه چه مسلمانانوته ئې دجهادحُکم ورکړواودهغوئ مصيبتونه ئې سمدستی ختم کړل-

**جنګونه خوهرقسم خلق کوی خودې نه دکافرانواومسلمانانومقصدونه بيل بيل وی:** ﴿ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ الخ کښې دااوښودلې شوچه مؤمنان دالله تعالی په لارکښې جنګيږی اوکافران

[۱]) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۷۹

دَشیطان په لار کښې . دې نه په ډاګه داخبره ښکاره کيږي چه دَمؤمنانو دَمنډو ترړو مقصد داوي چه په دُنیاکښې دَالله تعالی قانون جاري وي اودَهغه حکم اُوچت وي، ولې چه الله تعالی د مخلوق مالک دې اودَهغه قانون خالص په انصاف بنادي، کله چه دَانصاف حکومت قائم شي نوهله پر امن بناء کیدې شي، ولې چه په دُنیاکښې امن قائمیدودپاره داضروری دی چه دلته دَ الله تعالی قانون جاري وي، نودکامل مؤمن مقصد دَجنګ کولونه هم داوي خوپل خواته دَ کفارودا خواهش وي چه کُفرد جاري وي اوغلبه دهم دکُفروي شیطاني قوتونه ددَحکومت غړي وي چه په دُنیاکښې کُفراوشرک ښه ترقي اوکړي، هرکله چه کُفراوشرک دَشیطان لارې دی نو کافران دَشیطان په کارکښې هغه سره لاس امداد کوي-

**دَشیطان تدبیرکمزورې دې** ﴿اِنَّ کَیۡدَ الشَّیۡطٰنِ کَانَ ضَعِیۡفًا﴾ په دې آیت کښې داښودلې شوي دي چه دَشیطان تدبیرونه پرسیدلي اوکمزوري دی چه دَهغې په وجه هغوئ دَمسلمانانو هیڅ نقصان نشي کولې، لهذامسلمانانوله پکاردی چه دَشیطان دوستانو[کافرانو]سره په جنګ کولوکښې په هیڅ شان زړۀ نۀ وهی[زړۀ نه چوي] ولې چه دَدوئ مددګار الله تعالی دې اودَشیطان تدبیربه دکافرانو هیڅ پکاررانشي. لکه چه دَبدرپه جنګ کښې همداسې اوشو، په دغه موقعه دکافرانوپه وړاندې شیطان لاړې کولې دۀ کافرانوته داپوخ یقین ورکړوچه ﴿لَا غَالِبَ لَکُمُ الۡیَوۡمَ﴾ اَنن در باندې هیڅوک نشي برکیدلې اولې چه ﴿وَاِنِّیۡ جَارٌ لَّکُمۡ﴾ [زۀ ستاسو امدادی یم]زۀ به خپل ټول لښکرسره ستاسو د امداددپاره راځم-دجنګ په شروع کیدوهغه همدغسې اوکړل خپل لښکرسره دَجنګ میدان ته راغلوچه هلته ئې فرښتې اولیدې چه دَمسلمانانودَملاتړ دپاره راغلې وې نووس ئې بیانۀ موندو او مخ په شاتې منډې کړې اوخپلودوستانو[کافرانو]ته ئې اوونیل ﴿وَقَالَ اِنِّیۡ بَرِیۡٓءٌ مِّنۡکُمۡ اِنِّیۡٓ اَرٰی مَا لَا تَرَوۡنَ اِنِّیۡٓ اَخَافُ اللّٰہَ ؕ وَاللّٰہُ شَدِیۡدُ الۡعِقَابِ﴾ [زۀ تاسونه بیزاره یم، ولې چه زۀ هغه څیزوینم چه تاسوپرخبرنۀ يئ[چه هغه دَفرښتولښکردې]زۀ دَالله تعالی نه ویریږم څکه چه هغه سخت عذاب ورکوونکې دې] -[مظهری][1]

په دې آیت کښې دَشیطان تدبیرته په دې شرط کمزورې وئیلې شوي دي چه هغه دَمسلمان خلاف تدبیرکوي بل داچه دَمسلمان کارخالص دَالله تعالی دَرضادپاره وي، څه دُنیوي یاذاتي غرض ئې پکښې نۀ وي، چنانچه رومبې شرط دَ ﴿اَلَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا﴾ نۀ اوبل شرط دَ ﴿یُقَاتِلُوۡنَ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ﴾ نه معلومیږي، که په دې دواړوشر طونوکښې یوهم نه وي نوبیاداضروری نۀ ده چه دَشیطان تدبیردې دَدۀ په مقابله کښې کمزورې وي،

حضرت عبدالله بن عباس ﷺ اوفرمائیل چه، کله تاسوشیطان اووینئ نوبې دځه ویرې ترهې پرحمله کوئ، اوپه دلیل کښې ئې داآیت مبارک تلاوت کړو ﴿اِنَّ کَیۡدَ الشَّیۡطٰنِ کَانَ ضَعِیۡفًا﴾ [احکام القرآن][2]

| کَفَرُوۡٓا | لَهُمۡ | قِیۡلَ | اِلَی الَّذِیۡنَ | اَلَمۡ تَرَ |
|---|---|---|---|---|
| چې بند کړئ | | هغوئ ته | چې اوونیلې شو | هغه کسان | آیااونۀ لیدل تا |
| | | | ته هغه خلقو ته نه ګوري چي ورته وئیلې شوي وو | |

[1] ) تفسیر المظهری: ج ۲، ص ۲۴۵

[2] ) تفسیر ابن ابی حاتم رقم الحدیث: ۵۶۵۵

أَيْدِيَكُمْ وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ ۚ فَلَمَّا كُتِبَ

لاسونه خپل | اوقائموئ مونځ | او ورکوئ زکاة | نو هر کله | چې فرض کړې شو

چې خپل لاسونه (دجنګ نه) بند کړئ | اومونځ قائموئ | اوزکاة ورکوئ | نواوس چې هرکله

عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ النَّاسَ

په هغوئ باندې | جهاد | نو اوس دا حال دې چې | يوه ډله | دهغوئ نه | يريږي | دخلقو نه

هغوئ ته د جهاد حکم ورکړې شو | نو په دوی کښې ديوې ډلې دا حال دې چې د خلقونه داسې يريږي

كَخَشْيَةِ اللَّهِ أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً ۚ وَقَالُوا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا

پشان دويرې | دالله | يا | زياته يره | اووائي | اې ربه زمونږه | ولې فرض کړو تا | په مونږ

لکه څنګه چې دالله نه يره پکار ده | بلکه ددې نه هم زيات يريږي | او وائي چې اې زمونږ ربه په مونږ دې

الْقِتَالَ ۚ لَوْلَا أَخَّرْتَنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ ۗ قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا

جهاد | ولې دې روستو نۀ کړومونږه | دنيتې | نزدې پورې | ورته اووايه | سامان د ژوند ددنيا

ولې جهاد فرض کړو ولې دې مونږ ته نور مهلت رانکړو | (اې پيغمبره) ته ورته اووايه چې ددنيا ژوند

قَلِيلٌ ۚ وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقَىٰ وَلَا تُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴿٧٧﴾

لږ دې | اوآخرت | ډيربنه | دې | دپاره دهغه چا | چې يريږي | اونه به کيږي ظلم په تاسو | د تار برابر

ډيرلږ دې | اودپرهيزګارو دپاره آخرت ډيرغوره دې | ................ او په تاسو به بيخې ظلم نشي کولې

أَيْنَ مَا تَكُونُوا يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ

هرچرته چې | يئ تاسو | رالاندې به کړي تاسولره | مرګ | اګر که | يئ تاسو | په قلاګانو

(باتې شومرګ) نو چه هرځائې کښې ئې مرګ به درته ضرور راځي | اګر که په مضبوطو قلاګانو کښې

مُّشَيَّدَةٍ ۗ وَإِن تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هَٰذِهِ مِنْ عِندِ اللَّهِ ۖ وَإِن

مضبوطو کښې | اوکه اورسی دوئ ته | څه خير | نو وائي | دا دطرفه دالله نه دې | اوکه

محفوظ ئې | اوهرکله چې دوئ ته څه فائده اورسی | نو وائي چې دا د الله ﷻ دطرفه مقرر ده | اوکه

تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هَٰذِهِ مِنْ عِندِكَ ۚ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِندِ اللَّهِ ۖ

اورسی دوئ ته څه مصيبت | نووائي | دادې دطرفه ستانه | اووايه چې ټول | دطرفه دالله نه دی

دوئ ته څه نقصان اورسی | نو دوئ وائي چې دا ستادطرفه دې | ته ورته اووايه چې دا ټول هرڅه دالله دطرفه دی

فَمَالِ هَٰؤُلَاءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا ﴿٧٨﴾ مَّا أَصَابَكَ

نو څه شوی دی په دې | خلقو | چې نۀ دی نزدې دې ته | چې پوهه شي | په څه خبره | څه چه اورسيدل تاته

آخر په دوئ څه شوی دی چې په هيڅ خبره نه پوهيږي | ............ تا ته چې څه

مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللَّهِ ۖ وَمَا أَصَابَكَ مِن سَيِّئَةٍ فَمِن نَّفْسِكَ ۚ

د خير نه | نو دطرفه دالله نه دی | او څه چې اورسيدل تاته | د شر نه | نو هغه دنفس ستا نه دی

خير رسی | نو د الله ﷻ په مهربانئ دررسی | اوچې کوم نقصان دررسی | نو هغه دخپل عمل په وجه دررسی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاَرْسَلْنٰكَ | لِلنَّاسِ | رَسُوْلًا | وَكَفٰى بِاللّٰهِ | شَهِيْدًا﴿۷۹﴾ |
| اولیږلي ئې مونږ ته [اې محمده] | دپاره دخلقو | رسول | او كافي دې الله | په حیثیت دګواه |

اوانې پیغمبره ته خومونږ ټولو خلقو ته رسول لیږلي ئې او په دې خبره صرف دالله ګواهي كافي ده.

**آسان ترجمه قرآن:** آیا تا هغه خلقو لره لیدلي دي چه هغوی ته (په مكي ژوند كښې) وئیلې شوې وو چه خپل لاس بند كړئ، او مونځ قايم كړئ او زكوة وركړئ بیا چه كله په دوی جنګ فرض شو نو دوی كښې یوه ډله (د دښمن) دخلقو نه داسې ویریدل لكه چه د الله نه ویریدل بلكه تر دې . یا دې نه هم زیات په ویریدل . او داسې خلقو وئیل چه اې څمونږ پروردګاره! تا په مونږ جنګ ولې فرض كړو . ولې دې مونږ ته لږ مهلت رانكړو؟ ته ووایه چه د دنیا فایده لږه ده. او كوم یو كس چه تقوې اختیاروي هغه دپاره آخرت غوره دې او په تاسو به د تار برابر ظلم هم ونه شي تاسو چه كوم ځائ هم یئ (یوه یو ورځ) به مرګ تاسو ته ورسي خواه كه تاسو په مضبوطو قلعه كانو كښې ولې نه اوسیږئ او كه دې منافقانو ته څه خوشحالي ورسي نو دوی وائي چه دا د الله د طرف نه ده او كه دوی ته څه مصیبت ورسي نو (اې پیغمبره!) دوی (تا ته وائي) چه دا مصیبت ستا د وجې نه دې ته ووایه چه دا هر څه د الله د طرف نه دي په دې خلقو څه شوي دي چه دوی یوې خبرې پوهیدو ته نژدې كیږي هم نه؟ تا ته چه څه خوشحالي ورسي نو هغه صرف د الله د طرف نه وي او چه تا ته كوم مصیبت رسي نو دا ستا د وجې نه وي او (اې پیغمبره!) مونږ تا د خلقو دپاره رسول رالیږلي ئې او الله (د دې خبرې) ګواهي دپاره كافي دې.

**خلاصه تفسیر**

[انې مخاطبه] ﴿ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ ﴾ آیا تا هغه خلق اونه لیدل [دجهاد دحكم د نازلیدو نه مخكښې خو دجنګ كولو داسې تقاضا وه چه] ﴿ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ ﴾ دوی لره [منع كولو دپاره] داسې وئیلې شوی وو چه [اوس] خپل لاسونه [دجنګیدو نه] بند ساتئ؛ [څه حكمونه چه درته شوی دي په هغې كښې لګیا اوسئ لكه] ﴿ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ﴾ د مونځونو پابندي كوئ او زكات وركوئ [یا خو دا حالت وو اوبیا] ﴿ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ ﴾ كله چه پرې جهاد كول فرض كړې شو نو دا حال ئې شو چه په دوی كښې یو نیم كس [د مخالفو] ﴿ يَخْشَوْنَ النَّاسَ كَخَشْيَةِ اللّٰهِ اَوْ اَشَدَّ خَشْيَةً ﴾ خلقو نه [بالكل] داسې په ویره شو [چه مونږ به اووژنې] څنګه چه [څوك] دالله ﷻ نه ویریږي بلكه د دې نه هم زیات ویریدل [د زیاتو ویریدو دوه معنې كیدیشې یوه دا چه اكثر دالله ﷻ نه ویریدل وی او دښمن نه ویریدل طبعي وی او قاعده داده چه طبعي حالت د عقلي حالت نه سخت وی. بله دا چه الله ﷻ نه څنګه ویره ده هغه شان ترې د رحمت امید هم شته او كافر دښمن نه خو هم خاص د ضروری ویره وی او چونكه دا ویره طبعي وه څكه ګناه نه شوه] او [یا د جنګ دحكم دا یسار یدو په آرزو كښې ئې] ﴿ وَقَالُوْا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا الْقِتَالَ ﴾ داسې وئیل شروع كړل [په ژبه یا په زړه كښې او د الله ﷻ په علم كښې د زړه او ژبې خبرې یو برابر دی] چه ائې زمونږ پروردګاره تا د اوسه نه په مونږ جهاد ولې فرض كړو ﴿ لَوْلَآ اَخَّرْتَنَآ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ﴾ مونږ ته به دې [په خپله مهربانئ] نوره لږه موده مهلت راكړې وے [چه لږ په بې فكرئ مو خپل ضروریات پوره كړي وے او هر كله چه دا عرض كول د اعتراض یا انكار

د وحې نه وو ځکه د گناه کار نشو اوس ورپسې جواب داسې دې چه ائې محمد ﷺ ﴿ قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيلٌ ۚ ﴾ تاسو اوفرمائې چه دنيا نه فائده اخستل [چه دې دپاره د مهلت تمنا کوئې] خالص دځو ورځو دی ﴿وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقَىٰ ۖ﴾ او آخرت [چه د حاصلولو اعلى ذريعه ئې جهاد ده] په هر شان غوره دې [مگر دا] هغه چالره [دې] چه دالله ﷻ دمخالفت نه بچ شی [ځکه چه که دکفر په ډول ئې مخالفت اوکړو نو بيا هغه دپاره د آخرت سامان هيڅ قدرې هم نشته اوکه گناه ترې اوشوه نو اعلى درجې نه به ئې نصيبه شی] ﴿ وَلَا تُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴾ اوپه تاسو به لږ ظلم هم نشی کولې [يعنی ځومره عملونه چه وی دهغې به پوره پوره ثواب درکولې شی نو بيا دجهاد غونډې عمل دثواب نه ولې خالی لاس پاتې کيږئ اوکه جهاد موهم اونکړونو په ټاکلی وخت به دمرگ نه بچ شئ څه؟هيچرې نه ولې چه دا د مرگ شان دې].

﴿ أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ ۗ ﴾ که تاسو هر ځائې کښې يئ هلته به مو مرگ رالاندې کړی اگر چه پخو مضبوطو قلاگانو کښې [هم] يئ [غرض دا چه هرکله مرگ به په خپل وخت خامخا راځی اوپه مرگ به دنيا پريښودل راځی نو آخرت ته دې تش لاس ولې لاړ شئ بلکه دعقل خبره داده چه

*چند روز آ جهد کن باقی بخند*

**ترجمه:** يعنی څو ورځې کوشش اوخواری اوکړه بيا تل دپاره خانده.

﴿ وَإِن تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هَٰذِهِ مِنْ عِندِ اللَّهِ ۖ ﴾ اوکه دغې خلقو [منافقينو] باندې څه ښه حالت راشی [لکه فتح او برې] نو وائی چه دا دالله ﷻ له طرفه [پېرهيسه] ناگاهانه] اوشو [ورنه دمسلمانانو په بې انتظامئ کښې خو هډو څه کسر نه وو پاتې] ﴿وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هَٰذِهِ مِنْ عِندِكَ ۚ﴾ او که څه خراب حالت پرې راشی [لکه جهادکښې مرگ او ژوبله]نو [ائې محمد نعوذ بالله ستاسو په نسبت] وائی چه دا ستاسو [اودمسلمانانو د بې انتظامئ] په وجه اوشو [گنی په آرام به کورونو کښې ناست وو نو ولې به دې مصيبتونو کښې راگيريدو] ﴿ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِندِ اللَّهِ ۖ ﴾ تاسو اوفرمائی چه [په دې کښې خو زما هيڅ دخل نشته بلکه] ټول هر څه [ښه والئ او خرابوالئ] صرف دالله ﷻ د طرفه دې [اگر چه يو نيغ په نيغه او بل په واسطې سره دې لکه چه زر ترزره به يئ تفصيل راشی. حاصل دادې چه نعمت خو صرف دالله ﷻ په فضل سره دې دچا په عملونو اړه نه لری اونقمت يعنی مصيبت اوخرابوالې دالله ﷻ دعدل په جوړ دبندگانو دبدعملونوپه وجه دی. نو تاسو چه مصيبت زما په وجه گنړئی په واقع کښې ستاسو د بدو عملونو په نتيجه کښې وی لکه په احد کښې چه دشکست وجې بيان کړی شوی دی اودا خبره ډيره زياته ښکاره ده چه که څوك لږ شان هم ژور نظر واچوی نودې خوشحالئ نه به مخکښې يو نيك عمل هم ددې درجې بيا نه مومی بلکه دا به صرف دالله ﷻ فضل ثابت شی اود بدحالئ نه به مخکښې څه بدعمل داسې ضرور بيا مومی چه سزا به ددې نه زياته کيدله هرکله چه دا داسې ښکاره خبره ده] ﴿ فَمَالِ هَٰؤُلَاءِ الْقَوْمِ ﴾ نو په دې [ازلی بې وقوفو] خلقو څه شوی دی چه ﴿لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا﴾ د خبرې پوهيدو خواته هم نه وررسی [اوکه پوهه شی نو څه او ددغه ذکر شوی اجمال تفصيل جواب داسې دې چې] ﴿ مَّا أَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللَّهِ ۖ ﴾ ائې انسانه تاته چه څه ښه حالت راپيښيږی هغه صرف دالله ﷻ د طرفه [فضل] دې ﴿وَمَا أَصَابَكَ مِن سَيِّئَةٍ فَمِن نَّفْسِكَ ۚ﴾ اوچه څه

بدحال درباندې راشي نوهغه هم ستا [بدو عملونو] په وجه دي [نودا بدحالي دشريعت په احكامو باندې دعمل كولونتيجه بلل يا شارع ﷺ ته ددې نسبت كول پوره ناداني ده ځكه به چه منافقانو ددې نسبت جهاد يا امام الجهاد ته كولو] ﴿ وَأَرْسَلْنٰكَ لِلنَّاسِ رَسُولًا ﴾ او مونږ تاسولره ټولو خلقو ته دپيغمبر په حيث ليږلے ئې او كه[څوك منافق ياكافر انكار كوي نو په هغې سره پيغمبري كله نفي كيديشي خكه چه] ﴿ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيدًا ﴾ الله ﷻ [ستاسو دپغمبرئ] ګواه كافي دے [چه هغه په قول او فعل سره ګواهي وركړې ده قولي ګواهي خو لكه داده چې وې فرمائيل ﴿ارسلنك الخ﴾ او فعلي ګواهي ئےداده چه معجزات ئے دركړل چه ستاسو پغمبرئ ورسره ثابتيږي].

## معارف اومسائل

**شانِ نزول:** ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوا أَيْدِيَكُمْ﴾ دهجرت كولونه وړاندې به مسلمانانولره كافرانو په مكه مكرمه كښې ډيرسخت تنګول، مسلمانانوبه درسول الله ﷺ په خدمت كښې داخواست كولوچه مونږ دكفاروسره جنګ اوكړوچه دظلم بدله تر واخلو-هغوئ به مسلمانان دجنګ نه بندول اوفرمائيل به ئې چه ماته دجنګ حكم نشته دې بلكه دصبر كولواود كافرو په ظلم ددرګزر كولو حكم راته شويدې اودابه ئې هم فرمائيل چه اوس تاسو هغه حكمونه په مخه پوره كوئ چه دمونځ كولواوزكواة اداكولوپه باره كښې درته شويدې خكه چه څوپورې يوبنده دالله تعالى په تابعدارئ كښې په خپل نفس باندې دجهاد كولواوپه خپلوبدنونو باندې د تكليفونو تيرولو عادت نشي او دمال لګولوعادت هم نهٔ وي نوهغه ته جهاد كول اودخپل ځان قرباني وركول ډير ګران وي، داخبره مسلمانانوقبوله كړې وه، بيادهجرت نه پس چه مسلمانانوته دجهادحكم اوشونودوئ له خوشحاليدل خكه پكاروو چه دجهادخواست ئې قبول شو،نوځنې كچه مسلمانان ، كافرانوسره دجنګ كولونه داسې په ويره شوځنګه چه دالله تعالى دعذاب نه ويره پكاروي يادادې نه هم زيات په ويريدوشو،اوداآرزوئې لرله چه څه لږه موده نوره هم دجهادحكم نهٔ راتلې چه مونږ ژوندي وې نوښه به وه نودغه آيتونه نازل شو[روح المعاني][۱]

**چه دجهادحكم نازل شونومسلمانانوداآرزو ولې لرله چه داحكم دِاوس ايسارهكړے شي:** مسلمانانو چه دا آرزو لرله چه دجهادحكم دڅه نوروخت هم ايساركړې شي داپه حقيقت كښې څه اعتراض نهٔ وو بلكه يومزيدارشكايت داسې ووچه هركله دجهادلاسه خلقوته څه تكليف رسي نودبدلې اغستوجذبات ئې راپورته شي اوپه دغه وخت جنګ كول ورته آسان وي،خوهركله چه آرام اوراحت بيامومي نوجنګ كول ئې زړهٔ نهٔ غواړي. دايوبشري اوانساني تقاضاده.دهجرت نه وړاندې په مكه مكرمه كښې مسلمانان دكفارودلاسه ډيرتنګ وونودغه وخت ئې دجهاد آرزو او خواستو نه كول دهجرت كولونه پس هركله چه مدينه منوره كښې په آرام شواودجنګ كولوحكم ورته اوشونوآرزوئې اولرله چه دا وخت داحكم نهٔ وې شوې نوغوره به وه خكه چه ددوئ دجنګ كولوهغه زورِ جوش تقريباختم وو. لهذاددوئ دغه آرزوهم په دغې بناوه څه اعتراض كول ئې مطلب نهٔ ووچه نسبت دګناه ورته اوكړې شي-اوداصورت هم هله جوړيدې شي چه دغه آرزوئې په

---

[۱] روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج ٥، ص ٨٥

ژبه هم ښکاره کړې وي او که صرف په زړه کښې دا وسوسه پيدا شوې وي نو دَزړهٔ دَ وسوسې خو شريعت، دَسره په ګناه کښې شمير کړې نهٔ دی، هر کله چه دلته دا دواړه احتماله کيدې شي نو ﴿قالوا﴾ نه داشبه ځکه نهٔ دی کول پکار چه ګني دوئ به په ژبه دا الفاظ راوړي وي ولې چه دَدې معنی په زړهٔ کښې هم وئيل کيدې شي [بيان القرآن په لنډو] (۱)-

ځنې مفسرينو فرمائيلي دی چه دَدې آيتونو تعلق مؤمنانو سره نهٔ بلکه منافقانو سره دې په دې صورت کښې هيڅ قسم مشکل نه پيدا کيږي [تفسير کبير] (۲)

**دَملک دَاصلاح نه دخپل ځان اصلاح وړاندې ده:** ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ﴾ الله تعالی اول دَمونځ او زکواة احکام بيان کړل، چه دَخپل ځان دَاصلاح سبب دی بيا وروستو دَجهاد حُکم ئې او کړو چه دَملک دَاصلاح سبب دی مطلب دا چه دَدې په ذريعه، ملک نه زور ظُلم ختمولې شي او هله په ملک کښې امن او امان قائميدې شي-دې نه معلوميږي چه بنده لره دَخپل ځان اصلاح دَنورو چا دَاصلاح کولو نه رومبې پکار ده، چنانچه دَدرجې په لحاظ سره هم دَاول قسم اصلاح حُکم فرض عين دې او دَدويم قسم حُکم فرضِ کفايه دې په دې لحاظ دَنفس دَاصلاح ضرورت او دَدې وړاندې کيدل ښکاره دی [مظهری] (۳)

**دَدُنيا او آخرت په نعمتونو کښې فرق:** په آيت شريف کښې دَدُنيا دَنعمتونو په مقابله کښې دَآخرت نعمتونه زيات غوره ځکه بللې شوي دی چه وجوهات ئې دا دی:

① دَدُنيا نعمتونه لږ او دَآخرت نعمتونه ډير دی-
② دَدُنيا نعمتونه ختميږي او دَآخرت نعمتونه نهٔ ختميدونکی دي-
③ دَدُنيا نعمتونو سره قسما قسم پريشانئ هم وي او دَآخرت نعمتونه دَدې نه بيخی پاک دی-
④ دَدُنيا دَنعمتونو حاصليدل يقينی نهٔ دی او دَآخرت نعمتونه بـه هر متقی تـه يقينـاً ملاويږي [تفسير کبير] (۴)-

ولا خير في الدنيا لمن لم يكن له — من الله في دار المقام نصيب
فإن تعجب الدنيا رجالا فإنها — متاع قليل والزوال قريب

په دې نهٔ پائيداره دنيا کښې دا سې کَس دَپاره هيڅ خير نشته چه ورد پاره دَ الله تعالی دَاړخه په پائيداره کور [آخرت] کښې څه ځائې نه وي-

که دا دُنيا څه کسان او غواړي نو خبر دار شئ چه دا دُنيا -لږ سامان دې چه زائله کيدل [ختميدل] ئې ډير نژدې دی [يعنی مړ کيدو سره آخرت مخې ته راشی]-

**بيه مرګ ناګه واقعه:** ﴿أَيْنَ مَا تَكُونُوا يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ﴾ الخ الله تعالی دَجهاد په دې آيت سره دَجهاد نه دَايساريدونکو دا شک لرې کړو چه دَجهاد نه دَايساريدو په وجه به هغوئ خپل ځانو نه دَمرګ نه بچ نه کړې شی، چنانچه وې فرمائيل چه مرګ خواه مخواه يو وخت راتلونکې دې اګرچه تاسو په هر مقام کښې يئ، لهذا دَجهاد نه مخ اړول بيکاره دی-

---

(۱) تفصيل دپاره: بيان القرآن تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۴۵
(۲) التفسير الكبير للرازي تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۸۸
(۳) تفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۶۵
(۴) التفسير الكبير للرازي تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۸۸

حافظ ابن کثیر دَدې آیت دَ لاندې یوه عبرتناکه واقعه په روایت دَابن جریراوابن ابی حاتم ، دَ مجاهد نه داسې لیکلې ده چه په پخوانوامتونوکښې دیوې ښځې دَاولادخیږولووخت شواو ماشوم ئې لږوخت پس پیداشونوملازم [نوکرانې] دَاوررااوړلودپاره اولیږلوچه دروازې نه وتونو یو سړې مخې له ورغلوهغه دغې نوکرنه تپوس اوکړوچه دغې ښځې څوک خیږولې دی؟ملازم ورته اووئیل چه جینئ. دغه سړی ورته اووئیل چه یاد لره دغه جینئ به سلوسړوسره زناکوی،اومرګ به ئې دَیوجولاګی نه وی.نوکرچه داا واوریدل نوواپس شوسمدستی ئې چاړهٔ راواغسته اودَدغې ماشومې خیټه ئې پرِ څیرې کړه،چه دَدې دَمرکیدوخیال ئې اوکړو نودویرې نه چرته اوتښتیدو. موردَدغې ماشومې خیټه ټانکه کړه،هغه جوړه شوه اوبیاپیغله شوه،دَڅیرې په ښکلاکښې دَغلته هغې ته یوه جینئ هم نشوه رسیدې.دغه ملازم په تښتیدوسمندرارِخ ته تلې وو، هلته ئې تر ډیره وخته دنیا ګټله او بیا د واده کولو لپاره ښار ته واپس راغلو اودلته یوه بوډئی ملاؤ شوه نو هغې ته یې ذکر اوکړو چه دِې ښارکښې هغې جینئ سره وادهٔ کول غواړم چه په دې ښارکښې ئې دَښکلا ثانی نهٔ وی،دغې بوډئ ورته ددغې ښکلې جینئ نخښه پته ورکړه.هغې سره ئې وادهٔ اوشو،جینئ ترې تپوس اوکړوچه تهٔ څوک ئې اوچرته اوسیږې؟دغه نوکرورته اووئیل چه هم دَدې ښاریم،دیوې ماشومې جینئ خیټه م څیرې کړې وه،دَویرې نه تښتیدلې وم،اودغه شان ټوله قیصه ئې ورته بیان کړه.دَدې په آوریدوورته هغه جینئ اووئیل چه هغه جینئ هم زهٔ یم،په ثبوت کښې ئې ورته خیټه اوښودله چه دَڅیرې کیدونخښه پرې ښکاریده.سړی ورته اووئیل چه کهٔ تهٔ هم جینئ ئې نوستاباره کښې دوه خبرې درته ښکاره کوم،یوداچه تهٔ به سلوسړوسره زناکوې،اوبله داچه دَجولاګی نه به مرې.ښځې دَاولې خبرې اقرار اوکړوخوشمیرورته [دَزنا] یادنهٔ وو.سړی وَردَپاره یوعالیشان محل تیاکړوچه دَجولاګی دَجالې څه درک هم پکښې نشو لګیدلې.یوه ورځ دغه دواړه په هغه محل کښې ملاست وو[پراته وو]چه په دیوال یوجولاګې ښکاره شو.ښځې اووئیل چه دا جولاګی دې چې ددینه ته ماویروې؟سړی ورته اووئیل چه ،،آو،،هم دادې هغه سمدستی پاسیده اووې وئیل چه دادې اوس ئې وژنم-دَدیوال نه ئې راګوزارکړواوخپې لاندې ئې چخنړی کړو.جولاګې ختم شوخودَهغه دَزهروڅاڅکی دَښځې په خپواونوکونوپریوتل چه هم دَهغې نه بیامړه شوه[ابن کثیر]([1])-

دغه ښځه په صفاسُوتره محل کښې ناګهانه دَجولاګی دَلاسه هلاکه شوه،خوبل خواچه اوګورې نودیروسړوخپل ټول عمر په جنګونوياجهادونوکښې تیرکړې دې خوپه هغې کښې مړه نشواوپه خپل کټ پوزی [چتهائی] مړه شو.چنانچه حضرت خالدبن ولید ﷺ دَاسلام هغه مشهورسپای اوجرنیل دې چه دَ ،،سیف الله،،لقب ئې بیامُوندې وو،ټول عمرئې دَشهیدګئ په آرزوکښې جهادکړې وو،په زرګونوکافران ئې په جنګونوکښې وژلی وو-دَهرې خطرې په کنداوونواوکندوښه زړورورغلې وو اوهمیشه ئې دادعاګانې کړې وې چه زمامرګ ددښخوپشان په کټ پوزی [چتهائی] نهٔ وی بلکه دَبې ویرې سپای پشان ددجهادپه میدان کښې وی-خوبیاهم په خپل کټ پوزی [چتهائی] وفات شو.دې نه معلومه شوه چه دَژوند اومرګ نظام،قادرمطلق هم په خپل لاس کښې ایښې دې،څوک چه اوغواړی نوپه محل کښې دَآرام په بستروئې دَجولاګی دَلاسه مړکړی،اوچه ساتل ئې غواړی نودزرګونوتُورودَخُلونه ئې روغ موټ راؤباسی-

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۳۶۱

**پوخ مضبوط کور جوړول توکل سره بې منسوخه نه دي:** ﴿وَلَوْ كُنْتُمْ فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ﴾ په دې آيت شريف کښې دا اوفرمائيلې شو چه مرګ نه خلاصې نشته اګرچه په مضبوطو قلاګانو کښې اوسيږې دې نه معلومه شوه چه اوسيدو ويا د مال اسباب حفاظت د پاره مضبوط او اعلى کور جوړول د توکل نه خلاف نۀ دى اونۀ د شريعت خلاف دى [قرطبى] (۱)

**انسان له نعمت خالص د الله تعالى په فضل ملاويږي** ﴿مَآ أَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللَّهِ﴾ دلته د حسنة نه مراد نعمت دې (۲)، په دې آيت کښې دې خبرې ته اشاره ده چه انسان ته ملاويدونکې نعمت د هغه حق نۀ وى بلکه دا، خالص د الله تعالى په فضل ورته ملاويږي، انسان خپل عبادت سره هيچرې خکه د نعمت حقدار نشي جوړيدې چه د عبادت توفيق ورته هم الله تعالى ورکوى. بيا د الله تعالى نعمتونه بې شميره او بې حسابه دى، هغه په داسې لندو تنګو عبادتونو کله حاصليدې شى، بالخصوص چه هغه عبادتونه هم د رب العالمين د بادشاهۍ د شان لائق او جوګه نۀ وى چنانچه په يو حديث کښې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى:

﴿ما احد يدخل الجنة الا برحمة الله قيل ولا انت قال ولا انا﴾ [متفق عليه بحواله مظهرى] (۳) سوا د الله تعالى د رحمت نه به هيڅوک جنت ته لاړ نشى، راوى عرض اوکړو چه تاسو به هم نۀ ځئ؟ وې فرمائيل چه او زۀ به هم نۀ ځم۔

**مصيبت راتلل د انسان د بدعملۍ په نتيجه کښې وي:** ﴿وَمَآ أَصَابَكَ مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ﴾ دلته د ﴿سَيِّئَة﴾ نه مراد مصيبت دې (۴)۔ مصيبت لره اګرچه الله تعالى پيدا کوى خو سبب ئې پخپله د انسانانو بدعملى وى، کافر انسان باندې په دنيا کښې راتلونکې مصيبت د دۀ د عذاب يو معمولى شان نمونه وى چه د آخرت عذاب به د دې نه ډير زيات وى ليکن مؤمن د پاره دنيوى مصيبت او تکليفونه د هغه د ګناهونو کفاره ګرځى او په آخرت کښې د دۀ د نجات او خلاصى سبب جوړيږى لکه رسول الله ﷺ په يو حديث کښې فرمائيلى دى:

﴿ما من مصيبة تصيب المسلم الا كفر الله بها عنه حتى الشوكة يشاكها﴾ [ترمذى بحواله مظهرى] (۵) هر يو مصيبت چه مسلمان ته رسى هغه د دۀ د ګناهونو کفاره جوړيږى تردې چه ازغې [خوز] چه په پښه وغيره کښې ئې مات شى۔

په يو بل حديث کښې ئې ارشاد او فرمائيلو ﴿عن ابى موسى رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ قال لا تصيب عبدا نكبة فما فوقها وما دونها الا بذنب وما يعفوا اكثر﴾ [ترمذى بحواله مظهرى] (۶) حضرت ابوموسى رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت کوى چه هغوئ او فرمائيل چه په بنده چه کوم سبک يا درُوند مصيبت راشى نو دائې د ګناه نتيجه وى او ډير ګناهونه ئې معاف کوى۔

---

۱) تفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۸۳
۲) تفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۹۸
۳) تفسير المظهرى: ج ۲، ص ۲۹۸ او ګورئ۔ صحيح البخارى، كتاب الرقاق، باب القصد والمداومة على العمل: ج ۲، ص ۹۵۷ وصحيح مسلم، كتاب صفة القيامة: باب لن يدخل أحد الجنة الخ: ج ۲، ص ۳۷۶
۴) تفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۹۸
۵) جامع الترمذى، أبواب التفسير، باب من سورة النساء: ج ۲، ص ۳۲
۶) جامع الترمذى، أبواب التفسير، باب من سورة الشورى: ج ۲، ص ۳۹

**رسول الله ﷺ ټولو دنيا د پاره پيغمبر دې** ﴿ وَأَرْسَلْنٰكَ لِلنَّاسِ رَسُوْلًا ﴾ دې نه ثابته شوه چه رسول الله ﷺ ټولې دنياته د پيغمبر په حيث ليږلې شوې دې هغه يواځې د عربو د پاره رسول نهٔ بلکه د دوئ پيغمبرى د پوره دُنيا د پاره عامه وه خواه دغه وخت موجود وو يا په اينده کښې تر قيامته پيدا کيږي [مظهرى] (۱)-

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ | فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ | وَمَنْ تَوَلّٰى | فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ | |
| چاچې | تابعدارى اوکړه د رسول | نو په اصل کښې هغه تابعدارى اوکړه د الله | او چاچه مخ واړولو | نو نهٔ ئې ليږلې مونږ ته |
| چاچې د رسول تابعدارى اوکړله | نو هغه د الله ﷻ تابعدارى اوکړله | او چا چې مخ اوګرځولو | نو ته خو مونږ | |
| عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا | | | | |
| په دوئ باندې | محافظ | | | |
| په دوې نګران نه ئې مقرر کړې | | | | |

**څوک چه د رسول تابعدارى کوي نو هغه د الله تابعدارى وکړه او څوک (چه د تابعدارئ نه) مخ واړوي نو (اې پيغمبره!) مونږته په هغوى باندې ذمه دار نه ئې راليږلې (چه ته د دوى د عمل ذمه دار اوګرځولې شې).**

## خلاصه تفسير

﴿ مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ ﴾ چا چه د رسول ﷺ فرمانبردارى اوکړه هغه د الله ﷻ فرمانبردارى اوکړه [او چا چه د هغوى نافرمانى اوکړه هغه د الله ﷻ نافرمانى اوکړه او د الله ﷻ فرمانبردارى کول د عقل له مخه هم واجب دى نو د هغوى فرمانبردارى هم واجبه شوه] ﴿وَمَنْ تَوَلّٰى فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا﴾ او څوک چه [د هغوى د فرمانبردارئ نه] مخ واړوى نو [تاسو څه غم مه کوئ ځکه چه مونږ] تاسو ﷺ [د ذمه دارئ په ډول] د دوى څارونکے نه يئ ليږلے [چه تاسو کفر کولو نې ته مه پريږدئ بلکه ستاسو فرض پيغام رسولو سره پوره کيږي که بيا هم دوى کفر کوى نو تاسو نه د دې د تپوس کولو انديښنه نشته تاسو بے فکره اوسئ].

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَقُوْلُوْنَ | طَاعَةٌ | فَاِذَا | بَرَزُوْا | مِنْ عِنْدِكَ |
| او وائى دوئ | مونږ تابعدار يو | خو کله چې | راووزى دوئ | د مجلس ستا نه |
| او دوئ وائى چې مونږ ستا تابعدارى کوو | او کله چې ستا د مجلس نه پورته شى | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بَيَّتَ | طَآئِفَةٌ | مِّنْهُمْ | غَيْرَ الَّذِىْ | تَقُوْلُ | وَاللّٰهُ | يَكْتُبُ |
| نو د شپې مشورې کوى | يوه ډله | د دوئ نه | خلاف د هغه خبرو | چې ته ئې وائې | او الله | ليکى |
| نو يوه ډله په کښې داشان شته | چې د شپې مجلس جوړوى | او ستا د خبرې خلاف مشورې کوى | او الله ﷻ | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَا يُبَيِّتُوْنَ | فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ | وَتَوَكَّلْ | عَلَى اللّٰهِ | وَكَفٰى بِاللّٰهِ |
| هغه خبرې چې د شپې ئې کوى دوئ | نو پروا مه کوه د دوئ | او بروسه کوه | په الله باندې | او کافى دې الله |
| د هغوى ټولې پټې مشورې ليکى | نو د دوئ پرواه مه کوه | او په الله ﷻ بهروسه کوه | او الله د کارسازۍ | |

---

۱) تفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۴۸

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَكِيلًا ۝ | أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ | الْقُرْآنَ ۚ | وَلَوْ كَانَ | مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللَّهِ |
| كار ساز | آيا نو نه كوى غور دوى | په قرآن كښې | او كه چرته وې | د طرفه دغير الله نه |
| دپاره كافى دي | آيا تاسو قران پاک ته فكر نه كوئ | كه دا كتاب د الله نه سوا د بل چا طرفه وې | | |
| لَوَجَدُوا | فِيهِ | اخْتِلَافًا | كَثِيرًا ۝ | |
| نو موندلې به وو دوى | په دې كښې | اختلاف | ډير | |
| نو دوى به په كښې ډير اختلاف موندلې وو | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** او (دا منافقان خلق خو مخامخ) د تابعدارئ تو م اخلي ليكن چه دوى ستا د خوا نه لاړ شي نو دوى كښې يوه ډله د شپې په وخت كښې ستا دخبرو خلاف مشورې كوي او دوى چه د شپې په وخت كښې كومې مشورې كوي الله هغه ټول ليكي نو ته د دوى پرواه مه كوه او په الله اعتماد كوه او الله ستا د حمايت دپاره بالكل كافي دې آيا دا خلق په قرآن كښې فكر نه كوي؟ كه چرې دا د الله نه سوا د بل چا د طرف نه وې نو دې كښې به دوى ډير اختلاف موندلې وو.

## خلاصه تفسير

﴿ وَيَقُولُونَ طَاعَةٌ فَإِذَا بَرَزُوا مِنْ عِنْدِكَ ﴾ او دا [منافق] خلق [ستاسو دحكمونو په آوريدو ستاسو مخكښې په خله] خو وائى چه زمونږ كار [ستاسو] فرمانبردارى كول دى بيا چه ستاسو دخوانه [پاسى] بهر لاړ شى ﴿ بَيَّتَ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ غَيْرَ الَّذِي تَقُولُ ۖ ﴾ نو دشپې په وخت [پټې] مشورې كوى په دوى كښې يوه ډله [يعنى ددوى د سردارانو ډله] په خلاف دهغې نه چه څه ئې په خله وئيلى وو [اوچونكه دغه سرداران دى اصل مشوره هم هغوى كوى نورخلق ئې تابع پاتې كيږى نوپه دې خلاف كولو كښې د ټولو يو حالت دې] ﴿ وَاللَّهُ يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُونَ ۖ ﴾ او الله ﷻ [سركارى روزنامچه كښې] په مخه ليكى هغه څه چه دوى دشپو مشورے كوى [په موقعه به ورته سزا وركړى] ﴿ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ ﴾ نوتاسو دوى [ددوى بےهودگئ] پسے مخه مه اړونى [اوفكر ئے مه كونى ﴿ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا ۝ ﴾ بلكه ټوله قيصه] الله ﷻ ته اوسپارئ اوالله ﷻ كافى كار ساز دے [هغه به پخپله په مناسب شان ددې مخه نيسى چنانچه كله هم ددوى په شرارت سره څه ضرر اونه رسيدو] ﴿ أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ ۚ ﴾ آيا دا خلق [دقرآن كريم دفصاحت او بلاغت په اعجاز كښې اود غيبو په صحيح صحيح خبر وركولو كښې نه گورى او بيا] په قرآن پاك كښې غور نه كوى [چه كله كيدل ئے واضح شى] ﴿ وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللَّهِ لَوَجَدُوا فِيهِ اخْتِلَافًا كَثِيرًا ۝ ﴾ او كه دا د الله ﷻ نه سوا دبل چا د طرفه نه وې نودے كښې [ددې مضمونونو كښې ددې ډيروالى په وجه د واقعاتو اود اعجاز د حدنه] به يې ډير فرق بياموندلو [ولے چه هرهر مضمون كښې به يوبو اختلاف او فرق وو نو په ډيرو مضامينو كښې به زيات اختلافات وو حالاتكه د قرآن پاك په يو مضمون كښې هم اختلاف نشته نوضرور دا دغيرالله كلام نشى كيدلې.

## معارف او مسائل

﴿ وَيَقُولُونَ طَاعَةٌ فَإِذَا بَرَزُوا مِنْ عِنْدِكَ بَيَّتَ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ غَيْرَ الَّذِي تَقُولُ ۖ ﴾ په دې آيت كښې دَهغه خلقويدى بيان شويده چه دوه مخيزه پاليسى ئې اختيار كړيده په ژبه يو څه وائى، اوپه زړه كښې ئې بل څه وى،

وریسې، دداسې خلقو په باره کښې د رسول الله ﷺ د طرز عمل په باره کښې یو خاص هدایت دې-
**پیشوادپاره یو ډیر ضروري هدایت** ﴿فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا﴾ کله به چه منافقان د رسول الله ﷺ مخې ته راغلل نو و نیل به ئې چه مونږ ستاسو حکم قبول کړو او کله به چه واپس تلل نو د هغوی د نافرمانۍ دپاره به ئې مشورې کولې، په دې سره به د هغوی سخت زړۀ ماتیدو، په دې باندې ورته الله تعالی هدایت او کړو چه د دوی پروا مۀ لرئ تاسو خپل کار د الله تعالی په آسره جاری لرئ، ځکه چه هغه تاسو لره کافي دې-

دې نه معلومه شوه چه د خلقو پیشوایانو او رهنمایانو ته قسما قسم سختۍ او بندیزونه راپیښیږي، خلق وریورې هسې اخوا دیخوا خبرې ورتپی، د دوستانو په شکل کښې ئې هم دشمنان وی، خو سره د دې تو لو څیزونو د دغه پیشوایان او رهنمایان، په الله تعالی آسره او کړی خپل کار د په مضبوطه اراده او ښه په ټینګه جاری لری، که د دوی رُخ او اصلی مقصد صحیح وی نو انشاء الله تعالی چه ضرور به کامیاب شی-

**په قرآن کریم کښې غور فکر کول:** ﴿أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ ۚ﴾ په دې آیت سره الله تعالی په قرآن کریم کښې د غور فکر بلنه ورکوی، دلته په څو څیزونو زور نظر اچول دی-

① هر کله ئې چه دلته ﴿أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ﴾ او فرمائیل ﴿أَفَلَا يَقْرَءُونَ﴾ ئې او نۀ فرمائیل نو په دې کښې یو باریکه اشاره دې اړخ ته معلومیږی، چه هر کله قرآن کریم په ژور نظر سره او کتلې شی نو په معنو او مضامینو کښې به ئې هیڅ اختلاف ښکاره نشی او چه یو اځې لوستل او تلاوت ئې کولې شی نو د اصل حقیقت نه خلاف په قرآن کریم کښې ډیر اختلافات په نظر راځی-

② بله تر دا خبره معلومیږی چه قرآن کریم د امطالبه کوی چه هر څوک د د دې په مطالبو ژور نظر اچوی یو اځې د امامانو او مجتهدینو دپاره دا خاص کول صحیح نۀ دی البته د غور فکر کولو درجې هم هغسې مختلفې دی څنګه چه د علم او پوهې درجې مختلفې دی، مجتهدین امامان ﷭ چه په کښې غور فکر او کړی نو یو اځې په دغه مسئلو به پوهه شی او که عام مسلمانان پر ژور نظر و اچوی نو د الله تعالی لوئې او مینه او د آخرت فکر به ئې پیدا شی چه د کامیابۍ کُنجی ده- البته د غلط فهمۍ او مغالطونه د ځان ساتلو په غرض عوامو دپاره دا غوره خبره ده چه یو عالم نه ئې د سبق په شکل کښې لولی او که دانشی کولې نو مستند او معتبر تفسیر دې ګوری او که په دغې کښې ورته چرې شک راپورته شی نو په خپل خیال د هغې د فیصلې کولو په ځائې د د ماهرو علماؤ په خدمت کښې هغه پیش کړی او د هغوی فیصله د او منی-

**د قرآن او سنت تفسیر او تشریح کول د یوې ولې یا یو لولی لیکدارو نۀ ده ورله باره څه شرطونه شته:** د دغه آیت نه معلومه شوه چه هر څوک په قرآن کریم کښې د غور فکر کولو حق لری خو هر کله چه د دې درجې مختلفې دی او حکمونه ئې بیل بیل دی نو د دې په ذریعه قرآن کریم نه د نورو مسئلو راویستلو دپاره ضروری دی چه دې دپاره بنیادی خبرې اول حاصلې کړی چه نتیجه تر صحیح راویستلې شی که دغه بنیادی څیزونه د سره حاصل نکړی یائې نیمګړی حاصل کړی یعنی مجتهد دپاره ضروری صفتونه ورته حاصل نۀ وی نو ښکاره خبره ده چه نتیجې به غلطې راویاسی، اوس که علماء په دې باندې څه بدوائی نو حق ئې لری-

که څوک میډیکل کالج پیژنی هم نۀ او هغه دا اعتراض کوی چه د ملک د سند یافته ډاکټرانو څه ټیکه خونۀ ده چه یو اځې هغوی د د خلقو علاج او دارو درمل کوی زۀ هم یو انسان یم زۀ

دولي داسې اونکړې شم؟

یا دعقل نه پاک بنده داسې اووايي چه په ملک کښې دنهرونو، پلونو او بندونو جوړولو تیکداران یواځې ماهر انجینئیران ولې دي دیو ملکي بنده په حیث ددې خدمت حق زه ولې نه لرم؟

یا څوک دماغ خرابه بنده دا اعتراض کوي چه دملکي قانون دتشریح اوتعبیر تیکداري، یواځې دقانون دماهرانو خونه ده، زه هم عاقل، بالغ یم ولې دوا اونکړې شم؟ نوداسې کسانوته به اونیلې شي چه بیشکه تاسو هم داحق لرئ خوچه ډیر کالونه ددې د قابل کیدو دپاره خواری اومحنت اوکړئ، ماهرانو استاذانو نه دغه علوم اوفنون زده کړئ اوددې دګریانې حاصلې کړئ.

لیکن که داخبره دقرآن اوسنت دتشریح دباریک اونازک کارپه باره کښې اونیلې شي نوشورګدشي چه ولې دا یواځې دعلماؤ تیکه ده څه؟ آیا؟ دقرآن اوسنت دتشریح اوتعبیر دپاره څه قابلیت اوجوګه توب ضروري نه دي، آیا په دنیا کښې یواځې دقرآن اوسنت علم داسې بې وارثه پاتې شوي دي چه هرڅوک ئې تشریح اوتعبیر کولوته رادانګلې شي؟ اګرچه هغه دقرآن اوسنت دعلم حاصلولو دپاره یوڅو میاشتې هم نه دي لګولې؟

**دقیاس ثبوت:** دې آیت نه یو داخبره هم معلومه شوه چه که په قرآن اوسنت کښې په ښکاره شان څه مسئله معلومه نشي نوهم په دې کښې غورفکر کولوسره دهغې دحل راویستو کوشش پکار دي دې عمل ته په اصطلاح کښې قیاس وئیلې شي [قرطبي][1]

**داختلاف کثیر تشریح:** ﴿وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا﴾ داختلاف کثیر [ډیر اختلاف] مطلب دادې چه که په یو مضمون کښې اختلاف وي نوپه ډیرو مضمونونو کښې به اختلاف هم ډیر وو- [بیان القرآن][2] لیکن دلته په هیڅ یو مضمون کښې اختلاف نشته، ځکه دالله تعالی کلام دې، دبشر په کلام کښې یو رنګ والې کله کیدې شي، دلته خونه په فصاحت اوبلاغت کښې څه کمې شته، نه دتوحید اوکفر، دحرامو اوحلالو په بیان کښې څه فرق اویو تر بله اپوته والې او تعارض شته، دغیبو دخبرونو څنې هم داسې یو خبر نشته چه دواقع مطابق نه وي، نه دقرآن په نظم اوعبارت کښې چرته دا فرق شته چه څنې پکښې فصیح وي اوڅنې پکښې کمزورې، دهر بشر په تحریر او وینا باندې دماحول اثروي، دتسلئ په وخت کښې ئې کلام یوشان وي او دپریشانئ په وخت کښې بل رنګ وي، لیکن دقرآن کریم مضامینو کښې داسې هیڅ قسم نقص، کمزورې او اپوته والې او تعارض نشته، چنانچه دا، ددې دکلام الهي کیدو ښکاره دلیل دې-

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| آمْرٌ | | وَاِذَا جَآءَهُمْ | | |
| یو خبر | او هر کله چې راشي دوئ ته | | | |
| | اودوئ چې یو خبر واورئ ........ | | | |
| اِلَى الرَّسُوْلِ | وَلَوْ رَدُّوْهُ | اَذَاعُوْا بِهٖ | اَوِ الْخَوْفِ | مِّنَ الْاَمْنِ |
| رسول ته | اوکه رسولې وی دوئ دغه خبر | نو خوروی دوئ هغه | یاد ویرې | دامن [اطمینان] |
| اوکه دوئ دغه خبرې رسول ته | ........ | نودوئ هغه خوروی | اوکه د ویرې | که هغه دامن وی |

[1]) تفسیر القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۹۰
[2]) بیان القرآن تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۷

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاِلٰٓى اُولِى الْاَمْرِ | مِنْهُمْ | لَعَلِمَهُ | الَّذِيْنَ |
| اوذمه وارو كسانوته | ددوئ نه | نو به علم كښي به راغلي وې هغه | دهغه كسانو |
| اوخپلو (مسلمانانو) مشرانو ته سپارلي وې ا نو دهغه كسانو به علم كښې به داخبره راتله چې كوم | | | |
| يَسْتَنْبِطُوْنَهٗ | مِنْهُمْ ؕ | | وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ |
| چې رااوبه باسي هغوئ دهغې نه صحيح مطلب | چې وي هغه ددوئ نه | | او كه نه وې فضل دالله |
| د خبرې په معنى او مطلب ښه پوهيږي | ................اوكه په تاسو باندې دالله فضل | | |
| عَلَيْكُمْ | وَرَحْمَتُهٗ | لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطٰنَ | اِلَّا قَلِيْلًا ۝ |
| په تاسو | اورحمت دهغه | نو خامخا به تابعداري كړې وه تاسو دشيطان | ماسوا \| دلږونه \| |
| اورحمت نه وې .................. نو ديوڅوكسانو نه سوا به نور ټول شيطان پسې روان شوي وې | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** اوكله چه دوى ته يو خبر ورسي خواه كه هغه د امن وې يا د ويرې وې نو دا خلق هغې لره (د تحقيق نه بغير) خوروي او كه دوى دا (خبر) رسول ته يا خاوندانو د اختيار ته اورې وې نو دوى كښې چه كوم خلق د تحقيق والا دي هغوى به ددې حقيقت معلوم كړې وو. او (مسلمانانو) كه دالله فضل او د هغه رحمت په تاسو باندې نه وې نو د لږو خلقو نه علاوه نورو ټولو خلقو به د شيطان تابعداري كړې وه.

## خلاصه تفسير

﴿ وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِالْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ ؕ ﴾ اوكله چه دوى ته د څه [نوى] كار خبر اورسي خواه [دغه كار موجب د] امن وى يا [موجب د] ويرے [لكه دمسلمانانو يولښكر چرته جهاد دپاره لاړ شي اودهغوى د غالب كيدو خبر راشي نو دا دامن خبر دے يا ددوى دماتے خوړو خبرراشي نودا د ويرے خبر شو] نو دے [خبر] لره [سمدستي] خور كړى [حالانكه بعضې وخت دغه خبر غلط اوخيژى اوكه صحيح هم وى نو بيا هم دداسې انتظامى امورو خوړول د انتظامي دښيگړې نه خلاف دى] ﴿ وَلَوْرَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰٓى اُولِى الْاَمْرِ مِنْهُمْ ﴾ اوكه [پخپله دخوړولو په ځائې] دے خلقو دغه خبر رسول ﷺ ته اودهغوى [لويو صحابه كرامو] رائې ته سپارلے چه په دوى كښې په دي [خبرو پوهيږى] او پخپله ئې په كښې هيڅ دخل [نه وركولې] ﴿ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ؕ ﴾ نودا [خبر] به هغه حضراتو پيژندلو [چه داصحيح دے كه غلط.خوړول ئې پكار دى اوكه نه] كوم چه پدوى كښې ددې تحقيق كوى [لكه څنگه ئې چه هميشه پيژني او بيا دے حضراتو چه پرے څنگه عمل درآمد كولې هغسے به دغه خورونكو لره پكار وو او دوئ ته ددخل وركولو ضرورت نه وو ولے چه د دې سره ددوى څه كار بند وو. هركله چه الله ﷻ دغه كلام واورولو چه ددنيا او آخرت د ښيگړو نه ډك دى اوس وريسے مسلمانانو باندې الله ﷻ ددې احسان ښكاره كولو دپاره فرمائي] ﴿ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ ﴾ اوكه په تاسو خلقو دالله ﷻ [داخاص] فضل او رحمت [چه قرآن ئې دركړو او پيغمبرئې درته راوليږلو كه دا] نه وې ﴿ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطٰنَ اِلَّا قَلِيْلًا ۝ ﴾ نوتاسو ټولو د سيلے به ددنيا او آخرت ضرر اختيارولو سره دشيطان تابعداري كړې وى سوا د ډير كمو خلقو نه [چه دهغه عقل سليم په بركت به ددې نه بچ پاتې شوى وى] چه الله ﷻ د خپل خاص رحمت او فضل په ډول دركړې دې يعنى كه دا فضل او

رحمت ئې درباندې نه وے کړې نو زیات خلق به په ګمراهئ او تباهئ کښې پریوتې وو نو تاسو دغه منافقانو په عکس دغسې پغمبراو دغسې قرآن پاك لوئې نعمت اوګڼرئ دچا په معرفت چه درته ددغې ښیګړے احکام راځی.اوددې دواړو پوره تابعداری کول تاسو له پکار دی.]

## معارف اومسائل

**شانِ نزول** ﴿وَإِذَا جَآءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ﴾ : دحضرت ابن عباس،ضحاک اودابی معاذ ﷺ په نزد ،داآیت دمنافقانو په باره کښې نازل شوې دې خودحضرت حسن ﷺ اودنورو اکثرو حضراتو په نزد ،داآیت دضعیفواوکمزورومسلمانانو په باره کښې نازل شوې دې [روح المعانی] (۱)

علامه ابن کثیر ﷺ ددې آیت په باره کښې واقعات نقل کولونه پس فرمائیلی دی چه ددې آیت په شانِ نزول کښې د حضرت عمربن الخطاب ﷺ حدیث لره ذکرکول پکاردی،هغه داسې چه حضرت عمر ﷺ هرکله په دې خبرشوچه رسول الله ﷺ خپلوبیبیانوله طلاق ورکړی دی نودخپل کورنه جماعت ته راغې ،چه دجومات دروازې ته راورسیدونوواوئې ریدل چه جومات کښې دننه خلقوهم دغه خبرې کولې-ددې په لیدوددې خبردتحقیق کولواراده ئې اوکړه نو د رسول کریم ﷺ په حضور کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه آیا :تاسو خپلو بیبیانو له طلاق ورکړی دی؟ هغوئ اوفرمائیل چه نه..حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل چه ددې تحقیق کولونه پس زهٔ بیرته جومات ته راغلم، دهغې په دروازه کښې اودریدم اواعلان م اوکړوچه رسول الله ﷺ خپلوبیبیانوته طلاق نهٔ دی ورکړی اوستاسوخلقوداسې ویناغلطه دهٔ -،په دې خبره داآیت نازل شو ﴿وَإِذَا جَآءَهُمْ أَمْرٌ﴾ الخ [تفسیر ابن کثیر] (۲)

**بې تحقیقه خبرې خورول ګناه اولویه فتنه ده**:دآیت نه معلومه شوه چه هریوآوریدلې خبره،بې تحقیقه بیانول نهٔ دی پکار،چنانچه رسول الله ﷺ په یوحدیث شریف کښې فرمائیلې دی:

﴿کفی بالمرءکذباان یحدث بکل ماسمع﴾ (۳) [دچادَدروغژن والی دپاره داهم پوره ده چه هغه هره آوریدلې خبره بې تحقیقه خلقوته بیانوی]-

په یوبل حدیث کښې فرمائی: ﴿من حدث بحدیث وهویری انه کذب فهواحدالکاذبین﴾ (۴) [کوم څوک داسې خبره نوروخلقوته بیانوی چه پخپله هم پرِ ددروغویقین لری نویودروغژن په دروغژنوکښې داهم دې ،[تفسیرابن کثیر]

**اولوالامرڅوك خلق دی؟** ﴿وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ مِنْهُمْ﴾ استنباط په اصل کښې دکوهی دتل نه اوبوراوښکلوته وئیلې شی دکوهې په کنستوکښې کومې اوبهٔ چه رومبې راوځی هغې ته ماء مستنبط وئیلې شی،خودلته ترمراددیوې خبرې بنیادته رسیدل اودهغې صحیح حقیقت معلومول دی [قرطبی] (۵)-

د ،اولوالامر، په تاکلو کښې ګنړقولونه دی،دحضرت حسن ،قتاده،اوابن ابی لیلی په نزدترعلماء اوفقهاء مراددی-حضرت سدی فرمائیلی دی چه امیران اوحاکمان ترمراددی-

---

(۱) روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۳
(۲) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۳۶۱
(۳) صحیح مسلم، مقدمة باب النهی عن الحدیث بکل ماسمع
(۴) صحیح مسلم، مقدمة باب وجوب الروایة عن الثقات: ج ۱، ص ۶
(۵) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۲۹۱، ۲۹۲

ابوبکر جصاص رحمه الله ددې دواړو قولونو نقل کولو نه پس فرمائي چه صحيح خبره داده چه دې نه هر دواړه مراد دی ولې چه د اولی الامر اطلاق په دې دواړو باندې کيدې شي البته په دې باندې ځنې خلق شبه کوی چه فقهاؤ ته اولو الامر څکه نشي وئيلې چه دهغوی حکم نه چليږي ښکاره ده چه د فقهاؤ دا کارنه دې خو حقيقت دادې چه د حکم چلولو دوه صورتونه دی، [۱] يو داچه په زور او طاقت سره حکم چلوي چه يواځې د حکومت خلق ئې چلولې شي، بل داچه خلق د اعتقاد او اعتماد په وجې سره د چا حکم مني، او دا فقهاء کيدې شي، هغه داسې چه په هره زمانه کښې ليدې شي چه په ديني معاملاتو کښې عام مسلمانان په خپل اختيار سره صرف د علماؤ رحمهم الله حکم په خپله خوښه واجب العمل ګرځوي، چنانچه د شريعت له مخه د دوی حکم منل واجب هم دی څکه پرې د اولو الامر اطلاق کول صحيح شو [احکام القرآن د جصاص] (۱)-

د دې بحث ، زيات تفصيل ، د آيت: ﴿أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ﴾ لاندې تير شوې هم دې-

**په نوؤ مسئلو کښې قياس او اجتهاد کول عوامو دپاره د امامانو د تقليد ثبوت دې:** د دې آيت نه معلومه شوه چه په کومو مسئلو کښې څه نص نه وی وارد شوې نو د هغې [احکام] د قياس او اجتهاد په اصولو په قرآني حيثيت سره راؤښکلې شي- ولې چه په دې آيت کښې د دې خبرې حکم ورکړې شوې دې چه د نوو مسئلو د حل دپاره که رسول الله ﷺ حيات وی نو هغوی ته رجوع کوئ که هغوی حيات نه وی نو علماؤ رحمهم الله او فقهاؤ رحمهم الله ته رجوع کوئ ولې چه دوئ د احکامو راؤښکلو پوره صلاحيت لري-

د دې بيان نه څو خبرې معلوميږي:

(۱) يو داچه هر کله نص نه وی نو په دغه صورت کښې به عالمانو او فقيهانو ته رجوع کولې شي-

(۲) بله داچه د الله تعالی احکام دوه قسمه دی [الف] يو هغه چه نص پرې وارد شوې وی او ښکاره وی [ب] او بل هغه چه مبهم وی ښکاره نه وی چه الله تعالی د آيتونو په ژوروالی کښې امانت ايښودې دی. (۳) دريمه داچه د علماء کرامو دا فرض دی چه هغه داسې معنې، د اجتهاد او قياس په ذريعه راؤباسي. (۴) څلورمه داچه عوامو لره ضروري دی چه په دغه مسئلو کښې د علماء کرام تقليد او کړي [احکام القرآن للجصاص] (۲)-

**رسول الله ﷺ هم په استنباط او استدلال باندې مکلف وو:** ﴿لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ مِنْهُمْ﴾ د دې آيت نه معلوميږي چه رسول الله ﷺ هم د دلائلو په ذريعه د احکامو په راؤښکلو باندې مکلف وو، ولې چه رومبې په آيت کښې دوه قسمه خلقو ته د رجوع کولو حکم ورکړې شو، يو رسول الله ﷺ ته او بل اولو الامر ته بيائې او فرمائيل ﴿لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ﴾ او دا حکم عام دې چه د ذکر شوؤ دوه قسمه خلقو څه تخصيص پکښې نه دې کړې شوې، لهذا دې نه ثابته شوه چه د هغوی ذات هم د احکامو په راويستو باندې مکلف وو [احکام القرآن للجصاص] (۳)-

**د بدو ضرر کار فائده:** که څوک دا شبه کوی چه دې نه خو صرف دومره معلوميږي چه د دشمن نه د وېرې او امن په باره کښې، تاسو په خپله خوښه خبرونه مه خوروئ بلکه د علم او درائې خاوندانو ته په دې باره کښې رجوع کوئ، هغوی به د غور او فکر کولو نه پس چه کومه خبره درته اوښائي په هغې عمل

(۱) أحکام القرآن للجصاص، سورة النساء، باب في طاعة أولي الأمر: ج ۲، ص ۲۶۳

(۲) أحکام القرآن، سورة النساء، باب في طاعة اولي الامر: ج ۲، ص ۲۶۳

(۳) أحکام القرآن، سورة النساء، باب وجوب طاعة الرسول: ج ۲، ص ۲۵۸

کوي: ښکاره خبره ده چه نو مسئلو سره ددې هيڅ تعلق نشته-

جواب ئې دادې چه په آيت ﴿وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ﴾ کښې ددښمن هيڅ ذکر نشته لهذا امن او خوف عام دې څنګه چې ددې تعلق ددشمن سره کيدې شي داشان ئې تعلق نورو مسئلو سره هم کيدې شي يعنی کله چه څه نوی مسئله ديو عامی مسلمان مخې ته راشي چه د هغې دحلالوالي اوحراموالي په باره کښې څه نص نه وی وارد شوې نوهغه په دې کښې فکرمن شي چه کوم اړخ ئې اختيار کړی، په دواړو صورتونو کښې دنفع ،نقصان احتمال وی،نو شريعت ددې دپاره زيات غوره حل دا راوښکلو چه تاسو داستنباط دخاوندانو اړخ ته رجوع کوئ هغوئ چه درته څه خبره ښائی په هغې عمل کوئ- [احکام القرآن دجصاص په لنډو] (۱)-

**اجتهاد او استنباط دګمان دغالب ګمان فائده ورکوی دعلم يقينی فائده نه ورکوی:** ② په استنباط سره دفقهاؤ دَراوښکلی حُکم په باره کښې په يقينی توګه داخوک نشی وئيلې چه دَالله تعالي په نزد يقيناً هم داحق دې، بلکه احتمال داهم پاتې کيدې شي چه داحکم خطاوی البته ورسره ددې دصحيحوالي ګمان غالب وی چه عمل کولو دپاره کافی دې- [احکام القرآن دجصاص او تفسير کبير] (۲)-

| |
|---|
| فَقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ۚ لَا تُكَلَّفُ اِلَّا نَفْسَكَ وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ |
| نو جنګ کوه \| په لار دالله کښې \| ته نشې مکلف کولې \| مګر دځان خپل \| او تيز کړه \| مومنان |
| نو دالله ﷻ په لار کښې جهاد کوه \| ته دخپل ځانه سوا دبل چا ذمه دار نه ئې \| او مومنان جهاد ته تيزوه |
| عَسَى اللهُ اَنْ يَّكُفَّ بَاْسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ وَاللهُ اَشَدُّ بَاْسًا |
| لرې نه ده چې الله \| بند کړی \| زور دهغه کسانو \| چې کفر ئې کړې دې \| او الله \| ډير سخت دې \| په زور کښې |
| ډير زر به الله ﷻ دکافرانو زور ختم کړی \| ........................ دالله ﷻ زور تولونه سخت دې |
| وَّاَشَدُّ تَنْكِيْلًا ۝ |
| او ډير سخت دې \| په سزا ورکولو کښې \| |
| او دهغه سزا دهرچانه سخته ده \| |

**آسان ترجمه قرآن:** نو (اې پيغمبره!) ته دالله په لاره کښې جنګ کوه په تا باندې دخپل ځان نه علاوه دبل چا ذمه دارې نشته هغه مؤمنانو ته ترغيب ورکوه او څه لرې نه ده چه الله دکافرو زور ختم کړې او د الله زور د ټولو نه زيات زبردست دې او دهغه سزا ډيره سخته ده.

### خلاصه تفسير

[کله چه دجهاد ضرورت معلوم شو] ﴿فَقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ﴾ پس تاسو [ائې محمد ﷺ] دالله ﷻ په لار کښې [کفارو سره] جګړه کوئی [او که بالفرض تاسو سره څوك په دې کښې ملګرتيا نه کوی نو هيڅ فکرمه کوئی ځکه چه] ﴿لَا تُكَلَّفُ اِلَّا نَفْسَكَ﴾ تاسو ته ستاسو د ذاتی فعل نه سوا [دبل چا د فعل] څه حکم نشته ﴿وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ او [دے سره سره] مسلمانان [صرف جنګ

(۱) أحکام القرآن، سورة النساء، باب وجوب طاعة الرسول: ج ۲، ص ۲۵۹

(۲) أحکام القرآن، بحواله بالا-

ته] را اروه تیزوه [بیاکه درسره څوك په دې کښې نه ملګری کیږی نو تاسو ﷺ ذمه وار نه يئ مه ددې فکر کوئ چه تاسو نه به ددې تپوس کیږی لکه چه وجه ئے بیان شوه او مه دیواخې پاتې کیدو غم کوئی ولے چه] ﴿عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّكُفَّ بَاْسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ دالله ﷻ نه امید دے [اودا امید ورکول وعده ده] چه دکافرانود جنګ زور به په تپه اودروی [اوتاسو ته به ئې لاتدے کړی] او [دوی اګرچه ډیر زورآور ښکاری لیکن] ﴿وَاللّٰهُ اَشَدُّ بَاْسًا وَّاَشَدُّ تَنْكِيْلًا﴾ الله ﷻ دجنګ په زرو کښې [ددوی نه په یې شمیره درجو] زیات سخت [اوقوی] دےاو [مخالفو خلقو ته] سخته سزا ورکوی.

## معارف اومسائل

**شانِ نزول:** ﴿فَقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾:: هرکله چه دَاُحد غزادَشوال په میاشت کښې اوشوه نورسول الله ﷺ دکُفارودَوعدې په جوړ، بدر مقام ته دَمقابلې دَپاره تلل اوغوښتل [چه مؤرخین ئې دَ، بدر صغرٰی، په نوم یادَوی]په دغه موقعه څنوخلقودابهانه اوکړوچه زخمونه مولاتازه دی اوځنې خلقو په شاملیدوکښې زړهٔ خکه وهلوچه افواکانې خورې شوې وې، نوالله تعالی داآیت نازل کړوچه پکښې رسول الله ﷺ ته داهدایت اوکړې شوچه که داکچه مسلمانان دَجنګ کولونه ویریږی، نواې رسوله:تاسوپه یواځې ځان په جهاد کولوصرفه مهٔ کوئ، الله تعالی ستاسو مددګاردې-دې هدایت کیدوسره سمدستی هغوئ سره دَاویاملګروبدر صغری مقام ته تشریف یوړو چه دَاُحد دَ غزانه پس ئې ابوسفیان سره وعده شوې وه الله تعالی دَابی سفیان اودَ نورو کفارو[دَقُریشو]په زړهٔ کښې رُعب اوویره واچوله اوهیڅوک دَ هغوئ نه مقابلې ته رانغلل چه په وعده کښې دروغژن ثابت شو، الله تعالی دَخپل ارشادپه جوړ دکفاروپه جنګ کښې بندیز رلوستواورسول الله ﷺ خپلو ملګرو سره صحیح سلامت بیرته خپلو کورونو ته راغلل [قرطبی، مظهری] (١).

**دقرآنی حُکمونوبعلیمی انداز:** ﴿فَقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ دَدې آیت شریف په رُومبئ جُمله کښې رسول الله ﷺ ته په یواځې ځان، جهادته دَتیاریدوحُکم شوې ووچه څوک درسره وی اوکه نهٔ وی، خوورسره په بله جُمله کښې ئې داهم ارشاداوفرمائیلوچه دَنورومسلمانانودَجهادشوق راپورته کول هم مهٔ پریږده، که سره ددې هم هغوئ تیارنهٔ شونوتاسوخپل فرض اداکړل، دَدوئ دکرواوعمل تپوس به تاسونه نهٔ کیږی-

په یواځې جنګ کښې دَراپیښیدونکې خطرې دَلرې کولودَپاره ئې داهم اوفرمائیل چه اُمیددې الله تعالی به دکفاروپه جنګیدوکښې څه خندراپورته کړی-هغوئ باندې به رُعب راولی اوزیربه ئې کړی، اوتاسولره به یواځې په یواځې کامیاب کړی، بیائې په دې کامیابیدودلیل بیان کړو، هغه داسې چه هرکله دَالله تعالی امدادتاسوسره دې اودَهغه قوت اوزوردَجنګ دکافرانونه په بیشمیره درجوزیات دې نوکامیابی هم ستاسویقینی ده-بیائې دَجنګ دَسختوالی سره دَخپلې سزاسختوالې هم بیان کړو، داسزاکه په قیامت کښې وی لکه څنګه چه ښکاره ده اوکه په دُنیاکښې وی لکه څنګه چه بعضوئیلی دی، په هرحال څنګه چه په جنګ کولو کښې زمونږ قوت اوطاقت زیات دې دغه شانِ زمونږ سزاورکول هم ډیرسخت دې.

---

(١) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۲۹۳، تفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۷۵، ۱۷۶

مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ

| خوك چي سفارش كوي | سفارش ښه | نو وي به هغه لره

| خوك چي دنيكئ سفارش كوي هغه دپاره به

نَصِيْبٌ مِّنْهَا ۚ وَمَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا ۗ

حصه دهغي نه | اوخوك چي سفارش كوي | سفارش بد | نووي به هغه لره | حصه | دهغي نه |

د نيكئ نه حصه وي | اوخوك چي دبدئ سفارش كوي نو هغه پاره به دبدئ حصه وي

وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيْتًا ۝ وَاِذَا حُيِّيْتُمْ بِتَحِيَّةٍ

اودي | الله | دهريو څيز | نظرلرونكي | او هركله چي | اوكړي شي تاسو ته | سلام

او الله ﷻ د هرڅه قدرت لري | اوهركله چي په تاسو سلام واچولي شي

فَحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَآ اَوْ رُدُّوْهَا ۗ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

نو دسلام جواب وركړئ | په ښه طريقي سره دهغي نه | يا واپس كړئ هم هغه | بيشكه الله | دي

نو [سلام اچونكي ته] دهغي نه بهتر جواب وركوئ | ياكم ازكم هغه جواب وركوئ بيشكه الله ﷻ

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ حَسِيْبًا ۝ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۗ

د هر څيز | حساب كونكي | الله هغه دي | چي نشته | لائق دعبادت هيڅوك | مگرهم هغه دي |

دهرڅيزحساب كونكي دي | الله ﷻ هغه ذات دي چي دهغه نه بغيربل معبودنشته دي

لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ۗ وَمَنْ

خامخا به هغه راجمع كړي تاسو | ورځ | دقيامت ته | چي نشته شك | په هغي كښي | او خوك دي

تاسوټول به خامخا دقيامت په ورځ راجمع كوي | چي دهغي په راتگ كښي هيڅ شك نشته

اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا ۝

دير رښتني | د الله نه | په خبرو كښي |

اوداللہ نه زياته رښتني خبره دچاكيدې شي |

كوم يو كس چه ښه سفارش كوي نو هغه ته ددې نه حصه ملاويږي اوخوك چه بد سفارش كوي نو هغه ته ددغې بدئ نه حصه ملاويږي اوالله په هر يو شي باندې نگهبان دې اوچه تاسو ته څوك سلام وكړي نو تاسوهغه ته دهغې نه هم په بهتره طريقه سلام وكړئ يا (كم ازكم) هغه الفاظو كښې هغه ته جواب وركړئ بې شكه الله د هرشي حساب كوونكې دې الله هغه ذات دې چه د هغه نه سوا بل خدائي نشته هغه به تاسو لره د قيامت په ورځ ضرور بالضرور جمع كړي چه د هغې په راتلو كښې څه هله نشته او څوك دې چه دالله نه زيات په خبره كښې رښتونې وي؟

## خلاصه تفسير

( مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا ) خوك چه ښه سفارش اوكړي [يعنى دچا طريقه اومقصود دواړه شرعى وى] هغه ته به ددغې [سفارش] په وجه [دثواب] برخه په گوتو ورځي (

﴿ وَمَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا ﴾ اوڅوك چه ناروا سفارش اوکړی [یعنی دچا طریقه اوغرض شرعی نه وی] هغه ته به ددغې [سفارش] په وجه [دګناه] برخه ملاویږی ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ مُّقِيْتًا ﴾ اوالله ﷻ په هرڅیز قدرت لرونکې دې [په خپل قدرت سره په نیکئی ثواب او په بدئی عذاب ورکولې شی] ﴿ وَاِذَا حُيِّيْتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَاۤ اَوْ رُدُّوْهَا ﴾ اوکله چه تاسو ته څوك [په شرعی طریقه] سلام کوی نوتاسو [ورته] ددې [سلام] نه په ښو الفاظو کښې سلام کوئی [یعنی جواب کوئ] یا [په جواب کښې ورته] هم هغسې الفاظ وائې [تاسوته د دواړو اختیار درکولے شی] ﴿ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ حَسِيْبًا ﴾ بیشکه الله ﷻ په هر څیز باندې [یعنی په هر عمل] به حساب اخلی [یعنی قانون ئې دادې اوکه هسې څوك په خپل فضل سره معاف کړینو هغه بله خبرده] ﴿ اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ۚ وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا ﴾ الله ﷻ داسې دې چې هغه نه سوا بل څوك دمعبود جوړیدو جوګه نه دی هغه به ضرور تاسو ټول راجمع کړی دقیامت په ورځ په دې کښې هیڅ شك نشته اوداالله ﷻ نه به زیاته دبل چا خبره رښتیا وی [هرکله چه هغه خبردرکوی نوبیخی رښتیا وی]۔

## معارف اومسائل

**دسفارش حقیقت، ددې احکام اوقسمونه ئې:** ﴿ مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً ﴾ په آیت کښې دسفارش ښه اوبد دوه قسمونه اوګرځولې شو اوحقیقت ئې هم واضح کړې شو، داهم اوښودلې شوچه هرسفارش ښه نۀ وی اونۀ هرسفارش بدوی، اوهم دااوښودلې شوچه هرښه سفارش کوونکې ته به دثواب برخه ورکولې شی۔

اوبدسفارش کوؤنکی ته به دعذاب برخه وی، خودې دپاره ښه سفارش سره ﴿ نَصِيْبٌ ﴾ اوبدسفارش سره د ﴿ كِفْلٌ ﴾ لفظ راغلې دې چه دلغت په اعتبارددواړو معنی یوه ده۔ یعنی دهر څیزیوه برخه خوپه عرف عام کښې ﴿ نَصِيْبٌ ﴾ ښې برخې دپاره استعمالیږی، او ﴿ كِفْلٌ ﴾ اکثربدې خبرې دپاره استعمالیږی، اګرچه کله کله دابنې برخې دپاره هم استعمالولې شی لکه قرآن کریم کښې فرمائی ﴿ كِفْلَيْنِ مِنْ رَّحْمَتِهٖ ﴾

دشفاعت لفظی معنی یوځائې کیدل یایوځائې کول دی، په دې وجه په عربی ژبه کښې ﴿ شُفْعَةٌ ﴾ دجوړې [جوت] په معنی راځی اوددې په عکس وتردطاق په معنی راځی۔ په دې لحاظ دشفاعت معنی به داجوړیږی چه کمزوری طلبګارسره خپل قوت اوطاقت یوځائې کولوسره هغه مضبوط اوقوی کړې شی، یایوبې وسه اوبې آسرې بنده سره دیوځائې کیدوپه وجه هغه لره جوړه جوړه کړې شی [اودیواخې نه هغه دوه جوړشی چه ورسره دابل یوځائې کیدونکې ئې ملاترجوړشی]۔

لهذامعلومه شوه چه شفاعت اوسفارش به په دې شرط رواکیږی چه دطلبګارمطالبه اوغوښتنه حق او روا وی، بلـه داچه دکمزورتیااوبې وسې په وجه هغه دغه خپله مطالبه لویو[اختیارمنو]خلقوته نشی رسولې نودغه دویم [سفارش کوونکې]کس ئې وردپاره اصل خائې ته اورسوی۔ معلومه شوه چه په ناحقه اوبې حقه دچاسفارش کول اواختیارمن خلق ئې په

قبلولو مجبوره کول، ،شفاعت سيئه، ،[خراب اوناکاره سفارش]دي-چنانچه دې نه داخبره هم معلومه شوه چه هر کله په سفارش کښې يومخوريز بنده خپل تعلق يااثر ،رسوخ اوچلوي،رعب دباؤ واچوي نوداهم ظلم اوناروااکاردي او دې ته به، ،شفاعت سيئه، [ناکاره سفارش]اوئيلې شي-

نود آيت د مضمون خلاصه داشوه چه څوک دچادرواحق اورواكاردپاره په رواطريقه سفارش اوکړي نوهغه ته به دثواب برخه ملاويږي، اوڅوک چه ناروا کاردپاره په ناروا طريقه سفارش اوکړي نوورته به دعذاب برخه ملاويږي-

دلته دبرخې ملاويدو مطلب دادې چه هر کله اختيارمن بنده دغه مظلوم ياباې نصيبه بنده کاراوکړي نوورته به ددې ثواب ورکولې شي اودغه هومره ثواب به سفارش کوونکي ته هم ورکولې شي-

دغه شان ناروا سفارش کوونکې به هم گنهگاروي، مطلب داچه دښه اوبد سفارش په بدله کښې ثواب ياعذاب ملاويدل په دې اړه نه لري چه سفارش اثراوکړي ياکامياب شي لکه څنګه چه وړاندې معلومه شويدي، بلکه داخبره به ورته په هرحال کښې ملاويږي-

چنانچه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي ﴿الدال على الخير كفاعله﴾[رواه البزار[1]] عن ابن مسعود ﷛ وعن سهل بن سعد بحواله مظهري]-

[نيکۍ ته دلارښوونکې به هم هغه هومره ثواب وي څومره چه ددغه نيکۍ کوونکي ثواب به وي]-[بزار روايت کړودابن مسعود ﷛نه اوطبراني هم ددهٔ اودسهل بن سعد نه [حواله دمظهري]-

دغه شان په ابن ماجه[2] کښې دحضرت ابى هريره ﷛ په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلي دي ﴿من اعان على قتل مؤمن بشطر كلمة لقى الله مكتوب بين عينيه آئس من رحمة الله﴾[مظهري] چاچه د مسلمانانو په وژلو کښې ديوې خبرې قدرې هم امداد اوکړو نو په قيامت کښې به دالله تعالى په وړاندې داسې پيش کړې شي چه په تندي به ئې ليکلي وي چه داکس دالله تعالى درحمت نه بې نصيبه اوناأميده دې-

څنګه چه نيکۍ ته دچارالارښوول ،نيک عمل دې اورالارښوونکې ته به هم دهغې هومره ثواب ملاويږي څومره به چه نيکۍ کوونکي ته ملاويږي-دغه شان دګناه کارته رالارښوول ياپکښې دچامرسته اوملاتړ کول هم داصلي گنهگار هومره ګناه لري-

دآيت په آخر کښې ارشاد دې ﴿وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيتًا﴾دلغت په اعتبار سره د ﴿مُقِيتٌ﴾معنى قادراومقتدر هم ده اوحاضر اوساتنه کوونکې هم، داشان روزي تقسيموونکې هم ددې معنى ده-او دلته درې واړه معنى مراد اخستې شي-دږومبئ معنې په اعتبار سره به ئې مطلب داوي چه الله تعالى په هرخيز قادر دې عمل کوونکي اوسفارش کوونکي ته جزاياسزا ورکول ورته ګران نهٔ دي-

ددويمې معنې په اعتبار به ئې مطلب داوي چه الله تعالى په هرخيز نظر لري اوحاضر دې، ورته ټول هرڅه معلومه دي چه څوک په څه نيت سره سفارش کوي؟صرف دالله تعالى په خاطر ئې چاسره امداد کول مقصود دي ياورسره ئې څه بل خپل غرض يارشوت تړلې دې؟

---

[1]) مسند البزار رقم الحديث: ۱۷۳۲ والمعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ۲۲۷۲

[2]) سنن ابن ماجة، أبواب الديات، باب التغليظ في قتل مسلم: ج ۱، ص ۱۸۸

د دِينِي معنى په اعتبار به ئې مطلب داوى چه د روزئ د ويش خو الله تعالى پخپله ذمه وارد ي چا د پاره ئې چه څومره ليکلى وى هم هغه هومره به ورته رسي-د چا سفارش کوونکى د سفارش په وجه د چا په روزئ زياتولو هغه نهٔ مجبوره کيږى، البته سفارش کوونکى ته به مفت ثواب ځکه ملاويږى چه دا کمزورى اوبې وسه بنده سره لاس، امداد کول دى ــــ لکه رسول الله ﷺ فرمائى:

﴿كان الله في عون عبده مادام في عون اخيه﴾[1] الله تعالى تر هغې د خپل بنده امداد جارى لرى ترڅو چه هغه د يو مسلمان رور په امداد کښې لګياوى-

چنانچه په صحيح بخارى کښې د رسول الله ﷺ دا يو حديث هم منقول دې-

﴿اشفعوا فلتوجروا ويقضى الله على لسان نبيه ماشاء﴾[2] سفارش کوئ درته به ثواب ملاويږى بيا چه الله تعالى د خپل نبى په ذريعه چه څه فيصله کوى په هغې راضي اوسئ-

په دې حديث شريف کښې د چا سفارش کول څنګه چه د ثواب موجب بيان کړې شويدى دغه شان د سفارش حد ، دا سې ښودلې شوې دې چه د هغه کمزورى اوبې وسه بنده خبره اختيار منو خلقو ته رسوئ چه پخپله ئې هلته نشى رسولې او خپل حاجت لره په صحيح ډول بيانولو باندې قادر نهٔ وى، بيا مخ ته خواه دغه سفارش او منل شى کنه او ددې کس مطلوبه کار تر سره شى کنه دې کښې ستا دعمل څه دخل نشته او که کار اونشى نو دغه صورت کښې غمزده کيدل او دلګير کيدل هم نهٔ دى پکار .څنګه چه د حديث شريف د آخرى جُملې: ﴿ويقضى الله على لسان نبيه ماشاء﴾ مطلب دې-دغه شان د قرآن کريم په الفاظو کښې هم دې اړخ ته اشاره موجوده ده چه د سفارش ثواب ياعذاب په دې اړه نهٔ لرى چه دغه کار اوشى او که اونشى بلکه صرف سفارش کول د ثواب او عذاب باعث جوړيږى که ، شفاعت حسنه ، ئې اوکړو نو د ثواب حقدار شو او که شفاعت سيئه ئې اوکړو نو د عذاب حقدار جوړ شو ، که دهٔ په سفارش باندې کار اوشى او که اونشى.

چنانچه په تفسير بحرِ محيط او بيان القرآن وغيره کښې ليکلى دى چه دلته ﴿مَن يَشْفَعْ﴾ کښې لفظ د مِنها سببيه سره هم دې خبرې ته اشاره شويده، او په تفسير مظهرى کښې د تفسير د امام حضرت مجاهد قول داسې نقل کړې شويدې چه نيک سفارش کوونکى ته به د سفارش ثواب ورکولې شى اګر که د هغه په سفارش عمل هم نهٔ وى شوې[3]-او دا خبره يواځې رسول الله ﷺ سره خاص نهٔ ده ، يو بل انسان ته چه سفارش اوکړې شى د هغې هم دغه اصول کيدل پکار دى چه صرف سفارش داوکړى او په قبلولو ئې تينګار نهٔ کوى ، لکه څنګه چه رسول الله ﷺ حضرت بريرة رضي الله عنها ته سفارش اوکړو چه هغه د دوباره حضرت مغيث رضي الله عنه سره نکاح ځکه اوکړى چه هغه د دې په جُدائئ کښې ډير زيات غمژن او سرګردانه دې ليکن حضرت بريرة رضي الله عنها عرض اوکړو چه يارسول الله ﷺ که دا ستاسو حُکم وى نو په سر سترګو راته منظور دې او که سفارش وى نو طبيعت م ددې منلو ته تيار نهٔ دې ، ،هغوئ ورته اوفرمائيل چه حُکم نهٔ دې بلکه سفارش دې، بريرة رضي الله عنها پوهيده چه نبى کريم ﷺ ته به د اصولو خلاف خفګان هيچرې نه وى-ځکه خوئې صفا عرض اوکړو چه بيا خوزهٔ دا سفارش نشم قبلولې ،هغوئ هم په ښه زړهٔ ،حضرت بريره رضي الله عنها په خپل حال باندې پاتې

[1] صحيح مسلم، كتاب الذكر والدعاء، باب فضل الاجتماع على التلاوة الخ: ج ٢، ص ٣٣٥ـ وسنن ابى داود، كتاب الادب، باب النصيحة والمعونة للمسلم: ج ٢، ص ٦٧٤

[2] صحيح البخارى، كتاب الأدب، باب تعاون المؤمنين بعضهم بعضاً: ج ٢، ص ٨٩٠

[3] تفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ١٧٣

پر ښبنو ده. حضرت بریره ؓ د حضرت عائشه ؓ وینځه وه حضرت مغیث ؓ ته ئې په نکاح ورکړې وه چه حضرت عائشې ؓ آزاده کړه نو هغې د شریعت د اجازت په جوړ حضرت مغیث ؓ سره خپل شوې نکاح مات کړو او دوباره نکاح کول نې ورسره څکه نه غوښتل چه د رسول الله ﷺ د کور مبارک نه نې وتلو ته زړه نه کیدو(۱)۔

دا د سفارش حقیقت وو چه د شریعت له مخه د اجر او ثواب باعث وو، نن صبا خلقو د سفارش څیره ورانه کړه چه په حقیقت کښې سفارش نه وی بلکه د خپل اثر رسوخ، رُعب، دباؤ څیژول وی، چه د هغې په نه منلو سره خلق ناراضه کیږی لاځه، چه دُشمنی کوی، حالانکه د ضمیر او مرضی نه خلاف څوک مجبورول په زور، ظلم کښې داخل دی او سخته گُناه ده- د دې مثال داسې دې لکه چه د شریعت او قانون له مخه د یو آزاد او خود مختاره بنده په حق باندې په زبردستئ سره قبضه اوکړې شی، په هغه زور واچولې شی او د هغه آزادی اوشوکولې شی، د دې بل مثال به داسې وی لکه چه د یو محتاج د حاجت پُوره کولو د پاره د بل نه غلا کړې مال ورته ورکړې شی،

**سفارش کولو فیس یا عوضانه اغستل رشوت اغستل دی چه حرام دی:** په سفارش باندې چا ته عوضانه اغستل رشوت دې په حدیث کښې دې ته سُحت او حرام ونیلې شویدی(۲)، خواه دغه عوضانه د مال په صورت کښې وی یا د څه کار، خدمت اغستو په صورت کښې وی۔

په تفسیر کشاف وغیره کښې راغلی دی چه شفاعت حسنه به هغه وی چه مقصد نې د چا مسلمان حق پوره کول، ورته فائده رسول یا د نقصان او ضرر نه ئې بچ کول وی خپل دنیوی غرضونه پکښې پوره کول نه وی بلکه د الله تعالی په خاطر، د یو کمزوری او بې وسه بنده لحاظ ساتل پکښې مقصود وی، بله دا چه څه مالی یا بل قسم د خدمت او کار اغستو رشوت پروانه اغستې شی او دا سفارش به د یو ناروا کار په باره کښې نه وی او دا هم ضروری دی چه دا د هغه ثابت شوی جرم معاف کولو د پاره نه وی چه سزائې په قرآن کریم کښې تاکلې شوې وی(۳)۔

په تفسیر بحر محیط او مظهری وغیره کښې راغلی دی چه د یو مسلمان د حاجت پوره کولو په غرض، الله تعالی نه هغه د پاره دُعا غوښتل هم په شفاعت حسنه کښې داخل دی چه دُعا کوونکی ته ئې هم اجر ملاویږی(۴)- په یو حدیث شریف کښې راغلی دی چه کله څوک د یو مسلمان رور د خیر د پاره دُعا کوی نو فرښته وائی چه «ولك بمثل» [الله تعالی دستا حاجت هم پوره کړی!](۵)-

**سلام او اسلام:** «وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا» په دې آیت کښې الله تعالی د سلام او د دې د جواب طریقې ښودلې دی-

**د (تحیة) لفظ تشریح او د دې تاریخی ارخ:** چا ته، «حیاك الله» ونیل [الله د ژوندې لره] د تحیة لفظی معنی ده، د اسلام نه وړاندې د عربو عادت دا وو چه کله به ئې یو تر بله ملاقات او شونو، «حیاك الله یا انعم الله بك عینا یا انعم صباحا» وغیره به ئې خپل منځ کښې ونیل چه د سلام کولو الفاظ ئې وو، خو اسلام

۱) صحیح البخاری، کتاب الطلاق، باب شفاعة النبی صلی الله علیه وسلم: ج ۲، ص ۷۹۵
۲) موطا مالک رقم الحدیث: ۱۳۹۸، کتاب المساقاة، باب ما جاء فی المساقاة
۳) تفسیر کشاف تحت هٰذه الآیة: ج ۱، ص ۴۳۰
۴) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۲۴۳
۵) صحیح مسلم، کتاب الذکر والدعاء الخ، باب فضل الدعاء للمسلمین: ج ۲، ص ۳۵۱

دا طریقه بدله کړه اوددې په ځائې ئې د: [السلام علیکم] ونیلو طریقه یې جاري کړه ، معنی ئې داده چه ، دهر تکلیف ، مصیبت او غم غځ نه دسلامت اوسې ،،

ابن عربي رحمه الله په احکام القرآن کښې لیکلي دي چه د ، سلام ، لفظ دالله تعالی دمبارکو نومونو څخه یو نوم دې ، په دې لحاظ د ، [السلام علیکم] معنی داده چه ، ﴿الله رقیب علیکم﴾ [الله تعالی دستاسو حفاظت کوونکې وی] ([1]).

**اسلامي سلام دنورو ټولو قومونو دسلام نه زیات غوره دې:** د دُنیا هر تهذیب یافته قوم کښې دارواج موندلي شي چه د ملاقات په وخت یو بل ته څه داسې کلمات وائي چه مینه ، محبت او دوستي خیرخواهي ترې سرګندیږي ، خو په مقابله کولو سره اسلامي سلام د ټولو نه زیات غوره او جامع ځکه دي چه دې سره یواځې مینه ښکاره کول نه دي بلکه د محبت حق پوره کول هم دي ، یعني یو بل د پاره داد دعا غوښتل دي چه الله تعالی دهر قسم آفتونو ، غمونو او تکلیفونو نه سلامت لره ، داد دعا غوښتل نه ده څنګه چه عربو به صرف د ژوندي پاتې کیدو د پاره کوله بلکه د پاک او ښکلي ژوند د پاره د عاده ، چه الله تعالی دهر قسم غم ، درد نه محفوظ لره - بله دا چه دې سره دا هم ښکاره کول دي چه مونږه او تاسو ټول د الله تعالی محتاج یو او د هغه د اذن نه بغیر ، مونږ یو بل ته فائده او خیر نشو ور رسولې ، چنانچه په دې لحاظ دا کلمه عبادت هم شوا و خپل مسلمان رور ته د الله تعالی دور یادولو ذریعه هم ده . په دې دعا که ژور نظر واچولي شي نو د عبادت کولو په ترس کښې داوعده کول هم دي چه ته زما د ژبې او لاسونو ، خپونه محفوظ ئې ، ستا د ځان ، مال ، آبرو او عزت هم ، زه ساړنه کوم.

ابن عربي رحمه الله په احکام القرآن کښې د امام ابن عُیینه رحمه الله دا قول نقل کړې دې:

﴿اتدري ما السلام؟ یقول انت آمن مني﴾ ([2]) ته پوهیږې چه سلام څه څیز دې؟ سلام کوونکي دا وائي چه ته زما څخه محفوظ پاتې کیږې -

خُلاصه دا چه اسلامي سلام په ټوله دُنیا کښې یو ټول جامع پیشکش دې ① د الله تعالی یادول ② یو بل ته ئې وریادول پکښې وي ③ خپل مسلمان رور سره د تعلق او میني محبت ښکاره کول ، ④ هغه د پاره دیره زیاته غوره دُعاده ⑤ او ورسره دا پوخ لوظ او قول کول هم دي چه زما د ژبې او لاس خپو د ضررنه به ته محفوظ او په امن ئې ، لکه چه د صحیح حدیث له مخه د رسول الله ﷺ دا ارشاد دې: ﴿المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده﴾ [الحدیث] ([3]) مسلمان هغه دې چه د هغه د لاس او ژبې نه ټول مسلمانان په امن وي -

کاش چه مسلمانان دې کلمې د عامو خلقو د رواج په ډول نه استعمالوي ، بلکه د دې په حقیقت ځان پوهه کړي او د هغې په مطابق استعمالوي نو کیدې شي چه د ټول قوم د اصلاح د پاره هم داکافي شي ، هم دا وجه ده چه رسول الله ﷺ مسلمانانو ته خپل منځ کښې د سلام خورولو دیر خوالي کړي دي ، او د ټولونه دیر زیات غوره عمل ئې ګرځولي وي - د دې فضیلتونه ، برکتونه ، اجر او ثواب ئې بیان کړي دي ، چنانچه د صحیح مسلم په حواله د حضرت ابي هریرة رضي الله عنه په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه:

---

[1]) أحکام القرآن لابن العربي ، سورة النساء ، مسئلة معنی قوله تعالی أو ردوها ، ج ۲ ، ص ۴۲۸

[2]) أحکام القرآن لابن العربي ، بحواله بالا -

[3]) صحیح البخاري ، کتاب الإیمان ، باب المسلم من سلم الخ: ج ۱ ، ص ۶

تاسو ،جنت کښې ترهغه نشی داخليدې ترڅوچه مؤمنان نه يئ؛ اوستاسو ايمان ترهغې نشی مکمل کيدې ترڅوچه خپل منځ کښې يوبل سره مينه نه کوئ؛ زه تاسوته داسې يوڅيزښايم که تاسو پر عمل کولو نوستاسو ترمنځه به مينه قائمه شی هغه داچه خپل منځ کښې سلام عام کړئ؛ [ترغيب يې ورکړې دې] هر مسلمان باندې سلام اچوئ چه پيژند ګلې موورسره وی اوکه نه وی(۱)-

دَحضرت عبدالله بن عمر ؓ دروايت مطابق يوسړی، درسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو، چه، په اسلامی عملونو کښې دَټولونه زيات غوره عمل کوم يودې؟ هغوئ اوفرمائيل چه، ،تاسو خلقوته خوراکه ورکوئ، سلام عام کړئ [په هر مسلمان ئې اچوئ] خواه تاسو هغه پيژنئ او که نه- ، [بخاری اومسلم](۲)

په مسند احمد ،ترمذی، ابی داؤد کښې دَحضرت ابی امامه ؓ په روايت دَرسول الله ﷺ دافرمان مبارک نقل شويدې چه، ، الله تعالی ته دَټولونه نزدې هغه څوک دې چه په سلام کولو کښې ړومبې کيږی(۳)-

مسند بزاراومعجم کبيردَطبرانی ؒ کښې دَحضرت عبدالله بن مسعود ؓ په روايت دَرسول الله ﷺ داحديث مبارک نقل کړيدې چه سلام دَالله تعالی دَمبارکونومونوڅخه يونوم مبارک دې چه زمکې ته ئې نازل کړيدې، په دې وجه خپل منځ کښې سلام عام کړئ؛ ځکه چه يومسلمان دَمسلمانانو مجلس ته په ورتلو هغوئ باندې سلام واچوی نوورته دَالله تعالی په نزد دَغوروالی يولوړمقام حاصليږی، ولې چه دَه ټولوته سلام [الله تعالی] وريادکړو، که دَدَغه مجلس مسلمانانوورته دَسلام جواب ورنکړو نوداسې مخلوق به ورته جواب ورکړی کوم چه دَدې مجلس دَخلقونه غوره دی [يعنی فرشتې](۴)-

دَرسول الله ﷺ يوبل ارشاددې چه: غټ بخيل هغه څوک دې چه په سلام کښې بُخل [اوشومتوب کوی] - [طبرانی، معجم کبيردَابی هريره ؓ](۵)-

په صحابه کرامو ؓ دَدې ارشاداتوداسې اثراوشوچه دَيوروايت مطابق حضرت عبدالله بن عمر ؓ به بازارته اکثردې دَپاره تلوچه مسلمانانو باندې سلام واچوی اودَعبادت ثواب حاصل کړی، څه خرڅول اواغستل به ئې مرادنه ؤو، داروايت دَطفيل بن ابی بن کعب ؓ نه په مؤطاامام مالک ؒ کښې نقل شوې دې(۶)-

دَقرآن مجيد دَدې ارشادمبارک [چه هرکله په تاسوسلام واچولې شی نودَهغې جواب په ديرغوره الفاظو کښې، ياکم ناکم، هم دغه شان الفاظو کښې ورکوئ] په خپل عمل مبارک سره رسول الله ﷺ داسې تشريح کړې ده چه يوخل يوکَس په رسول الله ﷺ باندې داشان سلام واچولو چه، ، [السلام عليک يارسول الله] هغوئ ورته په جواب کښې ، ، وعليکم السلام ورحمة الله،

(۱) صحيح مسلم، کتاب الإيمان، باب بيان أنه لا يدخل الجنة: ج ۱، ص ۵۴
(۲) صحيح البخاری، کتاب الإيمان، باب اطعام الطعام من الاسلام: ج ۱، ص ۶، وصحيح مسلم، کتاب الإيمان، باب تفاضل الاسلام: ج ۱، ص ۴۸
(۳) مسند أحمد رقم الحديث: ۲۱۱۶۸- حديث أبي أمامة الباهلي رضي الله عنه وجامع الترمذي، أبواب الاستيذان: باب ما جاء في فضل الذي يبدأ بالسلام: ج ۲، ص ۹۹ وسنن ابی داود، کتاب الادب، باب فی فضل من بدا السلام: ج ۲، ص ۷۰۶
(۴) مسند بزار رقم الحديث: ۱۷۷۱، والمعجم الکبير للطبرانی رقم الحديث: ۱۰۲۲۸
(۵) المعجم الکبير للطبرانی رقم الحديث: ۳۲۲
(۶) مؤطا مالک باب جامع السلام رقم الحديث: ۱۵۱۶

او فرمائیل بل سړي راغلو او په دي الفاظو کښې ئې پر سلام واچولو چه ،،السلام علیک یارسول الله ورحمة الله،، هغوئ ورته په جواب کښې ،،وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته،، او فرمائیل، دریم صاحب چه راغې نو په سلام کښې ئې دغه درې واړه کلمې اضافه کړې نو هغوئ ورته په جواب کښې صرف ،،وعلیک،، ارشاد او فرمائیلو. دَدغه صاحب په زړه کښې ګیله پیدا شوه او عرض ئې او کړو چه یارسول الله ﷺ زما مور پلار دې په تاسو قربان وی چه رومبو صاحبانو په تاسو څومره الفاظو کښې سلام واچولو دغه ټول الفاظ ما راجمع کړل نو تاسو صرف په ،،وعلیک،، سره جواب راکړو. هغوئ ورته او فرمائیل چه ،،هر کله تا په خپل سلام کښې دغه ټول کلمات راجمع کړل نو ما هم ،،دَقرآنی تعلیم مطابق ،،ستا جواب بالمثل خکه درکړو چه تا څه کلمه زیاتول پریښې نهٔ وو. دا روایت ابن ابی حاتم او ابن جریر په مختلفو اسانیدو سره نقل کړې دې[1]-

دَدغې حدیث مبارک نه خو یوه خبره مونږ ته دا معلومه شوه چه دَسلام جواب په ښه صورت کښې دَورکولو مطلب دادې چه په کوم الفاظو کښې سلام واچولې شی دَهغې نه په زیاتو الفاظو کښې ورته جواب ورکوئ، مثلاً دَ ،،السلام علیکم،، جواب په ،،وعلیکم السلام ورحمة الله،، سره او دَ ،،السلام علیکم ورحمة الله ،،جواب په ،،وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته ،،سره ورکوئ-

بله خبره ترې دا معلومه شوه چه دَسلام جواب صرف دَدرې کلمو په زیاتولو سره مسنون دی، دغې نه زیاتې کلمې وئیل مسنون نهٔ دی، حکمت ئې دادې چه دَسلام موقعه دا تقاضا لری چه مختصر کلام دا وکړې شی دومره زیاتوالې پکښې مناسب نهٔ دې چه په اصل مقصود کښې خلل راولی او په آوریدونکی یو قسم پیټې شی، نو هر کله چه یو صاحب په سلام اچولو کښې درې واړه کلمې جمع کړې رسول الله ﷺ په جواب کښې دَهغې نه زیاتې کلمې اونهٔ فرمائیلې بلکه دَحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه دَروایت مطابق ئې دغه اخیرنی صاحب ته او فرمائیل چه ،، ﴿ان السلام قد انتهی الی البرکة﴾ [مظهري دَبغوی نه] [2] -مطلب ئې دا شو چه سلام په لفظ دَبرکت باندې ختمیږی دې نه زیاتول مسنون نه دی. [ومثله عن ابن کثیر] [3]

دریمه خبره د مذکوره حدیث نه د امعلومیږی چې په سلام کښې د دریو کلمو ویونکی په جواب کښې که صرف یوه کلمه هم اووئیلې شی نو هغه هم د اداء بالمثل په حکم کښې کافی ده. څنګه چه رسول الله ﷺ په خپل عمل مبارک سره اوښودل [تفسیر مظهری] [4]-

دَآیت دَمضمون خُلاصه دا شوه چه دَیو مسلمان په ذمه دَمسلمان دَسلام جواب ورکول واجب دی، که دَشرعی عُذر نه بغیر ئې جواب ورنکړو نو ګُناهګار به وی، خو په جواب ورکولو کښې دَدۀ و خبر واختیار دې چه دهغې نه په بهترو الفاظو کښې جواب ورکوی یا هم دَهغې پشان الفاظو کښې جواب ورکوی-

په آیت کښې خو ښه په ډاګه دَسلام جواب ورکول لازمی او واجب ښودلې شوی دی لیکن دا په ډاګه نهٔ دی ښودلې شوی چه رومبې دَسلام اچولو درجه څه ده؟ البته په [حُیِّیتُم] کښې دَدې حُکم ته داسې اشاره موجود ده چه سلام داسې یو څیز دې چه دَټولو مسلمانانو عادت ګرځیدلې دې، ولې چه

---

[1]) تفسیر الطبری لابن جریر تحت هٰذه الآیة رقم الحدیث: ۱۰۰۲۲

[2]) تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۵۷ موطأ مالک رقم الحدیث: ۱۵۳ باب العمل فی السلام-

[3]) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۳۲۹

[4]) تفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۷۳

داپه صیغه دَمجهول سره بغیر دَفاعل دَتاکلونه ذکرشوې دې –
په مسند احمد، ترمذی، ابی داؤد کښې دَرسول الله ﷺ داارشادنقل شوې دې چه دَالله تعالی په نزد، دَټولونه زیات نزدې کَس هغه دې چه په سلام اچولو کښې ړومبې شی(۱)-
دَرسول الله ﷺ دَارشاداتوله مخې تاسوته اوس دومره ضرور معلومه شوه چه ړومبې سلام کَول هم دَسُنت مؤکده نه کم نه دی، چنانچه په تفسیربحرِمحیط کښې مذکوردی چه ړومبې خل سلام کول دَاکثر علماؤ په نَزد سُنت مؤکده دی(۲) تردې چه حسن بصری فرمائیلی دی چه، ﴿السلام تطوع والرد فریضة﴾ اړومبې خل سلام اچول اختیاری کاردې خودَسلام جواب ورکول فرض دی!-
رسول الله ﷺ دَدې قرآنی حکم تشریح اودَسلام دَجواب تفصیلات پدې شان بیان کړل چه څه قدرې دَهغې څخه واورئ:
دَصحیحینوپه یوحدیث کښې راغلی دی چه په سورلئ سورسړې دې په سلام اچولو کښې ړومبې کیږی، دَغه شان روان سړې دَپه ناست سړی په سلام اچولو کښې مخکښې کیږی – اولږکسان په ډیرو کسانوتیریږی نوپکاردی چه دوئ په سلام اچولوپرړومبې کیږی(۳)-
دَترمذی په یوحدیث کښې راغلی دی چه هرکله څوک خپل کورته ورشی نوپکاردی چه دَکورپه خلقوسلام واچوی، دابه هغه دَپاره هم دَبرکت موجب وی اودَکوردَخلقودَپاره هم(۴)-
دَابی داؤدپه یوحدیث کښې راغلی دی چه که هرڅومره واري یومسلمان سره ملاقات اوشی نوپکاردی چه هغه هومره سلام هم پرِ اچوی(۵)-اوڅنګه چه په اول دَملاقات کښې سلام اچول مسنون دی دَغه شان دَرُخصتیدوپه وخت کښې هم سلام اچول مسنون اودَثواب کاردې، ترمذی اوابی داؤدکښې داحُکم په روایت دَابی قتاده ؓ اوابی هریره ؓ نقل شویدې . البته دَسلام جواب ورکول په هغه چاواجب نه دی چه مونځ کوی که چاپه داسې حالت کښې دَسلام جواب ورکړونومونځ ئې مات شو، په هغه چاهم دَسلام جواب ورکول واجب نه دی چه خُطبه وائی-دَقرآن کریم تلاوت کوی، په آذان اواقامت کولوکښې لګیاوی، دَدینی کتابونودرس ورکوی، په اودس ماتولواونورقسم انسانی ضروریاتواواستنجاکولوکښې مصروفه وی، په دې خلقو هم سلام اچول جائزنه دی اونه ئې دَدې جواب ورکول واجب دی-
دَمضمون په ختمیدوئې اوفرمائیل: ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا﴾ الله تعالی دَهرڅیزحساب اخستونکې دې، اچه پکښې انسانی اواسلامی حقوق ټول داخل دی لکه سلام اوجواب دَسلام شو-چه دَدې ټولوبه الله تعالی حساب اخلی-
بیانئې اوفرمائیل: ﴿اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ﴾ [دَالله تعالی نه سوابل هیڅوک معبودنشته، هغه معبودګنړئ، اوکوم رواکارچه کوئ هغه دَعبادت په نیت سرهَ کوئ، هغه به تاسولره، دَقیامت په ورځ جمع کړی چه هیڅ شک پکښې نشته، په دَغه ورځ به ټولوته بدلې

1. ) لم اعثر تخريجه.
2. ) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۲۳
3. ) صحيح البخاري، كتاب الاستئذان، باب تسليم الراكب على الماشي: ج ۲، ص ۹۲۱، وصحيح مسلم، كتاب السلام، باب يسلم الراكب على الماشي: ج ۲، ص ۲۳
4. ) جامع الترمذي، أبواب الاستئذان، باب ما جاء في تسليم الراكب الخ: ج ۲، ص ۹۹
5. ) سنن ابي داود، كتاب الأدب، باب في الرجل يفارق الرجل: ج ۲، ص ۷۰۶

ورکړی، دقیامت وعده، دجزا او سزا خبر تول حق دی ا ﴿وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا﴾ [څکه چه دا خبره دالله تعالی له اړخه دي، ا او دالله تعالی نه زياته دچا خبره رشتيا کيدې شی؟]-

فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِيْنَ

| نو څه شوی دی په تاسو | په باره دمنافقانو کښې
| دا په تاسو باندې څه شوی دی چې د منافقانو

فِئَتَيْنِ وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا ؕ

چې دوه ډلې يئ ا حالاتکه الله ا واپس ګرځولی دی هغوئ ا په سبب دهغه عملونو ا چې کړی دی هغوئ
باره کښې دوه ډلې شوئ ا حال دادې چې الله پاک هغوئ دخپل عمل په سبب اړولی دی

اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَهْدُوْا مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ وَمَنْ

آيا تاسو غواړئ ا چې نيغه لار اوښائې ا هغه چاته ا چې بې لارې کړې دې الله ا حالاتکه هغه څوك ا
آيا تاسو دا غواړئ چې هغه چاته هدايت اوکړئ څوک چه الله تعالی ګمراه کړی وی ا او څوک چې

يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ۞ وَدُّوْا لَوْ

چې بې لارې کړی ا الله ا نو هرګز ا ته به اونه مومې ا دپاره دهغه ا څه لار ا هغوئ غواړی ا
الله ﷻ دلارې نه بې لارې کړی ا نو هغه دپاره بيا ته سمه لار نشې مومدې ا ......... هغوئ خو دا غواړی

تَكْفُرُوْنَ كَمَا كَفَرُوْا فَتَكُوْنُوْنَ سَوَآءً

چې تاسو کافران شئ ا لکه څنګه چې ا هغوئ په خپله کافران دی ا اوشئ تاسو او هغوئ تول ا برابر ا
لکه څنګه چې پخپله کافر دی چې دغه شان تاسو هم کافران شئ ا ..............چې تول برابر شئ

فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ اَوْلِيَآءَ حَتّٰى يُهَاجِرُوْا

نو په دې وجه تاسو مه جوړوئ ا دهغوئ نه ا دوستان خان له ا تر دې چې ا هجرت اوکړی هغوئ
نو هيڅوک ترينه خان سره مه ملګری کوئ ا تر دې چې د الله په لار کښې ا د مکې نه مدينې ته ا هجرت

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ

په لار د الله کښې ا نو که مخ ئې واړلو دهجرت نه ا نو اونيسئ هغوئ ا او قتل کړئ هغوئ ا چرته چې
اوکړی ا نو که دهجرت نه ئې ډده اوکړه ا نو چه په کوم ځائې کښې وی نو نيسئ ئې او قتلوئ ئې

وَجَدْتُّمُوْهُمْ ۠ وَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ۞ اِلَّا

اومومندل تاسو هغوئ ا اومه نسئ ا په هغوئ کښې ا دوست ا اونه مددګار ا ماسوا
............ اوپه دوی کښې هيڅوک خان له ملګری يا مددګار مه جوړوئ ا البته

الَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ اِلٰى قَوْمٍۭ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ

دهغه منافقانو نه ا چې يو ځائې شی ا ديو قوم سره ا چې په منځ ستاسو ا او په منځ دهغوئ کښې ا معاهده وی
هغه منافقان چې ا د قتل دحکم نه بچ دی ا چې داسې قوم سره يو ځائې شی چې ستاسو ور سره معاهده شوې وی

أَوْ جَاءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ أَنْ يُقَاتِلُوكُمْ

یا راشي هغوئ تاسوته | چې تنګې شوې وي | سینې دهغوئ | ددې خبرې نه چې | جنګ اوکړي تاسو سره

یا داسې منافقان چې تاسو ته راشي او په جنګ کولو ستومانه وي نه تاسره جنګ کوي

أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمَهُمْ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ

یا جنګ اوکړي | دقوم خپل سره | اوکه | اغوښتلې الله | نوخامخا به ني غلبه ورکړې وې هغوئ ته | په تاسه

اونه خپل قوم سره جنګ کوي | اوکه الله ﷻ غوښتلې نودغه منافقان به ني په تاسو مسلط کړي وي

فَلَقَاتَلُوكُمْ ۚ فَإِنِ اعْتَزَلُوكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوكُمْ وَأَلْقَوْا

نوخامخا به جنګیدل تاسو سره | نوکه چرې | څنګ اوکړي هغوئ تاسونه | اونه کوي جنګ تاسو سره | اوو راند ني کړه

اوتاسوسره به ني جنګونه کول | نوکه هغوئ ستاسو دمقابلې نه ډډه اوکړي | اوتاسوسره جنګ نه کوي

إِلَيْكُمُ السَّلَمَ فَمَا جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيلًا ۝

تاسو ته | صلح | پس نۀ دې درکړې الله | حق تاسو ته | په هغوئ باندې | دلارې |

اود صلحې لاس درواړاندې کړي | نوبیا الله ﷻ تاسوته دهغې مقابله کښې دجنګ حق نه دې درکړې

سَتَجِدُونَ آخَرِينَ يُرِيدُونَ أَنْ يَأْمَنُوكُمْ

بیا به اومومئ تاسو | نور منافقان | چې غواړي به هغوئ | چې په امن کښې پاتې شي ستاسونه |

یو بل قسم منافقان به بیامومئ چې | جنګ نه خوښوي | داغواړي چې ستاسو دطرفه هم په امن کښې وي

وَيَأْمَنُوا قَوْمَهُمْ كُلَّمَا رُدُّوا إِلَى الْفِتْنَةِ أُرْكِسُوا

اوپه امن پاتې شي | دقوم خپل نه | هرکله چې | اوبللې شي هغوئ | فتنې ته | نوواپس وګرځولې شي |

اودخپل قوم د طرفه هم امن کښې وي | خوهرکله چې دشر موقع په لاس ورشي نو هغې ته ورګرځي

فِيهَا ۚ فَإِنْ لَمْ يَعْتَزِلُوكُمْ وَيُلْقُوا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ

په هغې کښې | نو که نۀ شول په څنګ ستاسو نه | اوو راند ني نۀ کړه | تاسو ته | صلح

نوکه دغه خلق ستاسره دمقابلې نه روستو نشو | ..................او صلح پیش نکړي

وَيَكُفُّوا أَيْدِيَهُمْ فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ ۚ

اوبندې نۀ کړل | لاسونه خپل | نواونیسئ هغوئ | اوقتل کړئ هغوئ | هرځائې کښې چې اومومئ هغوئ

اولاسونه ني اونیول | نوچې کوم ځائې ني بیامومئ هلته ني رانیسئ او قتلوئ ني

وَأُولَٰئِكُمْ جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطَانًا مُبِينًا ۝

اوهغوئ تول چې دي | ګرځولې دي مونږ | تاسو دپاره | په هغوی باندې | دلیل | ښکاره |

اوهم په دې خلقو باندې مونږ تاسوته د لاس پورته کولو څرګند اختیار درکړې دې

**آسان ترجمه قرآن:** بیا تاسو لره څه شوي دي چه د منافقانو په باره کښې دوه ډلې شوئ؟ حال دا چه هغوی چه کوم کار ونه کړي دي د هغې په وجه الله هغوی ذلیل کړي دي آیا تاسو دا غواړئ چه داسې کس په هدایت باندې راولئ چه الله هغه (دهغه دخواهش مطابق) په ګمراهئ کښې مبتلا کړي وي؟ او الله چه

څوك په ګمراهۍ كښې مبتلا كړي نو هغه دپاره ته چرې هم د هدايت څه لاره نه شې موندلې دا خلق غواړي چه لكه څنګه چه دوى كفر كړې دې داسې تاسو هم كفر وكړئ چه ټول برابر شئ نو (اې مسلمانانو!) تاسو د دوى نه چا لره هغه وخته پورې دوست مه جوړوئ تر څو چه دوى د الله په لاره كښې هجرت نه وې كړې نو كه دوى (هجرت نه) اعراض وكړى نو دوى لره ونيسئ او كوم ځائې كښې هم چه دوى ومومئ نو قتل ئې كړئ او دوى نه چا لره مه څوك دوست نيسئ او نه مددګار خو هغه خلق ددې حكم نه مستثناء دي چه داسې قوم ته لاړ شي چه د هغوى او ستاسو په مينځ كښې څه (د صلح) معاهده وي يا هغه خلق تاسو څخه داسې حالت كښې راشي چه د هغوى زړونه ستاسو خلاف د جنګ نه هم بيزاره وي او د خپل قوم خلاف جنګ كولو نه هم او كه د الله خوښه وې نو دوى به ئې په تاسو مسلط كړې وو نو تاسو سره به ئې ضرور جنګ كړې وو نو كه دوى ستاسو نه بېرته شي او جنګ نه كوي ، او تاسو ته د امن پېش كشې وكړي نو الله تاسو لره ددوى خلاف د كارروايئ څه قسم حق نه دې دركړې (په منافقانو كښې) څه نور خلق به تاسو ته داسې ملاؤ شي چه هغوى داغواړي چه ستاسو نه هم محفوظ شي او د خپل قوم نه هم محفوظ شي (خو) چه كله دوى فتنې ته راوبللې شي نو دې كښې نسكور ور پرېوځي نو كه دا خلق تاسو سره (د جنګ كولو نه) جدا نه شي او نه تاسو ته د امن پېش كش وكړي او نه خپل لاسونه بند كړى نو دوى لره ونيسئ او كوم ځائې چه ئې وموموئ دوى ووژنئ د داسې خلقو خلاف الله تاسو ته كهلاؤ اختيار دركړې دې.

## خلاصه تفسير

**د دريو مختلفو ډلو بيان او د هغې احكام:: د ړومبئ ډلې بيان۞** [كله چه تاسو ددې مرتدانو حالت اوليدلو] ﴿فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ﴾ بيا په تاسو څه اوشو چه ددې منافقانو په باره كښې تاسو [درائې اختلاف اوكړو] دوه ډلې شوئى [چه يوه ډله اوس هم دوى ته مسلمانان وائى] ﴿وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا﴾ حال دا دې چه الله ﷻ دوى لره [ددوى ښكاره كفر ته] التې واړول ددوى د [بد] عمل په سبب [دغه بد عمل دا دې چه د مرتد كېدو په وجه ئې سره د توفيق دار اسلام پرېښودو چه ددغه وخت د اسلام د اقرار پرېښودو پشان د كفر نخښه وه او په واقع كښې خو دوى د ړومبې نه هم مسلمانان شوى نه وو. او هم په دې وجه ئې ورته منافقان اووئيل!] ﴿اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَهْدُوْا مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ﴾ آيا تاسو خلق [چه درته معلومه نه ده چه دار اسلام پرېښودل نخښه د كفر ده] ددې اراده لرئى چه داسې خلقو ته هدايت اوكړئى چه الله ﷻ [كله چه دے خلقو ګمراهي اختيار كړه] په ګمراهئى كښې اخته كړى دى [الكه چه د الله ﷻ عادت دې چې ديو كار د قصد كولو په وخت دغه كار پيدا كوى . مطلب دا دې چه يو غير مومن ګمراه ته هر كله چه هدايت موندونكے مومن وائې نو دا تاسو لره روا نه دى!] ﴿وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا۝﴾ او چالره چه الله ﷻ په ګمراهئى كښې اخته كړى د هغه [د مومن كېدلو] دپاره به څه لار بيا نه مومئى [پس دې خلقو ته مومنان نه دى وئيل پكار او ښه ده نو دا خلق پخپله څه مومنان كېدلې شى چه په كفر كښې ددوى د اخته كېدو خو دا حالت دې چې!] ﴿وَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ كَمَا كَفَرُوْا﴾ دوى په دې آرزو كښې وى چه څنګه دوى كافران دى تاسو هم [الله ﷻ دې نكړى!] كافران جوړ شئ ﴿فَتَكُوْنُوْنَ سَوَآءً﴾ چه په كښې تاسو او دوى ټول يوشان شئ نو [هر كله چه ددوى دا حالت دې نو!] ﴿فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ اَوْلِيَآءَ﴾ په دوى كښې هيڅ چا لره دوست مه جوړوئى [يعنى هيڅ چا سره هم

د مسلمانانو پشان سلوك مه كوئی ځنګه چه د دوستئ د جائز كيدو دپاره اسلام شرط دي] ﴿ حَتّٰى يُهَاجِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴾ ترڅو چه دوی دالله ﷻ په لار كښې [يعنی اسلام دكاملولو دپاره] هجرت اونكړی [ځكه چه ددغه وخت دهجرت هغه حكم وو چه اوس كوم حكم دشهادت اقرار دې اود اسلام دكاملولو قيد ځكه دې چې صرف دار اسلام ته راتلل كافی نه دی ولې چه هسې خو سوداګر كفار هم دار اسلام ته راځی بلكه چه په اسلامی شان سره راشی يعنی اسلام ښكاره كړی چه اقرار او هجرت لره يو ځائې جمع كړی . پاتې شو د زړه تصديق نو دهغې علم يواځې الله ﷻ سره دے مسلمانانو ته ددې د لټولو ضرورت نشته دی] ﴿ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ ﴾ اوكه دوی [داسلام نه] مخ اړوی [اوپه خپل حال كافران پاتې شی] نو دوی رانيسئ اوقتلوئ ئې چرته ئې چه بيا مومئ [دا نيول يا دوژلو دپاره دی يا دغلامانو دجوړولو دپاره] ﴿ وَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴾ اونه په دوی كښې څوك دوستان جوړوئ اونه مددګاران [يعنی داچه په هيڅ حالت كښې دوی سره تعلق مه لرئ نه په امن كښې ورسره دوستی لرئ اونه په ويره كښې ترې مددغواړئ بلكه ځان له بيل ترې پاتې كيږئ]

**دوهمې ډلې بيان** ﴿ اِلَّا الَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ اِلٰى قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ ﴾ مګر [په دې كفارو كښې] چه كوم خلق داسے دی چه [تاسوسره په صلح كښې پاتې كيدل غواړی چه دهغې دوه طريقے دی يو خوا دا چه د صلحے په ډول وی يعنی] داسې خلقو سره يو ځائې كيږی [يعنی لوظ ورسره اوكړی] چه ستاسو اودهغوی ترمينځه لوظ [دصلحے] دے [الكه بنومدلج چه صلح ورسره اوشوه نوهغوی سره لوظ كونكی هم په دې صلح كښې راغلل نو بنومدلج خو په طريقه اولی دې صلح كښے راغلل] ﴿ اَوْ جَآءُوْكُمْ حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ اَنْ يُّقَاتِلُوْكُمْ اَوْ يُقَاتِلُوْا قَوْمَهُمْ ﴾ يا [بله طريقه داده چه يې د واسطے نه صلح وی په دې سے شان چه] پخپله تاسو ته په دې سے حالت كښې راشی چه دهغوی زړونه تاسو سره او خپل قو سره هم دجنګ كولونه ډك شوی وی [يعنی خپل قوم سره هم تاسو سره جنګ كولو دپاره نه ملګری كيږی اونه خپل قوم سره په ملګری كيدو تاسو سره جنګ كولو ته تياريږی يعنی هغوی اوتاسو دواړو سره صلح لری نوددې دواړو طريقو په وجه ددوی نيول او وژل نشته] ﴿ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ فَلَقٰتَلُوْكُمْ ﴾ او [تاسو ددې خلقو دصلحے د درخواست كولو په وجه دالله ﷻ احسان ځكه اومنئ چه ددوی په زړونو كښې ئے ستاسو رعب واچولو ورنه] كه الله ﷻ غوښتلے نودوی به ئې په تاسو مسلط [او زړور] كړی وو بيا به دوی تاسو سره جنګيدل [مګر الله ﷻ تاسو دے پريشانئ نه اوساتلئ] ﴿ فَاِنِ اعْتَزَلُوْكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ وَاَلْقَوْا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ ﴾ بياكه [صلح كولو نه پس] تاسونه په ډډه اوسيږی يعنی درسره جنګ نه كوی او د روغے جوړے سلوك درسره كوی [ددې ټولو الفاظو مطلب دادې چه روغه جوړه ددرسره لری دانور الفاظ ئے تاكيد دپاره اوفرمائيل] ﴿ فَمَا جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيْلًا ﴾ نو [ددې روغے جوړے په حالت كښې] الله ﷻ تاسو لره په دوی باندې [دوژلو ياقيدولو] هيڅ لار نه ده دركړې [يعنی ددې اجازت ئے نه دې دركړې]

**ددريمې ډلې بيان** ﴿ سَتَجِدُوْنَ اٰخَرِيْنَ ﴾ بعضې داسې به هم تاسوته ملاو شی [يعنی دهغوی به دا حالت معلوميږی] ﴿ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّاْمَنُوْكُمْ وَيَاْمَنُوْا قَوْمَهُمْ ﴾ چه د [دهوكے په ډول] هغوئ دا [هم] غواړی چه تاسو نه هم بے خطرے پاتې كيږی اودخپل قوم نه هم بےخطرے پاتې كيږی ﴿ كُلَّمَا رُدُّوْا

إِلَى الْفِتْنَةِ أُرْكِسُوا فِيهَا ﴾ [اوسره ددې هم] کله چه هغوی لره [دښکاره مخالفينو له طرفه] شرارت [اوفساد ته] مخه راواړولې شي [يعنې مسلمانانو سره دجنګ کولو دپاره ورته اوونيلې شي] نوهغوی [سمدستي] پدغې [شرارت] کښې ورپريوځي [يعنې مسلمانانو سره جنګ کولوته بدې اووهي [پاڅي راپورته کړي] اوهغه د دهوکې صلح ماته کړي] ﴿فَإِن لَّمْ يَعْتَزِلُوكُمْ وَيُلْقُوا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ وَيَكُفُّوا أَيْدِيَهُمْ﴾ نودغه خلق که [صلح ماته کړي او] تاسو [يعنې تاسو سره دجنګ کولو] نه ډډه اونکړي اونه تاسوسره روغه جوړه لري اونه خپل لاسونه [ستاسو دمقابلې نه] بنداوساتي [دوراندې پشان د ټولو مطلب يوشان داسې دي چې صلح ماته کړي] ﴿فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ﴾ نوتاسو [هم] هغوی نيسئ او وژنئ ئې چرته ئې چه بيا مومئ ﴿وَأُولَٰئِكُمْ جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطَانًا مُّبِينًا﴾ او مونږ تاسولره په هغوی باندې صفا حجت درکړې دې [چه دهغې نه دهغوی وژل ښکاره دي دهغوی دلوظ ماتولو دغه حجت دې].

## معارف اومسائل

﴿فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ﴾ په ذکرشوی آيتونوکښې دَدرې ډلوبيان دې چه دَهغوئ په باره کښې دوه حکمونه ذکرشويدی دَدې ډلوواقعات په دَلاندې ذکرشوورواياتونونه په ډاګه کيږي.

ړومبې روايت: عبدالله بن حميد رحمه الله دَحضرت مجاهد رحمه الله نه روايت اوکړوچه دَمکې څنې مشرکان مدينې منورې ته راغلل اودائې ښکاره کړل چه مونږه مسلمانان شوی يواوهجرت مواوکړوليکن بيامرتدشو-اورسول الله ﷺ ته ئې دابهانه جوړه کړه چه مونږدَمکې مکرې نه دتجارت څه سامان راوړو، داشان هلته لاړل اوبيارانغلل، دَدوئ په باره کښې دَمؤمنانورائې مختلفې شوې، څنوونيل چه دغه خلق مؤمنان دي اوڅنوورته کافرونيل، الله تعالى دَدوئ کافرکيدل په دې آيت ﴿فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ﴾ کښې بيان کړل اودَدوئ دَقتل حکم ئې ورکړو.

حضرت حکيم الامت تهانوی رحمه الله فرمائيلي دی چه دوئ ته دَمنافق وئيلودامطلب ووچه دَاسلام دَدعوې کولوپه وخت هم دوئ منافق وؤ اودَزړهٔ نه ئې نه ووراوړې، اګرچه دَمنافقانوقتل کول په شريعت کښې نهٔ ووخوترهغې پورې چه کُفربه ئې پټولو، ليکن دَدې خلقومرتد کيدل ښکاره شوی وو، دوئ ته مسلمانان وئيل دحسن ظن په وجهې سره وو، داسې ښکاری چه دَدوئ دَمرتد کيدوپه دليلونو کښې ئې څه تاويل کړې وو-خوهر کله چه دغه تاويل دَذاتي رائې په بُنياد باندې شوې وو چه تائيدئې په څه شرعی دليل سره نهٔ ووشوې خکه ورله څه اعتبارورنکړې شو-

دويم روايت: ابن ابی شيبه، دَحضرت حسن رضي الله عنه نه داسې کړې دې چه دَبدراواُحد دَواقعې نه پس، سراقه بن مالک دَرسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشواودرخواست ئې پيش کړوچه زما قوم بنی مدلج سره صُلح اوکړئ، هغوئ په دې غرض حضرت خالد رضي الله عنه هلته اوليږلودَصلح مضمون داوؤ:

مونږ به دَرسول الله ﷺ خلاف دَهيچامددنهٔ کوؤاوکه قريش مسلمانان شي، مونږ به هم مسلمانان شواوکوم قومونه چه مونږ سره يوځائې دی هغوئ هم په دې معاهده کښې مونږ سره شريک دي (۱).

نوپه دې باره کښې آيت، ﴿وَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ﴾ تر ﴿إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ﴾ الخ نازل شو-

---

۱) مصنف ابن ابی شیبه: ج ۸، ص ۳۵۸

دریم روایت: دحضرت ابن عباس نه داسې شویدي چه ﴿سَتَجِدُوْنَ اٰخَرِيْنَ الخ﴾ کښې دَ ذکرشوؤ خلقونه مراد دَاسد او غطفان دَ قبیلې خلق دی چه مدینې ته راغلل، په ښکاره به ئې دَاسلام دعوی کوله او خپل قوم ته به ئې وئیل چه مونږه په بیزو [اشادو] اولړم ایمان راوړي دي او مسلمانانو ته به ئې وئیل چه مونږ خوستاسو په دین یو (۱)-

او ضحاک دَحضرت ابن عباس ﷺ په روایت داحالت دَبنی عبدالدار نقل کړي دي، ړومبې او دویم روایت په روح المعانی کښې او دریم په معالم کښې دي-

حضرت تهانوی ﷫ فرمائیلي دی چه دَدې روایت دَخلقو مثال دَاول روایت دَخلقو پشان شو چه دړومبې نه دَدې خلقونه مسلمانیدل په دلیل سره ثابت شوی وو، خکه ئې حکم دَعامو کفارو پشان دي، یعنی دَصُلح کولو په وخت دورسره جنګ اونکړې شي او دَصُلح دَنیشتوالی په صورت کښې د ورسره جنګ کولې شي، چنانچه دَړومبی روایت والو په باره کښې دویم آیت: ﴿فَاِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ﴾ کښې دَدوئ دَګرفتارولو او قتلولو حُکم او په دریم آیت:

﴿اِلَّا الَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ﴾ کښې دَصُلح په باره کښې دَدوئ استثنا موجود ده، دَجهاد مصالحت ذکرچه په دویم روایت کښې دي او دَاستثناء دَتاکید دَپاره ئې بیا دَ ﴿فَاِنِ اعْتَزَلُوْكُمْ﴾ تصریح اوکړه- او دَدریم روایت والو په باره کښې، په څلورم آیت ﴿سَتَجِدُوْنَ اٰخَرِيْنَ﴾ کښې بیان شویدی- چه که دغه خلق تاسو نه په دوه کیږي بلکه جنګ درسره کوي نو تاسو ورسره جهاد کوئ، دي نه معلومیږي چه که دوئ صُلح اوکړي نو ورسره دجنګ نشي کولې [بیان القرآن] (۲)

خُلاصه داچه دلته دَدریو فرقو بیان اوکړې شو-

① په کومه زمانه کښې چه هجرت کول اسلام دَپاره شرط وو په هغه زمانه کښې هجرت اونکړي یا خو هجرت کولو نه پس دَدار اسلام نه بیا دار حراب ته منتقل شي-

② مسلمانانو سره دَجنګ نهٔ کولو لوظ قول پخپله اوکړي یا داسې معاهده کوونکو سره لوظ اوکړي-

③ چه دَوخت تیرولو په غرض صُلح اوکړي خو چه دَمسلمانانو خلاف دَجنګ کولو دعوت ورکړې شي نو په هغې کښې شریک شي او په خپل کړي لوظ ټینګ پاتې نشي-

ړومبې: ډله دَعامو کفارو پشان ده، بله ډله دوژلو او نیولو راګیرولو نه مستثنې ده، دریمه ډله هم دَهغه سزا مستحق ده دکومې چه ړومبۍ ډله ده- دَدې آیتونو تول دوه حکمونه ذکرشوی دی، دَصُلح دَنیشتوالی په وخت کښې جنګ کول، او دَصُلح په صورت کښې ورسره جنګ نهٔ کول-

**هجرت مختلف صُورتونه او احکام:** ﴿حَتّٰى يُهَاجِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ [۳] دَاسلام په شروع کښې دَدار کُفر نه هجرت کول په تولو مسلمانانو فرض وو، په دې وجه الله تعالی داسې خلقو سره دَمسلمانانو پشان دَسلوک کولو منع کړې وه کوم چه دَدې فرض پرېښودونکی وو، بیا چې کله مکه مکرمه فتح شوه نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿لاهجرة بعد الفتح﴾ [رواه البخاری] (۴) یعنی هر کله چې مکه فتح شوه او دارالاسلام جوړ شو نو اوس د هغه ځائې ځخه هجرت فرض پاتې نشو، دا دهغه

(۱) تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۴۰
(۲) تفسیر بیان القرآن تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۳۱، ۱۳۲
(۳) د هجرت متعلق بحث دپاره د سورة نساء د سلم [۱۰۰] تفسیر اوګورئی.
(۴) صحیح البخاری، کتاب الجهاد، باب لا هجرة بعد الفتح: ج ۱، ص ۴۳۲

زمانې حکم دې چې کله هجرت شرط ایمان وو. هغه سړی ته به مسلمان نشو وئیلې کیدې چې د کوم به وس وو او ددې باوجود به ئې هجرت نه کولو. خو روستو دا حکم منسوخ شو. اوس دا صورت باقی نه دې پاتې.

دهجرت دویم صورت به تر قیامته پورې باقی وی. اود هغې باره کښې حدیث پاك کښې راغلی دی چې: ﴿لاتنقطع الهجرة حتى تنقطع التوبة﴾ [بخاری] (١) یعنی هجرت به تر هغه وخته پورې باقی وی تر کومې چې د توبې د قبولیت وخت باقی دې.

علامه عینی رحمه الله دبخاری شارح د هجرت متعلق لیکلی دی چې ﴿ان المراد بالهجرة الباقية هي هجر السيئات﴾ [یعنی دې هجرت نه مراد دګناهونو پریښودی] (٢). څنګه چې په یو حدیث مبارك کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: ﴿المهاجر من هجر مانهى الله عنه﴾ [مهاجر هغه دې چه دټولو هغه څیزونو نه خان ساتی کوم چه الله تعالی حرام کړی دی] [په حواله دمرقاة جلد اول] (٣)

ددې ټول بحث نه معلومه شوه چه په اصطلاح کښې هجرت په دوه معنو کښې استعمالیږی.

① ددین په خاطر وطن پریښودل لکه چه صحابه کرامو خپل وطن مکه مکرمه پریښوده، حبشې اومدینې منورې ته ئې هجرت کړې وو- ② دګناهونو پریښودل-

﴿وَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا﴾ دې آیت شریف نه معلومیږی چه کُفارو نه مدد غوښتل حرام دی، چنانچه یو روایت کښې راغلی دی چه هر کله انصارو درسول الله ﷺ نه دا اجازت اوغوښتو چه دیهودو نه مدد اوغواړی نو هغوئ ورته اوفرمائیل: ﴿الخبيث لاحاجة لنا بهم﴾ [یعنی دا خبیث قوم دې زمونږ سره دوئ ته هیڅ ضرورت نشته] [مظهری جلد ۲] (٤)-

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا كَانَ | | | | | | | |
| اونهٔ دې كار | | | | | | | |
| اوديو ............ | | | | | | | |
| لِمُؤْمِنٍ | أَنْ يَقْتُلَ | مُؤْمِنًا | إِلَّا خَطَأً | وَمَنْ | قَتَلَ | مُؤْمِنًا | خَطَأً |
| ديو مومن | چی قتل کړی | مومن | مگر په خطا سره | او څوك چي | مړ کړی | يو مومن | په خطا سره |
| مسلمان دا کار نه دې اچې هغه بل مسلمان قتل کړی امکر په خطا سره او چا چې يو مسلمان په خطا سره قتل کړو | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَتَحْرِيرُ | رَقَبَةٍ | مُؤْمِنَةٍ | وَدِيَةٌ | مُسَلَّمَةٌ | إِلَى أَهْلِهِ | إِلَّا |
| نو دی آزاد ول | ديو غلام | مومن | او ديت دې | چی سپارلي شوې وی | وا رثانو دمړی ته | مگر |
| نو اكفاره ئې داده ا چې يو مؤمن مرئی دې آزاد کړی ا اود مړی وارثانو ته دې ديت ورکړی ا مگر | | | | | | |

---

(١) دا حدیث عاجز بنده ته په صحیح بخاری کښې ملاو نه شو، البته سنن ابي داود، كتاب الجهاد، باب في الهجرة هل انقطعت کښې شته دے۔

(٢) عمدة القاری: ج ۱، ص ۷۷

(٣) مرقاة، كتاب الصلاة، باب الامامة، ومسند أحمد، مسند عبد الله بن عمرو رضي الله عنه رقم الحديث: ۶۷۳۲

(٤) تفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۷۹

أَنْ يَصَّدَّقُوْا ۭ فَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ

که هغوئ معاف کړی دیت | نوکه وي | دداسې قوم نه | چې دشمن وي ستاسو | او هغه وي مومن |

که هغوئ خون بها او بخښي انو جائز ده | او که دغه مؤمن مړي دداسې قوم سړي وو چې ستاسو ورسره دشمني وی

فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۭ وَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ

نو دی آزادول دیو غلام | مومن | او که وي مړي | دداسې قوم نه | چې په منځ ستاسو |

نو یو مسلمان مرئی دي ازاد کړی | او دومره بس دی | او که دداسې قوم سړي وو چې ستاسو

وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ وَتَحْرِيْرُ

او په منځ دهغوئ کښې | معاهده وه | نو دي دیت | ورسپارلي شوي | وارثانو د مړي ته | او آزادول |

او دهغوئ په مینځ کښې یوه معاهده وی | نو دهغه وارثانو ته دي دیت هم ورکړی | او

رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۚ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ ۡ

دیو غلام | مومن | نو چا چې اونه موندو [غلام] | نو دی پرې روژې نیول | دوه میاشتې | پرله پسې

یو غلام دي هم آزاد کړی | او څوک چه د مریي آزادولو طاقت نه لری | نو هغه دي دوه میاشتې پرله پسې روژې

تَوْبَةً مِّنَ اللّٰهِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۝ وَمَنْ يَّقْتُلْ

دپاره دقبلولو دتوبې | دطرفه دالله نه | او دي | الله | پوهه | خاوند د حکمت | او څوک | چې قتل کړی

اونیسی | دا دالله ﷻ دطرفه دتوبې ویستلو طریقه ده | او الله په هر څه پوهه او صاحب حکمت دي | او څوک چې یو

مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهٗ جَهَنَّمُ خٰلِدًا فِيْهَا وَغَضِبَ اللّٰهُ

یو مومن | په قصد سره | نو سزا دهغه | جهنم دی | چی همیشه به وی | په هغې کښې | او غضب کړی دی الله

مومن په قصد سره قتل کړی | نو دهغه سزا دوزخ دي | په هغې کښې به همیشه وی | او په هغه د الله غضب

عَلَيْهِ وَلَعَنَهٗ وَأَعَدَّ لَهٗ عَذَابًا عَظِيْمًا ۝

په هغه باندي | او لعنت کړي دي الله په هغه باندي | او تیار کړي نی دي | هغه دپاره | عذاب | لوی

دي | او دهغه لعنت دي پرې | ............... او الله داسې [قاتل] دپاره ډیره لویه سزا مقرر کړي ده

**آسان ترجمه قرآن:** د یو مسلمان دا کار نه دې چه هغه بل مسلمان ووژني مګر داچه غلطۍ سره داسې وشي او کوم یو کس چه یو مسلمان په غلطۍ سره ووژني نو په هغه باندې فرض دي چه یو غلام آزاد کړي او دیت (یعنی خُون بَها) د مقتول وارثانو ته ورسوي ، هنه که هغوی معافي وکړي او که مقتول د یو داسې قوم نه وي چه ستاسو دښمنان وي ، خودې پخپله مسلمان وي نو یو مسلمان غلام آزادول دي (خون بها درکول واجب نه دی) او که مقتول دهغه خلقو نه وي چه (مسلمانان نه وي مګر) د هغوی او ستاسو په مینځ کښې څه معاهده وي نو بیا هم دا فرض ده چه خون بها د هغوی وارثانو ته ورسولې شي او یو مسلمان غلام دي آزاد کړې شي هنه که چا سره غلام نه وي نو په هغه فرض دي چه دوه میاشتې روژې ونیسي دا د توبې طریقه ده چه دالله مقرر کړي ده او الله علیم او حکیم دي او څوک چه یو مسلمان لره

قصدًا ووژنی نو دهغه سزا جنهم دي. دې کښې به هغه همیشه وي او الله به په ده باندې خپل غضب نازل کړي او لعنت به راولیږي او الله ده د پاره زبردست عذاب تیار کړې دې.

## خلاصه تفسير

﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ اَنْ يَّقْتُلَ مُؤْمِنًا اِلَّا خَطَـًٔا ﴾ اود چا مومن شان نه دې چه هغه مومن لره [دشروع نه] اووژنی مګر په غلطۍ سره [چه اوشی نوهغه بیله خبره ده] ﴿ وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَـًٔا ﴾ او څوك چه چا مومن لره په غلطۍ سره اووژنی ﴿ فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهْلِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يَّصَّدَّقُوْا ﴾ نو په هغه [د شریعت له مخه] یو مسلمان غلام یا وینځه آزادول [واجب] دی او خون بها [هم واجبه] ده چه هغه [مقتول] خاندان والو ته دې [یعنی وارثانو ته ئې دمیراث د برخو په اندازه] حواله کړې شی [اودچا چه څوك وارثان نه وی نو بیت المال د وارثانو قائم مقام دې] مګر که دغه خلق [دغه دیت] معاف کړی [خواه ټوله وی یا بعضې نوهمدغه هومره به معاف شی] ﴿ فَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ ﴾ اوکه هغه [په خطا وژلې شوې] دداسې قوم نه وی چه ستاسو مخالف وی [یعنی حربیان دی اوهم پدوی کښې په څه وجه اوسیدو] اودغه کس پخپله مومن دې نو [صرف] ﴿ فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ﴾ یو غلام یا وینځه مسلمانا آزادول دی [اودیت ځکه نشته که ددغه مقتول وارثان مسلمانان وی نوهغوی ځکه حقدار نه دی چه اسلامی حکومت کښې نه اوسیږی اوکه کافران دی نو په دې صورت کښې دیت دبیت المال حق جوړیږی اودار حرب نه د دار اسلام بیت المال ته میراث نشی راورلې] ﴿ وَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ ﴾ اوکه دغه [په خطا وژلې شوې کس] دداسې قوم نه وی چه ستاسو او ددوی ترمینځه لوظ [دصلحې یاذمې] وی [یعنی ذمی صلح کوونکې یا امن غوښتونکې وی] ﴿ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهْلِهٖ وَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ﴾ نو خون بها [هم واجبه] ده چه ددغې [مقتول] خاندان والو [یعنی وارثانو] ته به حواله کولې شی [ځکه چه کافر دکافر وارث وی] اویو غلام یا وینځه مسلمانه به آزادول وی بیا [په کومو صورتونو کښې چه غلام یا وینځه آزادول واجب دی] ﴿ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ ۡ تَوْبَةً مِّنَ اللّٰهِ ﴾ چاته چه [غلام یاوینځه] په لاس نه راځی [اونه یې قیمت لرلې شی] نو [دده په ذمه ددې آزادولو په ځائې] په مخه [یعنی بې د پاڅې] ددو میاشتو روژې دی [دا آزادول اوددې د پېروسۍ په صورتونو کښې روژې نیول] په ډول دتوبې [دی] چه دالله ﷻ د طرفه ټاکلې شوی دی [یعنی دا طریقه ئې په شریعت کښې مقرر کړې شوې ده] ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴾ اوالله ﷻ دلوئې علم خاوند او د حکمت خاوند دې [په خپل علم او فضل سره ئې دمصلحت اوښیګړې په جوړ احکام مقرر کړی دی ګو چه هر چرته حکمت بنده ته معلوم نه وی].

﴿ وَمَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاۗؤُهٗ جَهَنَّمُ ﴾ او څوك چه چا مسلمان لره په قصد اووژنی نو دده [اصلی] سزا [خو] جهنم [کښې داشان استوګنه] ده ﴿ خٰلِدًا فِيْهَا ﴾ چه همیشه به په کښې اوسیږی [لیکن دالله ﷻ فضل دې چې دا اصلی سزا به جاری نه وی بلکه دایمان په برکت به آخرنجات بیا مومی] ﴿ وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهٗ وَاَعَدَّ لَهٗ عَذَابًا عَظِيْمًا ﴾ اوپده به [ټاکلې نیتې پورې] الله ﷻ په قهر وی او دې به دخپل [خاص] رحمت نه لرې کړی اوده دپاره به دلوئې سزا [یعنی د دوزخ دسزا] انتظام کوی.

## معارف او مسائل

دانتونو نړونه ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَن يَقْتُلَ مُؤْمِنًا إِلَّا خَطَـًٔا﴾ دپورته نه دجنګ جګړو ذکر په مخه راروان دي او دشروع نه دقتل صورتونه اته دي ځکه چه مقتول به دځلورو حالتونو نه خالي نه وي، يا به مؤمن يا ذمي يا به صلح کوونکي امن غوښتونکي وي او يا به حربي وي او قتل دوه قسمه دي، يا په قصد يا به خطا دي. په دې شان دقتل اته صورتونه شو دمؤمن قتل عمد، او قتل خطاء، دذمي قتل عمد او قتل خطاء دمصالح قتل عمد او قتل خطاء دحربي قتل عمد او قتل خطاء۔

په دې صورتونو کښې دبعضو حکم خو پورته ذکر شو، دبعضو راروان دي او دبعضو د اپه حديث شريف کښې موجود دي چنانچه داول صورت دنيوي حکم يعنې دقصاص واجبيدل په سورت بقره کښې راغلي دي او اخروي حکم په آيت ﴿وَمَن يَقْتُلْ﴾ کښې راروان دي۔ ددويم صورت بيان په ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ﴾ تر ﴿وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ﴾ کښې راغلي دي ۔ ددريم صورت حکم د دارقطني (۱) په حديث کښې داشان راغلي دي چه دذمي په عوض کښې رسول الله ﷺ دمسلمان نه قصاص اغستې دې از يلعي په تخريج الهداية کښې ( ۲ )، دځلورم صورت ذکر په:

﴿وَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ﴾ کښې راغې، دپنځم صورت ذکر په: ﴿فَمَا جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيلًا﴾ کښې تير شوې دې، دشپږم صورت حکم ځلورم صورت سره ذکر شوې دې، ځکه چه ميثاق عام دې چه وقتي او دائمي دا ورلړه شامل دې نو ذمي او مستامن دواړه پکښې راغې۔ د در مختار دکتاب الديات په شروع کښې دمستامن د ديت واجبيدو ته ئې صحيح وئيلي دي، داووم او اتم صورت حکم پخپله دجهاد دمشروعيت نه، پورته معلوم شو ځکه چه په جهاد کښې حربيان په قصد سره وژلې کيږي، او دخطاء روا والي په درجه اولى سره ثابتيږي [بيان القرآن] ( ۳ )۔

**دقتل درې قسمونه او ددې شرعي حکم:** ① رومبي قسم قتل عمد دې: چه په ښکاره، قصد سره د داسې آلې په ذريعه سره واقع شي چه داوسپنې وي يا په اندامونو جدا کولو او کټ کولو کښې داوسپنې دآلې پشان وي لکه دتيره بانړس يا دتيره کانړې وغيره شو۔

② دويم قسم، شبه عمد: چه وي خو په قصد سره مګر په داسې آله نه وي چه اندامونه ور سره پريکيدې شي۔

③ دريم قسم قتل خطاء دې: هغه دا دې چه دلړې نه خوئ په قصد او ګمان کښې داوي چه ښکاري ښکار او ولم يا حربي کافر او ولم مګر په هغې بنيادم اولګي، دلته دخطاء نه مراد غير عمد دې نو دويم دريم قسم دواړه قسمونه په دې کښې راغلل چه ديت هم پکښې شته او ګناه هم خو دلته په دواړو قسمونو کښې فرق شته، ددويم قسم ديت سل اوښان دي چه ځلور قسمونه به پنځويشت پنځويشت ورکولې شي، او ددريم قسم هم سل اوښان داسې دي چه دپنځو قسمونو نه به شل شل ورکولې شي البته که ديت دنغدو په صورت کښې ورکولې شي نو په دواړو قسمونو کښې لس لس زره شرعي درهمه يا زر، زر شرعي ديناره دي او ددويم قسم ګناه ځکه زياته ده چه دا په قصد دې او ددريم قسم سزا ځکه دهغې نه کمه ده چه يواځې بې احتياطي پکښې شوې ده ( ۴ ) الکه څنګه چه په هدايه

---

۱) سنن دار قطني رقم الحديث: ۱۹۰

۲) نصب الراية: ج ۵، ص ۳۳

۳) بيان القرآن تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۲۲

۴) الهداية، کتاب الجنايات: ج ۴، ص ۵۵۸

کښې دی؛ چنانچه د رقبې آزادول واجبیدل او دغه شان لفظ د توبې هم په دې دلالت کوی او دا حقیقت په دنیا کښې د شرعی احکامو د جاری کیدو په اعتبار سره دی او د گناه په اعتبار سره عمد او غیر عمد کیدل ئې د زړهٔ په ارادې او قصد باندې بنا دی چه را تلونکې وعید پر ادانره دې او د الله تعالی ته معلوم دې، کیدې شی چه په دې اعتبار سره اول قسم غیر عمد شی او دویم قسم عمد شی۔

**مسئله**: د دیت دغه ذکر کړې شوې دیت په هغه صورت کښې دې چه وژلې شوې بنیادم نارینه وی لیکن په دغه صورت کښې د زنانه دیت نیم دې [هدایه] ([1])

**مسئله**: د مسلمان او ذمی دیت یو شان دې لکه رسول الله ﷺ فرمانیلی دی: ﴿دیة کل ذي عهد في عهده الف دینار﴾ [هدایه، او ابو داؤد هم په خپلو مراسیلو کښې د دې اخراج کړې دې] ([2])۔

**مسئله**: کفاره اداکول [رقبه آزادول یا روژې نیول] پخپله په وژونکی دی او دیت به د وژونکی په امداد یانو خپلوانو اداکول وی کوم ته چه د شریعت په اصطلاح کښې عاقله وئیلی شی [بیان القرآن] ([3])۔
دلته دا شبه نهٔ دی کول پکار چه د وژونکی د جرم پیتې د هغه په اولیاؤ او امدادیانو ولې غورځولې شی هغوئ خو بیگناه وی؟ لیکن په دې کښې دا گسان ځکه قصوروار وی چه وژونکې ئې د داسې بې احتیاطئ نه نهٔ دې منع کړې چه دیت په دوئ راشی نو آئنده د پاره به ورته د احتیاط کولو نصیحت کوی،

**مسئله**: په کفاره کښې مریئې او وینځه دواړه برابر دی ځکه چه لفظ د رقبه عام دې خو بکار دی چه د رقبې اندامونه د صحیح سالم وی۔

**مسئله**: د مقتول دیت به د دهٔ په شرعی وارثانو ویشلې شی، د چا چه څومره برخه رسې د هغه په معاف کولو به هم هغه هومره برخه معاف کیږی، که ټولو خپلې برخې معاف کړې نو ټول دیت به معاف شی۔

**مسئله**: د کوم مقتول چه څوک شرعی وارثان نهٔ وی نو دیت به ئې په بیت المال کښې ځکه جمع کیږی چه دا ترکه [میراث] دې او د دې حکم هم دغه دې [بیان القرآن] ([4])۔

**مسئله**: د اهل میثاق [ذمي او مستامن] د وژلو په وجه واجب شوې دیت به هله واجبیږی چه اهل ئې موجود وی۔ که اهل ئې د سره نهٔ وی، یا وی خو هغوئ مسلمانان وی نو مسلمانان د کافر وارثان نشی جوړیدې بلکه دا به په نیشت حساب وی، که مقتول ذمی وو، نو دیت به ئې په بیت المال کښې داخلیږی ولې چه د ذمی لاوارث ترکه، چه دیت پکښې هم داخل دې هغه به بیت المال کښې داخلولې شی [در مختار] ([5]) او که ذمی نهٔ وو نو دیت به ئې نهٔ واجبیږی [بیان القرآن] ([6])

**مسئله**: که د مرض وغیره په وجه په روژو نیولو کښې پرلپسې والې چانه فوت شو نو د نوی سره به ئې نیسی البته د هغه ښځې پرلپسې والې به فوت نه حسابیږی چه مینځ کښې څه روژې تر د حیض په وجه پاتې شوی وی۔

---

[1]) الهداية، كتاب الديات: ج ۴، ص ۵۸۳
[2]) المراسيل لابي داود، رقم الحديث: ۲۳۲، باب دية كل ذي عهد الخ۔
[3]) بيان القرآن تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۵
[4]) بيان القرآن: ج ۲، ص ۲۶
[5]) الدر المختار، كتاب المعاقل: ج ۶، ص ۳۲
[6]) بيان القرآن: ج ۲، ص ۲۶

مسئله که د څه عُذر په بنا په روژو نیولو څوک قدرت نه لري نو تر قدرت راتلو پورې دې په مخه توبه کوي-

مسئله په قتل عمد کښې د کفاره نیشته، توبه کول پکار دي [بیان القرآن] (۱)-

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا ضَرَبْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَتَبَيَّنُوْا

اې هغه کسانو چې ایمان مو راوړې دې | کله چې | سفر کوئ تاسو | په لار د الله کښې | نو ښه تحقیق کوئ |

اې مومنانو تاسو چې د الله لار کښې (جهاد د پاره) لاړ شئ نو (پخپل پردي کښې) ښه تحقیق کوئ

وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ اَلْقٰٓى اِلَيْكُمُ السَّلٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا ۚ تَبْتَغُوْنَ

او مه وایئ تاسو | هغه چاته | چې پیش کړي | تاسو ته سلام | چې نه یې ته | مومن | غواړئ تاسو

او څوک چې در باندې سلام واچوي | نو هغه ته دا مه وائې چې ته مومن نه یې | ............... که تاسو

عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۡ فَعِنْدَ اللّٰهِ مَغَانِمُ كَثِيْرَةٌ ۭ كَذٰلِكَ كُنْتُمْ

مال | د ژوند د دنیا | نو دی الله سره | غنیمتونه | ډیر | هم په دې حالت | وئ تاسو |

د دنیا مال غواړئ | نو الله پاک سره ډیر ښه غنیمتونه دي | ............... اخر تاسو هم

مِّنْ قَبْلُ فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوْا ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

مخکښې د دې نه | نو احسان اوکړو الله | په تاسو | نو ښه تحقیق کوئ | بیشکه الله | دی |

د دې نه وړاندې (مکه) کښې دغه شان کمزوری حالت کښې پاتې شوې وئ | نو الله په تاسو احسان اوکړو او الله

بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ۝ لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ

په هغه څه | چې تاسو یې کوئ | خبردار | نه دي برابر | ناست کسان | د مومنانو نه |

ستاسو د ټولو کارونو ښه خبر دی | نشي برابریدې هغه مسلمانان چې بې د څه عذر نه په کور ناست وي

غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجٰهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ

بې د خاوندانو | د عذره | او جهاد کونکي | په لار د الله کښې | په مالونو خپلو سره |

او هغه مومنان چې د الله ﷻ په لار کښې په سر و مال سره جهاد کوي |

وَاَنْفُسِهِمْ ۭ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ

او په ځانونو خپلو سره | فضیلت ورکړې دې الله | جهاد کونکو ته | په مالونو خپلو سره | او په ځانونو خپلو سره

............... الله ﷻ فضیلت ورکړې دې په سر و مال باندې جهاد کونکو ته |

عَلَى الْقٰعِدِيْنَ دَرَجَةً ۭ وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى ۭ

په کیناستونکو | په درجه کښې | او د ټولو سره | وعده کړې ده الله | د ښې جزا |

په ناستو خلقو باندې | ............... اګرچې هریو سره یې د جنت وعده کړې ده |

وَفَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ۝

او فضیلت ورکړې دې الله | جهاد کونکو ته | په کیناستونکو باندې | د اجر | لوئ |

خو د هغه غازیانو د پاره د ناستو خلقو په مقابله کښې ډیر لوئې اجر دې ...............

(۱) بیان القرآن: ج ۲، ص ۱۳۶

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَكَانَ اللّٰهُ | وَّرَحْمَةً ؕ | وَمَغْفِرَةً | مِّنْهُ | دَرَجٰتٍ |
| او دي الله | او رحمت دي | او مغفرت دي | دطرفه دهغه [الله] نه | دهغوئ دپاره درجي دي لوئ |
| او الله ﷻ.................. | | اوبخښنه او رحمت دي | | هغوئ دپاره دالله ﷻ دطرفه لوئي لوئي درجي |
| | | | رَّحِيْمًا ﴿۹۶﴾ | غَفُوْرًا |
| | | | رحم کونکې | بخښونکې |
| | | | | بښونکي رحم کونکي دي |

**آسان ترجمه قرآن:** اې د ایمان خاوندانو! چه کله تاسو د الله په لاره کښې سفر کوئ نو تحقیق کوئ. او چه څوك تاسو ته سلام وکړي نو د دنیوي ژوند ګټې د سامان د حاصلولو په خواهش کښې هغه ته دا مه وایئ چه "ته مؤمن نه ئې" ځکه چه الله سره د غنیمتونو ډیرې خزانې دي تاسو هم مخکښې داسې وئ بیا الله په تاسو فضل وکړو نو تحقیق کوئ بې شکه تاسو چه څه کوئ نو الله د هغې نه خبردار دې کوم مسلمانان چه معذوره نه وي او هغه (دجهاد کولو په ځائ کور کښې) کیني هغوی دالله په لاره کښې په مالونو او ځانونو سره د جهاد کوونکو سره برابر نه دي کوم خلق چه دالله په لاره کښې جهاد کوي هغوی له الله په ناستو بانديې په درجه کښې فضیلت ورکړي دې او الله مجاهدینو لره په ناستو بانديې ډیر لوئ فضیلت ورکړي دې او الله د ټولو سره ښه وعده کړي ده او لوئې ثواب ئې ورکړي دې یعني خاص د خپل طرف نه لوئې درجې او مغفرت او رحمت او الله ډیر بخونکې او ډیر مهربانه دې.

**خلاصه تفسیر**

﴿ یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا ضَرَبْتُمْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ﴾ اې د ایمان خاوندانو کله چه تاسو دالله ﷻ په لارکښې [یعنی جهاد دپاره] سفر کوئی ﴿ فَتَبَیَّنُوْا وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ اَلْقٰٓی اِلَیْكُمُ السَّلٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا ﴾ نو هریو کار [قتل وی اوکه بل څه وی] تحقیق کولو نه پس کوئی اوداسې کس چه ستاسو مخکښې داطاعت [فرمانبرداریٔ نخښې نښانې] ښکاره کړی [لکه کلمه وائی یا د مسلمانانو په طریقه سلام اوکړی] نو داسې مه وائې چه دا خو [د زړهٔ نه] مسلمان نه دې [صرف دخپل خان ساتلو دپاره په دروغه اسلام ښکاره کوی] ﴿ تَبْتَغُوْنَ عَرَضَ الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا ﴾ په دې سے شان چه تاسو ددینوی ژوند دسامان خواهش لری ﴿ فَعِنْدَ اللّٰهِ مَغَانِمُ كَثِیْرَةٌ ﴾ ځکه چه الله ﷻ سره [یعنی دهغه په علم اوقدرت کښې ستاسو دپاره] ډیر دغنیمت مالونه دی [چه ورته به جائز طریقو سره ملاویږی اویاد کړئی چه] ﴿ كَذٰلِكَ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلُ فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَیْكُمْ فَتَبَیَّنُوْا ﴾ وراندې [په یو زمانه کښې] تاسو هم دغه شان وی [چه ستاسو داسلام قبلولو اودانره ستاسو په دعوی اوښکاره کولووه] بیا الله ﷻ په تاسو احسان اوکړو [چه په دې ظاهری اسلام بس والې اوکړې شو او باطنی لټون ته څه ضرورت پرے نښودے شو] نو[لږ] غور[خو] اوکړئ ﴿ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِیْرًا ﴾ بیشکه الله ﷻ ستاسو دعملونو پوره خبرلری [چه ددې حکم نه پس څوك پرے عمل کوی اوڅوك پرے نه کوی].

﴿ لَا یَسْتَوِی الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ غَیْرُ اُولِی الضَّرَرِ ﴾ برابر نه دی هغه مسلمانان چه بے دڅه عذره په کورونو کښې ناست پاتې شی [یعنی جهاد ته نه ځی] ﴿ وَالْمُجٰهِدُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ﴾ اوهغه خلق چه دالله ﷻ په لار کښې په خپلو مالونو سره [یعنی مالونه خرچ کړی او ځانونه

حاضر کړي] جهاد کوي [بلکه﴿ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ دَرَجَةً ۭ ﴾ الله ﷻ ددې خلقو درجه ډيره زياته جوړه کړې ده چه په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد کوي په نسبت دکورکښې کښيناستونکواو[هسې خودفرض عين نه کيدوپه وجه په دغه کښيناستونکو هم ګناه نشته بلکه دايمان اود نورو فرض عين څيزونو دا ادا کولو په وجه] ﴿ وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى ۭ ﴾ دټولو سره [يعنې مجاهدينو سره هم اوپه کور کښې دناست پاتې کيدونکو سره هم] الله ﷻ دښه کور [يعنې دجنت په آخرت کښې] وعده کړې ده او [پورته په اجمالي طور وئيلې شوي دي چه دمجاهدينو لوېه درجه ده هغه داسې تاکلې شوي ده چه] ﴿ وَفَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴾ الله ﷻ [ذکر شووو] مجاهدينو ته په مقابله دکور کښې کښيناستوونکو له لوئې اجر ورکړې دې [هم] دغه درجه لوئې اجر دې ددې [اجمالي اجر تفصيل بيانوي] يعنې [دهغه ډيرو عملونو په وجه چه مجاهدنه صادريږي دثواب] ﴿ دَرَجٰتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَّرَحْمَةً ۭ ﴾ ډيرې درجې دي چه دالله ﷻ له طرفه ملاويږي او [دګناهونو] بخښنه او رحمت [دا ټول دلوئې اجر تفصيل شو] ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴾ او الله ﷻ لوئې بخښوونکے لوئې درحمت خاوند دې.

## معارف او مسائل

**دآخونوتړون:** ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا ضَرَبْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَتَبَيَّنُوْا ﴾ په تيروشوؤ آيتونو کښې دمؤمن په وژلو باندې سخت وعيدراغلې دې وريسې فرمائي چه دشرعي احکامو په جاري کيدو کښې مؤمن لره دمؤمن کيدو دپاره يواځې ظاهري اسلام کافي دې، څوک چه اسلام ښکاره کړي دهغه دقتل نه لاس بندول واجب دي، اويواځې دشک اوشبهې په وجه دباطن لټون کول اودآسلامي احکامو په جاري کولو کښې دهغه ديقيني ايمان دثبوت په انتظارکښې پاتې کيدل نه دي روا، لکه چه ځنې صحابه کرامو ﷺ نه په ځنې غزاګانو کښې داسې قسم لغزش شوې وو، چه ځنې خلقو هر کله چه خپل اسلام ښکاره کړو نوبعضې صحابه کرامو ﷺ دغه معاملات په دروغه اوګنړلې اوهغوئ ئې قتل کړل اودمقتول مال ئې دغنيمت په ډول واغستو، الله تعالى ددې بنديزاوفرمائيلواوهر کله چه دامسئله تردغه وخته پورې صحابه کرامو ﷺ ته په ښکاره ډول نه وه معلومه شوې، ځکه صرف دهغوئ پوهول اوکړې شو، اودهغوئ په دې کار باندې وعيدنازل نکړې شو[بيان القرآن]

**دمسلمان هغرلودپاره داسلام نخښې نباتې کافي دي دباطن لټون کول جائزنه دي:** ددرې تيرو شوؤ آيتونو څخه په رومبي آيت کښې داهدايت کړې شوې دې چه څوک خپل مسلمانيدل ښکاره کړي نوچا مسلمان دپاره جائزنه دي چه بغيردتحقيق نه دهغه وينا په منافقت باندې حمل کړي، چنانچه ددې آيت دنازليدوسبب څه داسې واقعات دي چه دبعضې صحابه کرامو ﷺ نه دهغې په باره کښې لغزش شوې وو، لکه په ترمذي شريف اومسند احمد کښې دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه منقول دي چه دبني سليم قبيلې يوسړې دصحابه کرامو يوټولې سره يوځائې شو کله چه دوئ جهاد له روان ؤ ودغه سړي خپلې چيلئ او بزې څرولې، ده، صحابه کرامو ته سلام اوکړو چه دده اسلام ښکاره کول ؤو-خوصحابه کرامو دې لره دده داسې ګڼکه او دهوکه اوګنړله چه ګوياکښې خپل ځان اومال دې سره بچ کوي په دې وجه ئې هغه اووژلو، اودهغه چيلئ، ئې دغنيمت په ډول درسول الله ﷺ په خدمت کښې پيش کړې-په هغې داآيت شريف نازل شو اودآپکښې اوښودلې شوچه څوک درته په اسلامي طرزسلام اوکړي، نوبغيرتحقيق نه دده دغه عمل ګڼکه اوفريب مه

ګڼړۍ او مال ئې دغنیمت په ډول مه خان ته کوئ [ابن کثیر] (۱)

دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه یوبل روایت راغلي دي چه، بخاری شریف په لنډ او ویزار په تفصیل سره نقل کړیدی، هغه داسې چه رسول الله ﷺ دمجاهدینو یوه دسته اولیږله چه حضرت مقداد بن اسود رضي الله عنه هم پکښې ؤ، کله چه دغه دسته موقعې ته اورسیده نو ټول خلق اوتښتیدل، صرف یو کَس پاتې شوچه ورسره ډیر مال وو، هغه دَصحابه کرامو رضي الله عنهم په وړاندې ﴿اشهد ان لااله الاالله﴾ اووئیل مګر حضرت مقداد دا، دزړه نه اونه ګڼړل او خیال ئې راغلوچه صرف دَخان او مال بچ کولو دَپاره دَاسلام کلمه لولی خکه ئې اووژلو، په موجوده صحابه کرامو کښې یو کس اووئیل چه بد دا وکړل چه داسې کَس دا ووژلو چه دَ ﴿لااله الاالله﴾ ګواهی ئې ورکړې وه، زهٔ که دَرسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نو دَدې واقعې بیان به ورته ضرور کوم، کله چه دوئ مدینې منورې ته راؤرسیدل نو رسول الله ﷺ ته ئې دا واقعه واؤروله، هغوئ حضرت مقداد رضي الله عنه له راؤبللو اوسخته رټنه ئې ورته اوکړه اووې فرمائیل چه دَقیامت په ورځ به دَخهٔ جواب وی، کله چه کلمه دَ ﴿لااله الاالله﴾ ستا په مقابله کښې دعویداره وی، په دې واقعه باندې دا آیت شریف نازل شو (۲) ﴿وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَىٰ إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا﴾ دَدې آیت په باره کښې دَدغې دؤو واقعاتو نه علاوه نور واقعات هم منقول دی، خو محققینو مفسرینو رحمهم الله فرمائیلی دی چه دَدغې روایتونو ترمنځه څه تعارض او تکرنشته بلکه دغه ټول واقعات په مجموعی حیثیت سره دَنزول سبب کیدې شی۔

دآیت په الفاظو کښې ﴿أَلْقَىٰ إِلَيْكُمُ السَّلَامَ﴾ راغلې دې که په دې کښې دَ،،سلام،، لفظ نه اصطلاحی ،،سلام،، مراد واغستې شی نو بیا خودې سره رومبئ واقعه زیاته لګی او که دَ،،سلام،، معنی سلامتی او حُکم منل واغستې شی نو دا ټول واقعات په دې کښې برابر دی، په دې وجه اکثرو حضراتو دلته دَ،،سلام،، ترجمه اطاعت [فرمانبرداری] کړې ده۔

**دواقعې دتحقیق کولونه بغیرفیصله کول ناروادی:** دَدې آیت په رومبئ جمله کښې یو عام هدایت دادې چه مسلمان دهیڅ یو کار صرف په ګمان باندې بې تحقیقه نهٔ کوی، لکه ارشاد دې ﴿إِذَا ضَرَبْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَتَبَيَّنُوا﴾ [کله چه تاسو دَالله تعالی په لار کښې سفر کوئ نو هر کار په تحقیق سره کوئ ولې چه یوازې په ګمان او خیال سره په کار کولو کښې اکثر غلطی کیږی۔ په دې کښې دَسفر قید هم څکه ذکر شوچه دا واقعات هم په سفر کښې راپیښ شوی وی، یا په دې وجه چه، شُبهات عموماً په سفر کښې راپیښیږی، په خپل ښار او کلی کښې دَیو بل دَحالاتو نه عموماً خبروی، ورنه اصل حُکم عام دې، په سفر کښې وی او که په کور او خپل وطن کښې وی، بې تحقیقه دَڅه قدم اوچتول ناروادی۔ لکه چه رسول الله ﷺ په یو حدیث کښې فرمائیلی دی، ښه په سوچ ،غور او فکر سره کار کول دَالله تعالی له اړخه وی او په جلدئ کار کول دَشیطان له اړخه دی، [بحر محیط] (۳)۔

په دویمه جُمله ﴿تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ سره دَهغه مرض دارو کول دی چه دَدې غلط قدم اوچتول باعث جوړ شوچه دَدُنیا دولت، او دَمالِ غنیمت دَحاصلولو خیال دې۔

---

(۱) جامع الترمذی، کتاب التفسیر، باب من سورة النساء: ج ۲، ص ۳۲، ومسند احمد رقم الحدیث: ۲۵۰۶ مسند عبدالله بن عباس رضی الله عنهما۔

(۲) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، باب ومن یقتل مؤمناً الخ: ج ۲، ص ۲۱۰۔ وتفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۳۳۶

(۳) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۳۳۶

ورپسې ئې داهم اوښودل چه تاسو دپاره الله تعالىٰ دغنیمت مالونه ډیرڅه مقرراومقدر کړیدی
تاسو د مالونو په فکر کښې مه پریووځئ۔ ورپسې ئې یو بل خبرداری ورکړوچه لږشان په دې هم
نظرواچوئ چه رومبې خو په تاسو کښې ډیر کسان داسې ووچه په مکه مکرمه کښې دخپل اسلام
اوایمان اعلان یې نهٔ شو کولی، بیادربانديې الله تعالىٰ احسان اوکړوچه دکفارودپنجې نه ئې
خلاص کړئ نوهله مواسلام ښکاره کړې شو، نوآیا دا ممکن نه ده چې دغه کس چې د اسلامی
لښکرپه لیدلو سره کلمه وائی هغه حقیقت کښې مخکښې نه د اسلام معتقد وو مګرد کافرانو
د ویرې نه ئې د اسلام اظهار نه وو کړې ، دا وخت چې اسلامی لښکرې اولید نو د خپل اسلام
اظهار یې اوکړو ، یامطلب داچه هرکله په شروع کښې تاسو داسلام کلمه اولوستله اوخپل
خانونه مومسلمانان ښکاره کړو نوشریعت په دغه وخت کښې داقید اوشرط نهٔ ؤوایښې چه
ستاسوزړونه دې اولټولې شی که په هغې کښې اسلام بیاموندې شی هله به مسلمانان اومنلې
شئ، بلکه صرف کلمه لوستل ستاسو دمسلمان منلودپاره کافی اوګڼرلې شو، دغه شان اوس چه
ستاسو په وړاندې څوک کلمه اووائ نوهغه هم مسلمان ګڼړئ۔

**اهل قبله ته دکافرنهٔ وئیلو مطلب**:: ددې آیت نه داضروری مسئله هم معلومه شوه چه څوک خپل خان
په دې شان مسلمان ښکاره کوی چه کلمه وائی یابل څه اسلامی شعارښکاره کوی لکه په اذان او
مونځ کښې شریکیږی نوپه مسلمان لازم دی چه هغه لره مسلمان ګڼړی اوورسره دمسلمانانو
پشان معامله کوی، دالټون دنهٔ کوی چه دې دزړهٔ نه مسلمان شوې دې اوکه نهٔ؟یائې دبل څه
غرض په بنااسلام ښکاره کړې دې؟دغه شان ددهٔ عملونوته به هم په دغه موقعه نشی کتلې، مثلاً
هغه مونځ نهٔ کوی، روژه نهٔ نیسی، اوهرقسم ګناهونه کوی، بیابه هم داسلام نه خارج نشی بللې او
نهٔ به ورسره دکفاروپشان معامله کولې شی، اوهم په دې وجه امام اعظم رحمه الله فرمائیلی دی:﴿لانکفر
اهل القبلة بذنب﴾[مونږ اهل قبله دڅه ګناه کولوپه وجه کافرنهٔ بولو] هم دغه شان داحادیثوپه څنې
روایتونو کښې هم راغلې دی چه اهل قبله کافرمهٔ بولئ اګرچه هغه څومره ګنهګاراوبدعمله وی۔
خودلته په دې خبره په خاص شان سره خان پوهول اویاده ئې لرل پکاردی چه قرآن اوحدیث نه
داخبره ثابته ده چه خان ته مسلمان ویونکې بنده کافرګڼرل یاورته کافرونیل جائزنهٔ دی ــــ ددې
واضح مطلب دادې چه ترڅودهغه نه داسې خبره یاکارنهٔ وی صادرشوې چه دکفریقینی نخښه وی
ترهغې به دهغه داسلام اقرارصحیح ګڼرلې شی اومسلمان به ورته وئیلې شی اوورسره به د
مسلمانانوپشان معامله کولې شی، دهغه دزړهٔ داخلاص شان باندې بحث کول دهیچاحق نهٔ دې۔
لیکن که دغه کس داسلام ښکاره کولواودایمان داقرار کولوسره سره څه کلمې دکفرهم وائی، بت
ته سجده کوی، په قبرونو طوافونه کوی ، نذرو نیاز او منښتې وراوړی ، باباګانو بزرګانو ته
حاجتونو کښې آوازونه کوی یا رسول الله ﷺ مدد یا علی مدد ، پیر بابا رامدد شه وغیره
آوازونه کوی یاداسلام دداسې حکم نه انکارکوی چه هغه قطعی اوبدیهی وی یادکافرانوڅه
مذهبی شعاراختیاروی مثلاً په غاړه کښې زناراچوی، نوهغه به خامخادغې کفری عملونوپه
وجه کافربللې شی۔لکه چه ذکرشوی لفظ ﴿فَتَبَيَّنُوا﴾ کښې چه دې ته اشاره موجوده ده، ورنه یهودو
او نصاراؤ خوټولوبه خانونه مسلمانان بلل، داشان مسیلمه کذاب هم صرف داسلام دکلمې
اقرارنهٔ کولو بلکه داسلامی شعائرو، اذان اومونځ وغیره هم پابندوو، په خپل اذان کښې به ئې
د، ﴿اشهدان لااله الاالله﴾سره د﴿اشهدان محمدارسول الله﴾ وئیلوهم حکم کولو، خوورسره به ئې خان

ته نبی، رسول او صاحب وحی ونیلو چه د قرآن کریم او د سنتو د نصوصو نه ښکاره انکار وو، او هم په دې وجه هغه مرتد او گرځولې شو او د هغه په خلاف په اجماع د صحابه کرامو ﷺ جهاد او کړې شو او د اشان هغه قتل کړې شو۔

د مسئلې خلاصه دا شوه چه هر کلمه گو اهل قبله مسلمان گنړئ، دا د انسان کار نه دې چه د ده په باطن او زړه کښې څه دی؟ دا کار الله تعالی ته حواله کړئ، البته که ایمان ښکاره کولو سره د ایمان خلاف څه خبره او کار تر صادر شي نو هغه مرتد گنړئ خو شرط دا دې چه د هغې د ایمان خلاف کیدل یقینی او قطعی وی او په کښې د بل څه تاویل یا احتمال څه لاز او گنجائش نه وی۔

دې نه دا هم معلومه شوه چه د ،، کلمه گو،، یا،، اهل قبله،، الفاظ اصطلاحی دی چه مصداق ئې صرف هغه څوک کیدې شی چه د اسلام د مدعی کیدو نه پس څه کافرانه قول او فعل تر صادر نشي۔

**د جهاد په باره کښې څو احکام** :: په بل آیت ﴿لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ کښې د جهاد څو احکام بیان شوی دی، چه څوک بغیر د څه عذر نه په جهاد کښې نه شریکیږی هغوئ د هغه چا برابر نشی کیدې چه د الله تعالی په لار کښې په خپل مال او خان سره جهاد کوی، بلکه الله تعالی مجاهدینو له په غیر مجاهدینو باندې درجه کښې فضیلت او برتری ورکړې ده، او ورسره ئې دا هم او فرمائیل چه الله تعالی دواړو دلو، مجاهدینو او غیر مجاهدینو سره د ښې جزا وعده کړې ده، جنت او بخښنه به دواړو ته حاصلیږی، فرق به په درجو کښې وی۔

د تفسیر علماء فرمائی چه دې آیت نه دا خبره معلومیږی چه په عامو حالاتو کښې جهاد فرض کفایه دې مطلب ئې دا دې چه څه خلق ئې اداکړی نو د باقی پاتې مسلمانانو غاړه خلاصه شی خو شرط دا دې چه جهاد کښې شریک شوی خلق جهاد د پاره پوره او کافی وی، ورنه ورسره د نزدې او گواند د خلقو د پاره به فرض عین شی چه د دغه مجاهدینو امداد کوی۔

**د فرض کفایه تعریف**: په شریعت کښې فرض کفایه داسې فرضو ته وئیلې شی چه د هغې اداکول په هر مسلمان باندې ضروری نه وی بلکه که بعضې ئې اداکړی نو د ټولو غاړه خلاصه شی۔ عموماً قومی او اجتماعی کارونه د دې درجې دی، د دینی علومو تعلیم او تبلیغ هم داسې قسم فرض دی چه بعضې خلق په دې کښې مشغول وی نو د نورو ټولو مسلمانانو غاړه ورسره خلاصیږی لیکن که ټول ترنه لاس واخلی نو ټول به گنهگار وی۔ د جنازې مونځ او د مړی کفن دفن هم یو قومی څیز دې چه یو رور د خپل بل رور حق اداکوی، د جوماتونو، مدرسو جوړولو او د عامو مفادو نور کارونه په دې حکم کښې داخل دی، مطلب دا چه بعضې مسلمانان ئې اداکړی نو د نورو ټولو غاړه خلاصیږی۔

په عامه توگه هغه ټول کارونه، شریعت فرض کفایه گرځولی دی چه اجتماعی او قومی ضرورتونه دی، د پاره د دې چه د تقسیم عمل په اصولو ټول فرائض اداکړې شی، یعنی څنې خلق د جهاد کار اوکړی، څنې د تعلیم او تبلیغ کار اوکړی او څنې نور انسانی یا اسلامی ضروریات پوره کړی۔

په دې آیت کښې په ﴿وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى﴾ فرمائیلو سره ئې هغه خلق هم مطمئن کړی دی چه د جهاد نه علاوه په نورو دینی ضرورتونو کښې مصروف وی، لیکن دا حکم په عامو حالاتو کښې دې، هغه داسې چه د څنو خلقو جهاد د اسلام د دشمنانو تمبولو د پاره کافی وی، که د هغوئ جهاد باندې کار نشی پوره کیدې او د زیات امداد ضرورت ورته وی نو اول د نزدې او د گوند په مسلمانانو

باندې جهاد فرض عين ګرځي، که دغه هم کافي نه وي نو ورسره په نزدې خلقو باندې فرض عين کيږي او که دا هم کافي نه وي نو په نورو مسلمانانو باندې فرض عين کيږي تردې چه د مشرق او مغرب په هر مسلمان باندې جهاد کول فرض عين شي۔

په دريم آيت کښې هم دغه درجو د غورو الي او فضيلت بيان دې چه مجاهد ينو لره په نورو خلقو باندې حاصلې دي۔

**مسئله** په شل، ګډ، روند، بيمار او په نورو شرعي معذروانو باندې جهاد فرض نه دې۔

إِنَّ الَّذِينَ تَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ

| بيشکه هغه کسان | چې روحونه اخلي دهغوئ | فرښتې

| چا چې په خان زياتې اوکړو او فرښت دهغوئ روحونه قبض کوي

ظَالِمِيٓ أَنْفُسِهِمْ قَالُوا فِيمَ كُنْتُمْ قَالُوٓا

چې ظلم کونکي وي | په خانونو خپلو | وائي ورته فرښتې | په کوم حال کښې | وې تاسو | وائي هغوئ

............نو تپوس ترينه کوي | چې تاسو په څه حال کښې نې | هغوئ جواب کښې وائي چې

كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ قَالُوٓا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةً

وو مونږه | کمزوري کړې شوي | په زمکه کښې | وائي فرښتې | آيا نه وه | زمکه دالله | فراخه

مونږ دزمکې په مخ کمزوري خلق وو | ............ نو فرښتې وائي چې ولې دالله زمکه فراخه نه ده

فَتُهَاجِرُوا فِيهَا فَأُولٰٓئِكَ مَأْوٰهُمْ جَهَنَّمُ وَسَآءَتْ

چې هجرت کړې وې تاسو | په هغې کښې | نو دا هغه خلق دي | چه ځائ دهغوئ | دوزخ دې | او بدځائې دې

چې تاسو په کښې هجرت کړې وې | داهغه خلق دي چې ددوئ ځائې جهنم دې | او ډېر بد

مَصِيرًا ۝ إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ

دورتلو | مګر نه هغه | چې واقعي بې وسه دي | دنارينو نه | او دزنانو نه | او دماشومانو نه

ځائې دې د ورتلو | خو کوم نارينه او زنانه او ماشومان چې په رښتيا کمزوري دي |

لَا يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا ۝ فَأُولٰٓئِكَ عَسَى اللّٰهُ

چې طاقت نه لري | د ذريعې | او نه مومي لار د وتلو | نو دا بې وسه چې دي | اميد دې چې الله

او د تللو هيڅ لار نې نه وي | ............نو کيدې شي چې الله تعالی هغوئ ته

أَنْ يَعْفُوَ عَنْهُمْ وَكَانَ اللّٰهُ عَفُوًّا غَفُورًا ۝ وَمَنْ

معافي اوکړي | دګناهونو دهغوئ نه | او دې | الله | ډېر معافي کونکې | بښونکې | او څوک

معافي اوکړي | ............ اوالله ډېر معاف کونکې او بښونکې ذات دې | ....... او څوک چې

يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرٰغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً

چې هجرت اوکړي | په لار دالله کښې | او به مومي | په زمکه کښې | ځائې دپنا اغستلو | ډېر او فراخي

دالله ﷻ په لار کښې هجرت اوکړي | هغوئ به په مخ دزمکې استوګنې دپاره ډېر ځايونه او هر قسم فراخي بيا مومي

وَمَنْ يَّخْرُجْ مِنْۢ بَيْتِهٖ مُهَاجِرًا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ

اوڅوک | چې اوځي | دکور خپل نه | چې هجرت کونکې وي | طرف دالله ته | اودرسول دهغه ته | بیا

اوڅوک چې دخپل کور نه دالله اودهغه درسول په لاز کښې هجرت اوکړی | ............ بیا

يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا

اورسیږی هغه ته | مرګ | نو واقع شو | اجر دهغه | په الله باندې | اودې الله | بخونکې

په لاز کښې ورته مرګ راشی | نو دهغه اجرالله ﷻ سره شته | ............ اوالله ﷻ بښونکې

رَّحِيْمًا ۝ ع

رحم کونکې |

اورحم کونکې دې |

**آسان ترجمه قرآن:** کومو خلقو چه په خپلو ځانونو ظلم کړې وو او هم دې حالت کښې فرښتې د دوی روح اخستو د پاره راغلې نو ورته ئې وئیل چه "تاسو په کوم حالت کښې وئ؟" دوی وئیل چه مونږ خو زمکه کښې کمزوري کړې شوی وو فرښتو ووئیل چه د الله زمکه فراخه نه وه چه تاسو دې کښې هجرت کړې وې؟ نو د داسې خلقو ځائ جهنم دې او دا ډیر بد انجام دې هغه کمزوري د سړو نه، او د ښځو نه، او د ماشومانو نه (ددې انجام نه مستثنٰی دی) چه (د هجرت) څه تدبیر نه شي کولې او نه (د وتلو) څه لاره مومي نو پوره امید دې چه الله به دوی لره معاف کړی او الله ډیر معاف کونکې دې. ډیر بخونکې دې. او څوك چه د الله په لاره کښې هجرت وکړي نو هغه به په زمکه کښې ډیر ځائ او ډیره فراختیا مومي او څوك چه دخپل کورنه د الله او د رسول طرف ته د هجرت د پاره ووځي بیا هغه لره مرګ راګیر کړي نو بیا هم د هغه ثواب الله سره ثابت شو، او الله ډیر معاف کونکې ډیر مهربان دې.

## خلاصه تفسیر

﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ ﴾ بیشکه هداسې خلقو روح فرښتے قبض کوی چا چه [سره دهجرت د توفیق نه بیاهم هجرت اونکړو] خپل خان ئې ګناهګار کړې وونو [دغه وخت] به ﴿ قَالُوْا فِيْمَ كُنْتُمْ ؕ قَالُوْا كُنَّا مُسْتَضْعَفِيْنَ فِي الْاَرْضِ ؕ ﴾ هغوی [فرښتے] دوی ته وائی چه تاسو [ددین] په کوم [کوم] کار کښې وې [یعنی ددین کوم کوم ضروری کارونه مو کول] هغوی به [جواب کښې] وائی چه مونږ [دخپلې استوګنې] په زمکه کښې خالص بېوسه وو [په دې وجه ددین په ډیرو ضروریاتو مو عمل نه شو کولې یعنی ددغه فرض په پرېښودو کښې معذور وو] ﴿ قَالُوْٓا اَلَمْ تَكُنْ اَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوْا فِيْهَا ؕ ﴾ دغه [فرښتے] به وائی [که دغه ځائې کښې مونښو کولې نو] آیا دالله ﷻ زمکه فراخه نه وه تاسو لره وطن پرېښودو سره ددې نه [بل خوا] تلل پکار وو [چه هغه ځائې ته په تللو باندې به مو فرض ادا کولې شو، ددې جواب به هغوی اونه کړې شی اوجرم به ترې ثابت شی] ﴿ فَاُولٰٓئِكَ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ ﴾ نو ددوی ځائې هم جهنم دے ﴿ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ﴾ اوتلو دپاره هغه خراب ځائې دے ﴿ اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ ﴾ لیکن کوم سړی ښځې اوماشومان چه [په واقع کښې په هجرت هم] ﴿ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ حِيْلَةً وَّلَا يَهْتَدُوْنَ سَبِيْلًا ﴾

قادر نه وي چه نه څه انتظام کولې شي نه دلارې نه واقف وي.
﴿ فَأُولَٰئِكَ عَسَى اللَّهُ أَن يَعْفُوَ عَنْهُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا ﴾ نو هغوی دپاره امید د چه الله ﷻ ئې معاف کړي اوالله ﷻ لوئې معاف کوونکې لوئې بخښوونکې دې او [چا دپاره چه په شریعت کښې هجرت کول دی دهغوی نه] ﴿ وَمَن يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً ۚ ﴾ څوك چه دالله ﷻ په لار کښې [یعنی دین دپاره] هجرت اوکړي نوده ته به په مخ دزمکې باندې دتلو ډېر ځائې ملاوشي او [ددین دښکاره کولو به] ورته ډېر ګنجائش [ملاوشي نوکه داسې ځائې ته اورسیدو نو په دنیاکښې هم په دې سفر ښکاره کولوکښې کامیابي ښکاره ده] او [اتفاقًا که دا ذکر شوې کامیابي ورته حاصله نشوه بیاهم د آخرت په کامیابۍ کښې خو څه شك شبه نشته ولې چه زمونږ قانونو دې چې] ﴿ وَمَن يَخْرُجْ مِن بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ﴾ څوك خپل کورنه په دې نیت سره بهر اوځي چه [د] الله ﷻ اودرسول ﷺ [دین ښکاره کولو ځائې] ته هجرت اوکړم ﴿ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ ۗ ﴾ بیا [دمقصود پوره کیدلو نه مخکښې] ورته مرګ راشي بیا هم دهغه ثواب [چه وعده ئې دهجرت په کولو ورسره شوې ده] ثابت شو [چه وعدې په وجه داسې شو لکه چه] دالله ﷻ په ذمه [وی اګر چه اوس دغې سفر ته هجرت نشي وئیلې لیکن یواځې په ښه نیت ددې په شروع کولو سره ورته پوره بدله ورکړې شوه] ﴿ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ اوالله ﷻ لوئې بخښوونکې دې [ددې هجرت په برکت سره به یې اګر چه هغه نامکمل پاتې شو ډېر ګناهونه معاف کړي لکه چه په حدیث کښې دهجرت فضیلت راغلې دې چه په هجرت سره تیر شوي ګناهونه معاف کیږي او] لوئې رحمت کوونکې دے [چه په ښه نیت سره عمل شروع کولو باندې دپوره عمل ثواب ورته عطا کوي].

## معارف اومسائل

**دهجرت تعریف:** ﴿ إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنفُسِهِمْ ﴾ په دې خلوروآیتونوکښې دهجرت د فضیلتونو، برکتونواواحکاموبیان دی، لغت کښې هجرت، دهجراوهجران معنی ورکوی یعنی یوځیزنه ویزاره کیدل اودهغې پریښول، اوپه عامومحاوروکښې، وطن پریښولوته هجرت وئیلې شي-[روح المعاني](١)
دمشکوة شریف په شرح کښې ملاعلي قاري رحمه الله فرمائیلي دي چه ددیني وجوهاتوپه بناوطن پریښولوته هم هجرت وئیلې شي[مرقات](٢)-
دسورت حشر دآیت ﴿ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ ﴾ نه معلومیږي چه که کُفارو مسلمانانولره دمسلمانیدوپه جرم کښې دوطن نه په زبردستۍ اوباسي نوداهم په هجرت کښې ځکه داخل دی چه داآیت دمهاجرینوصحابه کرامو رضي الله عنهم په باره کښې نازل شوې دې-
دې تعریف نه داهم معلومه شوه چه کوم مسلمانان، ددارکفرنه دبیزارۍ په وجه په خپل اختیارسره، هندوستان نه پاکستان ته په کډه راغلی دی، یادد غه ځائې کُفارودمسلمانیدوپه جرم

(١) روح المعاني، سورة النساء رقم الآية: ٩٨، ج ٢، ص ١٥٣
(٢) مرقاة، خطبة الكتاب: ج ١، ص ١٠٩

کښې په زبردستۍ اوښکلې دی دا ټول دَشرعی معنی په اعتبار سره مهاجر دی، البته څوک چه دَتجارت دَ ودې او ترقۍ، یا دَملازمت دَسهولتونو په نیت سره پاکستان ته راغلی دی، دَشریعت له مخې هغوی ته مهاجر نشي وئیلې.

په صحیح بخاری او مُسلم کښې دَرسول الله ﷺ ارشاد دې:

﴿المهاجر من هجر ما نهى الله عنه ورسوله﴾([1]) مُهاجر هغه څوک دی چه ټول هغه څیزونه پریږدی کومونه چه الله تعالی او دَهغه رسول منع کړي ده.

نو ددې مطلب هم، ددې حدیث دَرومبۍ جمله نه ښکاره کیږی په کومه کښې چه داسې ارشاد دې:

﴿المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده﴾([2]) مسلمان هغه دې چه دَ ژبې او دَلاس نه ئې نور مسلمانان په امن وی.

ددې ښکاره مطلب دا دې چه رشتینې او پوخ مسلمان هغه دې چه نورو مسلمانانو ته څه زیان، تاوان نهٔ ورکوی، دَغه شان رشتینې او کامیاب مهاجر هغه دې چه یواځې په وطن پریښولو باندې خلاص نهٔ شو بلکه دَشریعت ټول حرام کړی څیزونه هم پریږدی.

دَاحرام جامې سره خپل زړهٔ هم بدل کړه.

**دهجرت فضیلتونه**: په ټول قرآن کریم کښې څنګه چه دَجهاد په باره کښې آیتونه خواره دی دغه شان په اکثرو سورتونو دَقرآن کریم کښې دَهجرت ذکر هم په ګڼو ځایونو کښې راغلې دې دَدغې ټولو آیتونو راجمع کولو نه معلومیږی چه دَهجرت په آیتونو کښې درې قسمه مضمونونه دی: دَهجرت فضیلتونه، ددې دَدنیا او آخرت برکاتو سره دَقُدرت نه په هجرت نهٔ کولو باندې وعیدونه.

① دَهجرت فضیلتونه دَسورة بقره په یو آیت کښې داسې راغلی دی:

﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ چاچه ایمان راوړو او چاچه دَالله تعالی په لار کښې هجرت او جهاد اوکړو، هغوی دَالله تعالی دَرحمت امیدوار دی او الله تعالی لوئ غفور رحیم دې.

② دویم آیت په سورت توبه کښې دی.

﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ أَعْظَمُ دَرَجَةً عِندَ اللَّهِ ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ﴾ چاچه ایمان راوړو او چاچه دَالله تعالی په لار کښې هجرت او جهاد اختیار کړو، دوئ دَ الله تعالی په نزد په لویه درجه کښې دی او دَغه خلق کامیاب او مُراد موندونکی دی.

③ دریم دَسورت نساء دا آیت دې ﴿وَمَن يَخْرُجْ مِن بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ﴾ څوک چه دَالله تعالی دَپاره دَخپل کور نه په نیت دَهجرت او وتلو بیا ورته په لاره کښې مرګ راغلو نو دَهغه ثواب دَالله تعالی په ذمه شو.

دَځنې روایتونو([3]) په جوړ، دا آیت دَحضرت خالد بن حزام رضي الله عنه په باره کښې دَحبشې دَهجرت په زمانه کښې نازل شو چه دَمکې مکرمې نه حبشې ته دَهجرت کولو په اراده وتلې وو، په لاره کښې مار اوچیچلو او دَهغې نه وفات شو. په هرحال دې درې وارو آیتونو کښې دَارِکفرنه دَهجرت کولو دَجذبې راپیدا کولو او ددې دَلویو فضیلتونو بیان په ښکاره ډول راغلې دې.

---

[1]) صحيح البخاري، كتاب الإيمان، باب المسلم من سلم المسلمون الخ: ج۱، ص۶

[2]) صحيح البخاري، كتاب الإيمان، باب المسلم من سلم المسلمون الخ: ج۱، ص۶

[3]) تفسير ابن ابي حاتم تحت هذه الآية رقم الحديث: ۵۸۲۳

په يو حديث کښې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: ﴿الهجرة تهدم ما كان قبلها﴾ [هجرت ټول هغه ګناهونه معاف کوي کوم چه مهاجر د دې نه وړاندې کړي دي[۱]]-

**هجرت برکتونه** دهجرت د برکتونو په باره کښې د سورت نحل په يو آيت کښې داسې راغلي دي: ﴿وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي اللَّهِ مِنْ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ۖ وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ ۚ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ﴾ کوموخلقوچه الله تعالى د پاره هجرت اوکړو د دې نه پس چه په هغوئ ظلم اوکړې شو هغوئ ته به مونږ په دنيا کښې ښه ټيکاڼه ورکړو او د آخرت ثواب خو ډير لوئي دې، کاش چه دا خلق پوهيدلي -

د سورت نساء د دغه څلورو آيتونو څخه په څلورم آيت کښې تقريباً هم دا مضمون ذکر شويدې لکه فرمائي:

﴿وَمَن يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً﴾ څوک چه د الله تعالى په لار کښې هجرت کوي هغه به بيامومي په زمکه کښې ځايونه ډيرا و فراخي-

په آيت کښې لفظ د ﴿مُرَاغَمًا﴾ مصدر دې، معنى ئې يوې زمکې ته منتقل کيدل دي دا شان، د منتقل کيدو ځائې ته هم ، ، مراغم ، ، وئيلې شي-

په دې دواړو روايتونو کښې دهجرت د ظاهري او باطني برکتونو داسې بيان دې چه يکښې د الله تعالى دا وعده ده چه څوک، الله اورسول د پاره هجرت کوي، الله تعالى ورد پاره په دنيا کښې لارې پرانيځي، په دنيا کښې ورته هم ښه ټکانه [ډيره] ورکوي، او د آخرت ثواب او درجات خوئې د وهم او ګمان نه زيات پورته دي-

د ښکلي ټيکاؤنړې [ډيرې] تفسير مجاهد رحمه الله په ، ، رزق حلال ، ، سره کړې دې، حسن بصري رحمه الله په ښکلي مکان ، ، سره او څنې نورو مفسرينو په مخالفينو باندې غلبې ، عزت اوشرف مونډلو ، سره کړيدې، حقيقت دادې چه د آيت په مفهوم کښې دا ټول څيزونه داخل دي، چنانچه د دنيا تاريخ ګواه دې چه چاهم د الله تعالى د پاره وطن پريښې دې، نو الله تعالى ورته د خپل وطن د مکان نه زيات غوره مکان، د خپل پريښولي وطن د عزت اوشرف نه زيات غوره عزت او د وطن د آرام نه نې ورته زيات آرام ورکړې دې- حضرت ابراهيم عليه السلام د خپل وطن عراق نه شام ته هجرت اوکړو، نو الله تعالى ورته دغه ټول څيزونه نصيب کړل، حضرت موسى عليه السلام او ورسره بني اسرائيلو د الله تعالى د پاره خپل وطن، مصر پريښو، نو الله تعالى ورته د هغې نه زيات غوره وطن د شام ملک ورکړو او بيا مصر هم ورته ملاؤ شو، زمونږ آقا حضرت خاتم الانبياء ﷺ او د هغوئ صحابه کرامو رضي الله عنهم د الله تعالى اورسول د پاره مکه مکرمه پريښوه نو مهاجرينو ته د هغې نه زيات غوره ټيکاؤنړه مدينه منوره نصيب شوه، هر قسم غلبه، عزت، آرام او دولت ورکړې شو، د هجرت په ابتداء کښې د څوور خو تکليف او مشقت هيڅ خبره نه ده، ولې چه د هغې نه پس کوم نعمتونه چه الله تعالى دوئ ته عطا کړل هغه د دوئ د ډيرو نسلونو پورې جاري وو، هغې ته کتل پکار دي-

د صحابه کرامو رضي الله عنهم د لوږو ، تندو ، غريبئ او محتاجئ چه کوم واقعات په تاريخ کښې مشهور دي، هغه عموماً د هجرت د ابتدائې دور دي، يا دغه تنګي د هغوئ اختياري داسې وه چه پخپله ئې د دنيا مال، دولت نه خوښولو، څه به چه ګټوله ورتلل هغه به ئې د الله تعالى په لار کښې لګول ، لکه څنګه چه پخپله د رسول الله ﷺ هم دغه حال وو ، د هغوئ تنګي هم اختياري داسې وه چه غني

---

[۱] صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب كون الاسلام يهدم ما كان قبله وكذا الهجرة الخ: ج ۱، ص ۷۸

توب او مالداري ئې نه خوښوله اوسره ددې نه دهجرت په شپږم کال کښې دخيبر دفتح نه پس د رسول الله ﷺ دټول اهل و عيال د ګذارې پوره انتظام اوشو. دغه حال دخلفائې راشدينو ﷺ هم وو چه مدينه کښې ورته الله تعالى هرڅه ورکړل. خوهر کله چه اسلامي ضرورت پيښ شونوحضرت صديق اکبر ﷺ دخپل کور ټول هرڅه پيش کړل. أم المؤمنين حضرت زينب ﷺ ته به چه څومره وظيفه ورکولې شوه هغه به ئې ټوله په فقيرانو، غريبانو ويشله اوپخپله به ئې دفقيرئ ژوند تيرولو اوهم په دې وجه دهغې لقب، أم المساکين، مشهورشو. بياهم په صحابه کرامو ﷺ کښې داسې کسان هم ډيروو چه په مکه مکرمه کښې نيستمن وو، هجرت نه پس ورته الله تعالى ډيرمال دولت اوهر قسم فراخى نصيب کړه. هر کله چه حضرت ابوهريرة ﷺ ديوې صوبې والى مقرر کړې شونو ډيرپه خوندبه ئې دتيرژوند حالات بيانول اوخپل نفس [ځان] ته به ئې خطاب داسې کولو چه، ته خوهغه کس ئې چه دفلانئ قبيلې نوکروې اوتنخواه د صرف دومره قدرې روټئ وه چه خيټه به دېرډ کيدله اوداخدمت دې په ذمه لګولې شوې وو، چه دغه خلق به کله په سفرتلل نوته به ورسره په جلب کښې پياده روان وې چه هغوئ به چرته په يوېراؤتيکاؤشول نوتابه ورلره دسوخولولړکى راټولول، نن داسلام په برکت کوم ځائې نه کوم ځائې ته، ته اورسيدې، اوس درته امام اوامير المؤمنين وئيلې شى...

خُلاصه داده چه کومه وعده الله تعالى دقرآن کريم په ذريعه مهاجرينو ﷺ سره کړې وه، ټولې دُنياهغه په خپلو سترګوپوره شوې اوليدله، البته دې آيت کښې ورسره شرط دالګولې شوې دې چه ﴿هاجروافى سبيل الله﴾ وى، دَدُنيادمال، دولت، حکومت، سلطنت، دعزت اومرتبې په طلب کښې ئې هجرت نهٔ وى کړې، ورنه دصحيح بخارى شريف په حديث کښې درسول الله ﷺ داارشادهم دې چه، ځوک دالله تعالى اورسول په نيت سره هجرت کوى نودهغوئ هجرت الله اورسول دپاره دې[1] [يعنى هجرت ئې صحيح دې چه فضيلتُونه اوبرکتُونه ئې قرآن کريم کښې بيان شويدى.] اوچاچه دمال دطلب دپاره، يا يوې ښځې سره دنکاح کولوپه خيال هجرت اوکړونودهغوئ دهجرت بدله هم هغه څه دى چه وردپاره ئې هجرت کړې دې-

اوس که مهاجرين چرې پريشانه اوخواراوليدې شى نوداسې اوګنړئ چه داابتداء دازميښت دوردې چه روستوبه ښه کيږى يابه هغوئ په صحيح نيت اوارادې سره هجرت نهٔ وى کړې، که نيت ئې ښه کړونوداالله تعالى وعده پوره کيدل به په خپلو سترګواووينى-

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا | ضَرَبْتُمْ | فِي الْأَرْضِ | فَلَيْسَ | عَلَيْكُمْ | جُنَاحٌ |
| او هر کله چى | سفر کوئ تاسو | په زمکه کښى | نو نشته | په تاسو | هيڅ ګناه |
| او هر کله چې تاسو په سفرروان شئ نو په تاسو باندې هيڅ ګناه نشته | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَنْ تَقْصُرُوا | مِنَ الصَّلَوٰةِ ۚ | إِنْ خِفْتُمْ | أَنْ يَفْتِنَكُمُ | الَّذِينَ |
| چى لنډوالې اوکړئ | په مانځه کښې | که يريږئ تاسو | چى په فتنه کښى به واچوى تاسو | هغه کسان |
| که تاسو مونځ کښې قصر اوکړئ | ..........که دا ويره درسره وى چې کافران به موپريشانه کړى | | | |

---

[1] صحيح البخاری، کتاب الإيمان، باب ما جاء ان الاعمال بالنية الخ: ج۱، ص۳

كَفَرُوْا ۭ اِنَّ الْكٰفِرِيْنَ كَانُوْا لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِيْنًا ۝ وَاِذَا

چي كافران دي | بيشكه چي كافران | دي | ستاسو | دشمنان | ښكاره | اوهر كله چي

بيشكه كافران په ښكاره ستاسو دشمني ته تيار ناست دي | او [اې پيغمبره] هر كله چي ته

كُنْتَ فِيْهِمْ فَاَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلٰوةَ فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ

موجود نې ته | په دوئ كښې | او اودروې | دپاره ددوئ | مونځ | نو اودريږي دې | يوه ډله | ددوئ نه

دمسلمانانو ډله كښې موجود يې؛ او دجنګ په وخت كښې | ورته مونځ وركوې نو ددوی يوه ډله دې تا سره

مَّعَكَ وَلْيَاْخُذُوْٓا اَسْلِحَتَهُمْ ۣ فَاِذَا سَجَدُوْا فَلْيَكُوْنُوْا

تاسره | او اودې نيسي هغوئ | وسله خپله | نو بيا چي كله | سجده اوكړي هغوئ | نو شي دې هغوئ

اودريږي | او خپله خپله وسله دې خان سره نيسي | هر كله چي سجده اوكړي نو ستاسو نه دې

مِنْ وَّرَآئِكُمْ ۠ وَلْتَاْتِ طَآئِفَةٌ اُخْرٰى لَمْ يُصَلُّوْا

روستو | ستاسو نه | اورا دې شي | ډله | بله | چي لا نه دي كړې مونځ هغوئ

روستو لاړ شي | او بله ډله چي مونځ ئې نه وی كړې هغه دې رامخكښې شي.........

فَلْيُصَلُّوْا مَعَكَ وَلْيَاْخُذُوْا حِذْرَهُمْ وَاَسْلِحَتَهُمْ ۚ

نو اودې كړي مونځ | تاسو سره | او اودې نيسي هغوئ | سامان د بيدارئ خپل | او وسله خپله |

او تاسره دې مونځ كښې شريک شي | او دخپل حفاظت خيال دې ساتي | او وسلې دې ورسره وی

وَدَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ تَغْفُلُوْنَ عَنْ اَسْلِحَتِكُمْ

خوښوي هغه كسان | چي كافران دي | چي كه تاسو غافلان شئ | د وسلو خپلو نه |

كافران دا غواړي چي تاسو د خپلو وسلو او اسبابو نه [لږ قدرله] غافله شئ

وَاَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيْلُوْنَ عَلَيْكُمْ مَّيْلَةً وَّاحِدَةً ۭ وَلَا جُنَاحَ

او دسامانونو خپلو نه | نو حمله به اوكړي | په تاسو | په يو ځل ناساپه | او نشته ګناه

............ نو په تاسو باندې به په يو ځل حمله اوكړي | ...... او په تاسو هيڅ ګناه نشته

عَلَيْكُمْ اِنْ كَانَ بِكُمْ اَذًى مِّنْ مَّطَرٍ اَوْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى اَنْ

په تاسو | كه چرې | وی | په تاسو | څه تكليف | دوجې دباران نه | يا وئ تاسو | ناجوړه | چي

.......... كه چرته په تاسو د باران د وجې تكليف وی | .......... يا بيماران يئ

تَضَعُوْٓا اَسْلِحَتَكُمْ ۚ وَخُذُوْا حِذْرَكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ

كيږدئ تاسو | وسلې خپلې | او بيا هم او نيسئ | بيداري خپله | بيشكه چي الله | تيار كړې دې |

چه تاسو خپله وسله پرانيزئ | .......... خود خپل حفاظت خيال ساتئ | بيشكه الله ﷻ

لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ۝ فَاِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلٰوةَ

دپاره دكافرانو | عذاب | رسواكونكي | بيا چي كله | اوكړئ تاسو | مونځ |

كافرانو دپاره رسواكونكي عذاب تيار كړې دې | او هر كله چي تاسو د مونځ نه فارغ شئ

فَاذْكُرُوا اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِكُمْ ۚ فَاِذَا اطْمَاْنَنْتُمْ

نو يادوئ الله | په ولاړه | او په ناسته | او په اړخونو خپلو | نو کله چې | په اطمينان شئ تاسو

نو په ولاړه، ناسته او په ملاسته په هر حال کښې د الله ﷻ ذکر کوئ | بيا چې (د دشمن نه) بې غمه شئ

فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ۚ اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا

نو قائموئ مونځ | بيشکه | مونځ | دي فرض | په مومنانو باندې | لازم کړې شوې

نو پوره مونځ اداکوئ | بيشکه مونځ په مسلمانانو باندې په خپل خپل وخت فرض کړې شوې دې

مَّوْقُوْتًا ۞ وَلَا تَهِنُوْا فِي ابْتِغَآءِ الْقَوْمِ ؕ اِنْ تَكُوْنُوْا

په وخت کښې | او سستي مه کوئ | په طلب | دقوم [د کافرانو] کښې | که يئ تاسو |

اود [دښمن] قوم په لټون کښې سستي مه کوئ | که تاسو [د کافرانو سره په جنګ..........

تَاْلَمُوْنَ فَاِنَّهُمْ يَاْلَمُوْنَ كَمَا تَاْلَمُوْنَ ۚ

چې دردمن کيږئ تاسو | نو بيشکه هغوئ هم | دردمن کيږي | لکه څنګه چې | تاسو دردمن کيږئ |

اکولو کښې قسم قسم] درديږئ [نو ستاسو پشان هغوئ [کافران] هم درديږي [او تکليفونه ورته رسي]

وَتَرْجُوْنَ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا يَرْجُوْنَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا

او تاسو اميد لرئ | د الله نه | د هغه ثواب چې نه ئې لري هغوئ | او دې الله | پوهه

او حال دا دې چه تاسو د الله ﷻ نه هغه اميدونه [د جنت وغيره] ساتئ اچې هغوئ ئې نه ساتي | او الله په هر څه

حَكِيْمًا ۞ ع

او خاوند د حکمت |

پوهه او خاوند د حکمت دې |

**آسان ترجمه قرآن:** اوکله چه تاسو په زمکه کښې سفر کوئ او تاسوته ددې خبرې ويره وي چه کافران به تاسو لره پريشانه کړي نو په تاسو باندې په دې خبره کښې څه ګناه نشته چه تاسو مونځ کښې قصر وکړئ يقيناً کافران ستاسو ښکاره دښمنان دي او (اې پيغمبره!) چه کله ته ددوی په مينځ کښې موجود ئې اودوی ته مونځ ورکوې نو (دښمن سره د مقابلې په وخت کښې ددې طريقه دادة چه) د مسلمانانو يوه ډله دې تاسره اودريږي اوخپله وسله دې واخلي بيا چه کله دوی سجده وکړی نو دوی دې شاته لاړ شي ستاسو نه ، او دويمه ډله چه هغوی اوسه پورې مونځ نه دې کړې هغوی دې راشي کښې شي ، او تاسره دې مونځ وکړي او هغوی دې دَ خپلو ځانونو سره د بچاؤ سامان او خپله وسله واخلي کافران دا غواړي چه تاسو د خپلو وسلو اود خپل سامان نه غافله شئ نو دوی په تاسو په يوځل حمله وکړي اوکه تاسوته د باران د وجې نه تکليف وي يا تاسو ناجوړه يئ نو په تاسو باندې په دې کښې څه ګناه نشته چه تاسو خپله وسله کيږدئ هسه خپل د بچاؤ سامان ځان سره کيږدئ بې شکه الله د کافرو د پاره د ذلت والا عذاب تيار کړې دې بيا چه کله تاسو مونځ پوره کړئ نو الله په (هر حالت کښې) يادوئ ، په ولاړه هم ، په ناسته هم ، او په ملاسته هم بيا چه کله تاسو ته (د دښمن د طرف نه) اطمينان حاصل شي نو د قاعدې مطابق مونځ کوئ

بې هغه مونځ د مسلمانانو په ذمه يو داسې ذمه داري ده چه د وخت پابندي ده او تاسو ددې خلقو (يعني د کافر دښمن) په لټولو کښې څه کمزوري مه ښکاره کوئ که تاسو ته تکليف رسيدلې وي نو هغوی ته هم دغسې تکليف رسيدلې دې لکه چه تاسو ته رسيدلې دې او تاسو د الله نه د داسې خبرې اميد کوئ چه د هغې هغوی اميد نه کوي او الله علم والا هم دې او حکمت والا هم دې.

## خلاصه تفسير

﴿ وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ ﴾ او کله چه تاسو په زمکه کښې سفر کوئی [چه اندازه ئې درے پراوه وی] نو په تاسو باندې به په دې کښې هيڅ ګناه نه وی [بلکه ضروری دی] ﴿ أَن تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ ﴾ چه تاسو [ذماسپخين[ماپښين] ،مازيګر او ماسختن [ماخستن] دفرض] مونځ [رکعتونه]کم کړئی [يعنی دڅلورو په ځائې دوه رکعته کوئی] ﴿ إِنْ خِفْتُمْ أَن يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ که ستاسو انديښنه وی چه تاسو به کافر خلق پريشان کړی [او ددې انديښنے له وجې په يوځائې کښې زيات وخت ايساريدل مصحلت نه خلاف اوګڼرلے شی ځکه چه] ﴿ إِنَّ الْكَافِرِينَ كَانُوا لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِينًا ﴾ بيشکه کافر خلق ستاسو ښکاره دښمنان دی.

﴿ وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَاةَ ﴾ او کله چه تاسو په دوی کښې تشريف لرئی [اودغه شان ستاسو نه پس چه بل څوك ئے امام وی] بيا تاسو هغوی ته مونځ ورکول غواړئی [او دا انديښنه وی چه که ټول مونځ ته اودريږی نو څوك دښمن به موقع بيا پيدا کړی او حمله به اوکړی] ﴿ فَلْتَقُمْ طَائِفَةٌ مِّنْهُم مَّعَكَ وَلْيَأْخُذُوا أَسْلِحَتَهُمْ ﴾ نو [په داسې حالت کښې] داسې پکار دی چه ددغې ټولو خلقو دوه ډلې [جوړے شی بيا] ددوی نه يو ډله خوتاسو سره [په مونځ کښې] اودريږی [اوبله ډله څوکيدا ريْ دپاره دښمن ته مخامخ ولاړه وی چه ددښمن څارنه کوی] او هغه خلق [چه درسره په مونځ کښې شامل دی هغوی دې هم مختصر شان] وسله واخلی [يعنی دمونځ نه مخکښې دے واخلی او خان سره دې ئے اوساتی چه دمقابلے دضرورت په ليدو په وخت کښې په وسلے راخستلو باندې څه ډيل اونشی او زر جنګ شروع کولې شی اګر چه مونځ خوبه په جنګ سره مات شي خو ګناه به نه وی] ﴿ فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِن وَرَائِكُمْ ﴾ بيا چه دغه خلق [تاسوسره] سجده اوکړی [يعنی يورکعت پوره کړی] نودغه خلق دے [د څوکيدارئ دپاره] ستاسو شاته شی [يعنی درسول الله ﷺ اودهغه د ډلے د روستو شاته چه اوس به په مونځ کښې شاملېږی اوبيان ئے راروان دے دغه رومبئ ډله دے ددې تولو د روستوشی] ﴿ وَلْتَأْتِ طَائِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ ﴾ اوبله ډله چه تر اوسه ئے مونځ نه دې کړې [يعنی شروع کړې ئے هم نه دې هغه دے ددغه رومبئ ډلے په ځائې امام ته نزدې] راشی اوتاسو سره دے مونځ [يعنی پاتې يو رکعت] اوکړی اودا خلق دے هم دخپل بچاو سامان او خپله وسله واخلی [اوځان سره دسامان او وسلے اخستلو حکم ئے تولو ته ځکه کړې دې چه] ﴿ وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ ﴾ کافر خلق داسې غواړی چه که تاسو دخپلو وسلو اوسامونو نه [لږ] غافله شئ ﴿ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً ﴾ نو په يو ځل به دربانديې حمله اوکړی [نوپه داسے حالت کښې احتياط ضروری دې] ﴿ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰ أَن تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ وَخُذُوا حِذْرَكُمْ ﴾ اوکه تاسو ته دباران [وغيره] په وجه [وسلے سره په تلوکښې] تکليف وی يا

تاسو بیمار یئ: [او پدغه وجه وسله بندکیدئ نشي:] نو تاسو ته په دې کښې [هم] هیڅ ګناه نشته چه وسله کیږدئ او [ابیاهم] خپل بچاو [ضرور] واخلئ: [اودا خیال مه کوئ چه دکفارو د دښمنئ صرف په دنیا کښې علاج کړې شوې دے بلکه په آخرت کښې به ئے دداسې نه په زیاته پیمانه علاج وی ځکه چه] ﴿ إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴾ بیشکه الله ﷻ کافرانو دپاره سزا دسپکاوی تیاره اینښے ده.

﴿ فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَاةَ ﴾ بیا چه تاسو مونځ [دخوف ویرے] اوکړئ نو [په مخه] ﴿ فَاذْكُرُوا اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِكُمْ ﴾ دالله ﷻ په یادکښې اخته شئ په ولاړه هم په ناسته هم اوپه ملاسته [په پرتهٔ] هم [یعنی په هرحالت‌کښې تردې چې دجنګ په وخت کښې هم دالله ﷻ ذکرجاری لرئ په زړه کښې هم او د شرعی احکامو په تابعدارئ سره هم چه دا هم په ذکر کښې داخل دی .په جنګ کښې د شریعت خلاف څه کار کولو نه څنګ کوئ غرض دا چه که مونځ ختم هم شی خو ذکر بیا هم نه ختمیږی دسفر یا د ویرے له وجې خوپه مونځ کښې څه کمے راغلې وو لیکن ذکر په خپل حال دے څه کمے په کښې نه راځی] ﴿ فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ ﴾ بیا چه تاسو په تسلی شئ [یعنی دسفر په ختمولو سره په خپل کورشئ اوداشان دویرے په ختمیدو سره بے ویرے شئ] نومونځ د [اصلی] قاعدې مطابق کول شروع کړئ [یعنی په مونځ کښې کمے کول او ګرځیدل وغیره په کښې پریږدئ ځکه چه دغه دپینښے په وجه روا کړې شوی وو] ﴿ إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا ﴾ یقینًا مونځ په مسلمانانو باندې فرض دې او وخت سره محدود دے [نو د فرض کیدو په وجه سره ئے ادا کول ضروری دی او وخت سره د خاص کیدلو په وجه ئے هم په خپل وخت کښې اداکول ضروری شو.لهذا اګر چه ددې په شکل وصورت کښې دپینښے په وجه تبدیلی اوکړې شوه ورنه دمونځ مقصودی صورت هم هغه اصلی صورت ئے دې نو ددغې سبب دختمیدو نه پس دمونځ داصلی صورت حفاظت لازم شو] ﴿ وَلَا تَهِنُوا فِي ابْتِغَاءِ الْقَوْمِ ﴾ او همت مه بائیلئ دهغه مخالف قوم پسې ورپسې کیدو کښې چې کله ددې ضرورت هم دې﴿ إِن تَكُونُوا تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ ﴾ که تاسو [دزخمونو نه] په تکلیف کښې اخته یئ نو [څه اوشو] هغوی خوهم په دردکښې اخته دی څنګه چه تاسو په دردکښې اخته یئ [نو هغوی خو تاسو نه زیات طاقت نه لری نوبیا ولې ویریږئ] ﴿ وَتَرْجُونَ مِنَ اللَّهِ مَا لَا يَرْجُونَ ﴾ او [په تاسو کښې یو زیاتوالئ د هغوی نه دادې چه] تاسودالله ﷻ له طرفه دداسې څیزونو امید لرئ چه دغه خلق [ئے] امید نه لری [یعنی دثواب نو دزړه په طاقت کښې ترې تاسو زیات شوئ او دبدن په کمزورتیا کښې ورسره یوشان یئ نو تاسو لره زیات چست کیدل پکار دی] ﴿ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴾ الله ﷻ دلوئې علم خاوند دے [هغه ته دکفارو کمزوری زړونه او کمزوری بدنونه معلوم دی] لوئې دحکمت خاوند دے [ستاسو د وس نه بئ زیات حکم درته نه دې کړې].

## معارف اومسائل

دَاتپونـو تړون: ﴿ وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ ﴾ پورته دجهاد او هجرت ذکرشوې وو ،هرکله چه په اکثروحالاتو کښې جهاد او هجرت دپاره سفرپېښیدل راځی اوپه داسې سفرونو کښې دمخالف ډارخه،اکثرخطرې هم وی ،په دې وجه دسفراوویرې په لحاظ په مونځ کښې دخاصو آسانتیاؤاو کموالی ذکراوس فرمائې۔

## د سفر او قصر احکام:

مسئله: دَدرې پړاؤنه په کم سفر کښې به مُونځ پُوره اداکولې شی۔

مسئله: دَسفر ختمیدونه پس هر کله چه خپل پړاؤته ورأورسی ،که هلته دِپنځلسوورځونه دکم پاتې کیدواراده نې وی نوبیاخوداپه حُکم دَسفر کښې دې،څلورر کعتونه فرض مُونځ به پکښې نیم نیم[دوه دوه رکعته]کوی چه ورته قصروئیلې شی،اوکه هلته ئې دِپنځلسویازیاتوورځوپاتې کیدواراده وی نودې ته وطن دَاقامت وئیلې شی چه مُونځ به پکښې دَاصلی وطن پشان پوره کولې شی۔

مسئله: قصر ،صرف دَدرې وختونوپه فرضو کښې دې،دَماښام اودَصباپه فرضو ،اوپه ټولوسُنتو او وترو کښې نشته۔

مسئله: په سفر کښې که څه قسم ویره هم نهٔ وی نوبیابه هم په مونځ کښې قصر کولې شی۔

مسئله: څنې خلقوته داوسوسه راولاړیږی چه ګنی دپُوره مُونځ په ځائې نیم مُونځ کول ګناه ده، دا صحیح نهٔ ده ځکه چه قصرهم دَشریعت حُکم دې،په دې باندې عمل کولو کښې ګناه نهٔ بلکه ثواب ملاویږی۔

مسئله: ﴿وَاِذَا كُنْتَ فِيْهِمْ فَاَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلٰوةَ﴾ [یعنی کله چه تاسوپه دوئ کښې تشریف فرمایئ]ادې نه دانهٔ دی ګنړل پکارچه اوس ځکه دَ ،،صلوة خوف،، حُکم باقی پاتې نشوچه رسول الله ﷺ دُنیانه تشریف اوړې دې،ولې چه داشرط دَهغه وخت دپاره لګولې شوې وو چه هغوئ پخپله په دُنیا کښې حیات وواودهغوئ په موجودګئ کښې بل څوک ترهغې امام نشی جوړیدې څوپورې چه دَهغوئ عُذرنهٔ وی،البته په اوسنووختونو کښې به هریوامام دَهغوئ جانشین وی،اوهم هغه به دَ ،،صلواة خوف،، امامت ورکولې شی،دَټولواماماًنوپه نِزدِدَ ،،صلواة خوف،، حکم دَهغوئ نه پس هم جاری دې منسوخ شوې نهٔ دې۔

مسئله: څنګه چه دَانسانانودَویرې لـه کبلـه ،،صلواة خوف،، اداکول روادی دغه شان دَزمری، شرمښ، اژدها وغیره دَویرې نه هم چه وخت تنګ وی،اداکول ئې روادی۔

مسئله: په آیت کښې دَدوارودلو ،امام سره دَیویورکعت ادا کولو ذکرخوشوې دې خودَ دویم رکعت اداکولوطریقه نه ده ذکرشوې،دَدې طریقه په حدیث شریف کښې داسې ښودلې شوې ده چه رسول الله ﷺ چه دوه رکعاته پوره کړل،سلام ئې اوګرځولونودواړودلوځان ځان لـه یویوادویم،دویم[رکعت اوادا کولوزیات تفصیل ئې په احادیثو کښې شته دې(۱)۔

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | إِنَّآ | أَنْزَلْنَآ | إِلَيْكَ | الْكِتٰبَ | بِالْحَقِّ |
| | بیشکه مونږ | نازل کړې دي | تاته | دا کتاب | په حقه |
| مونږ تا ته دا کتاب (قرآن) په حق (مضامینو سره) نازل کړې دی | | | | | |
| لِتَحْكُمَ | بَيْنَ | النَّاسِ | بِمَآ | أَرٰىكَ اللّٰهُ | وَلَا |
| دپاره ددې چې فیصله اوکړې ته | په منځ | دخلقو کښې | په هغه طریقه | چې ښودلې ده تاته الله | او مهٔ |
| د دې دپاره چې تاته الله کومه حقه خبره ښودلې ده | دهغې ته دخلقو په مینځ کښې فیصله اوکړې | | | | |

(۱) صحیح البخاری، أبواب صلاة الخوف: ج ۱، ص ۱۲۹، وجامع الترمذی، أبواب التفسیر، باب سورة النساء: ج ۲، ص ۳۳

تَكُنْ لِّلْخَآئِنِيْنَ خَصِيْمًا ۝ وَّاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا

کیږه ته| دپاره دخیانتګرو|جګړه کونکې |اومعافي اوغواړه دالله نه |بیشکه الله | دی |بښونکی

اودخیانت ګرو ملګرتیا مه کوه| اودالله ﷻ نه معافي غواړه| بیشکه الله ﷻ بښونکی ..........

رَّحِيْمًا ۝ وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَهُمْ ؕ

رحم کونکی | او جګړه مه کوه ته| دهغه خلقو د طرفه نه| چې خیانت کوی هغوی| دخانونوخپلوسره

اومهربان دی| اوڅوک چې د خپلو خانونو سره خیانت کوی| نو ته دهغوی دطرفه جګړه مه کوه

اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِيْمًا ۝ۙ يَّسْتَخْفُوْنَ

بیشکه الله| نه خوښوی| هغه څوك| چې وی| ډیرخیانت کونکی| ګناهګار| پټولې شی هغوی| ګناهونه|

بیشکه الله تعالی خیانت ګر اوګناهګار خلق نه خوښوی |.......... دا خلق |خپل ګناهونه|

مِنَ النَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ اِذْ يُبَيِّتُوْنَ

د خلقو نه| اونه شی پټولې | دالله نه | اوهغه| دهغوی سره وی| کله چې| هغوی دشپې کوی

دخلقونه خو پټولې شی|خودالله ﷻ نه ئې نشی پټولې| اوالله ﷻ خو په هغه وخت کښې هم هغوی سره وی

مَا لَا يَرْضٰى مِنَ الْقَوْلِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطًا ۝

هغه| چې نه ئې خوښوی الله |دخبرونه |اودې الله |په هغه کارونو|چې کوی ئې دوی| قدرت لرونکی

کله چې هغوی پټ په پټه دهغه دمرضی خلاف مشورې کوی| اوالله ددوی په ټولو عملونو احاطه کونکی دی

هٰاَنْتُمْ هٰؤُلَآءِ جٰدَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۟

خبرداریئ تاسو | هغه کسان | چې جګړه مو اوکړه | دطرفه ددوی نه | په ژوند | ددنیا کښې |

خبردار! نوتاسو خو په دې دنیا کښې د دوی دطرفه جګړه اوکړه|

فَمَنْ يُّجَادِلُ اللّٰهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَمْ مَّنْ يَّكُوْنُ

نوڅوك به | جګړه کوی | دالله سره | دطرفه ددوی نه| په ورځ دقیامت| یاآخر| څوك| به وی

نو په ورځ دقیامت به د دوی دپاره څوک دالله ﷻ مخکښې جګړه کوی|.......... اوآخرهلته به

عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا ۝ وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ ثُمَّ

ددوی| وکیل اوڅوك چې| اوکړی ابدی | یا ظلم اوکړی| په خان خپل| بیا |

څوک ددوی د طرفه وکالت اوکړی| اوڅوک چې ګناه یا په خپل خان زیاتې اوکړی| ..........بیا

يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝ وَمَنْ يَّكْسِبْ

بخښنه اوغواړی دالله نه | اوبه مومی الله | بښونکی| رحم کونکی| اوڅوك چې| اوکړی |

الله ﷻ نه بخښنه اوغواړی | نوالله ﷻ به ډیربښونکی اوزیات مهربان بیامومی|......... اوڅوک چې

اِثْمًا فَاِنَّمَا يَكْسِبُهٗ عَلٰى نَفْسِهٖ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا

ګناه | نو بیشکه | بار کوی ئې هغه | په خان خپل باندې |اودې| الله | په هرڅه پوهه

ګناه کوی نود هغه د ګناه نقصان هم هغه ته رسیږی |..........اوالله په هرڅه پوهه

حَكِيمًا ۝ وَمَن يَكْسِبْ خَطِيٓـَٔةً أَوْ إِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهِۦ

صاحب د حکمت دی | اوځوك چی | اوکړی | غلط کار | یا یوه ګناه | بیا | اوولی په دې ګناه سره

اوصاحب د حکمت دې | او چا چې خطاکار اوکړو | یائې ګناه اوکړه | بیائې د هغې تهمت په یوبې ګناه

بَرِيٓـًٔا فَقَدِ ٱحْتَمَلَ بُهْتَٰنًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ۝

یوبې ګناه سړی | نوبې شکه چی بارئې کړوپه خان | غټ دروغ | اوګناه | ښکاره |

کس باندې اولګوی | نو ډیرلوئ بهتان ئې جوړ کړو |.................... او ښکاره باره ګناه ئې اوکړه

وَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهُۥ لَهَمَّت

اوکه چرې نه وې | فضل | دالله | په تاباندې | او رحمت دهغه | نو خامخا قصد کړې ووٓ |

او (ائې پیغمبر!) اکه په تاد الله ﷻ فضل اومهربانی نه وې | نو ددوئ یوډلې خودا قصد کړې وو چې

طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ أَن يُضِلُّوكَ وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ وَمَا

یوې ډلې | ددوئ نه | چی خطا باسی تالره | او نه تیر باسی دوئ | مګر | خانونه خپل | او نه شی

د امجرم په بچ کیدلو| کښې تا په غلطه لار روان کړی| اوحال دا دې چې د خپل خان نه بغیر بل ځوك نشی غلطولې

يَضُرُّونَكَ مِن شَىْءٍ وَأَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ

ضرررسولی تاته| دهیڅ څیز | اونازل کړې دي الله | په تاباندې | کتاب | اوحکمت

اوتاته هیڅ قسمه نقصان نشی رسولې | اوالله ﷻ په تاکتاب اود حکمت خبرې [احادیث] نازل کړی دی

وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُن تَعْلَمُ وَكَانَ فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكَ

اوښودلی ئې دی تاته |هغه څه| چی نه وې ته|چی پوهیدلې پرې ته| اودې |فضل دالله | په تاباندې

اوهغه خبرې ئې درته خودلی دی چی تاته معلومې نه وې | اوپه تاباندې دالله ﷻ لویه مهربانی ده

عَظِيمًا ۝

ډیر لوئ |

**آسان ترجمه قرآن:** بې شکه موږه دا حق کتاب په تا باندې رالیږلې دې، دې دپاره چه ته دخلقوپه مینځ کښې دهغه طریقې مطابق فیصله وکړې کومه چه تا ته الله ښودلې ده اوته دخیانت کوونکو طرفدار مه جوړیږه اودالله نه بخښنه غواړه بې شکه الله ډیر بخښونکې ډیرمهربانده او په څه معامله کښې هم دهغه خلقو دطرف نه وکالت مه کوه چه خپلو ځانونوسره خیانت کوي الله نه خوښوي هرخیانت کوونکې، ګناهګار، دوی د خلقو نه شرمیږي اود الله نه نه شرمیږي او حال دا چه الله ددوی سره هغه وخت هم وي چه کله دوی د شپې په وخت کښې هغه خبرې کوي چه الله ئې نه خوښوی اوڅه چه دوی کوي الله دهغې احاطه کړې ده بیا ستاسو وَس خو همدادې چه تاسو په دنیوي ژوند کښې د خلقو سره جګړه وکړه ددې (خیانت کوونکو) حمایت مو وکړو لو د قیامت په ورځ به څوك د الله سره جګړه وکړي اودَ دوی حمایت به وکړي، یا څوك به ئې وکیل جوړ شي؟ اوڅوك چه یو بد کار وکړي یا خپل ځان باندې ظلم وکړي، بیا د الله نه معافي وغواړي نو الله به ډیر بخښونکې او مهربان ومومي او څوك چه ګناه وکړي نو هغه خپله دي

ګناه کولو سره خپل ځان ته نقصان رسوي او الله علم والا هم دی .. حکمت والا هم او څوك چه غلطي یا ګناه وکړی بیا ددې الزام په یو بې ګناه باندې ولګوي نو دې ډیر لوئ بهتان او ښکاره ګناه په خپل ځان باندې راولي او (اې پیغمبره!) که دالله فضل او رحمت په تا باندې نه وې نو په دوی کښې یوې ډلې تالره د صحیح لارې نه د اړولو اِراده کړې وه او (حقیقت کښې) دوی د خپل ځان نه سوا بل چالره نه ګمراه کوي. او دوی تا ته څه نقصان هم نه شي رسولې الله تعالی په تا باندې کتاب او حکمت نازل کړې دې او تا ته ئې دهغه خبرو علم درکړې دې چه تا نهٔ پیژندې . او په تا باندې همیشه د الله فضل ډیر زیات دې.

## خلاصه تفسیر

﴿ اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ ﴾ بیشکه مونږ تاسو ته داکتاب دراولیږلو [چه په هغې سره] دواقع مطابق حال معلوم شی ﴿لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَآ اَرٰىكَ اللّٰهُ﴾ دې دپاره چې تاسو [پدې واقعه کښې] ددې خلقو په مینځ کښې ددې موافق فیصله اوکړئی چه الله ﷻ [دوحی په ذریعه] تاسوته [اصل حال] خودلې دے [هغه وحی داده چه په واقع کښې بشر غل دے اووده مرستیال د بنوا بیرق قبیلے خلق دروغژن دی] او [هرکله چه اصل حال معلوم شونو] ﴿وَلَا تَكُنْ لِّلْخَآىِٕنِيْنَ خَصِيْمًا﴾ تاسو ددغې خیانتګروخلقو دطرفدارئ خبره مه کوئی [الکه چه دبنوا بیرق اصل خواهش هم دا وو لکه چه په دویمه رکوع کښې راځی. ﴿ لَهَمَّتْ طَّآىِٕفَةٌ مِّنْهُمْ اَنْ يُّضِلُّوْكَ ﴾ خوتاسو دغسې کړی نه وو.پخپله ډدې جملے نه په دې باندې دهغوی عمل نه کول هم معلومیږی ځکه چه ددې حاصل دادې چه دالله ﷻ فضل د غلطئ نه بچ کړی چه په کښې دهرې غلطئ نفی اوشوه اودمنع کولو نه یئ دا نه لازمیږی چه هغه دې په تیره شوې زمانه کښې واقع شوی وی بلکه دمنع اصل فائده داده چه دحقیقت حال نه خبرولو سره ئے په آینده کښې ترې منع کوی نومطلب به یئ دا راوځی چه څنګه دے تر اوسه پورې طرفداری نه ده کړې په آننده کښې هم دغسې مه کوئی او دا مکمل انتظامات نبی ﷺ لره دمعصوم [ګناه نه پاك] ساتلو دپاره دی.خیانتګر ټول بنوا بیرق نه وو خو هرکله چه دخیانتګر مرسته ئے کوله نوځکه ټولو ته خیانتګر اوونیلې شو د خلقو په وینا د نیك ګمانئی په ډول چه هغوی بنوا بیرق دیندار اوګڼړل اګر چه داسې ګڼړل ګناه خونه ده لیکن په دې کښې دا احتمال وو چه دهغوی په دومره فرمائیلو سره به حقداران خپل حق پرېږدی چنانچه هم دغسې اوشو چه حضرت رفاعه خاموش ناست وو نوداکار نامناسب اوشو ځکه ددې] ﴿ وَاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴾ تاسو بخښنه اوغواړئی دالله ﷻ [چه ستاسو دلوئې شان سره دومره خبره هم تاسو دپاره دبخښنے غوښتلو جوګه ده] بیشکه الله ﷻ لوئې بخښونکے لوئې درحمت خاوند دې.

﴿ وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَهُمْ ﴾ اوتاسو ددغې خلقو له طرفه دجواب ورکولو څه خبره مه کوئی [څنګه چه دغه خلقو تاسو نه غوښتل] ولے چه [دا خلق خیانت اونقصان کولو په وجه دضرر اووبال په اعتبار سره په حقیقت کښې] هم خپل نقصان کوی ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِيْمًا﴾ بیشکه الله ﷻ داسې کس نه خوښوی [بلکه بد ئے ګنړی] کوم چه لوئې خیانت کوونکې وی [څنګه چه لږ خیانت کوونکې هم نه خوښوی خو هرکله چه د بشر لوئې خیانتګر کیدل ښکاره کول مقصود دی ځکه دا صیغه دمبالغے راوړے شوه] ﴿ يَّسْتَخْفُوْنَ مِنَ النَّاسِ وَلَا

يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ﴾ دكومو خلقو چه دا شان دي چي [خپل خيانت لره] دخلقو نه [دشرميدو په وجه] پټوی او الله ﷻ نه نه شرميږی ﴿ وَهُوَ مَعَهُمْ اِذْ يُبَيِّتُوْنَ مَا لَا يَرْضٰى مِنَ الْقَوْلِ ﴾ حالانكه هغه [دهر وخت پشان] دا وخت [هم] دوی سره دے كله چه دوی دالله ﷻ دمرضئي خلاف د خبرو اترو متعلق تدبيرونه كوی ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطًا ﴾ او الله ﷻ ددوی ټول عملونه په خپلې [عملی] احاطے كښې راوستی دی.
[دبشر وغيره په مرسته كښې چه بعضې دمحلے خلق په جمع راغلی وو هغوئ دي دا واوری چه] ﴿ هٰاَنْتُمْ هٰؤُلَاۤءِ جٰدَلْتُمْ عَنْهُمْ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ﴾ تاسو داسې يئ چه په دنيوی ژوند خو مو ددوی له طرفه دجواب وركولو خبرے اوكړې خو [دا اوښائی چه] ﴿ فَمَنْ يُّجَادِلُ اللّٰهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَمْ مَّنْ يَّكُوْنُ عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا ﴾ دالله ﷻ په مخكښې به دقيامت په ورځ ددوی له طرفه څوك جواب وركوی چه ددوی كار جوړونكے به شی [يعنی نه خو به څوك زبانی جواب وركولې شی او نه به دمقدمے دسمولو څه عملی كار كولې شی] ﴿ وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْۤءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ ﴾ او [دے خيانتګرو كه اوس هم د شرعی قاعدې په جوړ توبه كړې وے نو معافی به ورته شوې وه ولے چه زمونږ قانون دادې چه] څوك [متعدی] بدكوی يا [صرف] دخپل ځان ضرر كوی [يعنی داسې ګناه نه كوی چه اثر ئے نورو ته رسی او] ﴿ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ ﴾ بيا الله ﷻ نه [د شرعی قاعدې مطابق] معافی اوغواړی [چه په كښې دبندګانو حقوق ادا كول يا ئے دهغوی نه معاف كول هم داخل دی] ﴿ يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴾ نو هغه به الله ﷻ لره لوئې بخښونكے بيا مومی او [ګناهګارو لره صرف ددې كوشش كول پكار دی].
﴿ وَمَنْ يَّكْسِبْ اِثْمًا فَاِنَّمَا يَكْسِبُهٗ عَلٰى نَفْسِهٖ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴾ چه څوك دڅه ګناه كار كوی نو هغه صرف د خپل ذات دپاره كوی او الله ﷻ لوئې دعلم خاوند دې [دټولو په ګناهونو خبر دې] لوئې دحكمت خاونددې [مناسبے مناسبے سزاګانے تجويز كوی] ﴿ وَمَنْ يَّكْسِبْ خَطِيْۤئَةً اَوْ اِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهٖ بَرِيْۤئًا ﴾ او [داخو پخپله دګناه كولو انجام شو په نورو باندې دخپلې كړې ګناه تور پورې كوونكو حال هم واورئ چه] څوك څه وړه ګناه اوكړی يا لويه ګناه بيا [ددې په ځائې چه توبه ورله كول پكار وو هغه داكار اوكړو چه] ددې [ګناه] تور ئے په يو بے ګناه پورې كړو ﴿ فَقَدِ احْتَمَلَ بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا ﴾ نو ده خو ډير درونده بهتان اوښكاره ګناه په خپل ځان [سر] باركړه [څنګه چه بشر اوكړه چه پخپله ئے غلا اوكړه او يونيك بخت بزرګ سړی يعنی لبيد باندې ئے دهغې تور پورې كړو].
﴿ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهٗ ﴾ او كه [په دې مقدمه كښې] په تاسو باندې [ائې محمد ﷺ] دالله ﷻ فضل اورحمت نه وې [چه هميشه درباندې وی] ﴿ لَهَمَّتْ طَّاۤىِٕفَةٌ مِّنْهُمْ اَنْ يُّضِلُّوْكَ ﴾ نو دے [چالاكو] خلقو نه يو ټولی خو تاسو لره په غلطئ كښې داچولو اراده كړې وه [ليكن دالله ﷻ په فضل سره ددوی رنګينو خبرو په تاسو هيڅ اثر اونشو كړې او بيا به هم اونه كړې شی لكه فرمائی] ﴿ وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّاۤ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَضُرُّوْنَكَ مِنْ شَيْءٍ ﴾ او دوی [كله هم تاسو لره] په غلطئ كښې نشی اچولې ليكن [په دې ارادے سره] خپلو ځانونو لره [په ګناه اوعذاب كښې داخته كيدو اهل جوړوی] او تاسو ته پوټے قدرې [ددې قسم] ضرر نشی در رسولې او [تاسو ته په غلطئ سره ضرر در رسول كله كيديشی چه] ﴿ وَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ﴾ الله ﷻ په تاسو باندې كتاب اودعلم خبرے نازلے كړې دي [چه دهغې په يوه برخه كښې ئے ددې قيصے اطلاع هم

درکړه] ﴿ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ﴾ اوتاسو ته ئې [هغه مفید او اوچتې] خبرې خودلې دي چه تاسو [مخکښې نه] نه پیژندی ﴿ وَكَانَ فَضْلُ اللهِ عَلَيْكَ عَظِيمًا ﴾ اوپه تاسو دالله ﷻ لوئې فضل دې.

## معارف او مسائل

**دآیتونوتړون** ﴿إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ﴾ پورته دظاهری کُفارو دمعاملاتو په ضمن کښې ځوځایه دمُنافقانو ذکر راغلې دې چه کُفر په دواړو کښې یوشان دې، اوس وړیسې هم دځنې مُنافقانو دیوې خاصې قیصې په باره کښې مضمون ذکر کیږي- [بیان القرآن] ([1])

**دآیتونو شان نزول:** ذکرشوی أوه آیتونه یوې خاصې واقعې سره تعلُق لرې، خود عام قرآنی طرز مطابق په دې سلسله کښې ورکړې شوی هدایات، دې واقعې سره خاص نهٔ دی بلکه په هغه دیرو أصولی اوفروعی مسئلو باندې مشتمل دی چه موجوده اوآئنده مسلمانانو دپاره عام دی- اول واقعه معلومه کړئ بیا هغې سره تړلی هدایاتو اودې نه په پوره راتونکو مسئلو باندې غوراوکړئ-

واقعه داسې وه چه په مدینه منوره کښې دبنوابیرق په نوم یو مشهور خاندان ؤ ددوئ یوسړی د حضرت قتاده بن نعمان رضی الله عنه دتره حضرت رفاعه رضی الله عنه د کور کندر اسورئی اوکړو اوغلاتې تړې اوکړه- د ترمذی او([2]) حاکم په روایت د دغه سړی بشیر نوم وو، دبغوی او([3]) ابن جریر په روایت دهغه نوم طعمه وو-

دترمذی شریف په روایت دغه سړې په حقیقت کښې منافق ؤو، سره ددې چه په مدینه منوره کښې اوسیدو لیکن دصحابه کرامو رضی الله عنهم دسپکاوی اشعار به ئې لیکل اود بل چا په نوم به ئې خوروِل- دغلاصورت داسې جوړشو چه دهجرت په ابتدائی زمانه کښې به عامو مسلمانانو دلوږې، تندې لنډ تنګ ژوند تیرولو، ددوئ عام خوراک به داوربشواوړه، کهجورې [خورما] ، کم کم دغنمواوړه چه په مدینه منوره کښې به موندې هم نهٔ شُو، کله به چه دغنمواوړه دشام ملک نه راتلل نوځه خلقو به میلمنو یا خاص ضرورت دپاره په بیعه اغستل، په داشان حضرت رفاعه رضی الله عنه هم دغنمواوړه اغستی اوپه یو بورئ کښې ئې خوندی کړی ؤو، په دې کښې ئې ځه وسله هم ایښې وه اوپه یو کوټګئ کښې ئې سنبال کړې وه، ابن ابیرق، بشیر، یاطعمه، ددې تلاش اولګولو، کندر [سورئی] ئې اوکړو اودغه بورئ ئې راوښکله- حضرت رفاعه رضی الله عنه چه داواولیدل نوخپل وراره حضرت قتاده رضی الله عنه له راغې اوددې غلاحال ئې ورته اووئیلو، تولو په جمع په محله کښې تفتیش شروع کړو، ځنو کسانو اووئیل چه بیګاه ماښام مو دبنوابیرق په کور کښې بل شوې اورلیدلې دې خیال مو دا راځی چه دغه داوړو پخولو دپاره بل کړې شوې وو، بنوابیرق هرکله چه په دې خبرشونو دخپل سرنه ددې الزام لرې کولو دپاره پخپله راغلل اوداتورئې په لبید بن سهل رضی الله عنه اولګولو، حضرت لبید یو مخلص مسلمان اونیک بزرګ ؤو چه ورته پته اولګیده نوتوره راوښکلې میدان ته راووتو اووې فرمائیل چه زهٔ به توره هله سنبالوم چه دغلاحقیقت اوبنیاد معلوم کړم-

بنوابیرق غلې شان اووئیل چه بې فکره اوسه، ستاسو هیڅوک نهٔ اخلی اونهٔ داکار ستاکیدې شی، دلته دبغوی اوابن جریر روایت داسې دې چه بنوابیرق ددغې غلاتور په یو یهودی پورې کړې

---

[1]) بیان القرآن تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۵۳

[2]) مستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۸۲۴۸، وجامع الترمذی، أبواب التفسیر، باب سورة النساء: ج ۲، ص ۱۳۲

[3]) تفسیر الطبری تحت هذه الآية رقم الحدیث: ۱۰۴۱۲، وتفسیر البغوی تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۲۸۴

وو، دې دپاره ئې هوښيار تيا داسې کړې وه چه داورو هغه بوري ئې لره شان شلولې وه، دحضرت رفاعه رضي الله عنه کورنه ئې دهغه يهودي تر کوره پوري ئې دهغې نه دوړيدلې، اوړه ښکاره کړې وو، چه د غلا خبره مشهوره شوه نو دغه غلا کړې وسله اوزغرې ئې هم يهودي سره کيښودل چه دتحقيق په موقعه دهغه د کورنه برآمد شوې، يهودي په دې قسم اوخوړو چه زغرې راته بنوابيرق راکړې دي-

دترمذي اوبغوي په روايت کښې جوړښت داسې کيدې شي چه رومبي سرکښې بنوابيرق په لبيدبن سهل باندې داتورپورې کړو، چه خبرې سمون اونۀ خوړونو کيدې شي چه هله روستو ئې داتورپه يهودي پورې کړې وي، بهرحال اوس داجنجال دبنوابيرق اوديهودي ترمنځه جوړ شو-

بل خواحضرت رفاعه رضي الله عنه اوحضرت قتادة رضي الله عنه مختلفو صورتونو او طريقو سره، دا غالب گمان شوې وو چه داکار دبنوابيرق دې . په دې بناحضرت قتاده رضي الله عنه درسو الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو د غلا واقعه ئې ورته بيان کړه اودتفتيش په سلسله کښې ئې په بنوابيرق باندې دغالب گمان ذکر اوکړو-

بنوابيرق چه په دې خبرشونو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلل، دحضرت رفاعه رضي الله عنه اوحضرت قتاده رضي الله عنه په باره کښې ئې داشکايت اوکړو چه بې دشرعي ثبوته هغوئ په مونږ باندې دغلا تورپورې کوي، حالانکه دغلامال ديهودي د کورنه برآمد شوې دې، دائې هم اووئيل چه تاسو، هغوئ لره ددې نه منع کړئ اوورته اوفرمايئ چه دعوى په يهودي باندې اوکړي-

دظاهري حالاتو اوعلاماتو په وجه درسول الله صلى الله عليه وسلم زړۀ مبارک ته هم داخبره پريوته چه داکار ديهودي دې-په بنوابيرق داتورپورې کول صحيح نۀ دې چنانچه دبغوي دروايت مطابق هغوئ په يهودي باندې دغلا دسزا اجارې کولو [دلاس پريکولو ئې] اراده اوکړه(۱)-

بل خواهرکله چه حضرت قتاده درسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضرشونو هغوئ ورته اوفرمائيل چه تاسو ددليل اوثبوت نه بغيرپه يو مسلماني کورنئ تورپورې کوئ، حضرت قتاده رضي الله عنه په دې ډيرزيات غمژن شواوافسوس ئې اوکړواووې وئيل چه کاش په دې باره کښې م دهغوئ په وړاندې هيڅ خبره نۀ وې کړې-اګرچه زما په کښې تول مال هم تلې وې، حضرت رفاعه رضي الله عنه هم چه په دې خبرشونو صبرئې اوکړواووې فرمائيل: ﴿والله المستعان﴾

په دې معامله کښې څه وخت لانۀ ووتيرشوې چه دقرآن کريم يو پوره رکوع په دې باره کښې نازله شوه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دهغې په ذريعه حقيقت سرګند کړې شواوداسې معاملاتو په باره کښې ورته عام هدايات ورکړې شو-

قرآن کريم چه دبنوابيرق غلا ښکاره کړه اويهودي ئې برى کړونو بنوابيرق دمجبورئ نه هغه غلا کړې مال درسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې پيش کړو-چه حضرت رفاعه رضي الله عنه ته اوسپارلې شو اوهغه دغه وسله جهاد دپاره وقف کړه، دغلا په ښکاره کيدو باندې بشيربن ابيرق دمدينې منورې نه مکې مکرمې ته اوتښتيد واوهلته مشرکانو سره يو ځائې شو، په داشان دغه منافق اوس ښکاره کافرشو اوکه وړاندې مسلمان وو نواوس مرتدشو-

په تفسيربحر محيط کښې راغلى دي چه دالله اورسول [ا] دمخالفت دوبال په وجه بشيربن ابيرق له په مکه مکرمې کښې هم آرام ورنغلو، يعنى دغلته دکومې ښځې په ډيره کښې چه تيکاؤشوې وو، هغې ته چه دحقيقت پته اولګيده نوخپلې ډيرې نه ئې اوويستلو، داشان سروالي بروالي او

---

(۱) تفسير البغوي تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۲۸۳

کوځه په کوځه ګرځیدو چه دغلته ئې دېل چا کورکندر کولو نو دیوال پرې راؤغورځیدو او ترې لاندې مړ شو (۱)۔
تر دې پورې د واقعې تفصیل وو، اوس د دې په باره کښې په قرآنی ارشاداتو غور اوکړئ:
د رومبی آیت په ذریعه هر کله چه رسول الله ﷺ دغلا په حقیقت خبر کړې شو نو ورته ئې ارشاد اوفرمائیلو:
چه مونږ په تاسو باندې ،قرآن کریم اووحي دې د پاره نازل کړې دی چه د الله تعالی له اړخه، تاسوته چه کوم علم او معرفت درکړې شوې دې، د هغې مطابق فیصله اوکړئ او د خیانتګرو [بنوابیرق] طرفداری اونکړئ او اګرچه د ظاهری حالاتو او قرینو په بنا، د غلا په معامله کښې د تور برابریدو خیال راتلل څه ګناه نه وه، لیکن هر کله چه دا د واقعې خلاف وه، ځکه ئې ورته په دویم آیت کښې د بخښنې غوښتو حکم ورکړو، ولې چه د انبیاؤ ﷺ مقام بلند دې، ځکه تر داسې خبره الله تعالی نه خوښه نه وه۔
په دریم آیت [۱۰۷] کښې یې بیا د دې تاکید اوفرمائیلو چې دخیانتګرو د طرفه تاسو هیڅ جواب مه کوئی ځکه چې هغوئ الله ﷻ ته خوښ نه دی په څلورم آیت نمبر ۱۰۸ کښې د دغې خیانتګرو د خراب حال اوبیوقوفئ بیان دې، چه دا خلق خود خپل ځان پشان بنیاد مونه د شرمیدو په وجه د هغوئ نه غلا پټوی لیکن الله تعالی نه نهٔ شرمیږی چه هروخت دوئ سره دې او د دوئ هر کارونی ګوری، خصوصاً خپل منځ کښې دا مشوره کول چه تور په یو یهودی پورې کړی د رسول الله ﷺ په حضور کښې د اشکایت کول چه هغوئ ،په مونږ باندې بې ثبوته تور پورې کوی، او د هغوئ نه داخواست کول چه د یهودی په مقابله کښې دې زمونږ مرسته اوکړی۔
په پنځم آیت [۱۰۹] کښې، د بنوابیرق مرستیالانو ته خبرداري ورکړې شو چه د دُنیا کښې خو تاسو د دوئ مرسته اوکړه لیکن معامله خودلته نهٔ ختمیږی، د قیامت په ورځ چه د الله تعالی په عدالت کښې معامله پیش شی هلته به ئې څوک مرسته کوی؟ په دې آیت کښې دوئ لره ملامت کول هم دی او د خپلو کړونه ئې توبې کولو ته ئې راپاړول هم دی۔
په شپږم آیت [۱۱۰] کښې د قرآن کریم د عام حکیمانه انداز مطابق ،مجرمانو، ګنهګارانولره د نا امیدئ نه د بچ کولو د پاره اوفرمائیلې شو چه هر کله ګناه ورکوتې وی او که لویه، خو چه ګنهګار د الله تعالی په وړاندې ترتوبه کوی او د هغې بخښنه ترغواړی، نو الله تعالی لره به غفور رحیم بیاموسی او داسې قسم ګنهګارانولره دې ته راپاړول دی چه د خپلو کړو ګناهونونه که اوس هم منع شی د زړهٔ د اخلاصه توبه تر اوباسی نو هیڅ خرابې نهٔ ده شوې الله تعالی به د غه ټول ګناهونه معاف کړی- په اووم آیت [۱۱۱] کښې داهدایت کړې شوې دې که دا خلق اوس هم توبه ګارنشی نو الله تعالی ، د هغه رسول، او مسلمانانو ته ئې هیڅ زیان تاوان نشته، وبال ئې هم په دغه کس دې۔
په اتم آیت [۱۱۲] کښې د یوې عامې ضابطې په شکل کښې ارشاد اوفرمائیلې شو ،چه څوک، پخپله څه جرم اوکړی او بیا د هغې تور په یو بې ګناه انسان اولګوی لکه څنګه چه بنوابیرقو کړی وو نو هغه لوئې بهتان او ښکاره ګناه په خپل ځان باره کړه۔

(۱) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۵۷

په نهم آیت [۱۱۳] کښې رسول الله ﷺ ته داسې خطاب کړې شوې دې، که چرې دَالله تعالى فضل اورحمت در باندې نهٔ وې، چاچه دَوحی په ذریعه دَدې واقعې حقیقت درته اوښودونودې خلقو به غلطۍ کښې اخته کړې وې، خوهر کله چه په تاسودَالله تعالى فضل اورحمت دې، څکه دهیڅکله په غلطۍ کښې دوی نشی اخته کولې، بلکه پخپله په ګمراهۍ کښې اخته کیږي- اوتاسَوته دوی پورې قدرې نقصان هم نشی رسولې، ولې چه الله تعالى در باندې کتاب اودَدانشمندۍ خبرې نازلې کړې دی چه وړاندې درته نهٔ وې معلومې

**رسول الله ﷺ ته داجتهادکولوحق حاصل وو:** ﴿إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ﴾ دې آیت نه پنځه مسئلې ثابتې شوې، یوه داچه په هغه مسئلو کښې رسول الله ﷺ ته دَاجتهاد کولوحق حاصل ووچې دَهغې په باره کې دَقرآن کریم ښکاره نص موجود نهٔ وواوداچه دګنړوراپیښوبه فیصلو کښې به هغوی دَاجتهادنه کاراغستو-

بله مسئله تردامعلومه شوه چه دَالله تعالى په نزددَرائې هغه اجتهادمعتبردې چه قرآنی نصونو او اصولو نه راغستې شوی وی، خالصه رائې اوخیال معتبرنهٔ دې اونهٔ ورته په شریعت کښې اجتهاد وئیلې شی-

دریمه خبره ترې دامعلومه شوه چه دَرسول الله ﷺ اجتهاددَنورومجتهدینو امامانو پشان نهٔ ووچه پکښې دَخطااوغلطۍ احتمال همیشه باقی وی، بلکه دَهغوی په اجتهادی فیصلې کښې به، که څه غلطی اوشوه نوالله تعالى به په هغې خبرکړواودَهغوی فیصله به ئې دَحق مطابق اوصحیح اوګرځوله، دَهغوی دکومې اجتهادی فیصلې خلاف به که دَالله تعالى له اړخه څه واردنشونودابه دَدې خبرې نخښه وه چه دغه فیصله الله تعالى ته خوښه اودَهغه په نزدصحیح ده-

څلورمه خبره تردامعلومه شوه چه په قرآن باندې پوهیدل دَرسول الله ﷺ به دَالله تعالى له اړخه پوهول ووچه پکښې به دَغلط فهمۍ څه امکان نهٔ وو، په خلاف دَنوروعُلماؤاومجتهدینو نه چه دَهغوی پوهیدل داسې نهٔ وی چه ګنې دا، دَالله تعالى له اړخه وی لکه څنګه دَرسول الله ﷺ په باره کښې چه ﴿فاحکم بما اراک اللّٰه﴾ واردشوې دې، همدغه وجه ده چه هر کله یوسړی، حضرت عمر رضي الله عنه ته اووئیل چه ﴿فاحکم بما اراک اللّٰه﴾ نوهغوی اورټلواوورته ئې اوفرمائیل چه داخصوصیت دَرسول الله ﷺ وو-

پنځمه مسئله تردامعلومه شوه چه دَدروغودَمقدمې اودعوې پیروی یاوکالت کول یادَهغې تائید اومرسته کول، ټول حرام دی-

**دَتوبې حقیقت:** دَآیت نمبر ۱۱۰ ﴿وَمَن يَعْمَلْ سُوءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ﴾ نه دامعلومه شوه چه ګناه که لازمی وی اوکه متعدی، یعنی که حقوق الله سره ئې تعلق وی اوکه حقوق العبادسره، نوداسې هرقسم ګناه په توبه اواستغفارسره معاف کیدې شی، البته دَتوبې اواستغفارحقیقت پیژندل ضروری دی، صرف په ژبه، دَتوبه، او، استغفرالله وئیل کافی نهٔ دی، چنانچه دَعلماؤپه دې خبره اتفاق دې چه څوک په څه ګناه کښې اخته وی، په هغې خپیمانه هم نهٔ وی، پریږدی ئې هم نهٔ، په آئنده کښې ئې دَپریښولوقصدهم نهٔ وی، نوپه دې حالت کښې صرف په ژبه، استغفرالله، وئیل توبې سره ټوقې کول دی-

خُلاصه داچه توبې دَپاره درې خبرې ضروری دی، په تیروشوؤګناهونو باندې خپیمانه کیدل هغه ګناه سمدستی پریښول چه پکښې اخته وی، په آئنده کښې دګناه نه دَبچ کیدواراده کول، البته

کوم ګناهونه چه حقوق العباد سره تعلق لري، هغې نه دتوبې کولو یو شرط دا هم دې چه لاندې کړې حق ورته ادا کړې شي یائې ترې معاف کړې۔

**دخپلې ګناه نورو په بل چاپورې کول ددوچنده عذاب سبب دې:** دآیت نمبر ۱۱۲ ﴿ وَمَنْ يَّكْسِبْ خَطِيْٓئَةً اَوْ اِثْمًا ﴾ نه معلومه شوه چه څوک پخپله ګناه اوکړي او تورئې په بل یو بیګناه کس پورې کړي نو هغه خپله ګناه دوچنده او سخته کړه او دسخت عذاب مستحق شو یو دګناه کولو عذاب، بل دتور پورې کولو سخت عذاب ـ

**دقرآن او سنت حقیقت** په آیت نمبر ۱۱۳ ﴿ وَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ؕ ﴾ کښې کتاب سره دحکمت په شاملولو کښې دې اړخ ته اشاره کړې شوې ده چه درسول الله ﷺ سُنت او تعلیمات کوم چه د، حکمت، په نوم یادیږي دا هم دالله تعالی له اړخه نازل کړې شوي دي، فرق صرف دومره دې چه ددې الفاظ د الله ﷻ دطرفه نه دي په دې وجه په قرآن کښې داخل نه دي او ددې احادیثو او دقرآن کریم (دواړو) معنی دالله تعالی له اړخه دی ځکه په دواړو عمل کول واجب دی۔

اوس ددې نه دهغې کلام حقیقت معلوم شو چه ځنې فقهاؤ داشان لیکلی دې چه دوحی دوه قسمونه دی متلو (چه تلاوت ئې کولې شی) او غیر متلو (چه تلاوت ئې نشی کولې)

وحی متلو دقرآن کریم نوم دې چه الفاظ او معنی دواړه ئې دالله تعالی دجانب نه دی، او غیر متلو دحدیث رسول، نوم دې چه الفاظ ئې پخپله درسول الله ﷺ دې او معنې ئې دالله تعالی له اړخه دی۔

**درسول الله ﷺ علم دټولو مخلوقاتو نه زیات دې:** د ﴿ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ؕ ﴾ نه دویمه مسئله دا ثابته شوه چه درسول الله ﷺ علم، دالله تعالی پشان ټولو کائناتو نه چاپیره نه وو لکه څنګه چه ځنې جاهلان وائي بلکه هغه هومره علم ورته ضرورو وو څومره چه ورته الله تعالی ورکولو، البته دې نه هیڅ قسم انکار نشی کیدې چه رسول الله ﷺ ته دالله تعالی له اړخه ورکړې علم دټولو مخلوقاتو نه زیات دې۔

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا خَيْرَ | فِيْ كَثِيْرٍ | مِّنْ نَّجْوٰىهُمْ | اِلَّا | مَنْ | اَمَرَ | | |
| نشته خیر | په ډیرو کښې | دپټو خبرو ددوئ نه | مګر | دهغه چا | چې حکم کوي | | |
| ددوئ په ډیرو پټو مشورو کښې هیڅ خیر نه وي ......... البته هغه څوک چه (خلقو ته) | | | | | | | |
| بِصَدَقَةٍ | اَوْ مَعْرُوْفٍ | اَوْ اِصْلَاحٍۢ | بَيْنَ النَّاسِ ؕ | وَمَنْ | يَّفْعَلْ | | |
| په صدقه کولو | یاپه یو نیک کار | یا په اصلاح کولو | په منځ دخلقو کښې | او هغه څوک | چې کوي | | |
| دصدقې ورکولو یا دنیکۍ کولو یا دخلقو په مینځ د اصلاح کولو دپاره مشوره اوکړي (نو دا ښې خبرې دي) | | | | | | | |
| ذٰلِكَ | ابْتِغَآءَ | مَرْضَاتِ اللّٰهِ | فَسَوْفَ | نُؤْتِيْهِ | اَجْرًا عَظِيْمًا ۝ | وَمَنْ | |
| دا کارونه | دپاره دغوښتلو | درضا دالله | نو زربه | مونږ ورکړو هغه ته | ثواب | لوئ | او څوک چې |
| او څوک چې دالله ﷻ درضا دپاره داسې کار اوکړي نو مونږ به هغه ته ډیر لوئې اجر ورکړو | او څوک چې هم | | | | | | |
| يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ | مِنْۢ بَعْدِ | مَا | تَبَيَّنَ | لَهُ | الْهُدٰى | وَيَتَّبِعْ | |
| مخالفت کوي درسول | روستو | دهغې نه | چې ښکاره شوې ده | هغه ته | نیغه لار | او روان شي | |
| د هدایت ښکاره کیدو نه پس د پیغمبر مخالفت کوي ......... اود | | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| غَيْرَ | سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ | نُوَلِّهٖ | مَا | تَوَلّٰى |
| په سوا | دلارې دمومنانو | نو مونږ به اوګرزوو هغه لره | هغه طرفته | چې دې ورګرزيدلې دې |
| مومنانو د لارې نه سوا په بله لار روان شي \| نو مونږ نې هغه طرفته ګرزوو \| چه دې پخپله ورته ګرزيدلې وی. | | | | |
| وَنُصْلِهٖ | جَهَنَّمَ | وَسَآءَتْ | مَصِيْرًا | |
| او مونږ به داخل کړو هغه | په جهنم کښې | او بدخائې دې | د ورتلو | |
| او دوزخ ته به نې داخل کړو \| او دوزخ ډېر بدخائې دې | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** د خلقو په ډېرو پټو جرګو کښې څه خير نشته، هنه که يو کس د صدقې يا د څه نيکۍ يا د خلقو په مينځ کښې د اصلاح حکم وکړي او کوم يو کس چه د الله د رضاء د پاره داسې وکړي، مونږ به هغه لره لوئ ثواب ورکړو او څوك چه د هدايت واضح کيدو نه وروستو هم د رسول مخالفت وکړی او د مؤمنانو د لارې نه علاوه د بلې لارې تابعداري وکړي مونږ به ده لره هغه لارې ته حواله کړو کومه چه ده خپله اختيار کړې ده او ده لره به دوزخ ته داخل کړو او دا ډېر بد ځائ دې.

## خلاصه تفسير

﴿ لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰىهُمْ ﴾ د عامو خلقو په اکثرو پټو مشورو کښې خير [ثواب او برکت] نه وی ﴿ اِلَّا مَنْ اَمَرَ بِصَدَقَةٍ اَوْ مَعْرُوْفٍ اَوْ اِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ ﴾ مګر کوم خلق چه داسې وی چه د [خير] خيرات يا د بل نيك کار يا د خلقو ترمينځه د بنيګړې راوستلو شوق راپورته کوی [او د دغې د تعليم او راپورته کړی شوق د مکمل کولو په غرض پټ تدبيرونه او مشورے کوی يا پخپله نورو خلقو کښے په پټه ددې کارونو شوق رابيداروی ولے چه بعضې وخت په پټه وينا کښې خيروی ددوی په مشورو کښې البته خير يعنی ثواب او برکت دې] ﴿ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ﴾ او څوك چه دا کار کوی [يعنی ددې عملونو شوق په خلقو کښې رابيداروی] د الله ﷻ د رضا لټولو د پاره [د مرتبے او مشهورتيا حاصلولو په غرض نه] ﴿ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴾ نو مونږ به هغه ته زر تر زره لوئې اجر ورکړو ﴿ وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى ﴾ او څوك چه د رسول الله ﷺ مخالفت کوی پس د هغې نه چه د حق کار ښکاره شوې وو ﴿ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى ﴾ او د مسلمانانو [دينی] لارے پريښوه په بله لار روان شو [الکه چه بشر مرتد شو حالانکه د اسلام حق کيدل او د اشان په دغه خاص واقعه کښې د رسول الله ﷺ فيصله پخپله د هغه په نظر کښې حق کيدل معلوم وو بيا هم هغه لره بدبختئ راګير کړو] نو مونږ به هغه لره [په دنيا کښې] چه څه هغه کوی [د هغې کولو ته به يئ پريږدو] ﴿ وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ﴾ او [په آخرت کښې به] هغه لره جهنم کښې داخل کړو او هغه خراب ځائې دې.

## معارف او مسائل

**خپل منځ کښې د مشورو او مجلسونو کولو آداب او طريقې:** ﴿ لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰىهُمْ ﴾ يعنی خپل منځ کښې د خلقو په هغه مشورې او تدبيرونو کولو کښې هيڅ خير نشته، په کومو کښې چه د آخرت فکر نه وی، په انجام نې غور نه کوی او د دنيا د څو ورځو او وختی فائدو اغستو د پاره وی.

بيا ارشاد فرمائی: ﴿ اِلَّا مَنْ اَمَرَ بِصَدَقَةٍ اَوْ مَعْرُوْفٍ اَوْ اِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ ﴾ يعنی په دغه قسم

مشورو او پټو مصلحتونو کولو کښې که څه خير کيدې شي نو هغه دا دې چه د يو بل د خير خيرات کولو شوق پيدا کوي، يا د نيکئ حکم ورته کوي، يا د خلقو تر منځه د صلح کولو مشوره ورته ورکوي، په يو حديث شريف کښې راغلي دي چه د انسان هر يو کلام هغه د پاره، مضر دې، سوا د دې نه چه په يو کلام کښې د الله تعالى ذکروي، يا د نيکو حکم او د بدو نه پکښې منع وي.

د ،، معروف ،، معنى، هر هغه کار دې چه په شريعت کښې ښه ګڼرلې شي او په شريعت باندې پوهه خلق ئې پيژني ،د دې اپوټه او برعکس کار ته منکر وئيلې شي يعنى هر هغه کار چه شريعت ئې نۀ خوښوى او په شريعت باندې د پوهه خلقو په پوهه کښې او پره او نا آشناوى.

امر بالمعروف ، ،د نيکئ هر هغه حکم او شوق ورکولو له شامل دې چه پکښې د مظلوم امداد کول، حاجتمندو ته قرض ورکول، د لارې نه بيدر که خلقو ته لار ښودل وغيره ،ټول په نيکو کارونو کښې داخل دى، او صدقه او د خلقو تر منځه ښيګړه راوستل هم اګرچه په دې کښې داخل دى، خو دا په تخصيص سره، بيل څکه بيان کړې شو چه د دې دواړو څيزونو نفع متعدى ده او په دې سره د ملت اجتماعى ژوند سميږى. د غه شان دا دواړه کارونه د خلقو د خدمت د ضرورى بابونو مجموعه ده چه د هغې څخه، جلب منفعت، ، [مخلوق څدا ته فائده رسول] او بل، ، دفع مضرت، [خلقو له د تکليف او غم نه بچ کول] دى، صدقه ،د نفع رسولو يو اهم عنوان دې، او، اصلاح بين الناس، ، [د خلقو د خير ښيګړې کار کول] د الله تعالى مخلوق له د ضرر او نقصان نه د بچ کولو يو ډيز ضرورى عنوان دې، څکه خو جمهور مفسرينو فرمائيلى دى چه دلته ،صدقه عامه ده چه پکښې زکواة او واجبې صدقې هم داخلې دى او نفلى صدقې هم او هغه نفع هم چه چاته اورسولې شى.

**د صلح راوستو فضيلت:** د خلقو تر منځه خفګانو نه او زړه بداوى او خيرى لرې کولو د پاره ،صُلح او جوړښت راوستو په باره کښې د رسول الله ﷺ ارشادات ډير زيات اهم دى، يو ځائې کښې فرمائي:

آيا :زۀ تاسو ته داسې کار اونه ښايم چه درجه ئې د روژې، مونځ او صدقې ټولو نه زيات غوره ده، ،صحابه کرامو ﷡ عرض اوکړو چه، ،ضرور او ښايئ. وې فرمائيل چه، د خلقو تر منځه صلح ، روغه راوستل دى [يعنى د خلقو تر منځه، زړه بداوى ،خفګانونه او بوغمې لرې کول او فساد ختمول] (١)

رسول الله ﷺ داسې هم فرمائيلى دى: ﴿فساد ذات البين هى الحالقة﴾ (٢) [د خلقو تر منځه فساد او جګړې راپيدا کول خرائيونکې څيز دې] بيائې د دې وضاحت داسې اوکړو چه ، ،دا کار سرونه نۀ خرئ بلکه د انسان دين خرئ.

د آيت په آخر کښې ئې يو اهم مضمون دا او فرمائيلو چه، ،دا نيکيانې، صدقه، امر بالمعروف، اصلاح بين الناس هله معتبر او مقبول کيدې شى چه په اخلاص سره خالص د الله تعالى د رضا لټولو د پاره اوکړې شى څه ذاتى او نفسانى غرض پکښې شامل نۀ وى.

**د امت اجماع حجت دې:** ﴿وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى﴾ [آيت [١١٥] په دې آيت کښې د دوؤ څيزونو ،لوئې جُرم کيدل او د جهنم د داخليد و سبب کيدل بيان شويدى چه يو د هغې نه د رسول الله ﷺ مخالفت کول دى، چه د دې لويه ګناه کيدل ښکاره دى بل دا چه په کوم شئ چې ټول

---

١ ) سنن ابى داود، كتاب الأدب، باب فى اصلاح ذات البين: ج ٢، ص ٦٧٣

٢ ) سنن ابى داود، كتاب الأدب، باب فى اصلاح ذات البين: ج ٢، ص ٦٧٣

مسلمانان متفق وی دهغه پخلاف یو لاره راویستل او هغه اختیارول اجماع امت حجت دي يعنی څنګه چې د قرآن وحدیث بیان کړې شوی احکامو باندې عمل واجب دې همدا شان په کوم څیزچې ټول مسلمانان مُتفق وي، دې نه معلومه شوه چه دأمت اتفاق پر شوې وی په هغې باندې عمل واجب دی اومخالفت کول ئې لویه ګناه ده ،لکه چه رسول الله ﷺ په یوحدیث کښې فرمائیلی دی: ﴿يدالله على الجماعة﴾(۱) [دَجماعت په سَردَالله تعالی لاس دې اوڅوک چه دَ مسلمانانو دَ جماعت نه بیل شی هغه به خان له جهنم کښې غورځولې شی]-

دَحضرت امام شافعی نه چاسوال اوکړو چه آیا ، په قرآن کریم کښې دَاجماع اُمت ، په حُجت کیدو باندې څه دلیل شته؟نوهغوئ ددې دمعلومولودپاره په مخه درې ورځې دقرآن کریم تلاوت کول خپل شغل داسې جوړ کړوچه درې وارې به ئې دورځې اودرې خل به ئې دشپې قرآن کریم ختمولو ،آخرداچه هم داآیت مبارک ئې په ذهن کښې راغلوچه دعلماؤ په وړاندې ئې بیان کړو نوټولو اقراراوکړوچه دَاُمت دَاجماع په حجت کیدو باندې دادلیل کافی دی-

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّ اللّٰهَ　لَا يَغْفِرُ | | | | | | | |
| بیشکه الله \| نهٔ بښی | | | | | | | |
| الله ﷻ خوبس یوشرک نه بخښی ............ | | | | | | | |
| اَنْ يُّشْرَكَ | بِهٖ | وَيَغْفِرُ | مَا | دُوْنَ | ذٰلِكَ | لِمَنْ | |
| دا چې شریك جوړ کړې شی | دهغه سره | اوبښی | هغه | چې سوا وی | ددې نه | دپاره دهغه چا | |
| اوددې نه سوا هرڅه [ګناه] معاف کوی ............ چې چاته ئې [معاف کول] خوښ شی | | | | | | | |
| يَّشَآءُ ؕ | وَمَنْ | يُّشْرِكْ | بِاللّٰهِ | فَقَدْ | ضَلَّ | ضَلٰلًا | |
| چې اوغواړی | اوڅوك چې | شریك جوړ کړی | دالله سره | نوبیشکه | بې لارې شو | په بې لارې کیدو | |
| اوچاچې الله ﷻ سره شریک جوړ کړو ............ نوهغه په ډیره لرې ګمراهئ | | | | | | | |
| بَعِيْدًا ۝ | اِنْ يَّدْعُوْنَ | مِنْ دُوْنِهٖٓ | اِلَّآ | اِنٰثًا ۚ | وَاِنْ يَّدْعُوْنَ | | |
| لرې سره | نه رابلی دوئ | بې دهغه [الله] نه | مګر | ښځې بتانې | اونهٔ رابلی دوئ | | |
| سره ګمراه شو ............ دوئ الله ﷻ پریخودې دې او دیوځو زنانه څیزونو عبادت کوی | | | | | | | |
| اِلَّا | شَيْطٰنًا | مَّرِيْدًا ۙ | لَّعَنَهُ | اللّٰهُ ۘ | وَقَالَ | | |
| مګر | شیطان | سرکشه | چې لعنت کړې دې په هغه باندې | الله | اوونیلې وو هغه | | |
| اوصرف د هغه نافرمانه شیطان عبادت کوی \| چې الله ﷻ پرې لعنت کړې دې \| ............ اوشیطان | | | | | | | |
| لَاَتَّخِذَنَّ | مِنْ عِبَادِكَ | نَصِيْبًا | مَّفْرُوْضًا ۙ | وَّلَاُضِلَّنَّهُمْ | | | |
| چې خامخا به نیسم زهٔ | دبندګانو ستانه | حصه | مقرر کړې شوې | اوخامخا به بې لارې کوم زهٔ هغوئ | | | |
| خوالله ﷻ ته ونیلی وو \| چې ستا دبندګانو نه به ضرور مقرره حصه اخلم \| اوهغوئ به ضرور بې لارې کوم | | | | | | | |

(۱) المستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۳۹۲ کتاب العلم-

| | | |
|---|---|---|
| وَلَأُمَنِّيَنَّهُمْ | وَلَآمُرَنَّهُمْ | فَلَيُبَتِّكُنَّ |
| او خامخا به زه په امیدونو کښې اچوم هغوئ | او خامخا به زه حکم کوم هغوئ ته | نو خامخا به څیروي هغوئ |
| اودوی به په (د دنیا په قسم قسم) طمع او امیدونو کښې ساتم | اوورته به حکم کوم | نو د څارو غوږونه به |

| | | | |
|---|---|---|---|
| اٰذَانَ الْاَنْعَامِ | وَلَآمُرَنَّهُمْ | فَلَيُغَيِّرُنَّ | خَلْقَ اللّٰهِ ؕ |
| غوږونه د څاروو | او خامخا به زه حکم کوم هغوئ ته | نو خامخا به بدلوي هغوئ | پیداوښت د الله |
| څیرې کوئ | اوورته به حکم کوم (چې د الله پیدائښت بدلوئ) | نو د الله په پیدائش کښې به بدلون راولي | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | يَّتَّخِذِ | الشَّيْطٰنَ | وَلِيًّا | مِّنْ | دُوْنِ اللّٰهِ | فَقَدْ | خَسِرَ |
| او هغه څوک | چې اونیسي | شیطان | دوست | بې | د الله نه | نو په تحقیق سره | نقصان ني اوکړو |
| او چا چې د الله ﷻ نه سوا شیطان دوست جوړ کړو | | | | | | ......... نو بیشکه هغه په تاوان سره | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| خُسْرَانًا مُّبِيْنًا ؕ | يَعِدُهُمْ | وَيُمَنِّيْهِمْ ؕ | وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطٰنُ |
| نقصان ښکاره | هغه وعده کوی ددوئ سره | او امیدونه اچوی دوئ ته | او نهٔ کوی وعدې دوئ سره شیطان |
| تاوانی شو | شیطان ددوئ سره وعدې کوی | او د دروغو طمعې ورکوی | او شیطان خو دوئ سره صرف د |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِلَّا غُرُوْرًا ⑫ | اُولٰٓئِكَ | مَاْوٰىهُمْ | جَهَنَّمُ | وَلَا يَجِدُوْنَ | عَنْهَا |
| مکر / دهوکه | داکسان چې دی | ځاني ددوی | جهنم دې | او نهٔ به مومي دوئ | د هغې نه |
| دهوکې نه ډکې وعدې کوی | د دغه خلقو ځائي دوزخ دې | | ......... او ددې ځاني نه به خلاصی | | |

| |
|---|
| مَحِيْصًا ⑫ |
| څهٔ طریقه د خلاصی |
| بیانه مومی |

**آسان ترجمه قرآن:** بې شکه الله ددې خبرې بخښنه نه کوي چه ده سره څوک شریك کړې شي او ددې نه کمه هره گناه چه چاته ئې خوښه شي نو بخي او څوك چه د الله سره چا لره شريك کوي، نو هغه د صحيح لارې نه ډير لرې پريوځي. د الله نه سوا چه دوی د چا نه دعاگانې غواړي هغه صرف ځو زنانه دي، او څوك چه دوی رابلي هغه دشيطان سرکش نه سوا نور څوك نه دی چه هغه باندې الله لعنت کړې دې او هغه (الله ته) وئيلي دي چه ځه به ستا د بندگانو نه يوه مقرره حصه اخلم او ځه به دوی لره د صحيح لارې نه اړوم، او دوی ته به اميدونه ورکوم، او دوی ته به حکم ورکوم نو د ډنگرو غوږونه به پريکوي، او دوی ته به حکم ورکوم نو د الله په پيدايش کښې به دوی تبديلي کوي او څوك چه د الله په ځائ شيطان لره دوست جوړ کړي نو هغه ښکاره د تاوان سودا وکړي هغه دوی سره وعدې کوی او دوی ته اميدونه ورکوی، حال دا چه (حقيقت دادې چه) شيطان چه دوی سره کومې وعدې هم کوي هغه د دهوکې نه سيوا نور څه نه دی ددې ټولو ځائ جهنم دې او دوی لره به دې نه بچ کيدو د پاره د تيښتې لاره ملاؤ نه شي.

## خلاصه تفسیر

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ﴾ بیشکه الله ﷻ به داخبره [سزا ورکولو سره هم] نه بخښي چه هغه سره چالره شریك اوکرځولے شی [بلکه په ابدی سزا کښې به یئ اخته لری] ﴿وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ اوددې نه سواچه نور ځومره ګناهونه دی [که هغه واړه وی اوکه لوئی] چا دپاره چه ورته منظور وی [بے سزا ورکولو به] دغه ګناهونه اوبخښی [البته که دغه مشرك مسلمان شی نوبیا مشرك پاتې نشو.دائمی سزا به یئ هم نه وی] ﴿وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا﴾ او [ددې شرك نه بخښلو وجه داده چه] ځوك الله ﷻ سر ه [چالره] شریك ګرځوی هغه [دحق خبرے نه] په ډیر لرے ګمراهئ کښې پریوتلو [حق خبره توحید دې چې عقلی واجب دې اودکار جوړوونکی تعظیم ددې دحقوقو نه دې. پس مشرك دحضرت صانع یعنی جوړوونکی سپکاوے اوکړو ځکه به دداسې سزا حقدار وی په خلاف دنورو ګناهونونه چه ګمراهی خوده مګر دتوحید نه خلاف اولرے تړې نه دی ځکه دبخښلو جوګه اوګرځولے شوې اودشرك پشان نور قسم کفر هم په نه معاف کیدو کښې سره یوشان دی.ولے چه دے کښې هم دصانع دخودلې شوې خبرے نه انکار وی پس دا دالله ﷻ دربښتنوالی یعنی صدق د صفت انکار کول دی،او بعضې کافران دسره دالله ﷻ د ذات نه منکر دی بعضې ئے دصفت نه منکر د ی اوبعضې ئے دصفت او ذات دواړو نه منکر دی. او ددې بعضې دهریو نه انکار کول توحید نه انکار کول او تړې لرے وتل دی پس شرك اوکفر دواړه دمعاف کولو جوګه نه دی.وړسے د مشرکانو په مذهبی طریقے کښې دهغوی بےوقوفی دهغوئ په مذهبی طریقه کښې بیانوی چه] ﴿إِنْ يَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ إِلَّا إِنَاثًا﴾ دا [مشرکان] خلق الله ﷻ پریږدی [یوځو] صرف دځو زنانه ځیزونو عبادت کوی او [بله داچه] ﴿وَإِنْ يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَانًا مَرِيدًا﴾ صرف دشیطان عبادت کوی چه [دالله ﷻ] دحکم نه بهر دې. [او] ﴿لَعَنَهُ اللَّهُ ۘ وَقَالَ لَأَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ﴾ ده لره [ددغې بےحکمئ په وجه] الله ﷻ دخپل [خاص] رحمت نه لرې ساتلی دې او چا چه [کله هغه دخاص رحمت نه لرے کړواوملعون شو] داسې وئیلی وو [چه هغې نه ئےصفا دښمنی ښکاریده] چه زه به [پوره کوشش اراده لرم چه] ضرور ستا دبندګانو نه ﴿نَصِيبًا مَفْرُوضًا﴾ خپله ټاکلے برخه دفرمانبردارئی اخلم او [ددغې برخې تفصیل دادې چه] زه به دوی لره [په عقیدوکښې] ﴿وَلَأُضِلَّنَّهُمْ وَلَأُمَنِّيَنَّهُمْ وَلَآمُرَنَّهُمْ﴾ ګمراه کوم او زه به دوی لره [په خیالاتو کښې] خواهشات ورکوم [چه دهغې په وجه به یئ ګناه ته ماتے وی اودهغې ضرر به یئ په نظر کښې نه وی] اوزه به دوی ته [دبدعملونو کولو] تعلیم ورکوم چه هغې سره به دوی [دبتانو په نوم] ﴿فَلَيُبَتِّكُنَّ آذَانَ الْأَنْعَامِ﴾ دځارو غوږونه ځیری کوی [او دا یو کفری عمل دې] ﴿وَلَآمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللَّهِ﴾ او زه به دوی ته [نورهم] تعلیم ورکوم چه هغې سره به دوی دالله ﷻ جوړ کړی شکلونه ورانوی [چه دا دفسق علمونه دی لکه ږیره خرئیل اوبه بدن کښې دننه خالونه وهل وغیره] ﴿وَمَنْ يَتَّخِذِ الشَّيْطَانَ وَلِيًّا مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ او ځوك چه الله ﷻ پریږدی شیطان خپل ملګرے جوړ کړی [یعنی دالله ﷻ فرمانبرداری نه کوی بلکه دشیطان فرمانبرداری کوی] ﴿فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُبِينًا﴾ دغه [کس] به په ښکاره نقصان [اوزیان] کښې پریوتے وی [دغه زیان جهنم ته تلل دی].

﴿ يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْ ﴾ شيطان دے خلقو سره [دعقيدو په باره كښې] په مخه [پدروغه] وعدې كوي [چه تاسو فكر مه كوئى حساب كتاب دسره نشته دې] او [په خيالاتو كښې] ورته هوسونه [خواهشات] وركوى [چه په دې گناه كښې داسې خوند دے په دې حرامه ذريعه كښې داسې آمدنى ده. او شيطانى عملونه كيدل د دے بےهودگى او زيان پخپله ښكاره دې] ﴿ وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطٰنُ إِلَّا غُرُوْرًا ﴾ اوشيطان دوى سره صرف دروغ [دتيرويستلو] وعدې كوى [ولې چه په واقع كښې حساب كتاب حق دے اودده هوسونو په باره كښې به دا زرترزره ښكاره شي چه تيرويستل وو] ﴿ أُولٰٓئِكَ مَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ﴾ د داسې خلقو [چه دشيطان په لاره ځي] ځائې جهنم دے [اوخسران مبين هم دادې] ﴿ وَلَا يَجِدُوْنَ عَنْهَا مَحِيْصًا ﴾ او ددې [جهنم] نه به چرته دبچ كيدو ځائې بيا نه مومى [چه هلته په راتلو به دجهنم نه گنى خلاص شي].

## معارف اومسائل

**دآشونوتړون:** ﴿إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ﴾ پورته دجهاد په ذكر كښې ،اگرچه ټول مخالفين داسلام داخل دى ليكن داحوالو په بيان كښې تراوسه پورې ديهودواودمنافقانواحوال بيان شوى ووا و په مخالفينو كښې يوجماعت بلكه دنورونه هم لوئې دمشركينوجماعت وو، وريسې څه ددوئ دعقيدو حالت، دمذهب طريقه اوددې دسزاذكردې،اوپه دې مقام باندې داځكه نورهم زيات مناسب شوچه پورته دكوم غل قيصه چه بيان شوې ده، په هغې كښې داذكرهم شته چه غل مرتدؤو، نودې نه ددې دهميشه سزاحال معلوم شو-[بيان القرآن]([1])

دړومبى آيت ﴿إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾ اودسورت نساء ديويل آيت [نمبر۴۸] د شروع [اول سر]الفاظ بيخى يوشان دى خودآخرپه الفاظو كښې ئې فرق داسې دې چه دهغې آيت آخرى الفاظ دادى: ﴿وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ افْتَرٰٓى إِثْمًا عَظِيْمًا﴾ او د لته دا الفاظ دى چې: ﴿وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا بَعِيْدًا﴾ دتفسيرامامانوپه داگه باندې دفرق وجه دا ښودلې ده چه دړومبى آيت،نيغ په نيغه مخاطب اهلِ كتاب[يهود]ووچه ورته دتورات په ذريعه دامعلومه وه چه توحيد حق اوشرك باطل دې اوداهم ورته معلومه وه چه رسول الله ﷺ په حقه نبى دې،خوسره ددې نه هم هغوئ په شرك كښې اخته شو،نودا ،داسې شوه لكه چه په خپل عمل سره ئې ښكاره كړه چه داتعليم دتورات دې چه سراسر دروغ تړل اوتوپورې كول دى ځكه ئې دغې آيت په آخر كښې: ﴿فَقَدِ افْتَرٰٓى إِثْمًا عَظِيْمًا﴾ اوفرمائيل . اوددې بل آيت نيغ په نيغه مخاطب دمكې مشركان وو چه ورسره ددې نه وراندې نه څه كتاب وو اونه ئې څوك پيغمبررو، مگردتوحيد عقلى دليلونه بيخى ښكاره وو اوپخپل لاس جوړو بتانولره خپل معبودان جوړول دكمزوى عقل خاوند دپاره هم عبث، باطل اوډگمراهئ خبره وه ځكه دلته داسې ارشاداوشو: ﴿فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا بَعِيْدًا﴾

**دشرك اوكفرسزاهميشه كيدل:** ځنې خلق داشبه كوې چه سزادعمل په اندازه پكاروى مشرك اوكافر چه دكفراوشرك جرم كړې دې نوهغه تر يوخاصې مودې دعمرپورې كړې دې بياولې تل ترتله دهغې سزااوركولې شى چه ختميدل ئې نشته؟ ـــــجواب ئې دادې چه كافراومشرك په خپل خيال كې دې لره جرم نه ،بلكه نيكى ئې گڼرله نوقصدااراده ئې داشوه چه هميشه به هم په دې تينگ ولاړيم،نوگوياكښې دخپل اختيارترحده پورې دده جرم دائمى شو ،ځكه ئې سزاهم دائمى شوه-

[1]) بيان القرآن تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۵٦

**دظلم درې قسمونه**: دظلم يو قسم هغه دې چه الله تعالى به ئې هيچرې نه بخښى، بل قسم ئې چه بخښنه به ئې کيدې شى اودريم قسم هغه دې چه بغيربدل اغستوبه ئې الله تعالى نه پرېږدى-

رومبى قسم ظلم شرک دې، دويم قسم ظلم دالله تعالى په حقوقو کښې کوتاهې کول دى اودريم قسم ظلم دبندګانو دحقوقو خلاف ورزى کول دى[ابن کثيرپه حواله دمسندبزار]( ۱ )-

**دشرک حقيقت**: دشرک حقيقت دادې چه الله تعالى نه سوا ،چاپل مخلوق لره،په عبادت، محبت ياتعظيم کښې دالله تعالى برابراوګنړلې شى، قرآن کريم دمشرکانوهغه خبره چه جهنم ته په رسيدوبه ئې کوى داسې نقل کړيده:

﴿تَاللّٰهِ إِنْ كُنَّا لَفِي ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۙ إِذْ نُسَوِّيْكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ قسم په خدائې مونږ په ښکاره ګمراهئ کښې وو- خکه چه تاسو مونږ برابر کړى وئ الله رب العلمين سره-

ښکاره خبره ده چه دمشرکانوهم داعقيده نه وه چه زمونږ داجوړکړى بتان ددې جهان پيداکوونکى اومالکان دي، بلکه دې بتانولره هغوئ دنوروغلط فهميانوپه بنا ،په عبادت ،محبت، ياتعظيم کښې الله تعالى سره برابرګڼلي وو-داهغه شرک ووچه دوئ ئې جهنم ته وراورسول [فتح الملهم]( ۲ )-معلومه شوه چه دالله تعالى په مخصوصو صفتونو خالق، رزاق، قادر مطلق،عالم الغيب والشهادة،وغيره کښې،چامخلوق لره،الله تعالى سره برابرګنړل شرک دې-

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سَنُدْخِلُهُمْ | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | اٰمَنُوْا | وَالَّذِيْنَ | | |
| نوداخل به کړو مونږ هغوئ | اوعمل اوکړى نيک | چې ايمان راوړى | اوهغه کسان | | |
| نوهغوئ به مونږ داسې باغونو ته | او نيک کارونه کوى | اوچا چې ايمان راوړې دې | بيانه مومى | | |
| اَبَدًا | فِيْهَآ | خٰلِدِيْنَ | الْاَنْهٰرُ | مِنْ تَحْتِهَا | تَجْرِيْ | جَنّٰتٍ |
| تل ترتله | په هغې کښى | چې هميشه به اوسيږى | نهرونه | لاندې دهغې نه | چې بهيږى به | داسې باغونوته |
| اودوئ به په هغې کښې هميشه هميشه دپاره وى | | لاندې به ولې بهيږى | چې دهغې [د بنګلو] | | | داخل کړوا |
| لَيْسَ | قِيْلًا | مِنَ اللّٰهِ | اَصْدَقُ | وَمَنْ | حَقًّا | وَعْدَ اللّٰهِ |
| نه ده | په خبرو کښى | دالله نه | زيات رښتينى | اوڅوک دې | حقه | داوعده د الله ده |
| ........ نه ستاسو په | | اوداللهﷻ نه سوا بل څوک زياته رښتني خبره کولې شى | | | دادالله ﷻ حقه وعده ده | |
| يَّعْمَلْ | مَنْ | اَهْلِ الْكِتٰبِ | وَلَآ اَمَانِيِّ | بِاَمَانِيِّكُمْ | | |
| چې اوکړى | هغه څوک | داهل کتابو | اونه په آرزوګانو | په آرزوګانو ستاسو | | |
| [قانون دادې] چا چې | ............ | اونه داهل کتابوپه آرزوګانو کارکيږى | | په آرزوګانو کارکيږى | | |
| وَلِيًّا | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | لَهٗ | وَلَا يَجِدْ | بِهٖ | يُّجْزَ | سُوْٓءًا |
| دوست | ماسوا دالله نه | دخان دپاره | اواوبه نه مومى | دهغې | بدله به ورکړې کيږى | بدکار |
| دخان ملګرى | اوداللهﷻ په مقابله کښې به هيڅوک | | | دهغې سزا به ورکولې شى | | بدکاراوکړو |

( ۱ ) تفسير ابن کثير تحت هٰذه الاٰية: ج ۲، ص ۳۳۶

( ۲ ) فتح الملهم، کتاب الايمان، باب الکبائر واکبرها-

وَّلَا نَصِيْرًا۝ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى

اونۀ مددګار | اوهغه څوک | چي اوکړي | نيک عملونه | که نارينه وي | اوکه زنانه

اومددګار اونه مومی | اوڅوک چي نيک کارونه کوی برابره خبره ده که نارينه وي اوکه زنانه وي

وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ

اوهغه ايماندار وي | نو دغه کسان به داخليږی | جنت ته | اوحق به نۀ وهلي کيږی دهغوئ

خوچي مومن وي | ........ نودغه کسان به جنت ته داخليږی | ..............او په دوئ باندي به

نَقِيْرًا۝ وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ

په قدر دداغ د زړی دخرما | اوڅوک دي | ډيربهتر په لحاظ د دين سره | دهغه چانه | چي هغه حواله کړو

ذره برابر هم ظلم نه شی کولي | اودهغه چانه ښکلي دين د چا کيدئ شی | چي خپل ځان د الله تعالی

وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ

خان خپل | الله ته | اوهغه | نيکی کونکي وۀ | اوپيروی ئي اوکړه | دطريقي | دابراهيم | يو مخيزي

تابعدار کړی | اوپه اخلاص سره نيک کارونه کوی | اود ابراهيم ﷺ دملت چي يو مخيز وو تابعداری کوی

وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا۝ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

اونيولي وۀ | الله | ابراهيم ﷺ | په دوستئ سره | اوالله لره دی | هغه څه | چي په آسمانونو کښي دی |

اوالله ابراهيم ﷺ په خالصي دوستئ سره نيولي وو | ..........اودآسمانونو

وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيْطًا۝

اوهغه | چي په زمکه کښي دی | او دي | الله | په هر څيز باندي | احاطه کونکي |

اوزمکي ټول څيزونه صرف د يو الله ﷻ دی | ............ اوالله ﷻ په هرڅيز احاطه کونکي دي

**آسان ترجمه قرآن:** اوکومو خلقو چه ايمان راوړي دي او نيك عمل ئې کړي دي مونږ به دوی لره داسې باغونو کښې داخل کړو چه دهغې د لاندې نهرونه بهيږي، دوی به دې کښې هميشه هميشه اوسيږی دا دالله رشتيا وعده ده او د الله نه په خبره کښې څوك ريشتينې کيدې شي؟ انه ستاسو آرزوګانې (جنت کښې داخليدو دپاره) کافي دي او نه داهل کتابو آرزوګانې څوك هم چه بد عمل وکړي د هغې سزا به ورته ملاويږي، اودوی ته به د الله نه سوا څوك مددګار ملاؤ نه شي اوهغه څوك چه نيك عمل وکړي، که هغه سړې وي او که ښځه، په دې شرط چه هغه مؤمن وی نو داسې خلق به جنت کښې داخل شي، او د کجورې د هډوکی د داغ هومره زياتې به هم په دوی ونه شي اود هغۀ نه بهتر دين به دچا وی چه چا خپل مخ (سره د ټول بدن نه) الله ته تيت کړې وي، په دې شرط چه هغه د نيکۍ عادت وی اوچه هغه د صحيح او رشتيني دين د ابراهيم عليه السلام تابعداري کړي وي او (دامعلومه ده چه) الله ابراهيم عليه السلام لره خپل خاص دوست جوړ کړې وو او په آسمانونو او زمکو کښې چه څه دي صرف د الله دي . او الله په هر يو څيز باندې (خپل قدرت سره) احاطه کړې ده.

## خلاصه تفسیر

﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ اوکومو خلقو چه ایمان راوړو او [هغوی] ښه کارونه اوکړل ﴿سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا﴾ مونږ به هغوی لره ور تر زره ډاسې باغونوکښې داخل کړو چه دهغوی [دمحلونو] لاندې به نهرونه جاري وی هغوی به په دےکښې تل تر تله اوسیږی، ﴿وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا﴾ الله ﷻ ددې وعده کړې ده او رېښتونې يې کړې ده ﴿وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ قِيْلًا﴾ اودالله ﷻ نه به زيات دچا وينا صحيح وی ﴿لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ وَلَآ اَمَانِيِّ اَهْلِ الْكِتٰبِ﴾ نه ستاسو په آرزو ګانو کار چليږی اونه داهل کتاب په آرزو ګانو سره [چه تش په خله خپلے خوبئ بيانوی بلکه دا کار په حکم منلو باندې اړه لری پس] ﴿مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ﴾ څوك چه [په] حکم منلو کښې کمی کوی [اوداشان] څه بدکاری کوی [خواه عقيدې وی اوکه عملونه] هغه ته به ددې په بدل کښې سزا ورکولې شی [که دغه بدکاری کفری عقيدې ته رسيدلی وی نو سزا به يئ هميشه اويقينی وی اوکه ددې نه کمه وی نوسزا به يې هميشه دپاره نه وی] ﴿وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا﴾ او دغه کس ته به دالله ﷻ نه سوا نه څوك يار په ګوتو ورځی اونه مددګار [چه دالله ﷻ دعذاب نه يئ خلاص کړی].

﴿وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا﴾ او څوك چه نيك کار کوی خواه هغه نر وی يا ښځه په شرط ددې چه مومن وی نو داسې خلق به په جنت کښې داخليږی اوپه دوی به لږ هم ظلم نکيږی [چه څه نيکی ئې ضائع شی] او [پورته چه دمومن قيد لګولے شوې دې دهغې مصداق هره فرقه نه ده بلکه صرف هغه ده چه دين ئې دالله ﷻ په نزد په مقبول کيدوکښې دټولو نه زيات ښه وی اوداسې فرقه صرف اهل اسلام دی.دليل ئې دادې چه په دوی کښې دا صفتونه دی مکمله فرمانبرداری، اخلاص، دملت ابراهيم په نقش قدم باندې تلل او] ﴿وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ﴾ دداسې کس [ددين] نه به زيات غوره دچا دين وی چه خپل رخ الله ﷻ اړخ ته ښکته کړی [يعنی فرمانبرداری ئې اختيار کړی وی تش دخير غوښتنو په نوم باندې لباسی نه وی] ﴿وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا﴾ اودملت دابراهيم [يعنی داسلام] تابعداری کوی چه په کښې دکوږ والی نوم نښته او [ملت ابراهيم ضرور د تابعدارئ کولو جوګه دے ځکه چه] ﴿وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا﴾ الله ﷻ ابراهيم ﷺ لره خپل خالص دوست جوړ کړې وو [نوښکاره خبره ده ددوست په طريقه باندې به تلوونکے هم محبوب او مقبول وی پس داسلام طريقه مقبوله شوه پس يواځې اهل اسلام د مومن دلقب مصداق اوګرځيدل او نورو فرقو د ابراهيم ﷺ تابعداری پريښوده چه اسلام ئې رانه ورو لهذا يواځې مسلمانان داسې ثابت شو چه صرف په آرزوګانو ددوی اړانړه نه ده بلکه فرمانبردار دی نوکار به هم ددوی چليږی] او [دالله ﷻ مکلمله فرمانبرداری کول خو ضروری دی ځکه چه دده سلطنت قدرت اودده راچاپيره علم دواړه تام اومکمل دی اودا خبرې ددې باعث دی چه حکم ئې اومنلے شی چه چنانچه] ﴿وَلِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ﴾ يواځې دالله ﷻ ملکيت دی څه چه په آسمانونوکښې دی او څه چه په زمکه کښې دی [داخو سلطنت کامل کيدل شو] ﴿وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَیْءٍ مُّحِيْطًا﴾ اوالله ﷻ ټولو څيزونو لره [په خپل علم کښې] راګير کړی دی [دا دعلم کامليدل شو].

## معارف او مسائل

**دمسلمانانو او اهلِ کتابو ترمنځه دفخر په انداز کښې خبرې اترې:** ﴿لَيْسَ بِأَمَانِيِّكُمْ وَلَآ أَمَانِيِّ أَهْلِ الْكِتٰبِ﴾ په دې آیتونو کښې رومبې دَهغه خبرو اترو ذکر کړې چه دَمسلمانانو او اهل کتابو ترمنځه شوې وې او بیا په دغه مکالمه باندې محاکمه [فیصله] کړې شوې ده، دواړو فریقو ته دَهدایت صحیح لار او ښودلې شوه، په آخر کښې دَالله تعالی په نزد دَمقبول کیدو او دَبهترا و اعلی کیدو یو معیار او ښودلې شو چه هغه مخې ته کیښودې شی نو کله به هم انسان دَغلطئ او گُمراهئ ښکار نشی۔

حضرت قتاده رحمه الله فرمائیلی دی چه یو ځل دَځه مسلمانانو او اهلِ کتابو ترمنځه فخریه خبرې اترې شروع شوې، اهلِ کتابو اووئیل چه مونږ، تاسو نه زیات بهتر او دَشرافت خاوندان یُوځکه چه زمونږ نبی او زمونږ کتاب، ستاسو دَنبی او کتاب نه وړاندې دې، او مسلمانانو اووئیل چه مونږ، تاسو ټولو نه بهتر ځکه یُو چه زمونږ نبی خاتم النبیین او زمونږ کتاب آخری کتاب دې چه رُومبی ټول کتابُونه ئې منسوخ کړی دی، په دغې موقعه دا آیت نازل شو: ﴿لَيْسَ بِأَمَانِيِّكُمْ وَلَآ أَمَانِيِّ أَهْلِ الْكِتٰبِ﴾ یعنی دَفخر او بڼائ داسې خبرې کول هیڅ سره نهٔ ښائ، صرف په خیالاتو، آرزوګانو او دَعوؤ سره هیڅوک دَبل چانه غوره کیدې نشی، بلکه دا په عملونو باندې اړه لری، دَچا نبی او کتاب که هر څومره زیات غوره او دَشرافت خاوندوی، که دَهغه عمل غلط وی نو دَهغې به داسې سزا بیا مُومی چه دَهغې نه به ئې هیڅوک خلاصوونکې نهٔ وی۔

دا آیت هرکله چه نازل شو نو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته خبره ډیره ګرانه شوه، امام مُسلم، ترمذی، نسائی او امام احمد رحمهم الله دَحضرت ابی هریرة رضی الله عنه نه دا روایت نقل کړې دې چه هغوئ اوفرمائیل، کله چه دا آیت نازل شو: ﴿مَنْ يَعْمَلْ سُوٓءًا يُجْزَ بِهٖ﴾ [څوک چه څه بدی دَهغې سزا به ورکولې شی] نو مونږ په سخت غم، خفګان او فکر کښې پریوتو او دَرسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې مو عرض او کړو چه دې آیت څه پرینښې نهٔ دی، د ذرې قدرې بدئ بدله به هم ملاویږی. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، ، چه فکر مهٔ کوئ، دَخپل طاقت او توفیق په جوړ عمل کوئ، ضرور نهٔ ده چه دا ذکر شوې سزا به جهنم وی بلکه دَدنیا څه تکلیف او مصیبت چه درته راپیښیږی، نو دغه ستاسو دګناهونو کفاره او دَبدئ بدله وی، تردې پورې چه که دَچا په پښه کښې ازغې هم مات شی نو هغه دګناه کفاره جوړیږی[۱]۔

او په یو بل روایت کښې راغلې دی چه مسلمان ته په دُنیا کښې چه کوم غم یا تکلیف بیماری او فکر راپیښیږی نو هغه دَدهٔ دګناهونو کفاره شی۔

جامع ترمذی رحمه الله او ابن جریر رحمه الله دَحضرت ابوبکر رضی الله عنه نه روایت کړې دې چه هرکله رسول الله صلی الله علیه وسلم دا آیت: ﴿مَنْ يَعْمَلْ سُوٓءًا يُجْزَ بِهٖ﴾ ورته واؤرولو نو په هغوئ داسې اثر او شو لکه چه ملاتې ماته شوې دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم دَدې اثر په لیدو او فرمائیل: څه خبره ده؟ صدیق اکبر عرض او کړو، یا رسول الله صلی الله علیه وسلم په مونږ کښې څوک داسې دی چه څه بدی [ګناه] به ئې نه وی کړی، او دَهرې بدئ چه بدله به ورکولې شی نو مونږ کښې به څوک [دسزانه] بچ شی؟ هغوئ اوفرمائیل: اې ابوبکر، تهٔ

[۱] صحیح مسلم، کتاب البر والصلة والآداب، باب ثواب المؤمن الخ: ج ۲، ص ۳۱۸ وجامع الترمذی، أبواب التفسیر، باب سورة النساء: ج ۲، ص ۱۳۲، ومسند احمد رقم الحدیث: ۷۵۸۹ وسنن النسائی الکبری رقم الحدیث: ۱۱۱۲۲

او نور مؤمنانو ته ددې هيڅ فکر نه کوي چه د دُنيا د تکليفونو په ذريعه ستاسو خلقو د ګناهونو کفاره کيږي[2]

په يو بل روايت کښې دي چه هغوئ اوفرمائيل چه ، آيا ! تاسو نه ، بيماريږئ، آيا تاسو ته څه مصيبت اوغم نه دررسي؟ صديق اکبر عرض اوکړو چه ، بيشکه هر څه، راته رازسي هغوئ اوفرمائيل چه ، بس هم دغه بدله ده ستاسو د ګناهونو[2]-

د حضرت عائشې صديقې نه يو حديث ابوداؤد وغيره ، روايت کړې دې چه: په بنده تبه يا تکليف راشي، يائې په پښه کښې ازغې [خوز] مات شي نو دا هغه د ګناهونو کفاره ګرځي، تردې چه که څوک خپل څه څيز، په يو جيب کښې لټوي او هغه بل جيب کښې وي، نو دومره تکليف هم د هغه د ګناهونو کفاره جوړيږي[3]-

خلاصه داده چه دې آيت ، مسلمانانو ته هم دا هدايت ورکړې دې چه خالص په آرزوګانو د عوؤ او اميدونو باندې زړۀ مۀ خوشحالوئ، بلکه د عمل بندوبست کوئ، ځکه چه څوک يواځې په دې نه کامياب بيږي چه هغوئ د فلانى نبي اولاد يا د فلاني کتاب نوم اغستونکې دې، بلکه اصلي کاميابي په دې بناده چه په هغې صحيح ايمان لري او د هغې په جوړ د نيک عمل پابندوي، لکه فرمائ:

﴿وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا﴾ [کوم نارينه يا زنانه چه نيک عمل کوي په شرط د دې چه د غې عمل سره ئې ايمان هم وي نو ضرور به جنت له خي او د عملونو بدله به ورته پوره پوره ملاويږي چه هيڅ کمي به پکښې نشي کولې]-

په دې کښې اشاره دې خبرې ته اوشوه چه اهل کتاب شو يا نور غير مسلم، که د دوئ عملونه نيک هم وي نو هر کله چه د هغوئ ايمان صحيح نه دې ځکه ئې دغه عملونه مقبول نه دي، او هر کله چه د مسلمانانو ايمان هم صحيح دې سره د نيکو عملونو کولو نو ځکه هغوئ کامياب او د نورونه زيات غوره دي.

**د الله تعالى په نزد د مقبوليت يوه پيمانه:** په دريم آيت کښې د زيات غوره والي او د الله تعالى په نزد د مقبوليت يوه پيمانه ښودلې شوې ده، چه د هغې په بناد دې فيصله کيدې شي چه څوک مقبول او څوک مردود دې؟ د دغې پيمانې دوه برخې دي، چه د هغې څنې په يو کښې هم خلل راشي نو ټول کوششونه برباد او بې خايه کيږي- که ژور نظر اوکړې شي نو د دُنيا ټولې ګمراهئ يا غلط کارئ د دې نه راولاړيږي چه د دغه دوؤ برخو څخه په يوه برخه کښې خلل پيدا شي، په دې باندې د مُسلم او غير مُسلم ټول اوکړئ، او که د مسلمانانو د فرقو ، ټولو او پارټيانو تر مينځه پر ټول کوئ نو هم دغه دوه نقطې به درته مخې ته راشي چه د دې څخه د يوې برخې نه آوړيدل هم ، انسان لره د ذلت او ګمراهئ په کنده کښې ورګوذاروي- فرمائي: ﴿وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا﴾ [د داسې کَس نه زيات نه غوره طريقه د بل چا نشي کيدې چه دوه خبرې پکښې مُوندې شي يو دا چه ﴿اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ﴾ [خپل ذات الله تعالى او سپاري، د رياکارۍ او د دُنيا جوړولو په غرض نه، بلکه په اخلاص سره، د الله تعالى راضي کولو د پاره عمل کوي-

[1]) جامع الترمذي، أبواب التفسير، باب سورة النساء: ج ۲، ص ۱۳۲
[2]) مسند احمد رقم الحديث: ۶۹
[3]) مسند احمد رقم الحديث: ۲۴۵۸۶، حديث السيدة عائشه رضي الله عنها-

بله داچه ﴿وَهُوَ مُحْسِنٌ﴾ [عمل هم په صحيح طريقه باندې كوى] امام ابن كثير په خپل تفسير كښې فرمائي چه، په صحيح طريقه دعمل كولو مطلب دادې چه عمل ئې دخپلې خوښې په طريقه نه، بلكه دشريعت مطهره په ښودلې طريقه وى، يعنى دالله تعالى اودهغه درسول دتعليم مطابق وى.
ددې نه معلومه شوه چه دالله تعالى په نزد، دنيک عمل دمقبول كيدودوه شرطونه دي، يوداچه په اخلاص سره وى، اوبل داچه دشريعت اودسُنت مطابق وى- ددې دواړوشرطونو څخه درومبى شرط تعلق دانسان باطن، يعنى زړه سره دې اودبل شرط تعلق دانسان دظاهرسره دې، هركله چه دادواړه شرطونه چاپوره كړل نودهغه ظاهراوباطن دواړه صحيح شواوكه په دې كښې په دې كښې يوشرط پاتې شونوعمل ئې بيكاره شو، كه اخلاص پكښې نه وى نوعملى منافق شواوكه دشريعت تابعدارى پكښې نه وى نوګمراه شو-

**دقومونودګمراه كيدوسبب اخلاص يادعمل دصحيحوالى نيشتوالې دې:** دقومونواومذهبونوپه تاريخ نظر واچوئ نومعلومه به شى چه څومره بې لارې فرقې اوقومونه چه په دنيا كښې دې، په چاكښې اخلاص نه وى، اودچاعمل په صحيح طريقه نه وى، داهغه دوه ډلې دى چه په سورت فاتحه كښې، صراط مُستقيم نه آوړيدونكى دى اودغلته د﴿الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ﴾ او﴿الضَّآلِّينَ﴾ په نومونوسره ذكركړې ښوېدى ﴿مَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ﴾ هغه ډله ده چه اخلاص ئې نشته، او﴿الضَّآلِّينَ﴾ هغه ډله ده چه عمل ئې درست نه دې، رومبۍ ډله دشهوتونوښكارشوې ده اودويمه ډله دشبهاتو- درومبى شرط، يعنى داخلاص ضرورت اوددې دنيشتوالى په صورت كښې دعمل بيكاره كيدل خويه عام طورتول پيژني، اودَ، حُسنِ عمل، يعنى دشريعت دتابعدارئ شرط ته، ډيرمسلمانان هم خيال نه كوى، هغوئ داسې ګنړى چه نيک عمل، خامخانيک عمل دې په هره طريقه چه اوشو، حالانكه قرآن اوسنت په پوره شان سره واضحه كړې ده چه حُسن عمل، صرف درسول الله ﷺ په تعليماتواودسنت په تابعدارئ اړانړه اوتعلق لرى، چه كمې يازياتې راوستل پكښې جرم دې، لكه دماسپخين څلوررکعته فرض واخله چه دهغې په ځائې څنګه چه درې رکعته اداكول جرم دې دغه شان پنځه ركعته اداكول هم جرم دې. په يوعبادت كښې دالله تعالى اودهغه درسول الله ﷺ له اړخه په لګولوشرطونوكښې څه زياتې كول، يادَدوئ دښودلې شوى صورت نه وړله خلاف بل شكل وركول، تول ناروااودحسن عمل خلاف دى اګرچه په ليدلوكښې هغه ډيرخوندناک عمل په نظرراځى، بدعاتواومحدثاتوته چه رسول الله ﷺ ګمراهى اووئيله(¹) اوددې نه دبچ كيدومضبوط هدايتونه ئې اوفرمائيل، هغه تول ددې قسمه دى، جاهل انسان اګرچه پوره اخلاص سره دالله تعالى اودهغه درسول دخوشحالولوپه غرض دې لره دعبادت اوثواب په خيال كوى، خودشريعت محمدى له مخې دغه عمل بربادځه چه، سخته ګناه اووبال لرى، په دې وجه قرآن كريم بيابيا، دحُسن عمل، يعنى دسُنت دتابعدارئ تاكيد كړې دې، په سورت مُلک كښې فرمائ: ﴿لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾ يعنى دلته ئې هم ﴿أَحْسَنُ عَمَلًا﴾ اوفرمائيله ﴿أكثر عَمَلًا﴾ ئې ځكه اونه فرمائيل چه دَدې يروالى ضرورت نشته بلكه ددې ضرورت دې چه درسو الله ﷺ دسنتومطابق وى، نوهله به حُسن عمل،، [ښه عمل] جوړيږى- دې حسن عمل اودسنت مصطفى تابعدارئ لره قرآن كريم، په يوبل آيت كښې په دې الفاظوسره تعبيركړې دې فرمائ: ﴿وَمَنْ أَرَادَ الْآخِرَةَ وَسَعَىٰ لَهَا سَعْيَهَا﴾ يعنى سعى

¹) لكه يو حديث كے ارشاد فرمائلے دے: وإياكم ومحدثات الأمور، فإن كل محدثة بدعة وكل بدعة ضلالة. مشكوٰة، باب الاعتصام بالكتاب والسنة: ج۱، ص ۲۷

اوعمل دَهغه چامقبول دي چه خالص دآخرت نيت لري، اودَهغې دَپاره كوشش هم كوي، خودغه كوشش اوسعي دمناسب هم وي، مناسبه سعي هغه ده چه خپل قول اوعمل مبارک سره رسول الله ﷺ هغې لره، خپل اُمت ته ښولې وي، دَهغې نه په آوړيدلوسره كه په سعي كښې كمې اوكړې شي يازياتې دادواړه، دې سره جوړښت نۀ خوري- اومناسبه سعي هغه ده چه بل نوم ئې حسنِ عمل دې كوم چه په آيت كښې ذكرشو-

خُلاصه داشوه چه دَالله تعالىٰ په نزد دَيوعمل دَمقبول كيدودَپاره دوه شرطونه دي، اخلاص اوحُسنِ عمل چه دَرسول الله ﷺ دسنتونو دَتابعدارئ نُوم دې، لهذا په اخلاص سره دَحُسنِ عمل كوونكو، داهم فرض دي چه دَعمل كولو نه رومبې دامعلوم كړي چه رسول الله ﷺ دې عمل لره په څه شان كړې دې اودې په باره كښې ئې څه هدايات وركړي دي زمونږ. هغه عمل به نامقبول وي چه دَسنت طريقې نه خلاف په بله طريقه كړې شوې وي، په مونځ، روژه، حج، زكواة صدقو، خيراتونو ذكرالله اودرودوسلام ټولو كښې دَدې لحاظ ساتل ضروري دي چه رسول الله ﷺ دې عمل لره په څه شان كړې دې، اوپه څه شان داداكولو هدايت ئې كړې دې، دآيت په آخر كښې دَابراهيم خليل الله ﷺ داخلاص اوحُسن عمل يومثال پيش كړواودهغې دَتابعدارئ حُكم ئې وركړولكه فرمائ: ﴿وَاتَّخَذَ اللهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا﴾ په دې كښې دې خبرې ته اشاره اوشوه چه دَحضرت ابراهيم عليه السلام دَدې بلند مقام سبب هم دادې چه هغوئ داعلى درجې مخلص ؤو اوعمل ئے دَالله تعالىٰ په اشارت سره صحيح اودرست وو-

| |
|---|
| وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَآءِ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ |
| اوتپوس كوي ستا نه دا خلق \| په باره دښځو كښې \| اووايه \| چې الله \| فتوى دركوي تاسو ته\| |
| اوخلق ستانه دښځو په باره كښې تپوس كوي\| [ته] ورته اووايه چې الله ﷻ تاسوته |
| فِيْهِنَّ ۙ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ |
| په باره د هغوئ كښې\| اوهغه حكم هم درياد وي \| چې لوستلې شي \| په تاسو باندې \|په كتاب كښې |
| دهغوئ باره كښې حكم دركوي\| اوهغه حكمونه\[درته يادوي\]چې مخكښې په دې كتاب كښې |
| فِيْ يَتٰمَى النِّسَآءِ الّٰتِيْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ |
| په باره ديتيمانو ښځو كښې \|هغه \|چې نۀ وركوئ تاسو هغوئ ته \| هغه\| چې فرض شوې دي\| |
| ديتيمانو جينكو باره كښې اوروليې شوي وو\| كومو ته چې تاسو هغه حقونه نه وركوئ كوم چه الله تعالىٰ |
| لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ |
| دپاره دهغوئ \|اومينه كوئ تاسودې كارسره چې\|په نكاح كړئ هغوئ\| اوحكمونه په باره دكمزورو كښې |
| دهغوى دپاره مقرر كړي دي\|او تاسودهغوى سره دنكاح كولو شوق ساتئ\|اوهغه حكمونه چې د كمزورو |
| مِنَ الْوِلْدَانِ ۙ وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ ؕ |
| دورو هلكانو نه\| اوداحكم كوي الله\| چې قائم وسئ\|په حق ديتيمانو كښې\| په انصاف سره |
| ماشومانو په باره كښې شوي وو \| اودا خبره چې ديتيمانو كارونه په انصاف سره كوئ |

وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ عَلِيْمًا ۝ وَاِنِ امْرَاَةٌ

اوکوم چي کوئ تاسو | دنيکۍ نه | نو بيشکه چي الله | دی | په هغي | خبردار | او که چرې | يوه ښځه

اوهره نيکي چي تاسو کوئ هغه الله ﷻ ته ډيره ښه معلومه ده | ..........اوکه چرې يوه ښځه

خَافَتْ مِنْۢ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ

يريدله | دخاوند خپل نه | دبدسلوکۍ دهغه نه | يا دمخ اړولو دهغه نه | نو نشته گناه |

دخاوند د بدسلوکۍ يا بي پرواهۍ نه يريدله | ..........نوپه هغوی دواړو باندي هيڅ گناه نشته چه

عَلَيْهِمَآ اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا ۭ وَالصُّلْحُ خَيْرٌ ۭ

په دې دواړو باندي | چي اوکړي دواړه | په خپل منځ کښي | صلح | اوصلح | بهتر ده

هغوئ دواړه په خپل مينځ کښي [دحقوقو په اداکولو] کښي صلح اوکړي | اوصلح په هر کار کښي ښه ده

وَاُحْضِرَتِ الْاَنْفُسُ الشُّحَّ ۭ وَاِنْ تُحْسِنُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ

اوحاضر کړي شوي دي | انفسونو ته | حرص | اوکه تاسو احسان اوکړئ | اواويريږئ | نوبيشکه الله | دی

اوزړونه په لږ څه باندي زر تنگيږي | اوکه تاسو خلقو سره ښه سلوک اوکړئ | او دالله ﷻ نه اوويريږئ نو الله پاک

بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ۝ وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْٓا اَنْ تَعْدِلُوْا

په هغه کارونو | چي کوئ ئې تاسو | خبردار | اوهرگزنه لرئ تاسو طاقت | چي عدل اوکړئ تاسو |

ستاسو د کارونو نه بې خبره نه دی [خبردې نو بدله به درکړي] | او د ښځو مينځ کښي انصاف کول

بَيْنَ النِّسَاۗءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ فَلَا تَمِيْلُوْا كُلَّ الْمَيْلِ

په منځ دښځو کښي | اگرکه ډير حرص اوکړئ تاسو | نو مه گرځوئ مخ تاسو | په پوره مخ گرځولو سره

ستاسو دوس خبره نه ده | اگر که تاسو ډيراوغواړئ نو [دومره بس ده] چي يو ښځي ته دومره مه مائله کيږئ

فَتَذَرُوْهَا كَالْمُعَلَّقَةِ ۭ وَاِنْ تُصْلِحُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ

چي پريږدئ تاسو هغه | پشان دزوړند شوي ښځي | اوکه تاسو اصلاح اوکړئ | اوويريدئ [دالله نه] | نو بيشکه الله | دی

چي بله په شان د زوړندي پريږدئ | اوکه تاسو ښه سلوک ساتئ او دالله ﷻ نه يريږئ | نو الله ﷻ

غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝ وَاِنْ يَّتَفَرَّقَا يُغْنِ اللّٰهُ كُلًّا مِّنْ سَعَتِهٖ ۭ

ښښونکي | رحم کونکي | اوکه جدا شول دواړه | نو بې پروا به کړي الله | هريو | په لوئي رحمت خپل سره

ښښونکي مهربان دي | اوکه ښځه خاوند دواړه يوبل نه جدا شي | نو الله به پخپل قدرت سره هريو دبل نه بې پرواه کړي

وَكَانَ اللّٰهُ وَاسِعًا حَكِيْمًا ۝

او دی الله | خاوند دفراخۍ | اوصاحب د حکمت |

او الله ﷻ دفراخه ذات او دحکمت خاوند دی |

**آسان ترجمه قرآن:** او (اې پيغمبره !) خلق تانه د ښځو په باره کښي د شريعت دحکم تپوس کوي ته ووايه چه الله دهغوي په باره کښي حکم بيانوي، او دالله کتاب (يعني قرآن) کښي چه کوم آيتونه تاسو ته لوستې شي هغه هم د يتيمانانو زنانو په باره کښي ( شرعي حکم تاسو ته بيانوي) چه تاسو هغوی ته خپل

مقررشوي حق نه ورکوئ اودهغوی سره نکاح هم کول غواړئ او دا رنگ د کمزورو ماشومانو په باره کښې هم (حکم بيانوي) او دا تاکيد کوي چه تاسو د يتيمانو د پاره انصاف قايم کړئ او تاسو چه کوم د نيکۍ کار کوئ، په هغې الله پوهيږي که يوې ښځې ته د خپل خاوند د طرف نه د زياتۍ يا د بيزارۍ خطره وی نو دې خاوند او ښځې د پاره دې کښې هيڅ گناه نشته چه دوی خپل مينځ کښې اتفاق سره څه صلح وکړي او صلح کول بهتر دی. او د انسانانو په زړونو کښې (څه نه څه) د حرص ماده خو اېښودې شوې ده او که تاسو د احسان او تقوی نه کار واخلئ نو چه تاسو څه کوئ الله د هغې نه پوره خبر دې او د ښځو په مينځ کښې مکمل مساوات خوستاسو په وس کښې نه دي، که تاسو غواړئ هم . هنه يو طرف ته مکمل مه آوړئ چه بلې لره داسې پريږدئ لکه يو زوړند څيز. او که تاسو د اصلاح او د تقوی نه کار واخلئ نو يقين وکړئ چه الله ډير بخونکې، ډير مهربانه دې او که دواړه جدا شي نو الله به خپل (قدرت او رحمت سره) په فراخۍ سره دواړو لره (د يو بل د حاجت نه) بې نيازه کړی او الله ډيري فراخۍ والا دې، لوئ حکمت والا دې،

**د آيتونو ربط:** د سورت په شروع کښې د يتيمانو او ښځو خاص احکام اودهغوئ د حقوقو د ادا کولو ذکر وو ځکه چې د جاهليت په زمانه به بعضو دوئ ته ميراث هم نه ورکولو. ځينې مال چې په ميراث کښې يا به ورته په بله ناجائزه طريقه حاصل شو نو هغه به ئې خوړلو. بعضو به [ښځو] سره نکاح اوکړه او هغوئ ته به يې پوره مهر نه ورکولو، پورته ددې ټولو ځخه منع راغلې وه او په دې باندې مختلف واقعات ذکر کړې شوی وو، د ځينو خو دا خيال وو چې ماشومان او ښځې خو فی نفسه د ميراث قابل نه دی، دا حکم خو وختی طور سره د مصلحت په طور د څه خلقو د پاره شوې دې. او دا اميد چې دا به منسوخ شی. او ځينې خلق ددې په انتظار کښې وو، کله چې دا منسوخ نه شو نو دا مشوره يې اوکړه چې ددې متعلق د نبی کريم ﷺ نه ددې تپوس کولو پکار دی. دوئ حاضر شو او تپوس ئې اوکړو. ابن جرير[1] او ابن المنذر دد ې آيت مبارك شان نزول هم دا سوال نقل کړې دې. او ددې ځخه روستو آيتونو کښې يې د ښځو سره متعلق نور مسائل بيان کړی دی، [بيان القرآن][2]

## خلاصه تفسير

﴿وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَآءِ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيكُمْ فِيهِنَّ﴾ او خلق تاسونه دښځو [دميراث اومهر] په باره کښې حکم معلوموی تاسو ورته اوفرمائې چه الله ﷻ ددوی په باره کښے تاسوته [هم هغه وړاندينے] حکم درکوی ﴿ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ ﴾ اوهغه آيتونه هم [تاسوته حکم درکوی] چه [دد ے نه] مخکښې نازل شوی دی او [په قرآن پاك کښې تاسوته په لوستلو آورولے شی [ځکه چه دقرآن پاك په تلاوت کښې ددې تلاوت کيدل هم ښکاره خبره وه] ﴿ فِي يَتٰمَى النِّسَآءِ ﴾ چه ددې يتيمو ښځو په باره کښې [نازل شوی] دی ﴿ الّٰتِي لَا تُؤْتُونَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ ﴾ چا [سره چه ستاسو دا معامله ده چه که هغه دمال اوجمال خاوندانے وی نوورسره نکاح کوئی مگر دوی] ته چه [دشريعت له طرفه] ددوی حق [ميراث اومهر] مقرر دے نه ورکوی او [که ښکلے نه وی خودمال خاوندانے وی نو] ﴿ وَتَرْغَبُونَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ ﴾ دوی سره [دبدرنگئ له وجے] دنکاح کولو کرکه

[1]) تفسير الطبری تحت هٰذه الآية: رقم الحديث ۱۰۵۲۳

[2]) بيان القرآن تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۶۰، ۱۶۱

کوني [اوبل چرته دمال اوړلو نه د ویریدو په وجه بل چاسره ئے نکاح کولو ته هم نه پریږدئی] ﴿وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ ۙ وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ ؕ﴾ او [کوم آیتونه چه] دکمزورو ماشومانو په باره کښې [دی] او [کوم آیتونه چه] په دې باره کښې [دی] چه دیتیمانو [ټولے] معاملے [عامے چه د مهر میراث په باره کښې وی یا دنور څه په باره کښې] په انصاف سره سرته رسوئ [دا دهغه تیرشوو آیتونو مضمون دې نو دغه آیتونه خپل مضمون اوس هم ستاسو په ذمه واجبوی او د هغې حکم بعینه باقی دې. تاسو هم دهغې مطابق عمل جاری لرئ] ﴿ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ﴾ اوکوم نیك كار چه کوئی [دښځو او یتیمانو په باره کښې یا په نورو خبرو کښې هم] ﴿ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ عَلِيْمًا﴾ نو بیشکه الله ﷻ هغه ښه پیژني [تاسو ته به دهغې غوره بدله درکړی اوناغوره خو هم پیژنی لیکن دلته دغوره شوق پیداکول مقصود دی ځکه ئے تخصیص اوکړې شو]

﴿ وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا ﴾اوکه یواځې ښځې ته [په قرینو سره] دخپل خاوند نه غالب احتمال د بددماغئ [اوکړ کیچنئ] یا بې‌پرواهئ [او بے توجهئ] وی ﴿ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا ؕ﴾ نو [په دې سے حالت کښې] دواړو ته په دې خبره کښې څه گناه نشته چه دواړه خپل مینځ کښې په یو خاص شان صلح اوکړی [یعنی ښځه که داسې خاوند سره اوسیدل غواړی چه پوره حقوق ادا کول نه غواړی او ددې وجې نه دې پریښودل غواړی نو ښځې له روا دی چه خپل څه حقوق پریږدی لکه خرڅ اخراجات معاف کړی یا ئې اندازه کمه کړی او خپل وار معاف کړی چه هغه ئے پریږ نه دی او خاوند له هم روا دی چه دغه معافی قبوله کړی] او [دجنگ جګړو یا بیلیدو نه هم داسې ] ﴿ وَالصُّلْحُ خَيْرٌ ؕ﴾ صلح غوره ده او [داسې صلح کیدل څه لرے خبره ځکه نه ده چه] ﴿ وَاُحْضِرَتِ الْاَنْفُسُ الشُّحَّ ؕ﴾ نفسونوته [طبعی طور] حرص سره جختیدل [یوځائې کیدل] وی [کله ئے چه حرص پوره شی نو راضی شی نوهرکله چه خاوند دا اووینی چه زما په مالی اوجانی آزادئې کښې چه طبعی لالچ دے څه خلل نه راځی اوپه مفته کښې راته ښځه په گوتو راځی نو غالبًا چه هغې لره به په نکاح کښې لرلو باندې راضی شی اودښځې په نکاح کښې دپاتې کیدو حرص خواه د هرڅه دوجې وی خوښکاره ده چه دا دصلحے اصلی سبب دے پس د دواړو جانبو خاص خاص حرص دغه صلح مکمله کړه] او [ائې سړو] که تاسو [پخپله ښځو سره] ﴿ وَاِنْ تُحْسِنُوْا وَتَتَّقُوْا ﴾ ښه رویه ساتنې [اوهغوی نه دحقوقو معاف کولو خواهشمند نه یئ] اوهغوی سره [دکړکیجنئ او بے‌توجهئ کولونه] احتیاط لرل نو [تاسو ته به لوئې ثواب ځکه حاصل شی چه] ﴿ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا﴾ بیشکه الله ﷻ ستاسو د نیکو عملونو پوره خبر لری.

[اوپه نیکو علمونو ثواب ورکوی] او [دعادت له وجے] ﴿ وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْٓا اَنْ تَعْدِلُوْا بَيْنَ النِّسَآءِ﴾ تاسونه خوبه دا هیچرې اونشی چه په بیبیانو کښې [په هرشان سره] برابری لرئ [تر دې چه دزړه په مینه کښې هم] ﴿ وَلَوْ حَرَصْتُمْ﴾ اګر چه [دا برابری] ستاسو زړه هر څومره غواړی [او تاسو هرڅومره کوشش چه په دې کښې اوکړئی لیکن د زړه مینه اختیاری نه ده ځکه ستاسو د وس نه بهرده که اتفاقًا بےاختیاری کښې چرته برابری راشی نو دهغه نفی د آیت نه مقصود نه د ه ، غرض دا چې کله په اختیار کښې نه وی نو تاسو دهغه مکلف نه یې لیکن ددې د غیر اختیاری کیدلو نه دا نه لازمیږی چه ظاهری حقوق هم اختیاری پاتې نشی ولے چه دا خو اختیاری دی

کنه] نو [په تاسو واجب دی چه] ﴿فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ﴾ تاسو بالکل یو طرف ته مه ورمانیږئی [دا بالکل لفظ مطلب دادې چه باطن سره هم په کوم کښې چه تاسو معذوره وئی او ظاهر سره هم چه اختیار پرې لرئی یعنی په شرعی حقوقو کښې ددوی نه غاړه مه اړوئی] چه په هغې سره دے [مظلومه] لره داسې کړئی چه نه دې خوا شی نه اخوا [یعنی په مینځ کښې زوړنده وی [یعنی نه یې حقوق ادا کولې شی چه د میړه والا اوګڼړلے شی اونه ورته طلاق ورکړې شی چه بے خاونده ورته اووئیلې شی نو که ساتئ ئے په ښه شان سره ئے اوساتئ] ﴿وَإِنْ تُصْلِحُوا وَتَتَّقُوا﴾ او [ددې د ساتلو په صورت کښې چه په تیره شوې زمانه کښې ورسره څه د ظلم معامله شوې ده] که [ددغې معاملاتو فی الحال] سمون راولئ او [په راتلوونکې زمانه کښې ددغسې معاملاتو نه] احتیاط اولرئی نو [دغه تیرے شوې خبرے به درته معاف کړې شی څکه چه] ﴿فَإِنَّ اللهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ بیشکه الله ﷻ لوئې دبخښنے خاوند دلوئې رحمت خاوند دې [هرکله چه دبندګانو حقوقو سره د تړلے ګناه اصلاح ددغې بندګانو په معاف کولوسره کیږی نو په اصلاح کښې دا معافی هم راغله نودشریعت له مخې دے نه پس توبه هم صحیح شوه څکه به مقبوله وی] ﴿وَإِنْ يَتَفَرَّقَا يُغْنِ اللهُ كُلًّا مِّنْ سَعَتِهِ﴾ اوکه دواړه ښځه خاوند [چه تر مینځه ئے په هیڅ شان سره جوړښت رانغلو اودواړه] بیل شی [یعنی خلع یا طلاق ترمینځه راشی]نو [هیڅوک دې له دوی نه چه زیاتی کوونکې سړې وی یا کوتاهی کوونکې ښځه وی دا خیال نه کوی چه بغیرزمانه به دبل کار به ټپه اودریږی ولے چه] الله ﷻ به په خپل وس [قدرت] سره [د دواړو نه] هر یو لره [دبل نه] بے حاجته کړی [یعنی دهریو مقدر کار به د بل نه بغیر روان شی] ﴿وَكَانَ اللهُ وَاسِعًا حَكِيمًا﴾ اوالله ﷻ لوئې دوس خاوند او دلوئې حکمت خاوند دې[هریو مناسبه لار راوباسی].

## معارف او مسائل

**دښځې خاوندترمنځه دتعلقاتو په باره کښې څو قرآنی هدایات:** ﴿وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا﴾ تر ﴿وَاسِعًا حَكِيمًا﴾ پورې په دې درې واړو آیتونو کښې الله تعالی دښځې خاوندترمنځه دجنجال اوتریخ ارخ په باره کښې هدایات ورکړې دی چه ددغه اوږدژوند په چاپیرچل [ماحول] کښې هرې جوړې ته کله ناکله خامخا راپیښیږی هغه خپل منځ کښې خفګان اوناچاقی راتلل دی- دا یو داسې څیزونه دې چه دصحیح اصولو په بنیاد که په دې دقابوراوستو کوشش اونکړې شی نوننه یواځې ښځې خاوند دپاره دنیاجهنم جوړیږی بلکه په اکثروختونو کښې داکورنې خفګان دډیرو کورنو او قبیلو، قومونو ،جنګ جګړو او مرګ ،ژوبلې ته وراوغزیږی ،چنانچه قرآن کریم دښځې خاوند دواړو جذبې اواحساسات وړاندې ایښې دی اوهریوفریق ته دژوندداسې نظام ښولودپاره راغلې دی چه په هغې عمل اوشی نولازمی نتیجه ئې دا راوځی چه دانسان کورپه دنیا کښې جنت جوړ شی، کورنی تریخوالی اوجنجالونه په مینې محبت اوآرام وراحت کښې بدل شی اوکه دمجبورۍ په حالاتو کښې بیلتون هم په منځ کښې راشی نوهغه د په ښې طریقې اوښکلې اندازسره وی او دا مزې دداسې اوشلیږی چه دشمنی اودزیان تاوان ورکولو جذبات ددې په نتیجه کښې پرې نردی-

آیت نمبر ۱۲۸ ،دهغه حالاتو په باره کښې دې چه دښځې خاوندترمنځه ،تعلقات بې اختیاره خراب شی اوهریوفریق په خپل خپل ځائې کښې معذوره اوګڼړلې شی اوخپل منځ کښې تریو اترش ، تریخوالی په وجه دااندیښنه راپیداشی چه ددوئ ترمنځه به دیوبل په حقوقو اداکولو

کښې کوتاهي راشي، لکه يوې بي بي سره چه دهغې دخاوند طبيعت نهٔ لګی اودهغې لرې کول د ښځې دوس ،اختيارنه بهروی، مثلاً ښځه بدشکله ياعمرخوړلې بوډۍ وی، خاوندښکلی او خوان وی نوښکاره خبره ده چه په دې کښې نهٔ دښځې قصورشته اونهٔ پکښې خاوند ګناهګارګڼلې شی۔

چنانچه ددې آيت په شان نزول کښې مظهری وغيره يوڅوواقعات رانقل کړی دی، په داسې حالاتو کښې سرې دپاره يوعام قانون، قرآن کريم داښودلې دې: ﴿فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْتَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ۭ﴾ [که داښځه په خپل نکاح کښې ساتل غواړۍ نودې په پوره پوره حقوق اداکوۍ اوکه داخبره مودوس نه بهروی نوپه ښه طريقه ئې آزاده کړۍ په دې صورت کښې که ښځه هم آزاديدو دپاره تياره وی نومعامله صفاده چه داجنجال اومزې[تار] به هم په ښه شان سره غوڅ[پرې] شی اوکه ښځه دې ته په څه وجه تياره نهٔ وی مثلاً خپل اولادنه بيليدل نهٔ غواړی، يادې څه بله آسره نهٔ وی نودلته هم يوه لارده چه خاوندلره په څه طريقه رضاکړی، مثلاښځه دخپلوځنې ،ياټولوحقوقو غوښتل پريږدی، اوخاوندبه داخيال اوکړی چه دډيروحقوقودپيتی نه به سپک شم اوښځه به راته ويريا [مفت]پريوځی اوصُلح به منځ ته راشی۔

په دې آيت کښې قرآن کريم دصُلح راتلودأميدارخ ته داشان رهنمائ اوکړه: ﴿وَاُحْضِرَتِ الْاَنْفُسُ الشُّحَّ ۭ﴾ [حرص اولالچ دهرقسم طبيعتونومخې ته پروت وی، په داسې قسم صُلح کښې دښځې لالچ داوی چه که زهٔ طلاقه کړې شوم نواولادبه م خواروزاراوبربادشی، يابه م بل ځائې کښې ژوندتريخ وی، اودخاوند دالالچ وی چه هرکله ښځې م ټول ياڅه قدر مهرراته پريښو او نور حقوق هم رانه نهٔ غواړی نواوس ددې په ښځه ساتلو کښې ماته مُشکل څه دې؟په دې شان به ددوئ ترمنځه صُلح راتلل آسان شی نوځکه قرآن کريم داسې اوفرمائيل:

﴿وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْۢ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا ۭ﴾ [که ښځه دخپل خاوندنه داويره لرې چه راسره به جګړې کوی يابه ئې مخه راته نهٔ وی نوپه دواړو کښې به يوته هم په دې کښې ګُناه نهٔ وی چه خپل منځ کښې په خاصوشرطونوصُلح اوکړی اودې ته ئې دګُناه نهٔ کيدونوم خکه ورکړوچه اګرچه داصورت خودرشوت جوړيږی ولې چه خاوندته پکښې دمهروغيره دمعاف کولولالچ ورکړې شوې دې اوپه دې باندې ئې هغه په خاوندولئ جاری لرلوراضی کړو،ليکن قرآن کريم په دې ارشادسره واضح کړه چه دا ،رشوت کښې نهٔ ،بلکه په مصلحت کښې داخل دی چه دواړه فريقه څه ناڅه خپله غوښتنه پريږدی اوپه يودرميانه صورت باندې راضی شی چه روادی۔

**دښځې خاوندترمنځه جګړوکښې بې ضروره دبل چادخل ورکول مناسب نهٔ دې:** تفسيرمظهری کښې راغلی دی چه دلته هرکله الله تعالى داسې اوفرمائيل: ﴿اَنْ يُّصْلِحَا﴾ [ښځه خاونددواړه دخپل منځ کښې په څه شکل روغه جوړه راولی] چه د﴿بَيْنَهُمَا﴾لفظ کښې دې ته اشاره موجوده ده چه غوره خبره داده چه دښځې خاوندترمنځه معاملوکښې دچادريمګړې په منځ کښې راتلوسره روغه جوړه راتلل ناممکنه شی اوکه راهم شی نوددواړوخوعيبونه دريمګړی ته بې ضرورته ښکاره شی چه بدنامی ده،ځکه تر نه خان ساتلو کښې دواړودپاره خيردې۔

ددغې آيت په آخر کښې ئې اوفرمائيل: ﴿ وَاِنْ تُحْسِنُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ۝﴾ يعنی په کومو حالاتو کښې چه ستاسو طبيعتونه خپلې بی بی سره نهٔ لګی اوددې کبله ئې حقوق اداکول په خپل خان پيتې ګڼرۍ اوآزادول ئې غواړۍ نوپه ضابطه کښې درته دااختيارد کړې شويدې

اودآیت په رومبۍ جمله کښې داهم رواګرځولې شویدی چه دښځې دبعضې غوښتنوپه پرېښودوسره صُلح کول هم روادی، بیاهم که دالله تعالی نه ویره، خپلې مخې ته راولې، داحسان کولونه کاروا خلې سره ددې چه طبیعت موورسره نۀ لګی اوبیاهم تعلقات په ښه طریقې سره داسې جاری اولرۍ چه دهغې ټول حقوق پوره کړۍ نوستاسوداښکلې عمل به دالله تعالی په وړاندې وی چه نتیجه ئې بالکل په ډاګه شوې ده چه هغه به ددې زغم اوښکلې عمل بدله په داسې نعمتونو او حقوقوسره درکړې چه ستاسوپه خیال کښې به هم نشی راتلې اوښکاری داسې چه هم په دې وجه ئې دومره قدرې اوفرمائیل اوخبره ئې ختمه کړه چه ستاسوداښکلې عمل زمونږ په وړاندې دې-ددې ذکرئې اونکړوچه بدله به ئې څه درکوؤ؟ولې چه هغه بدله به ستاسودخیال اووهم نه هم زیاته وی-

په دې باره کښې دآیتونودمضمون خُلاصه داشوه چه هر کله دخاوندپه څه وجه خپلې بی بی سره طبیعت نۀ لګی اوددۀ حقوق نۀ پوره کیږی نوکومې خبرې چه دبی بی په اختیارکښې وی دهغې داصلاح کولوکوشش داوکړی، دزوورنې ورکولودپاره ،په عارضی توګه ،که ورته توجه نۀ کوی، په خبرواترو کښې ورته زورنه ورکوی اودمجبورۍ په حالت کښې ئې وهل ټکول هم اوکړی نوخیردې، څنګه چه دسورت نساء په رومبوآیتونوکښې تیرشوی دی، اوکه سره دټولو کوششونو داصلاح صورت نشوکیدې ،یاخبره داسې وی چه دښځې داختیارنه بهروی نودشریعت قانون دۀ ته داحق ورکوی چه په ښه اندازکښې بې دجنګ جدل نه په طلاق ورکولو سره ئې آزاده کړی، اوکه سره ددغې نامناسبوحالاتو ،دغه خاوندسره تعلق جاری اولری خپلو حقوقو پسې مخه نۀ اوړی، او دهغه حقوق پوره پوره اداکوی نوداوردپاره ډیره غوره ،ډیره لوړۀ اودلوئې ثواب حاصلولوخبره ده .اوکه معامله اپوته داسې وی چه خاوندواجب حقوق نۀ اداکوی اوپه دغه وجه ئې تر ښځه خان آزادول غواړی اوخاوندئې هم پرراضی شونومعامله صفاده، ښځه هم داحق لری چه هر کله خاوندئې دحقوقونۀ اداکولوپه بنادې لره آزادولوته تیارنۀ وی نوښځه داحق لری چه داسلامی عدالت په ذریعه آزادی حاصله کړی، لیکن که هغه دخپل خاوندبې توجهی اوناړامی زغمی، دخپلوحقوقوغوښتنه نۀ کوی اودخاوندحقوق اداکوی، نوداخبره هغې دپاره ډیره غوره، ډیره لوړه اودلوئې ثواب باعث ده-

خُلاصه داده چه یواړخ ته دخپل تکلیف لرې کولواودخپل حق وصولولوقانونی حق، دواړوفریقوته قرآن کریم ورکړو، بل اړخ ته ئے دواړوته دبلند اخلاقۍ اودخپلوحقوقو په پرېښود صبرتلقین اوکړو، اوداهدایت ئې اوفرمائیلوچه تروسه وسه پورې تعلق نۀ دی پرېکول پکار، بلکه پکاردادې چه دواړه خپل، خپل، څه ناڅه حقوق پرېښولوسره صلح اوکړی-

ددې آیت په شروع کښې دښځې خاوندترمنځه داختلاف راتلوپه وخت، روغه راوستل اوصُلح کول صرف جائزښولې شوی دی اوپه آخردآیت کښې دصُلح نۀ راتلوپه صورت کښې هم، صبراوزغم سره دتعلق جاری لرلوتلقین [ښودنه]اکړې شویده-په منځ کښې ئې داسې جمله ارشادفرمائیلې ده-چه روغه جوړه راوستل، دهغې دمخې ،ښکلې اوډیره غوره ثابتیږی لکه فرمائی﴿وَالصُّلۡحُ خَيۡرٌ﴾[روغه جوړه راوستل ډیرغوره دی]اوداجُمله ئې په داسې عام عنوان سره بیان کړه چه پکښې زیربحث ،دښځې ،خاوندترمنځه جګړې هم داخلې دې داختلافاتو نور قسمونه هم، اودټولې دنیادمعاملاتوجګړې، جنجالونه اومقدمې هم ،ولې چه دقرآن کریم الفاظ عام دی چه، ،صلح غوره ده-

دَمضمون خُلاصه داشوه چه دَدې په ځائې چه ښځه خاوند په خپلو ټولو غوښتنو باندې تینګ ولاړوی، دَهغې په ځائې غوره خبره داده چه دواړه دَخپلو خپلو، څه ناڅه، مطالباتو نه لاس واخلی اوپه یو منځومیانه صورت باندې راضی کیدو سره خپل منځ کښې روغه جوړه راولی لکه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی:

[کل صلح جائز بین المسلمین الا صلحا احل حراما اوحرم حلالا والمسلمون علی شروطهم الا شرطا حرم حلالا [رواه الحاکم عن کثیربن عبدالله، تفسیر مظهری] ([1]) دَمسلمانانوتر منځه هر قسم صُلح روا ده، سوا دَهغه صُلح نه چه پکښې حرام لره حلال اوحلال لره حرام ګرځولې شوې وی اومسلمانانولره په خپلو منلو شرطونو باندې ولاړ اوسیدل پکار دی سوا دَهغه شرطونو نه چه دَهغې په ذریعه حلال لره حرام ګرځولې شوی وی-

مثلاً یوې ښځې لره په دې باندې صُلح کول نهٔ روا کیږی چه ورسره ددې خور هم دَدې دَخاوند په نکاح کښې اوساتلې شی، ولې چه دَدوو خویندولره دَیو سړی په نکاح کښې راوستل حرام دی. یا په دې صُلح اوکړی چه دبلې بی بی حقوق به نهٔ اداکوی، ولې چه په دې سره حلالولره حرام ګرځول دی-

اوهر کله چه روایت کښې په عامه توګه، هره صُلحه روا ګرځولې شوې ده نو دغې عموم نه امام اعظم رحمه الله دامسئله راؤښکلې ده چه دَصُلح ټول قسمونه روادی، خواه دَاقرار په صورت کښې په دې شان وی چه مثلاً مدعاعلیه دَدې خبرې اقرار اوکړی چه واقعی، دَمُدعی دَدعوې په مطابق دَهغه په ما باندې یوزر روپۍ پورې دی، بیا صُلح په دې اوشی چه مدعی دڅه رقم مدعاعلیه ته پریږدی، یا دَدغې رقم په بدله کښې دتربل څه څیزواخلی. یا مدعاعلیه، خو اقرار یا انکار هیڅ اونکړی اودومره قدرې اووائی چه حقیقت هرڅه چه وی، زهٔ غواړم چه ته په دې صورت صُلح اوکړې. یا مدعاعلیه ددعوې نه بیخی انکاری وې، لیکن سره دَدې نه دَجګړې ختمولو دَپاره په څه ورکولو باندې راضی شی اوهم په هغې صُلح اوشی. دادرې واړه قسمه صُلحې روادی، دَخاموشۍ اوانکار په صورت کښې دَبعضې امامانو فقهاؤ اختلاف هم شته دې-

په آخر کښې یوه دامسئله دَیادَولو وړ ده چه دَښځې، خاوندتر منځه صُلح کولو سره تعلق لری اوذکرئې په دې آیت کښې شوېدې، هغه داده چه که یوې ښځې، دَخپلوځنو حقوقو په پریښولو باندې صُلح اوکړه نو داسې صُلح دَښځې دغه حق بیخی ختموی چه دَصُلح په وخت دَخاوند په ذمه شوېدې، لکه قرض مهر، چه په خاوند باندې دَدې صُلح نه وړاندې دَهغې اداکول واجب شویدی-

اوس هر کله چه ښځه په ټول مَهر یا دَهغې دڅه برخې په معاف کولو باندې صُلح اوکړی نو دغه مهر یا دغه برخه اداکول به ئې دَخاوند په ذمه بیخی پاتې نشی، بیا به ښځه داحق نهٔ لری چه دَهغې غوښتنه اوکړی ——— لیکن کوم حقوق چه اداکول ئې دَصُلح په وخت په خاوند باندې واجب نهٔ ؤو، مثلاً په آئنده کښې دَښځې نان نفقه [خرڅ اخراجات] یا ورسره دَشپې تیرولو وخت چه راتلونکې زمانه کښې به واجبیږی او دغه وخت ئې اداکول دَخاوند په ذمه واجب نهٔ دی، نو دَداسې حقوقو په پریښو صُلح کول، دَښځې له اړخه دَدغه حقوقو دَغوښتلو حق همیشه دَپاره نهٔ ختموی، بلکه کله چه اوغواړی نو داوئیلې شی چه په آئنده کښې دغې حقوقو پریښوته زهٔ نوره تیاره نهٔ یم- په داسې صورت کښې خاوند داحق لری چه داآزاده [طلاقه] کړی- [تفسیر مظهری وغیره] ([2])

---

[1] ) المستدرک للحاکم، کتاب الأحکام، باب الصلح جائز بین المسلمین رقم الحدیث: ۷۱۵۹

[2] ) تفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۵۶، ۲۵۷

په آخري آيت: ﴿وَإِن يَتَفَرَّقَا يُغْنِ اللَّهُ كُلًّا مِّن سَعَتِهِ﴾ کښې دواړو ښځې ،خاوند ته تسلي ورکړې شوه چه دَروغې جوړې دَتولو کوششونو په ناکام کيدو سره که بيلتون راځي نو وارخطا کيږئ مه: الله تعالى به مو يو دَبل نه بې پرواکړي، ښځې ته به بل خائې اودَ ژوند تيرولو يله ذريعه پيدا کړي، او سړي ته به بله ښځه په ګُتوورشي- دَالله تعالى قُدرت ډير فراخه دې دَهغې نه دَنااميده کيدو هيڅ وجه نشته ،دوئ دواړه ددَنکاح نه په وړاندې ژوند نظرواچوی چه خپل منځ کښې دې دواړو يو بل لره پيژندل هم نهٔ، الله تعَالى سره خپل منځ کښې جوړه کړل، اوس هم دغسې صورتونه، بياهم پيداکيدې شي-

په آخر دآيت کښې ﴿وَكَانَ اللَّهُ وَاسِعًا حَكِيمًا﴾ فرمائيلو سره ئې داخبره نوره هم پخه کړه چه الله تعالى سره ډيره فراخي ده، اودَهغه هر يو کار په حکمت باندې بِنادې، کيدې شي چه په دې بيلتون کښې حکمت اوښيګړه وي، دَدې بيلتون نه پس دواړو ته داسې جوړې ملاويدې شي چه ژوند به ئې ورسره ښه شي-

**په غير اختياري کارونو باندې ګرفت نشته:** دَ وادهٔ ژوند لره ښکلې او پائيدار جوړولو دَپاره قرآن کريم په تيرو شوؤ آيتونو کښې کوم هدايات چه ښځې خاوند ته ورکړي دي په هغې کښې يو آيت دا دې ﴿وَلَن تَسْتَطِيعُوا أَن تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ﴾ په دې کښې دواړو دلو ته يو خاص هدايت دا ورکړې شوې دې چې که دَيو سړي په نکاح کښې دَيوې نه زياتې بيبيانې وي نو قرآن کريم ،دَ سورة نساء په شروع کښې هغه ته دا هدايت اوکړوچه دَتولو بيبيانو تر مينځه انصاف اوبرابري قائم لرَل دَدَغه سړي په ذمه فرض دي، او که څوك دا خيال اوکړي چې څه دا فرض نشم ادا کولې نو هغه ته پکار دي چې د يو نه زياتې بيبيانو سره نکاح نه کوي . ارشاد مبارك دې چې: [فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً] يعنى که تاسو سره دا ويره وي چې د دوؤ بيبيانو په مينځ کښې به انصاف او نکړې شئ نو بيا په يو باندې اکتفا اوکړئ.

او نبى کريم ﷺ خپل قول او عمل سره د بيبيانو په مينځ کښې د عدل او مساوات ډير زيات تاکيد کړې دې ، او ددې په خلاف ورزئي کښې ئې سخته سزا بيان کړې دې .عائشه صديقه ﵂ فرمائي چې نبى کريم ﷺ به خپلو بيبيانو کښې د مساوات او برابرئ پوره پوره اهتمام کولو. او د الله ﷻ په دربار کښې بهٔ ئې عرض کولو چې:

[اللهم هذا قسمي فيما أملك فلا تلمني فيما تملك ولا أملك] (۱) يعنى ائې الله ﷻ ! دا زما منصفانه تقسيم او مساوات په دې څيز کښې دې چې زما په اختيار کښې دی څکه کوم څيز چې ستا په اختيار کښې دې هغه زما په اختيار کښې نه دې يعنى د زړه ميلان او رجحان ، په دې کښې زما غاړه مه بندوه ،

نبى کريم ﷺ څخه زيات څوك داسې کيدې شي چې هغه په خپل ځان باندې قابو لرلې شي ؟ خو بيا هم نبى کريم ﷺ خپل قلبى ميلان د خپل قابو نه بهر اوګرځولّ ، او د الله ﷻ په دربار کښې يې عذر پيش کړو.

د سورة نساء د شروع د آيتونو نه دا معلوميږي چې په هغې کښې بيبيانو سره مطلقا د مساوات او برابر کولو ذکر وو، چې په دې کښې د قلبى ميلان مساوات هم شامل دی ، اودا د انسان په

(۱) سنن ابي داود، کتاب النکاح، باب في القسم بين النساء: ج ۱، ص ۲۹۰

اختيار كښې نه دى . په دې وجه د سورة نساء په دې آيت مبارك كښې دحقيقت حال وضاحت فرمائيلې شوې دې چې په كومو څيزونو ستاسو قدرت نه وى په هغې كښې مساوات كول ضرورى نه دى ، البته په اختيارى معاملو كښې به مساوات وى . لكه شپه تيرولو كښې ، او استوګنه او نفقې وغيره كښې . الله ﷻ دا حكم دې عنوان سره بيان كړو چې دې سره يو شريف به هم په دې باندې عمل كوى.

[وَلَنْ تَسْتَطِيعُوٓا۟ أَنْ تَعْدِلُوا۟ بَيْنَ ٱلنِّسَآءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ فَلَا تَمِيلُوا۟ كُلَّ ٱلْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَٱلْمُعَلَّقَةِ] يعنى تاسو ته معلوم دى چې تاسو كه د ټولو بيبيانو په مينځ كښې كوشش هم اوكړئى خو بيا هم تاسو د قلبى رجحان باره كښې مساوات نشئ كولې خكه چې دا ستاسو په اختيار كښې نه دى . نو بيا داسې مه كوئى چې ټول په ټوله يو طرفته مائل شئ يعنى قلبى ميلان خو ستاسو دې طرفته وو او دې سره سره په اختيارى معاملو كښې هم دوئ ته ترجيح وركړئى ، اوددې نتيجه دا شى چې دې سره هغه بله بى بى هسې پاتې شى ، يعنى خاوند دهغې حقوق هم نه ادا كوى ، او هغه آزادوى هم نه .

معلومه شوه چې په دې آيت مبارك كښې په عدل باندې د قدرت نه لرلو كوم ذكر دې هغه دقلبى ميلان برابرى ده او دا د انسان په اختيار كښې نه ده . او ددې آيت مبارك الفاظ [فَلَا تَمِيلُوا۟ كُلَّ ٱلْمَيْلِ] كښې په خپله ددې مفهوم قرينه موجود ده . خكه چې ددې الفاظو معنى دا ده چې قلبى ميلان كښې برابرى ستاسو په قدرت كښې نه دى خو تاسو يو طرفته مائل مه اوسئ چې په اختيارى معاملو كښې هم هغه [يوې ښځې ته] ترجيح وركړئى .

دا شان دا ايت مبارك د سورة نساء د اولنى آيت مبارك تشريح شوه چې دهغې د ظاهرى الفاظو نه د زړه د ظاهرى ميلان معلوميدل ، دې ايت مبارك دا واضح كړل چې دا فرض نه دى خكه چې دا غير اختيارى دى .بلكه په فرض امورو كښې چې په اختيار كښې وى هغې كښې مساوات دى.

**دې آيت سره دغو ووډونو په خلاف دليل نيول بېخي غلط دي:** په دغه بيان كړى تفصيل سره دهغه خلقو غلط فهمى هم ښكاره شوه چه دَدې دواړو آيتونو په يوځائې كولو سره دا نتيجه راوباسى چه دَسُورتِ نساء ، دَشروع آيت دا حُكم وركړو چه كه دَخو بيبيانو ترمنځه برابرى نشئ كولې نو بيا هم په يو نكاح باندې ګذاره اوكړئ ،بله نكاح مهٔ كوئ،اودې بل آيت دااوښودل چه دَدواړو بيبيانو ترمنځه برابرى راوستل دَسره ممكن نه دى ،نتيجه ئې دا راووته چه په جمع دوه بيبيانې په نكاح كښې راوستل بيخى روانهٔ دى،حالانكه عجيبه خبره داده چه الله تعالى پخپله په دې دواړو آيتونو كښې دَدې غلط فهمئ لرې كولو دَپاره سامان ايښې دې،دَدويم آيت قرينه اوس تيره شوې ده چه دَ﴿كُلَّ ٱلْمَيْلِ﴾الفاظ دى اوپه رومبى آيت كښې ئې دافرمائيلى دى: ﴿فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا۟﴾ په دې كښې دَشرط په ډول دافرمائيل چه: كه ستاسو خطره وى-دالفظ دَدې خبرې ښكاره قرينه ده چه دَدواړو بيبيانو ترمينځه عدل اوبرابرى كول ناممكن اودَوَس نه بهر خبره نهٔ ده،ورنه دَدې اوږد عبادت ،اوبيا په دوؤ آيتونو كښې ددې ضرورت نه وو. لكه چې ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَٰتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ﴾ والا آيت مبارك د هغه ښځو باره كښې تفصيل ذكر دې چې هغوئ سره نكاح حرامه ده . او ﴿وَأَنْ تَجْمَعُوا۟ بَيْنَ ٱلْأُخْتَيْنِ﴾ يې اوفرمائيل چې دې كښې يې د خويندو دَجمع كولو حراموالې ښودلې دې، داشان به

داهم فرمائیلی شوی وو چه په یو وخت کښې د یوې نه زیاتې بیبیانې په نکاح کښې لرل حرام دي اوبیا د ﴿وَأَن تَجْمَعُوا﴾ سره د ﴿بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ﴾ قید لګول به عبث وو، بلکه په دغې یوې جمله کښې به داسې فرمائیلې شوی وو چې ﴿وَأَن تَجْمَعُوا بَيْنَ الامراتين﴾ یعنې مطلقا د دوو ښځو په یو نکاح کښې ساتل حرام دي، خو قرآن پاك دا مختصر کلام پرېښودو او یو طویل عبارت یې اختیار کړو بلکه په دوؤ آیتونو مبارکو کښې یې ددې تفصیل بیان کړو. ددې څخه دا هم معلومه شوه چې آیت ﴿وَأَن تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ﴾ یو حیثیت سره ددې جواز ښائي چې دیو څخه زیاتې بیبیانې په نکاح ساتل خو جائز دي خو شرط په کښې دادې چې هغه دواړه پخپلو کښې خویندې نه وي.

| |
|---|
| وَلِلّٰهِ　مَا　فِي السَّمٰوٰتِ |
| او خاص الله لره دي \| هغه څه \| چې په آسمانونو کښې دي |
| او هرڅه چې په آسمانونو کښې دي ............ \| |
| وَمَا　فِي الْأَرْضِ　وَلَقَدْ　وَصَّيْنَا　الَّذِيْنَ　أُوْتُوا الْكِتٰبَ |
| او هغه \| چې په زمکه کښې دي \| او په تحقیق سره \| هدایت کړې وو مونږ \| هغه کسانو ته \| چې ورکړې شوې وو کتاب |
| او که په زمکه کښې دي \| ټول د الله ﷻ دي \| او ستاسو نه وړاندې چې چاته کتاب ورکړې شوې وو |
| مِنْ قَبْلِكُمْ　وَإِيَّاكُمْ　أَنِ　اتَّقُوا اللّٰهَ　وَإِنْ　تَكْفُرُوْا　فَإِنَّ |
| مخکښې ستاسو نه \| او خاص تاسو ته هم \| ددې خبرې چې \| او ویرېږئ د الله نه \| او که \| تاسو نه منئ \| بیشکه |
| مونږ هغوئ ته هم وئیلی وو \| او تاسو ته هم وایو چې د الله ﷻ نه ویره کوئ \| ......... او که نه منئ \| نو مه منئ |
| لِلّٰهِ　مَا　فِي السَّمٰوٰتِ　وَمَا　فِي الْأَرْضِ　وَكَانَ اللّٰهُ　غَنِيًّا |
| الله دپاره دي \| هغه څه \| چې په آسمانونو کښې دي \| او هغه \| چې په زمکه کښې دي \| او دې الله \| بې پروا |
| هرڅه چې په آسمانونو کښې دي او که په زمکه کښې دي ټول د الله ﷻ دي \| او الله ﷻ بې پرواه دې |
| حَمِيْدًا　وَلِلّٰهِ　مَا فِي السَّمٰوٰتِ　وَمَا　فِي الْأَرْضِ　وَكَفٰى بِاللّٰهِ |
| ستائیلی شوې \| او الله لره دي \| هغه چې په آسمانونو کښې \| او هغه چې په زمکه کښې دي \| او کافي دې الله |
| هرقسم تعریف نې شوې دې \| او د آسمانونو او زمکې هرڅه د الله ﷻ دي \| او الله د کارسازۍ دپاره کافي دې |
| وَكِيْلًا　إِنْ يَّشَأْ　يُذْهِبْكُمْ　أَيُّهَا النَّاسُ　وَيَأْتِ　بِاٰخَرِيْنَ |
| کارساز \| که اوغواړی هغه \| نو لرې به کړی تاسو \| اې خلقو \| او رابه ولی \| نور خلق |
| که الله ﷻ اوغواړی نو اې خلقو تاسو به فنا کړی \| او ستاسو په ځائې \| نور خلق به راولی ............ |
| وَكَانَ اللّٰهُ　عَلٰى ذٰلِكَ　قَدِيْرًا　مَنْ كَانَ　يُرِيْدُ　ثَوَابَ الدُّنْيَا |
| او دې الله \| په دې کار باندې \| پوره قدرت لرونکې \| هغه څوك چې وي \| چې غواړی \| ثواب د دنیا |
| او الله ﷻ په هرڅه قدرت لری \| ............ څوك چې په خپل عمل سره \| صرف د دنیا بدله غواړی |

| فَعِنْدَ اللّٰهِ | ثَوَابُ الدُّنْيَا | وَالْاٰخِرَةِ ؕ | وَكَانَ اللّٰهُ | سَمِيْعًاۢ | بَصِيْرًا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو دي دالله سره | ثواب د دنيا | اودآخرت | اودي الله | اوريدونكي | ليدونكي |
| نو الله ﷻ سره ددنيا بدله هم شته او دآخرت هم[1] او الله ﷻ آوريدنكي دي اوهرڅه ويني | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** په آسمانونو او زمكو كښې چه څه دي ټول صرف دالله دي مونږ تاسو نه مخكښې اهل كتابو ته هم او تاسو ته هم تاكيد كړې دې چه دالله نه ووېرېږئ او كه تاسو كفر وكړئ (نودالله څه نقصان دې؟ ځكه چه) په اسمان او زمكه كښې چه څه دي صرف د الله دي ، او الله د هر چا نه بې نيازه دې اوخپله د تعريف لايق دې او آسمان او زمكه كښې چه څه دي صرف دالله دي او دكار جوړولو دپاره صرف الله كافي دې. كه هغه وغواړي نواې خلقو! تاسو ټول به ( دنيا نه ) بوځي او نور خلق به (ستاسو په ځائې) راولي او الله په دې خبره پوره قدرت لري كوم يو كس چه (صرف) د دنيا بدله غواړي (هغه ته دا خبره ياده ساتل پكاري دي چه) الله سره د دنيا او دآخرت د دواړو بدلې موجود دي او الله هرڅه آوري او په هر څه باندې پوهيږي.

## خلاصه تفسير

﴿ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ ﴾ او دالله ﷻ ملك دی كوم څيزونه چه په آسمانونوكښې دی اوكوم څيزونه چه په زمكه كښې دی [نودداسې مالك حكمونه منل ډير ضروری دی] او

[1] بيا فرمائی چه ائې هغه كسانو چه د چا پوره قصد او پوره كوشش صرف د دنيا دپاره دې ، نو هغوئ دې پوهه شی چه د دواړو جهانونو بنيګړې صرف د الله ﷻ په قبضه كښې دې.نو كله چه د ده نه دواړه طلب كړئ نو هغه به تاسو ته دواړه دركوی ، او هغه به تاسو بې پرواه كړی او آسوده به مو كړی.
**د مومنانو دعا:-** او بل ځائې ارشاد دې چه بعضې هغه خلق دی چه وائی ائې الله ﷻ ! مونږ ته دنيا راكړه ، د هغوئ هيڅ حصه نشته دې په آخرت كښې .او داسې هم شته چه دعا كوی نو وائی چه ائې الله ﷻ ! مونږ ته دنيا كښې نيكی راكړې او آخرت كښې هم نيكې راكړې او د جهنم د اور نه مو اوساتې.خبره دا ده چه دوی ته به د دوی د عملونو پوره پوره حصه وركولې شی.اوبل ځائې كښې ارشاد دې چه كوم كس د آخرت د پټی اراده ساتې ، مونږ به د هغه پټې كښې زياتې كوو.او يو آيت مبارك كښې دی چه (مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهُ فِيهَا مَا نَشَاءُ لِمَنْ نُرِيدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهُ جَهَنَّمَ يَصْلَاهَا مَذْمُومًا مَدْحُورًا )
يعنی چه كوم سړی د دنيا طلب كوی نومونږ چه چاته څه وركوؤ نو هغه په دنيا كښې وركوؤ.
**د ابن جرير په نيز د آيت مطلب:-** امام ابن جرير رحمه الله ددې آيت دا معنی بيان كړې ده چه كومو منافقانو به د دنيا تلاش كښې ايمان قبول كړې وو،نو هغوئ ته دنياوركړې شوه يعنی ظاهری مسلمانيدو سره هغوئ ته غنيمت ملاؤ شو ،ليكن آخرت كښې د هغوی دپاره الله ﷻ چه كوم اور تيار كړې دې هغه به دوی ته هغه ځائې كښې ملاويږی.يعنی د جهنم اور اود هغه ځائې سخت عذاب.
نودامام صاحب رحمه الله په نيز مذكوره آيت د آيت (مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَ زِينَتَهَا) پشان دی.هيڅ شك نشته دې چه ددې آيت معنی خو په ظاهره هم دا ده.ليكن رومبې آيت مبارك هم دی معنی كښې اخستل غور طلب امردې.ځكه چه ددې آيت مبارك الفاظ خو صفا وائی چه د دنيا او آخرت نيكی وركول دالله ﷻ لاس كښې دی نوهر سړی ته پكار دی چه هغه خپل تلاش په يو څيز نه خرچ كوی بلكه د دواړو څيزونو د حاصلولو كوشش دې كوی چه څوك تاسو ته دنيا دركوی نو هغه د آخرت مالك هم دی. دا به ډيره نا راستی وی چه تاسو خپلې سترګې بندې كړئ او ډيرو وركونكو نه لږ اوغواړئ.نه بلكه تاسو د دنيا او آخرت لوئې لوئې كارونو او بهترين كارونو حاصلولو دپاره كوشش كوئ.خپل نصب العين مو صرف دنيا جوړه كړې ده.اوچت همت سره او ډير كوشش سره او دنظر په وسعت سره د ښه ژوند تيرولو كوشش كوه.(ابن كثير)

[داحکامو په خاني راوړل خطاب خاص هم تاسوته نه دي شوي بلکه] ﴿ وَلَقَدْ وَصَّيْنَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَاِيَّاكُمْ اَنِ اتَّقُوا اللّٰهَ ﴾ واقعي مونږ هغه خلقو ته هم حکم کړے وو چه ورته ستاسو نه وړاندي کتاب [آسماني يعني تورات اوانجيل] ملاو شوي وو اوتاسو ته مو هم [حکم درکړي دي] چه الله ﷻ نه ويريږئ [چه ورته تقوي وئيلي شي په کوم کښي چه دټولو احکامو موافقت داخل دی خکه ئے داسورت دتقوی نه شروع کړو اوبه تفصيل کښي ئے مختلف احکام راوړي دی] ﴿ وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ﴾ او [داهم هغوی ته او تاسوته واوروله شو چه] که تاسو ناشکری کوئی [يعنی دالله ﷻ د حکمونو مخالفت کوئی] نو [دالله ﷻ هيڅ ضرر نشته البته هم ستاسو ضرر دے خکه چه] دالله ﷻ [خو] ملك دے کوم څيزونه چه په آسمانونو کښي دی اوکوم څيزونه چه په زمکه کښي دی [دداسے لوئي بادشاه به څه ضرر وی البته دداسې لوئي بادشاه مخالفت بيشکه مضر دي] ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ غَنِيًّا حَمِيْدًا ﴾ او الله ﷻ دچا [دحکم منلو] حاجتمند نه دي [او] پخپله په خپل ذات کښي ستائيلے شوي [او د کاملو صفتونو خاوند] دے [نودچا د مخالفت کولو په وجه دهغه په صفتونو کښي څه نقص نه لازميږي] ﴿ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ﴾ اوهم دالله ﷻ ملك دی کوم څيزونه چه په آسمانونو کښي دی اوکوم څيزونه چه په زمکه کښي دی او [هرکله چه داسې قادر او اختيار مند دي نو دخپل فرمانبردارو بندګانو دپاره هغه] ﴿ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴾ الله ﷻ کار ساز دے [هرکله چه هغه کارساز شونو دهغه فرمانبردارو ته بيا څوك ضرر رسولې شي؟

[نو چا نه ويريدل پکارنه دی اوالله ﷻ چه تاسو ته ددين کارونه ښائی نو هم ستاسو نيك بختئ دپاره ورنه هغه خو نورو نه هم کار اخستلي شی ولے چه دهغه داسې قدرت دي چې] ﴿ اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ اَيُّهَا النَّاسُ وَيَاْتِ بِاٰخَرِيْنَ ﴾ که الله ﷻ غواړی نوائې خلقو تاسو ټول به فنا کړی اونورو به موجود کړی [اودهغوی نه به کار واخلي لکه په يو بل آيت کښي چه راغلی دی ﴿ وان تتولوا يستبدل الخ ﴾ ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ﴾ اوالله ﷻ په دې پوره قدرت لری [نو چه داسې ئے اونکړل دادهغه مهرباني ده دهغه حکم منل غنيمت اوګنړئ اونيك بختی حاصله کړئ اوګورئ چه ددين دکار فائده اونتيجه په آخرت کښي ده پدنيا کښي نه ملاويدوسره زړه مه بدوئی بلکه] ﴿ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ﴾ څوك چې [ددين په کار کښي] ددنيا معاوضه غواړی نو[هغه په غټه غلطئ کښي دی] خکه چې الله ﷻ سره [يعنی دهغه په قدرت کښي] ددنيا او آخرت دواړو بدله [موجوده] ده [هرکله چه هغه په ادنی اواعلی دواړو قدرت لری نواعلی څيز ترې ولے نشی غوښتلے ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ﴾ اوالله ﷻ لوئي آوريدونکي او ليدونکي دي [دټولو خواستونه او خبرے آوری چه دنيا سره تعلق لری اوکه دين سره اود ټولو نيتونه وينی نودآخرت طلبګار ته به ثواب ورکړی او ددنيا طلبګار به په آخرت کښي بےنصيبه لری نويواځې د آخرت نيت اوخواست کول پکار دی البته ددنيا حاجت په مستقل طور باندې غوښتل څه باك نه لری خوپه عبادت کښي دے دا قصد نه کوی]

## معارف او مسائل

**ضروری فائده:** ﴿ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ﴾ [يعنی دآسمانونو اودزمکې ټول مخلوقات دالله تعالیٰ]دلته ئې داالفاظ، درې خله راودپاره [مکرر] اکړې شو، داول نه وسعت مقصود ده چه هغه

سره دهيڅ خيز کمې نشته، ددويم نه مقصود، دهغه بې نيازي اوبې پروايئ بيانول دي، چه هغه دهيڅ پروانه لري که تاسو منکريږئ، په دريم ځل کښې دهغه درحمت او کارسازئ ښکاره کول دي، چه که تقوی اوفرمانبرداري اختيار کړئ نو هغه به ستاسو ټول کارونه جوړ کړي۔

په دريم آيت کښې داخبرواضحه کړې شوې ده چه الله تعالى داطاقت لري چه تاسو ټول فنا کړي اوددنيانه موپورته کړي اونور فرمانبرداراوتابعدار خلق پيدا کړي، دې نه هم دالله تعالى بې پروايئ اوبې حاجتي په ښه شان ښکاره شوه، اونافرمانوته په ښه شان زورنه اوويره ورکړې شوه۔

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | كُوْنُوْا | قَوّٰمِيْنَ | بِالْقِسْطِ | |
| اے هغه کسانو | چې ايمان موراوړې دې | شئ | هميشه محکم ودريدونکې | په انصاف سره | |
| اې دايمان خاوندانو په انصاف باندې قائم دائم ولاړ اوسيږئ | | | | | |
| شُهَدَآءَ | لِلّٰهِ | وَلَوْ عَلٰٓى | اَنْفُسِكُمْ | اَوِالْوَالِدَيْنِ | وَالْاَقْرَبِيْنَ |
| گواهي کونکې | خاص الله لره | اگر که وی | خلاف دنفسونو ستاسو | يا دمور او پلار | اودخپلوانو |
| اودالله ﷻ دپاره گواهئ ورکوئ [اگر که [داگواهي] دخپلوځانونو، دمور پلار يا خپلوانو خلاف وی | | | | | |
| اِنْ يَّكُنْ | غَنِيًّا اَوْ فَقِيْرًا | فَاللّٰهُ | اَوْلٰى | بِهِمَا | فَلَا تَتَّبِعُوا |
| که وی | مالدار | يا غريب | نو الله | ډيرحقدار دې په مقابله د دواړو کښې | پس مه ځئ تاسو |
| که هغه مالداروی اوکه غريب | هرحال کښې د هغوی دواړو په مقابله کښې الله ﷻ زيات د لحاظ ساتلو لائق دې نو | | | | |
| الْهَوٰٓى | اَنْ تَعْدِلُوْا | وَاِنْ | تَلْوٗٓا | اَوْ تُعْرِضُوْا | |
| په خواهشاتو پسې | چې بې انصافي اوکړئ | اوکه | تاسو واړوئ ژبې خپلې | يامخ واړوئ دربنتياونه | |
| تاسودخپلونفسونوتابعداري مکوئ | چې عدل پريږدئ | اوکه تاسوژبې واړوئ | ياد گواهئ نه ډډه اوکړئ | | |
| فَاِنَّ | اللّٰهَ | كَانَ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | خَبِيْرًا ⑬ |
| نو بيشکه چې الله | دې | په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | خبر | |
| نوالله ﷻ ستاسود کارونونه ښه خبردې | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** اې دايمان خاوندانو انصاف قايمونکی جوړ شئ او دالله دپاره گواهئ جوړونکي جوړ شئ، خواه که هغه گواهي ستاسو خلاف وي، يا مو دمور او پلار او خپلوانو خلاف وی هغه سرې (چه د هغه خلاف د گواهئ کولو حکم کولې شي) که هغه مالدار وي اوکه غريب، الله د دواړه قسمه خلقو ستاسونه زيات خير خواه دې نو داسې دنفس خواهش پسې مه ځئ چه تاسود انصاف کولو نه بندوی، اوکه تاسو مخ اړوئ (يعني غلطه گواهي ورکوئ) يا (دربنتيا گواهئ نه) مخ اړوئ نو (ياساتئ چه) الله ستاسو د کارونو نه پوره خبر دې.

**خلاصه تفسير**

﴿يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ اې دايمان خاوندانو [په ټولو معاملاتو کښې دحق ادا کولو په وخت هم اود فيصلې په وخت کښې هم] ﴿كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ﴾ شئ په انصاف باندې کلك پاتې کيدونکی [او د اقراريا گواهئ موقعه چه راپيښه شي نو] ﴿شُهَدَآءَ لِلّٰهِ وَلَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَوِالْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ﴾ دالله ﷻ

[دخوشحالولوو] دپاره [ربنتیا] ګواهي ورکونکي اوسیږئ اګر چه [دغه ګواهي او ښکاره کول] دخپل ذات [خان] خلاف وي [چه ورته اقرار وئیلې شي] یا دمور پلار او دنورو خپلوانو خلاف وي [اودګواهئ په وخت کښې داخیال مه کوئ چه د چا په مقابله کښې چه مونږ ګواهي ورکوو هغه امیر دے .ورته فائده رسول پکار دي چه ورسره بې مروتي اونشي یا دا چه غریب دي نو دده څنګه نقصان او زیان اوکړو تاسو په ګواهئ ورکولو کښې دچا امیرئ غریبئ یا نفعې نقصان ته مه ګورئ څکه چه] دغه کس [چه دهغه په خلاف ګواهي ورکول راځي] ﴿ اِنْ یَّكُنْ غَنِیًّا اَوْ فَقِیْرًا فَاللّٰهُ اَوْلٰی بِهِمَا ﴾ که امیر اوکه غریب دې نو دواړو سره دالله ﷻ زیات تعلق دې [هومره تعلق ورسره ستاسو څکه نشته چه تاسو دغه تعلق هم دالله ﷻ درکړې شوې دې او دالله ﷻ چه کوم تعلق دې هغه ستاسو ورکړې شوې نه دې. بیا هرکله چه دسره دقوي تعلق نه الله ﷻ دهغوي ښیګړه په دې کښې ایښے ده چه په ګواهئ کښې دے حقه خبره اوکړې شي اګر چه په وختي طور ورته نقصان هم اورسي نوتاسو سره دکمزوري تعلق نه په خپلے ګواهئ کښې دے هغوي دعارضي ښیګړې ولے خیال لرئ] نوتاسو [په دې ګمراهئ کښې] ﴿ فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوٰٓی اَنْ تَعْدِلُوْا ﴾ دنفس خواهش پسے مه ځئ چه دحق نه واوړئ ﴿ وَاِنْ تَلْوٗٓا اَوْ تُعْرِضُوْا ﴾ اوکه تاسو پیچلې بیان اوکړئ [یعنی غلطه ګواهي ورکړئ] یا ترې ډډه اوکړئ [یعنی ګواهئ ورکولو نه خان اوساتئ] نو [یاد لرئ چه] ﴿ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِیْرًا ﴾ بیشکه الله ﷻ ستاسو دټولو عملونو پوره خبر لري.

## معارف او مسائل

**په دُنیا کښې دانبیاؤ ﷺ اوآسماني کتابونو الیږلو اصل مقصد عدل او انصاف قائمول دي اوهم په دې سره دَدُنیا امن قايم پاتې کيدې شي:**: دَسُورت نساء په دې آیت کښې، ټولو مسلمانانو ته په عدل او انصاف باندې دَټینګ پاتې کیدو او په رښتیاد ګواهئ ورکولو هدایت ورکړې شوې دې، اوکوم څیزونه چه دَعدل په قائمیدو یا دَرښتیاؤ په ګواهئ کښې بندیز کیدې شي هغه په ډیر مؤثر انداز کښې لرې کړې شویدې، دَدې مضمون یو آیت په سُورت مائده کښې هم راروان دې، دَدواړو مضمون څه چه الفاظ ئې هم تقریباً یو شان دی ،اودَسُورت حَدید دآیت نه معلومیږي چه حضرت آدم ؑ لره دَخلیفه په ډول دَلیږلو، بیا هغوئ نه روستو دَنورو انبیاؤ [ ؑ] یو بل پسې په مخه دَخلیفګانو په ډول دَلیږلو او دَدوئ سره دَډیرو کتابونو او صحیفو دَنازلولو ،زیات ضروري مقصد هم دا وو چه په دُنیا کښې انصاف او دَدې په ذریعه امن او امان قائیم وی، هر یو انسان دَخپل خپل اختیار په دائره کې انصاف لره خپله خاصه نخښنه جوړه کړي، او کوم سرکش خلق چه دَوعظ ونصیحت او دَتعلیم او تبلیغ ذریعه په عدل او انصاف ته غاړه نۀ اږدی په خپلې سرکشئ باندې ټینګ وی نو هغوئ لره دَ قانوني سیاست ،دَتعزیر او سزا په ذریعه په دې مجبور کړې شی چه په انصاف دټینګ پاتې کیږي.

دَسورت حدید په پنځویشتم آیت کښې داحقیقت داسې واضح کړې شویدې:

﴿ لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَیِّنٰتِ وَاَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَالْمِیْزَانَ لِیَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ﴾ مونږ لیږلی دی خپل رسولان سره دَنښانیانو او نازل مو کړو هغوئ سره کتاب او تله، چه خلق نیغ اوسی په انصاف او مونږه نازله کړه اوسپنه، په دې کښې ډیر رُعب دې او دې سره دَخلقو کارونه چلیږي۔

دي نه معلومه شوه چه دانبياؤ ﷺ دَ راليږلو او دَ آسماني كتابونو نوټول انتظام هم دَ انصاف دَپاره كړې شويدې، دَ رسولانو ليږل او دَ كتابونو نازلول، دَدې مقصد دَپاره عملي كړې شويدي، او په آخر كښې دَ اوسپنې دَ راكوځولو ذكر كولو سره، دې اړخ ته هم اشاره او كړې شوه چه ټولو خلقو دَپاره په انصاف باندې دَ ټينګ لرلو دَ اوسپنې په زنځيرونو او په وسلو سره به په هغوئ رعب اچولې شي هله به هغوئ انصاف ته تيارشي.

**په عدل او انصاف قائيم پاتې كيدل يواځې دَ حكومت فرض نهٔ بلكه هر انسان په دې مكلف دې** دَ سُورت حديد دغه ذكر شوې آيت، دَ سُورت نساء دې آيت او دَ اشان دَ سُورت مائده دې آيت ﴿كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ وَلَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ ۚ اِنْ يَّكُنْ غَنِيًّا اَوْ فَقِيْرًا فَاللّٰهُ اَوْلٰى بِهِمَا ۗ فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوٰٓى اَنْ تَعْدِلُوْا ۚ وَاِنْ تَلْوٗٓا اَوْ تُعْرِضُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا﴾ سره په واضح ډول داهدايت وركړې شويدې چه انصاف قائيمول او په دې ټينګ پاتې كيدل يواځې دَ حكومت او دَ عدالت فرض نهٔ دى بلكه هر انسان دَدې مكلف او مخاطب دې چه هغه پخپله په انصاف باندې ټينګ پاتې كيږي او نورو لره هم په دې باندې دَ ټينګ لرلو دَپاره كوشش كوي-البته دَ انصاف صرف يوه درجه، حكومت او حاكمانو سره مخصوص ده، هغه دا چه كله ورانكاري او سركش انسانان دَ انصاف په خلاف شي، نهٔ پخپله په انصاف قائيم اوسي او نهٔ نور څوك عدل او انصاف كولو ته پريږدي نو دَ حاكمانه تعزير او سزا ضرورت دې، ښكاره خبره ده چه دا عدل او انصاف حكومت قائيمولې شي چا سره چه اقتدار او طاقت په لاس كښې دې-

دَ نن زمانې جاهل عوام خو پريږدئ ليكونكي ويونكي تعليميافته خلق هم دا ګڼړي چه انصاف كول صرف دَ حكومت او عدالت ذمه وارى ده، عوام دَدې ذمه وارنهٔ دى او هم دا دَ ټولونه لويه وجه ده چه هر ملك او هر حكومت كښې ئې عوام او حكومت لره خپل منځ كښې دوه مخالفې ډلې جوړې كړې دى دَ حاكم او محكوم ترمنځه ئې دَ خلاف او اختلاف غټې غټې بندونه جوړ كړې دى، دَ هر ملك عوام، دَ خپل خپل حكومت نه دَ عدل او انصاف غوښتنه كوى ليكن پخپله په څه انصاف باندې قـايم اوسيدو ته نهٔ تيارږي، هم دَدې نتيجه ده چه خلق ئې په خپلو ستر ګو سره وينى، قـانون په تپه ولاړ دې، جرمونه ورځ په ورځ ترقى كوى، په هر ملك كښې قـانون سازې اسمبلې جوړې شوى دى، په هغې كروړونه روپۍ خرڅ كيږي، دې دَپاره نمائيند ګانو چونړ كولو دَپاره دَخدائې ټوله زمكه او ښوزى، او دَ پوره ملك دَ زړهٔ او دماغ په حيث دغه نمائيند ګان په دې شان، ډير احتياط سره قانون جوړوى چه دَ ملك ضروريات او دَ خلقو جذبات او احساسات دَدوئ مخې ته وى، او بيا دَ رائې عامه دَپاره ئې شائع كوې، چه دغه رائې عامه معلومه شي نو بيا دغه قانون دَ جارى كولو جو ګه ګنړلې شي چه ورد پاره دَ حكومت بيشميره مشينرى په حركت كښې راشي چه زر ګونه، بلكه لكونه ځانګې لري، په هره ځانګه كښې دَ ملك دَ لويو لويو تجربه كارو محنتونه په كارراوستې شي، ليكن دَدې چليدونكو رسمونو دَ دُنيانه چه لږ شان پورته نظر و اچولې شي، داشان دَ هغه كسانو دَ روند تقليد كولو دَ دائرې نه په بهر و تو سره چه په حقيقت خان خبر كړې شي كوم چه دَ تهذيب تيكيداران منلې شويدى نو هر څوك به بې اختياره په دې ونيلو مجبور شي چې:

نگاهِ خلق میں دنیا کی رونق بڑھتی جاتی ہے
مری نظروں میں پھیکا رنگ محفل ہو جاتا ہے

دَ خلقو په نظر كښې دَ دنيا رونق په مخه زياتيږي، خو زما په نظر كښې دَ محفل رنګ په مخه كميږي

داوس نه سل کاله وړاندې سنه ۱۸۵۷ء پورې مقابله اوکړئ [دې باره کښې شمیر، شمیره محفوظ ده] نو هغه به ګواهي ورکړي چه څومره څومره قانون سازئ ترقي کړیده، په قانون کښې دعوامو د مرضئ نمائش ترقي اوکړه، دقانون جاري کولو د پاره مشینري زیاته شوه، د یو قسم پولیس په ځائې مختلف قسمه پولیس جوړ کړې شو، نو ورځ تر ورځې هومره جرمونه زیات شو اوخلق دانصاف نه په مخه وتل او هم دې رفتار سره په دنیا کښې بدامني په مخه زیاته شوه-

**دټول جهان دامن ضمانت یواځې دآخرت عقیده او دالله تعالی ویره ورکولې شي** دسمې لارې څوک بنده داسې نشته چه په غرید لو سترګو اوګوري او ددې چالور سمو نو بند یز ونو لره ماتولو نه پس لږ شان درسول عربي ﷺ په راوړلی پیغام کښې سوچ فکر اوکړي او په دې حقیقت غور اوکړي چه ددنیا دامن وامان ضمانت صرف دآخرت عقیده او دالله تعالی ویره ورکولې شي چه دهغې په ذریعه ټولې ذمه دارئ دحاکم اورعیت او دعوامو او حکومت تر منځه شریکې شي او هر څوک خپلې ذمه دارئ محسوس کول شروع کړي، یواځې په دې وئیلو باندې دقانون داحترام نه غاره نشي خلاصولې چه داکار دحاکمانو دې-دقرآن کریم دغه ذکر شوي آیتونه دانصاف او عدل دقائیمولو په سلسله کښې هم ددې انقلابي عقیدې په بنودنې باندې ختم کړې شوي دي-

دسورت نساء ددې آیت په ختمیدو باندې ﴿فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا﴾ اوفرمائیلې شو او دسورت مائده دآیت په آخر کښې اول دتقوی هدایت اوفرمائیلې شو او بیائې اوفرمائیل: ﴿إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ او دسورۀ حدید دآیت په آخر کښې ﴿إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ﴾ اوفرمائیلې شو-په دې درې واړو آیتونو کښې حاکمانو او عوامو دواړو ته په عدل او انصاف دقایم پاتې کیدو او قایم لرلو دهدایاتو ورکولو نه پس دآیتونو په ختمیدو باندې دټولو نظرونه دې حقیقت ته راواړولې شوي دي چه دانسان په ژوند او ودۀ په خیالاتو او جذباتو کښې لوئې انقلاب پیدا کوي، چه هغه دالله تعالی دقوت او سلطنت او ودۀ په وړاندې حاضري حساب، کتاب ورکول، او دجزاء سزا تصودې. داهغه څیز دې چه داوس نه سل کاله وړاندې، نالوستې [ناخوانده] دنیا ته ئې دنن په نسبت ډیر زیات امن او آرام وربخښلې وو، او داهغه څیز دې چه ددې نه دمخ اړولو په وجه ترقي موندونکې، آسمان سره خبرې کوونکې، سیارې الوځوونکې دنیا دامن او آرام نه بې نصیبه ده-

دنوې رڼړا دنیا دې واوري چه دسائینس دې حیرانوونکو ترقو په ذریعه خودوئ آسمان ته ختلې شي، په سمندرور ننوتې شي لیکن ددې ټولو سامانونو او کارخانو اصلي مقصد امن وامان آرام او اطمینان خونۀ دوئ ته په یو سیاره کښې په ګتوور تلې شي، نۀ ئې چرته په نوی ایجاد کښې پیدا کیدې شي، که داموندې شي نو د پیغمبر عربي، روحی فداه ﷺ په پیغام او ددوئ په تعلیماتو کښې دخدائې تعالی په منلو کښې، او دآخرت په حساب، کتاب باندې په عقیده ساتلو کښې موندې شي لکه فرمائ: ﴿أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ﴾ دسائنس حیرانوونکې انکشافات، ورځ په ورځ دالله تعالی کامل قدرت او دهغه بې مثاله کاریګري په مخه هم دغه شان زیاتوي وچه دهغې په وړاندې هره انساني ترقي دخپلې عاجزئ کمزورئ او پاتې راتلو اقرار کوي مګر-

**چه سود چون دل دانا وچشم بینا نیست**

فائده څه شوه هر کله چه زړۀ پوهیدونکې او سترګې بینانۀ وي-

یواځې ته خو قرآن کریم ددنیا دټول نظام منشاء، دعدل او انصاف قائیمول او بنودل او بل اړخ ته ئې ددې یو داسې عجیب او ناآشنا انتظام اوفرمائیلو که ددې په پوره نظام باندې عمل

درآمد او کړې شي نو داوينې څکونکې اوېد کاره دنيا به په يوې داسې نيکې معاشره کښې بدله شي چه دَآخرت دَجنت نه وړاندې به دا دُنيا يو حاضر او موجود جنت جوړ شي، چنانچه دَقرآني ارشاد: ﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ﴾ يو تفسير دا هم دې چه الله تعالى نهٔ وېرېدونکو ته به دوه جنتونه حاصلېږي، يو په آخرت کښې او بل به په دنيا کښې موجود جنت اوليدې شي، دا يواځې فرضيات او وهمونه نهٔ دي ځکه چه دَدې پيغام راوړونکي رسول الله ﷺ دَدې عملي صورت مونږ ته پرېښې دې، -او ورپسې خلفائې راشدينو او دسنت تابعدارو بادشاهانو چه هر کله په هغې عمل اوکړو، نو دا فرضي مثال حقيقت جوړ شو او خلقو په خپلو سترګو اوليدل چه چيلئ [بزې] او زمرى به په يو ګودر يو ځائې اوبه څکلې، دَغريب، امير او دَپنکي دَخاوندانو تر منځه بيلتون بيخي ختم شو، هرچا به دَخپلو کورونو په بندو کمرو کښې هم دَشپې په تيرو [تاريکئيو] کښې هم دَقانون احترام کولو، دا يواځې افسانه نهٔ ده، بلکه تاريخي حقيقتونه دي چه اقرار ئې غير مسلمو هم کړې دې او هر هغه غير مسلم هم دَدې په منلو باندې مجبوره شو چه دَبې خيرې زړهٔ خاوندوو-

دآيت دَمضمون نه پس په تفصيل سره دَدې تفسير اوګورئ-

په دې آيت کښې ﴿كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ﴾ او فرمائيلې شو دَ﴿قِسْطِ﴾ په زير دَقاف سره معنې عدل او انصاف ده، دَعدل او انصاف حقيقت دا دې چه دَهر حقدار حق پوره په پوره ادا کړې شي، ددې په عموم کښې دا داخل دي چه دَالله تعالى حقوق هم پوره په پوره ادا کړې شي او ټول انساني حقوق هم ،دَ، ،قيام بالقسط، ،مطلب دا دې چه هيڅوک په چا باندې ظلم اونکړي او دا هم چه ظالم دَظلم نه بند کړې شي، دَمظلوم مرسته اوکړې شي، که ظالم لره دَظلم نه بندولو او دَمظلوم حق دَظالم نه اغستو دپاره دګواهئ ضرورت پيښ شي نو ګواهئ کولو نه د غاړه نشي رغړولې او په ګواهئ کښې دحق او حقيقت ښکاره کړې شي، خواه هغه دَچا په فائده کښې وي، يا دَچا په نقصان کښې، ددې مطلب دا هم دې چه دَحاکمانو په وړاندې هر کله چه مقدمې پيش شي نو هغوئ دې دَدواړو فريقو سره دَبرابرئ سلوک کوي يو طرفته د په هيڅ شان ټول نهٔ درنوي، دګواهانو بيان د په غور سره آؤري، دَمعاملې تحقيق د په خپل پوره کوشش سره سرته رسوي او بيا دِ فيصله کښې پوره په پوره دې د عدل او انصاف نه کار اخلي-

**په عدل او انصاف قايمولو کښې خنډ جوړېدونکي اسباب:** دَسُورت نساء او سُورت مائده دَدواړو آيتونو مضمون تقريبًا يو شان دې، فرق پکښې صرف دومره دې چه دَعدل او انصاف په لاره کښې بنديز جوړېدونکي دوه څيزونه کيدې شي يو دَچا مينه محبت، خپلولي يا دوستي او بل چا سره کينه او دُشمني. دَرومبى څيز تقاضا د ګواه په زړهٔ کښې داوى چه ګواهي دَهغه په حق کښې ورکړي چه دَزيان تاوان نه محفوظ پاتې شي يا ورته فائده او نفع اورسي، او دَجج او دَقاضي په زړهٔ کښې ددې تقاضا کيدې شي چه فيصله دَهغه په حق کښې ورکړي، او بل څيز عداوت او دښمني ده چې دهغه تقاضا داوى چه ګواه دَهغه په خلاف ګواهي ورکړي او دَقاضي او جج دَارخه ئې تقاضا کيدې شي چه ددهٔ په خلاف فيصله صادره کړي، غرض دا چه دا دواړه قسمه څيزونه انسان لره دَعدل و انصاف دَلارې نه په بله خوا اړولو سره هغه لره په زور ظلم کولو کښې اخته کولې شي، ځکه دَسورت نساء او سُورت مائده په دې دواړو آيتونو کښې دغه دواړه بنديزونه لرې کړې شوې دي لکه ارشاد دې: ﴿اَوِالْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ﴾ يعنى که ستاسو ګواهي دَخپل مور پلار يا نژدې خپلوانو په خلاف هم پريوځي نو بيا هم په حق خبرې کولو او په رشتيا ګواهئ ورکولو کښې دَدغه تعلق او تړون لحاظ مه

کوي: او دسورت مائده په آیت کښې دویم قسم بندیز داسې لرې شوې دې لکه فرمائي چې: ﴿وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۪﴾ چه یو قوم سره کینه او دشمنی د په تاسو باندې ددې باعث جوړنشي چه دعدل او انصاف لارپریږدئ او دهغوی په خلاف گواهي یا فیصله ورکړئ-

ددواړو آیتونو په عنوان او تعبیر کښې هم لږشان فرق دې، دسورتِ نساء په آیت کښې ئې ﴿كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ﴾ او دسورت مائده په آیت کښې ئې:

﴿قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ﴾ او فرمائیل، یعنی په اول آیت مبارك کښې کښې ددوو څیزونو هدایت دې. ﴿قِيَامٌ بِالْقِسْطِ﴾ او دویم: ﴿شهادت للّٰه﴾ او دا شان په دویم آیت مبارك کښې هم دوه څیزونه مامور به دی مګر عنوان یې بدل کړو یعنی قیام للّٰه او شهادت بالقسط

اکثر مفسرین په دې باره کښې فرمائ چه دادواړه څیزونه په اصل کښې دیو حقیقت تعبیرونه دی یو خل ئې په ﴿قِيَامٌ بِالْقِسْطِ﴾ سره او بل ځائې په ﴿شهادت اللّٰه﴾ سره تعبیر اوکړو. ددې دواړو آیتونو په طرز بیان کښې داخبره په خاص شان سره دنظر کولو جوګه ده چه د ﴿كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ﴾ یا د ﴿قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ﴾ اوږده جُمله اختیار کړې شوه حالانکه دعدل وانصاف حُکم یو اځې په لفظ اقسطوا سره هم ورکولې کیدې شو ددې اوږدې جُملې په اختیارولو کښې دې اړخ ته اشاره کول منظوردی چه په ناځاپي ډول، په یوه معامله کښې عدل وانصاف کولو سره ذمه داری نۀ پوره کیږی ځکه چه په څه ناڅه معامله کښې انصاف کیدل خو داسې یو طبعی کاردې چه خراب نه خراب او ظالم نه ظالم هریو حاکم ئې کولې شي یعنی کله خو انصاف کولې شي، په دې جُمله کښې ﴿قَوّٰمِيْنَ﴾ فرمائیلو سره ئې دااوښودل چه په عدل وانصاف باندې، همیشه هروخت په هرحال کښې او هر دوست، دُشمن دپاره قایم اوسیدل ضروری دی-

بیا دې دواړو آیتونو کښې تولې دُنیا لره په عدل وانصاف باندې دقایم اوسیدو او قایم لرلو دپاره چه کوم زرین اصول اختیار کړې شویدی دا یو اځې دقرآن کریم خصوصیت دې ــــــ په دې کښې یو ډیر ضروری څیز خو دادې چه عوام او حاکمان ټول، دالله تعالی دغالب قوت او دجزء او رخې دحساب نه ویرولې شوی او دې دپاره تیار کړې شویدې چه عوام دپخپله هم دقانون احترام اوکړی او دقانون جاری کوونکی حاکمان دهم الله تعالی او آخرت خپلې مخې ته لری، دمخلوق خدا خادمان دجوړشی او قانون د په دې شان جاری کوی چه دخلقو خدمت او ددنیا داصلاح ذریعه د جوړه کړی، دخلقو په پریشانو کښې دزیاتوالې نۀ راولی د قانون د خدمت او ددنیا داصلاح ذریعه د جوړه کړی مظلوم دې دد دفترپه چکرونو لګولو کښې نۀ راګیروی، چه ظلم دپاسه دبل ظلم سبب ئې جوړ کړی، دخپلو ذلیلو خواهشاتو پوره کولو دپاره د په پیسو تکو خرڅ نۀ کړی ځکه ئې:

﴿قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ﴾ یا ﴿شُهَدَآءَ لِلّٰهِ﴾ او فرمائیل او په داشان ئې حاکمانو او عوامو ته د للهیت او دعمل داخلاص بلنه ورکړه-

بل بنیادی څیز دادې چه دعدل وانصاف قایمولو ذمه واری دهریو انسان ګرځولې شویده په سورت نساء او سورت مائده کښې ددې ذمه داری په ټول مسلمان اُمت ځکه اچولې شویده چه په ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ سره ورته خطاب شویدې او په سورت حدید کښې په ټولو انسانانو ځکه اچولې شویده ځکه هلته داسې فرمائیلې شویدی: ﴿لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۚ﴾ دسورت نساء په آیت کښې: ﴿وَلَوْ

عَلٰی اَنۡفُسِکُمۡ﴾ فرمائيلو سره نې دې اړخ ته هدايت فرمائيلې دې چه د انصاف غوښتنه د يواځې د نورو نه وی، بلکه د خپل ځان نه دهم وی، د خپل ځان خلاف که د څه بيان څه خبرې ښکاره کولو ضرورت پيښ شی نو هم د د حق او انصاف خلاف څه خبره يا حرکت نه کوی اګرچه د دې نقصان د هغه په ځان راځی، ولې چه دا نقصان ډير لږ او عارضی دې، که په دروغو ونيلو سره نې ځان د غه وخت بچ کړو نو د قيامت سخت عذاب نې ځان د پاره واغستو-

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ

ای هغه کسانو |

انې د ايمان خاوندانو ........................................ |

اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْ نَزَّلَ اٰمَنُوْٓا

چې ايمان موراوړې دې | ايمان راوړئ | په الله | او د هغه په رسول(۱) | او په کتاب هغه باندې | چې نازل کړې دې الله

په الله ﷻ [په رښتيا او په اخلاص سره] ايمان راوړئ | او د هغه په رسول هم او په هغه کتاب چې

عَلٰی رَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ ؕ

په رسول خپل باندې | او په هغه کتاب باندې | چې په يوځل نازل کړې دې الله | مخکښې |

پخپل رسول نې نازل کړې دې | او په هغه کتابونو چې د دې نه وړاندې نازل شوی دی

وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ

او هغه څوک | چې انکار نې اوکړو | د الله نه | او د فرښتو د هغه نه | او د کتابونو د هغه نه

او چا چې د الله ﷻ [د وحدانيت] نه ............او د الله ﷻ د فرشتو نه ........................ او د کتابونو نه

وَرُسُلِهٖ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا ۢ بَعِيْدًا ۝

او د رسولانو د هغه نه | او د ورځ د آخرت نه | نو په تحقيق سره | ګمراه شو | په ګمراهئ | لرې سره

او د الله ﷻ د پيغمبرانو نه او د آخرت نه انکار اوکړو | نو هغه په ګمراهئ کښې ډير لرې لاړې

---

(۱) **مسلمان چې ايماندار دې هغه ته د ايمان راوړلو مطلب:-** ايمان والو ته حکم کيږی چه ايمان کښې پوره پوره داخل شئ. ټول احکام ، ټول شريعت لره د ايمان جزئيات اومنئ. دا خيال دې ستاسو نه وی چه دا خو تحصيل حاصل دې نه. بلکه تکميل کامل دې. چه ايمان مو راوړې دې نو اوس په دې قائم اوسئ. که الله تعالی منئ نو څنګه چه هغه تاسو ته وائی نو هغه شان نې اومنئ. هم دا مطلب دې د هر مسلمان د دې دعا چه مونږ ته د صراط مستقيم هدايت اوکړه. يعنې مونږ په هدايت لره ثابت قدم او مدام اوساته. په دې کښې مونږ مضبوط کړه او مونږ ته په کښې زياتوالې راکړه. دا شان دلته هم مومنانو ته په خپل ذات اقدس او په رسول الله ﷺ باندې د ايمان راوړلو وائی. او آيت مبارک کښې ايماندارو ته خطاب دې او فرمائی چه د الله تعالی نه ويريږئ او په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړئ.

**د نزل او انزل مصداق:-** د ړومبی کتاب نه مراد قران پاک دې. او د دې نه مخکښې کتاب نه مراد ټول نبيانو باندې چه کوم کتابونه نازل شوی دی .هغه دی. د قران د پاره لفظ «نزل» استعمال شوې دې. او د نورو کتابونو د پاره «انزل» ، ځکه چه قران پاک په مزه مزه وخت په وخت لږ لږ نازل شو او باقی پوره يو ځل باندې نازل شوی دی. .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ الَّذِينَ | اٰمَنُوْا | ثُمَّ | كَفَرُوْا | ثُمَّ اٰمَنُوْا | ثُمَّ كَفَرُوْا |
| بیشکه هغه کسان | چی ایمان ئي راوړوا | بیا ئې | کفر اوکړو | بیاني ایمان راوړو | بیا ئي کفر اوکړو |
| بیشکه چا چي ایمان راوړو \| بیامنکر شو \| بیا ئي ایمان راوړو او بیا منکر شو | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ ازْدَادُوْا | كُفْرًا | لَّمْ يَكُنِ | اللّٰهُ | لِيَغْفِرَ | لَهُمْ | وَلَا | لِيَهْدِيَهُمْ |
| بیا زیات شول | په کفر کښی | نه دي | الله | چی اوبښی | هغوئ | اونه دي چی | اوښائ هغوئی ته |
| او بیا ئي په انکار کولو کښي زیاتي اوکړو \| نو الله به هغوئ هیڅ کله اونه ښښی \| اونه به هغوئ ته | | | | | | | |
| سَبِيْلًا ﴿١٣٧﴾ | | | | | | | |
| نیغه لار \| | | | | | | | |
| سمه لار اوښائي | | | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** اې د ایمان خاوندانو ! په الله باندې ایمان راوړئ او د الله په رسول باندې ، او په هغه کتاب باندې کوم چه الله په خپل رسول باندې نازل کړې دې اوپه هر هغه کتاب چه دده نه ئې مخکښې نازل کړې وو،او څوك چه د الله نه د هغه د فرښتو نه، د هغه د کتابونو نه، او د هغه د پیغمبرانو نه، او د ورځې د آخرت نه انکار وکړي نو هغه په ګمراهئ کښې ډیر لرې لاړو کومو خلقو چه ایمان راوړو او بیائې کفر وکړو ، بیائې ایمان راورو او بیائې کفر وکړو ، بیا په کفر کښې زیات شو الله به نه دوی ته بخنه وکړي او نه به دوی سمې لارې ته راولي.

**د آیتونو ربط:** پورته زیاته حصه د احکام فرعیه باره کښې ذکرشوې ده ، او دې سره سره څه لږ ډیر بحث د ایمان او کفرباره کښې هم شوې دې .او ددې په ضمن کښې د مخالفینو سره د معاملاتو ذکر هم شوې دې . وړاندې دا بحثونه ډیر په تفصیل سره بیان شوی دی . اود سورت تر ختمیدو پورې بیان شوی دی .د بیان په ترتیب کښې اول ددې خبرې ذکر دې چې شریعت کښې ایمان معتبر دې . بیا د کافرانو د مختلفو فرقو مذمت په عقائدو او اعمالو کښې شوې دې .

**خلاصه تفسیر**

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا ﴾ اثې دایمان خاوندانو [چه په اجمالی ایمان راوړلو سره دمومنانو په ډله کښې شامل شوی دی] ﴿ اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ﴾ تاسو [دضروری عقیدو تفصیل واورئی چه] عقیده لرئی الله ﷻ [دذات او صفتونو دهغه] سره اودهغه رسول [یعنی دمحمد ﷺ د رسالت] سره ﴿وَالْكِتٰبِ الَّذِيْ نَزَّلَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ﴾ اودهغه کتاب [په حق کیدو] سره چه هغه [یعنی الله ﷻ] په خپل رسول ﷺ [یعنی محمد ﷺ] باندې نازل کړو﴿ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ ﴾ اودهغه کتابونو [په حق کیدو] سره [هم] کوم چه [درسول ﷺ نه مخکښې په نورو پغمبرانو] نازل شوی دی [اوپه رسول ﷺ او پخوانو کتابونو باندې ایمان راوړلو کښې په فرښتو نورو ټولو پیغمبرانو اوپه قیامت باندې ایمان راوړل هم داخل شو] ﴿ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ﴾ اوڅوك چه دالله ﷻ [د ذات یا صفاتو] انکار کوی او [داشان څوك چه] دهغه دفرښتو [انکار کوی] او [داشان څوك چه] دهغه دکتابونو [انکار کوی چه قرآن پاك هم په کښې

راغلو] او [داشان څوك چه] د ورځې د قيامت [انكار كوى] ﴿فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا بَعِيْدًا﴾ نو دغه كس په ګمراهۍ كښې ډير لرې پريوتلو.

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ اٰمَنُوْا﴾ بيشكه كوم خلق چه [رومبے خو] مسلمانان شو بيا كافر شو بيا مسلمانان شو [چه دا خل هم په اسلام باندې كلك پاتې نه شو ورنه رومبے خل مرتد كيدل به يې معاف شوى وو بلكه] ﴿ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا﴾ بيا كافر شو او بيا په كفر كښې په مخه زياتيدل [يعنى ترمرګه پورې په كفر پاخه اوهميشه دپاره پاتې شو] ﴿لَّمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا﴾ الله ﷻ به داسې كسان هيڅرې او نه بخښى اونه به دوى ته [دمنزل مقصود يعنى دجنت] لار ښائى [ځكه چه بخښنے اوجنت دپاره تر مرګه پورې مومن پاتې كيدل شرط دى].

## معارف اومسائل

**ضروري فائدې:** ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا﴾ نه مراد منافقان دى اوځنې وائ چه داآيت ديهوديانوپه شان كښې دې، چه اول ئې ايمان راوړواوبيا دڅخى [كيلكى] په عبادت كولوسره كافران شو، بياپه توبې كولوسره مؤمنان شواوبيا دحضرت عيسى عليه السلام نه په منكريدوسره كافرشو بياوروستو د رسول الله ﷺ دپيغمبرۍ نه په انكاركولوسره ئې په كفركښې نوره هم ترقى اوكړه[روح المعانى][1]

**قوله تعالى:** ﴿لَّمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا﴾ ددې آيت مطلب دادې چه بيابيا كفرته دراګرځيدوپه وجه به ددوئ دحق توفيق اوشوكولې او ختم كړې شول، اوپه آئنده كښې به ورته دتوبې كولو او ايمان راوړلوموقعه دسره نۀ نصيب كيږى، ورنه كوم قانون چه دقرآن كريم اودسنت دقطعى نصونونه ثابت دې هغه دادې چه په سچه توبې كولوسره دهرقسم كافر يامرتد كړې ګناه معاف كيږى، كه داخلق هم توبه اوكړى نودمعافۍ قانون خلاص دې۔

بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ　بِاَنَّ　لَهُمْ　عَذَابًا　اَلِيْمَا

ازيرې وركړه منافقانو ته | چې بيشكه دې | دهغوئ دپاره | عذاب | دردناك |

اوښائى | دې منافقانو ته خبروركړه چې د دوئ دپاره دردناک عذاب مقرر دې |

اَلَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ　الْكٰفِرِيْنَ　اَوْلِيَآءَ　مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ　اَيَبْتَغُوْنَ

هغه منافقان چې نيسى | كافران | دوستان | سوا د مومنانو نه | ايا طلبوى دوئ

هغه كسان چې د مسلمانانو نه سوا كافران دوستان جوړوى | ..........ايا دوئ د كافرانو نه

عِنْدَهُمُ　الْعِزَّةَ　فَاِنَّ　الْعِزَّةَ　لِلّٰهِ　جَمِيْعًا　وَقَدْ

ددې كافرانو سره | عزت | نوبيشكه | عزت | خاص الله لره دې | ټول | اوپه تحقيق سره|

عزت غواړى | ..........نوبيشكه هرقسم عزت دالله ﷻ سره دې | او يقينا

نَزَّلَ　عَلَيْكُمْ　فِى الْكِتٰبِ　اَنْ　اِذَا　سَمِعْتُمْ　اٰيٰتِ اللّٰهِ

نازل كړې دې | په تاسو باندې | په دې كتاب كښې | دا حكم | چې كله | واورئ تاسو | آيتونه دالله

الله تعالى په تا باندې كتاب [قرآن] كښې دا حكم نازل كړې دې | چې كله واورئ چې د الله ﷻ آيتونو

---

[1] ) روح المعانى تحت هٰذه لاية: ج ۴، ص ۳۹۹

يُكۡفَرُ بِهَا وَيُسۡتَهۡزَأُ بِهَا فَلَا تَقۡعُدُوا۟ مَعَهُمۡ

چې انکار کولې شي | د هغې نه | اوتوقې کیږي | په هغې پورې | نومهٔ کښینئ تاسو | دهغوئ سره

نه انکار کولې شي |........ او ور پورې توقې کولې شي | ..........نوهغوئ سره مه کینئ

حَتّٰى يَخُوضُوا۟ فِى حَدِيثٍ غَيۡرِهِۦٓ إِنَّكُمۡ

تردې پورې | چې مشغول شي هغوئ | په داسې خبره کښې | چې بدله وي دهغې نه | بیشکه تاسو

ترڅوچې هغوئ په بله خبره کښې مشغول نشي | که تاسو داسې اوکړو | یعنی په قرآن پورې د توقو کولو

إِذًا مِّثۡلُهُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ جَامِعُ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ

په دغه وخت کښې پشان دهغوئ یئ | بیشکه الله | یوځائې جمع کونکې دې | منافقانولره

باوجود هم په هغه مجلس کښې ناست پاتې ئې | نو دهغوئ په شان به شئ | بیشکه الله ﷻ به منافقان

وَٱلۡكَٰفِرِينَ فِى جَهَنَّمَ جَمِيعًا ۝١٤٠ ٱلَّذِينَ يَتَرَبَّصُونَ

او کافرانو لره | په دوزخ کښې | ټول | هغه منافقان | چې انتظار کوي |

اوکافران ټول په دوزخ کښې راجمع کړي | دوئ ستاسو په باره کښې د [په تاسو د بدو] حالاتو انتظار کوي

بِكُمۡ فَإِن كَانَ لَكُمۡ فَتۡحٌ مِّنَ ٱللَّهِ قَالُوٓا۟ أَلَمۡ نَكُن

په باره ستاسو کښې | نوکه چرې وه | تاسولره | فتح | دطرفه دالله نه | نو وائي | آیانهٔ وو مونږ |

..........که تاسو ته الله ﷻ [په دشمن] کامیابي درکړي | نو دوئ به [تاسو] ته وائي چې آیا مونږ

مَّعَكُمۡ وَإِن كَانَ لِلۡكَٰفِرِينَ نَصِيبٌ قَالُوٓا۟ أَلَمۡ نَسۡتَحۡوِذۡ

تاسو سره | اوکه چرې وي | کافرانو لره | څه حصه | نو وایئ | آیا مونږ قادرنهٔ وو په جنګ کولو

تاسو سره ملګري نه وو څه؟ | اوکه کافر غالب شي | نو [هغوی ته] وائي آیا مونږ په تاسو غالب کیدونکي نه وو

عَلَيۡكُمۡ وَنَمۡنَعۡكُم مِّنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۚ فَٱللَّهُ يَحۡكُمُ

ستاسو خلاف | او بیا بچ کړئ مونږ تاسو | دمومنانو نه | نو الله | به فیصله کوي |

اوبیامونږ تاسو دمسلمانانو نه بچ کړئ | او الله ﷻ به د قیامت په ورځ ستاسو په مینځ کښې فیصله کوي

بَيۡنَكُمۡ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِۗ وَلَن يَجۡعَلَ ٱللَّهُ لِلۡكَٰفِرِينَ

په منځ ستاسو کښې | په ورځ دقیامت | اوهرګز نهٔ ده | ګرځولې الله | دپاره دکافرانو |

.......... | اوهیچرې به الله ﷻ کافرانو ته د مسلمانانو په مقابله کښې ..........

عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ سَبِيلًا ۝١٤١

په مومنانو باندې | لاره دغلبې |

کښې غلبه ورنکړي |

**آسان ترجمه قرآن:** منافقانو ته دا خوشخبري ورکړه چه دوی دپاره یو دردناک عذاب تیار دې هغه منافقان چه د مسلمانانو په ځائې کافرو لره دوستان جوړوي آیا دوی د هغوی سره عزت لټوي؟ حال دا چه

عزت ټول په ټوله دالله دي او هغه په کتاب کښې تاسو ته دا حکم نازل کړي دي چه کله تاسو د الله آیتونه واورئ چه دي نه انکار کیږي او دي پسې ټوقې کیږي نو داسې خلقو سره تر هغه وخت پورې مه کیني تر څو چه دوی په بله خبره کښې مشغوله شوي نه وي، ګنې تاسو به هم ددوی پشان شئ یقین وکړئ چه الله کافرو لره او منافقانو ټولو لره په جهنم کښې یوځائ کوونکې دې (اې مسلمانانو !) داهغه خلق دي چه ستاسو (د انجام) انتظار کښې وي نو که تاسو ته د الله د طرف نه فتح ملاؤ شي نو (تاسو ته) وائي چه "آیا مونږ تاسو سره نه وو ؟" او که کافرو لره (فتح) نصیب شي نو (هغوی ته) وائي چه مونږ تاسو په قابو کښې نه وئ راوستي ؟ او آیا (ددې باوجود) مونږ تاسو لره د مسلمانانو نه بچ کړي نه وئ ؟" پس الله به د قیامت په ورځ ستاسو او د هغوي په مینځ کښې فیصله وکړي ،او الله به کافرو لره په مسلمانانو د زورور کیدو لار هر ګز پېري نږدي.

خلاصه تفسیر

﴿بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا﴾ منافقانو ته زیرے واوروئی ددې خبرے چه هغوی دپاره [په آخرت کښې] لویه دردناکه سزا [تجویز کړې شویده] ﴿الَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ دچا چه دا حالت دې چې [عقائد خوئې داهل ایمان نه لرل مګر شان ئې هم داهل ایمان پشان اونه شولرلے چنانچه] کافرانو لره دوستان جوړوی دمسلمانانو په پریښودو سره ﴿اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ﴾ آیا دهغوی خواته [په ورتلو کښې دوی] عزت موندل غواړی نو [ښه پوهه شئ چه] ﴿فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا﴾ عزت خو ټول دالله ﷻ په قبضه کښې دي.

[چا ته ئې چه هغه ورکول غواړی ورکوی ئې که الله ﷻ دوی ته اوهغه خلقو ته عزت ورنکړی دچا خواته په بیا بیا تګ راتګ کولو چه دوی ورسره دوستی کوی نو چرته نه به دوی عزت مند جوړ شی؟] ﴿وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ﴾ او [ائې مسلمانانو تاسو دمنافق پشان کفاروسره خصوصیت مه لرئ خاص کرپه هغه وخت کښې چه هغوی دکفریاتو یادګیرنه کوی.چنانچه ددې مدنی سورت نه مخکښې هم] الله ﷻ تاسو ته دا فرمان [په مکي سورت انعام کښې] رالیږلے دے [چه دهغې حاصل دادې] ﴿اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَاُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖٓ﴾ چه کله [په څه ډله کښې] الهی احکامو سره ټوقے اوکفر کیدل واورئې نودغه خلقو سره مه کښینئ تر څو چه هغوی څه بله خبره شروع نکړی [اودا مضمون ددې آیت ﴿واذا رايت الذين يخوضون الخ﴾ حاصل دې. نو دا ټوقې کوونکی دمکے مکرمے مشرکان وو په مدینه منوره کښې یهودو په ښکاره اومنافقانو یواځے دغریبانانو اوکمزورو مسلمانانو په مخامخ نو څنګه چه هلته دمشرکانو په مجلس کښې کښیناستل په دغسې وخت کښې بندوو دلته دیهودو او منافقانو په دغسې مجلس کښې دکښیناستو نه بندیز اومنع ده. اودا بندیز په دې وجه کوؤ] ﴿اِنَّكُمْ اِذًا مِّثْلُهُمْ﴾ چه په دې حالت کښې به تاسو هم [په ګناه کښې] دهغوی پشان شئ [اګر چه ددواړو په نوعیت کښې به فرق وی چه یوه ګناه دکفر ده اوبله د فاسقئ ده اودا بندیز دکفارو اومنافقانو دواړوو په مجلسونو کښې د کښناستو نه برابر دې. څکه چه علت ئې کفر دخبرو یادګیرنه ده چه هم کفر نه پیدا کیږی اوپه دې کښې دواړه برابر دی نودکفر کښې ورننوتل یعنی دکفر په سزا دجهنم په خشاك جوړیدو کښې به هم دواړه برابر وی څکه] ﴿اِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ

﴿ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْكٰفِرِيْنَ فِيْ جَهَنَّمَ جَمِيْعَا ۙ﴾ يقينی طور الله ﷻ به منافقان او کافران ټول په دوزخ کښې جمع کړي.

[او] ﴿ الَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ ۚ﴾ دغه [منافقان] داسې دی چه په تاسو باندې د پټ اومصيبت پريوتلو په انتظار کښې اوسيږی [يعنی ددې آرزو لری] ﴿ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللّٰهِ ﴾ بيا [ددوی انتظار نه پس] که ستاسو فتح دالله ﷻ له طرفه اوشوه نو [تاسو راځئ اوداسې] ﴿ قَالُوْۤا اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ۖ﴾ خبرے جوړی وی چه آيا مونږ تاسو سره [په جهاد کښې شريك] نه وو [اوکه کافرانو ته [دغلبے] ﴿ وَاِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ ۙ﴾ څه برخه په لاس ورغله [يعنی ناڅاپی غالب راغلل] نو [دهغوی خواته لاړشی اوداسې] خبرے جوړوی ﴿ قَالُوْۤا اَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ﴾ چه آيا مونږ په تاسو باندې غالب کيدلو ته نزدے نه وو [مګر مونږ په قصد سره ستاسو د غالب راوستلو په غرض دمسلمانانو مدداونکړو اوداسې چل مو اوکړو چه دجنګ نقشه بدله شوه] او آيا مونږ [هرکله چه تاسو ماتے خوړوته نزدې وئ] تاسو لره دمسلمانانو نه اونه ساتلئ [په دې سے شان چه دهغوی امداد مو اونکړو اوپه چل ول [چم چم] سره مودجنګ مخه بل خوا واړوله مطلب دا ووچه تاسو زمونږ ښيګړه او احسان اومنئ او څه چه تاسو ته په لاس درغلی دی مونږ ته هم دهغې نه څه برخه راکړئی غرض دا چه دواړه غاړې اوس وهل غواړی] نو [اګر چه دوی په دنيا کښې داسلام ښکاره کولو په برکت سره دمسلمانانو پشان ژوند تيروی ليکن] ﴿ فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ﴾ الله ﷻ به ستاسو اوددوی [ترمينځه] په قيامت کښې [عملی] فيصله کوی ﴿ وَلَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا ۠﴾ او [پدغه فيصله کښې به] هيچرې الله ﷻ کافرانو لره دمسلمانانوپه مقابله کښې غالب نکړی [بلکه کفار به دمجرمانوپه حيثيت دوزخ ته ځی اومسلمانان به داهل حق ثابتيدو په وجه جنت ته ځی اوعملی فيصله هم داده].

## معارف اومسائل

په ړومبی آيت کښې، مُنافقانودپاره، دَدردناک عذاب خبرورکړې شويدې، داسې غمناک خبرته زيرې ونيل دې اړخ ته اشاره د چه هرانسان په خپل راتلونکی ژوند کښې دزيری آوريدوپه انتظار کښې وی، خوهرکله چه مُنافقانولره، دَدې نه سوا، بل هيڅ خبره آوريدودپاره نشته، ځکه ئې هم دې ته دزيری خبراوفرمائيلو-

**عزت يواځې دالله تعالی نه غوښتل پکاردی:** په دويم آيت کښې کفارواومشرکانوسره دَدوستانه تعلقاتو ساتلواوورسره دَخوږ پوست اوسيدونه منع راغلې ده اوداسې کوونکو دَپاره درکه ذکر شويده اوورسره ورسره په دې مرض کښې دَاخته کيدواصل منشا اوسبب ئې بيان کړاووې ښودل چه داکارعبث اوبيهوده دې لکه فرمای: ﴿ اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ۠﴾ يعنی مشرکينو کفاروسره دَدوستانه تعلقاتوساتلواوورسره دَراشه درشه کولوغرض، عموماً داوی چه دَدوئ ظاهری عزت، قوت اوډلې نه دَاثرقبلولوپه وجه، داخيال کولې شی چه دوئ سره دوستی اوساتلې شی، نومونږ به هم دَدوئ نه عزت اوقوت بيا پيدا کړو، الله تعالی دَدې بيهوده خيال حقيقت داسې په ډاګه کړوچه تاسودَهغه چاپه ذريعه عزت موندل غواړئ چالره چه پخپله هم عزت نشته، هغه عزت چه معنی ئې قوت اوغلبه ده، صرف دَالله تعالی دَپاره مخصوص دې اوپه مخلوق کښې چه څوک هم غلبه اوقوت بيا پيدا کړی هغه ټولـه دَالله تعالی ورکړه وی، نوداڅومره بې

عقلي شوه چه عزت حاصلولو دپاره، داَصل عزت مالک او عزت ورکوونکي خو ناراض کړې شي او دَهغه د دشمنانو په ذریعه دعزت حاصلولو کوشش او کړې شي-

هم دا مضمون په سورت منافقون کښې سره دزیاتوالی داشان راغلې دې،

﴿وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ عزت خو یواځې الله تعالی لره دې او دَهغه رسول الله ﷺ دپاره او دَمسلمانانو دپاره لیکن منافقان داګڼر [راز] نه پیژني-

په دې کښې الله تعالی سره، دَرسول الله او دَمؤمنانو په زیاتولو سره دا هم اوښودلې شو چه دَعزت اصل مالک یواځې الله تعالی دې چه هغه او غواړي نو چاته دعزت څه برخه ورکولې شي، هر کله چه دَالله تعالی رسول او په دوئ باندې ایمان راوړونکی دَالله تعالی په نزد محبوب او مقبول دی، ځکه ورته عزت او غلبه ورکولې شي، دکفارو او مشرکانو، پخپله هم عزت په برخه نۀ دې، نو ددوئ په تعلق سره، بل چاته به څه عزت حاصل شی؟ هم ددې کبله حضرت عمر ﷺ فرمائیلی دی:

﴿من اعتز بالعبید اذله الله﴾ (۱) څوک چه دَمخلوقاتو او بندګانو په ذریعه، عزت حاصلول غواړي نو الله یې ذلیله کوی-

دحاکم په مستدرک کښې دی چه حضرت فاروق اعظم ﷺ دَشام یو عامل [ګورنر] ته او فرمائیل:

[کنتم اقل الناس واذل الناس فکثرکم بالاسلام وکنتم اذل الناس فاعزکم الله بالاسلام مهما تطلبوا العزة بغیر الله یذلکم [مستدرك] (۲) [اې اباعبیده] تاسو په شمیر کښې دَتولو نه کم او دَتولو نه زیات کمزوري وئ تاسو ته خالص دَاسلام په وجه عزت او دبدبه درکړې شویده نو ښه پوهـ شئ که تاسو دَاسلام نه سوا دَ بل چا په ذریعه عزت حاصلول غواړئ نو الله تعالی به تاسو لره ذلیله کړي-

ابو بکر جصاص، په احکام القرآن کښې فرمائیلی دی چه دذکر شوی آیت نه مراد دادې چه د کفارو او بدکارو سره دَدوستئ کولو په ذریعه عزت مۀ لټوئ، البته دَمسلمانانو په ذریعه ئې حاصلولو نه منع نۀ ده راغلې، ولې چه دَسورت منافقون دې آیت داخبره په ډاګه کړې ده چه الله تعالی خپل رسول او مؤمنانو ته عزت وربخښلې دې [جصاص] (۳)-

دلته که دَعزت نه مراد همیشه قایم او باقي پاتې کیدونکې دآخرت عزت وی نو بیا خو داخبره په ډاګه ده چه په دنیا کښې دَالله تعالی، دَرسول او مؤمنانو دې سره مخصوص کیدل واضح دی، ولې چه دآخرت عزت، چاکافر او مشرک ته بیخی نشی حاصلیدې او که دې نه مراد دَدنیا عزت او غستې شي نو دَعارضي دور او ناځاپي راتلونکو پیښونه سوا، دَانجام په لحاظ سره په آخر کښې دغه عزت او غلبه موندل یواځې دَاسلام او مسلمانانو حق دې، تر څو چه مسلمان په صحیح ډول مسلمان پاتې کیږی، نو دنیا په غریدلو ستر ګو دا اولیدل او بیا په آخره زمانه کښې هر کله چه د حضرت عیسی ﷺ په امامت او قیادت کښې مسلمانان په صحیح اسلام باندې قایم شي نو بیا به غلبه هم دَدوئ وی، په درمیانه عارضی دور کښې هر کله چه دوئ دَایمان کمزوري او په ګناهونو کښې دَاخته کیدو په وجه کمزوري ښکاری نو داور سره بې جوړه او بې سمونه نۀ دی-

---

(۱) أحكام القرآن للجصاص، سورة النساء، باب استتابة المرتد: ج ۵، ص ۲۳

(۲) مستدرک للحاکم، کتاب معرفة الصحابة رضی الله عنهم، باب ومن مناقب أمير المؤمنين عمر بن الخطاب رضی الله عنه رقم الحديث: ۴۴۵۵

(۳) أحكام القرآن للجصاص، سورة النساء، باب استتابة المرتد: ج ۵، ص ۲۳

آيت ﴿قَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ﴾ كښې اوقرآن كريم كښې دَسُورهٔ انعام دَيويـل داسې آيت په حوالې وركولوسره [چه دَهجرت نه وړاندې په مكه مكرمه كښې نازل شويدې] دابنودلې شويدى چه مونږ خودَانسانى اصلاح دَپاره هم دَرومبې نه داحكم ليږلې وو چه دكفاروافاجرانو په مجلس كښې هم مهٔ كښينئ اوتعجب دادې چه داغافل خلق دَدې نه هم په مخه ورتيرشول چه دوئ سره ئې دوستې كول شروع كړل اودوئ لره ئې دَعزت اوقوت مالكان اوګنړل-

دَسُورت نساء دَذكرشوى آيت اودَسُورت انعام دَهغه آيت، چه حواله ئې په سُورت نساء كښې وركړې شويده، مشترک مفهوم دادې چه كه په يومجلس كښې څه خلق دَالله تعالى دَآيتونوانكار، ياپه هغې پورې خنداكوى نوترڅوچه هغوئ په دې بيهوده شُغل كښې اخته وى دَهغوئ په مجلس كښې كښيناستل اوپكښې شريكيدل هم حرام دى، بيادَسُورتِ انعام، دَآيت په الفاظوكښې څه تعميم اوزيات تفصيل دې ولې چه دَهغې الفاظ دادى:

﴿وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيٰتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتّٰى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ ۚ وَإِمَّا يُنْسِيَنَّكَ الشَّيْطٰنُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِينَ﴾ كله چه تاسواوګورئ هغه خلق چه جګړه كوى زمونږ په آيتونوكښې نوهغوئ نه ډډه كوئ تردې چه هغوئ مشغول شى په بل څه خبره كښې اوكه هيركړى تاسونه شيطان نومهٔ كښينئ دَيادېدونه پس ظالمانوسره

په دې كښې دَالله تعالى په آيتونوكښې جګړه كول ذكرشويدى چه كُفراوتوقې كول هم پكښې داخل دى اودَآيتونوپه هغه معنوكښې بدلون راوستل چه دَرسول الله ﷺ اوصحابه كرامو ﷺ دَتفسير نه يادَاجماعِ اُمت نه خلاف وى، داهم پكښې شامل دى، چنانچه دَحضرت عبدالله بن عباس نه دَضحاک په روايت منقول دى چه دَدې آيت په مفهوم كښې هغوئ خلق هم داخل دى چه دَقرآن كريم غلط تفسيركوى، دې كښې بدلُون راولى، يابدعتونه ترِ راوُباسى دَهغوئ الفاظ دادى:

﴿دخل فى هذه الاية كل محدث فى الدين وكل مبتدع الى يوم القيامة [مظهرى ص/ ۲۶۳ ، ج/ ۲]﴾

**په خپلې رائې سره دَتفسيركوونكوپه مجلس كښې شريكيدل ناروادى:** دې نه معلومه شوه چه څوک دَقرآن كريم په درس ياتفسير كښې دَپخوانوبزرګانو [سلفو صالحينو] دَتفسير پابندنهٔ وى، بلكه دَهغوئ نه خلاف معنې بيانوى لكه بريليان ، شيعه ګان ، قاديانان ، پرويزيان او نور ملحدان شو نودَهغوئ په درس اوتفسيركښې شريكيدل په نص دَقرآن كريم سره ناجائزاودَثواب په ځائې دګناه كاردې-په تفسيربحرمحيط كښې ابوحيان فرمائيلى دى چه ددې آيتونونه داهم معلومه شوه چه كومه خبره په ژبه وئيل ګناه وى هغه په اختيارسره، په غوږونوآوريدل هم ګناه وى اوپه دې ئې داشعرنقل كړيدې :

وسمعک صن عن سماع القبيح     كصون اللسان عن النطق به

اخپل غوږونه دَناكاره خبرواَوريدونه بچ كوئ څنګه چه ژبه دَناكاره خبرووئيلونه ساتئ [۱]

[۱]) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۲۹۷

دَسُورت انعام په آیت کښې دویمه خبره دا زیاتی ده چه که څه وخت، په هیره یا بې خبرئ سره څوک بندَه په داسې مجلس کښې شریک شی او بیائې خیال په ځائې شو نو سمدستی دَهغه مجلس نه وتل پکار دی او دغلته ناست [یا موجود او شریک] دَ نهٔ پاتې کیږی-

دَسُورت نساء او سُورت انعام په دواړو آیتونو کښې دا فرمائیلې شویدی چه ترڅو، دغه خلق په دغه بیهوده خبرو کښې اختهٔ وی تر هغې پورې دَهغوئ په مجلس کښې کیناستل یا ناست پاتې کیدل حرام دی. دَدې مسئلې بل اړخ دادې چه هر کله دغه خلق، دغه قسم خبرې ختمې کړی او نورې خبرې شروع کړی نو دغه وخت ورسره کښیناستل او شریکیدل په مجلس کښې روادی او که نه جواب دادې چه قرآن کریم دا په ډاګه نهٔ دی بیان کړی، ځکه پکښې دَعلماؤ اختلاف دې، ځنې وائی چه دَدغې بندیز لګولو علت او باعث دَالله تعالی دَآیتونو سپکاوې کول او دَهغې بدلول وو- هر کله چه دا ختم شو نو دغه بندیز هم ختم شو-لهذا چه نورې خبرې شروع کړی نو بیا په مجلس کښې ئې کیناستل ګناه نهٔ ده، او ځنو علماؤ فرمائیلی دی چه دَداسې کافرانو، فاجرانو او ظالمانو په مجلس کښې بیا هم کیناستل درست نهٔ دی-دَحضرت حسن بصری هم دا ارشاد دې هغوئ دَسُورة انعام دَدې جُملې څخه استدلال کړې دې: ﴿فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ۝﴾ یعنی [را یادیدلو نه پس دَ ظالمانو سره مه کښینه او ښکاره خبره ده چې ظالم دَدغه خبرې ختمولو نه پس هم ظالم دې، په دې وجه دَدوئ سره دَمجلس او ناستې پاستې کولو نه بیا هم ځان ساتل لازمی دی [جصاص] ([1])

او تفسیر مظهری کښې قاضی صاحب دَدې دواړو تر منځه جوړښت په دې شان راوستې دې چه هر کله دکُفر، تو قو او په قرآن کریم کښې دَبدلون راوستو خبرې اترې که دغه خلق بندې کړی او نورې خبرې شروع کړی نو دغه وخت هم، بې ضرورته خو، دَدوئ په مجلس کښې شریکیدل حرام دی او که څه شرعی یا طبعی ضرورت را پیښ شی نو بیا روادی ([2])-

**دبدانو خلقو دَمجلس نه یوازې پاتې کیدل ضروره دی:** امام ابوبکر جصاص رحمه الله په احکام القرآن کښې فرمائیلی دی چه دَدې آیت نه ثابت شو چه په کوم مجلس کښې چه څهٔ ګناه کیږی نو دَ، نهی عن المنکر، دَضابطې له مخه مسلمان لره لازم دی چه دَطاقت لرلو په صورت کښې ئې په زور بندیز اوکړی او دا نشی کولې بیا دې به خله بند کړی ورنه په دغې ګناه باندې دَناراضګئ ښکاره کولو دَپاره دَدَغه ګناه نه پورته شی چه دَ، نهی عن المنکر، دَټولو نه کمتر صورت دې ([3])، هم دغه وجه ده چه هر کله حضرت عمر بن عبدالعزیز بعضې خلق دَدې جُرم په وجه ګرفتار کړل چه شراب ئې څکلی وو او یو داسې سړی ته ئې دوئ سره یو ځائې سزاور کړه چه شراب ئې اګرچه څکلی نهٔ وو ولې چه دَهغه روژه وه مګر دغه مجلس کښې ورسره ناست وو [بحر محیط] ([4])-

---

[1]) أحكام القرآن للجصاص، سورة النساء، باب استتابة المرتد: ج۵، ص۱۳
[2]) تفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج۲، ص۲۴۳
[3]) احكام القرآن للجصاص بحواله بالا۔
[4]) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج۳، ص۲۲۱

تفسیر ابن کثیر په دې موقعه دا حدیث شریف نقل کړیدې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی:
[من كان يؤمن بالله واليوم الاخر فلا يجلس على مائدة يدار عليها الخمر] [ابن کثیر] [۱] څوک چه په الله تعالی او په ورځ دآخرت ایمان لری نو هغه لره پکاردی چه په داسې دسترخوان اوخوانچه او دعوت کښې شامل نشی چه دشرابو دورپکښې چلیږی۔

پورته ذکرشوی دَدغې مجلس نه دَپورته کیدو اودَ دغه مجلس دَپریښودو دَپاره شرط دادې چه دَشریعت له مخې، دَدغې مجلس په پریښودو کښې څه ګناه نه لازمیږی، مثلاً یوجُماعت کښې دجماعت مونځ کښې شریکیدل ضروری دی هرکله چه دغه قسم مجلس شروع شي نو دغه دِ په دې شان نه دې پریږدی چه دَجمع مونځ ترِ پاتې شی بلکه په دغسې موقعه وردپاره په زړهٔ سره ناراضه کیدل کافی دی، دغه شان که بل یوضروری شرعی کارپه دې سره پاتې کیږی نودغه مجلس اوځائې دِځکه نهٔ پریږدی چه دګناه نه دَځان خلاصولو په وجه تربله ګناه لازمیږی، په دې وجه حضرت حسنِ بصری فرمائیلی دی چه دَخلقو دګناهونوکولوله کبله که مونږ خپل یوضروری کارپریږدونو فاسقانو، فاجرانو دَپاره به دَسنت اوشریعت ختمولو دَپاره لارهواره کړو۔

خلاصه دا چې د اهل باطلو سره دمجالست او ناستې څو صورتونه دی .اول داچه ورسره کښیناستونکې هم په دغه کفریاتو راضی وی نو داکُفردې۔دویم داچه دغه شاملیدونکې فاسق ګڼی کله چه دَدغه مجلس په پریښودو کښې څه عُذرنهٔ لری، اګرچه دغه کُفریات په زړهٔ سره بداوناکاره ګڼږی، دریم داچه دغه مجلس سره ئې څه دُنیوی ضرورت تړلې وی نوداسې صورت کښې شاملیدل مباح دی څلورم داچه داسې مجلس کښې شاملیدل عبادت دې چه دَاحکامو دَتبلیغ دَپاره هلته ورغلې وی۔پنځم داچه دَمجبورۍ اوبې اختیارۍ په وجه پکښې شامل شی نودې به معذورګڼلې شی۔

**په کفرباندِ راضی کیدل کُفردې**: په آخردآیت کښې ئې ارشاداوفرمائیلو ﴿إِنَّكُمْ إِذًا مِثْلُهُمْ﴾ یعنی که تاسو به بې پروایۍ یاپه ښهٔ زړهٔ سره په دغسې مجلس کښې شامل شوئ چه هغې کښې دَالله تعالی دآیتونونه انکار، وریورې توقې کولې شی یاپکښې بدلون راوستې شی نوتاسوهم دَهغوئ په ګناهونوکښې شریک شوئ اوهم دَهغوئ پشان شوئ، مطلب داچه که تاسودَوئ کفریاتولره خوښوئ اوپه هغې راضی يئ نوپه حقیقت کښې تاسوهم کافران څکه يئ چه کُفرخوښول هم کُفردې ورنه په بل صورت کښې دَوئ پشان دکیدلو مطلب دادې چه څنګه دوئ اسلام اومسلمانانوته نقصان ورکولوپسې دی اودَین دَدروغژن ثابتولو کوشش کوی نوتاسوهم ورسره دَخپلو شریکیدوپه وجه دَوئ امداد کوئ اومعاذالله هم دَدوئ پشان شوئ۔

---

[۱] وجامع الترمذی، أبواب الاستیذان والأدب، باب دخول الحمام: ج ۲، ص ۱۰۷

إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَهُوَ

| بیشکه منافقان | دهوکه کوی | دالله سره | حالانکه هغه

| دامنافقان الله ﷻ سره دهوکه کوی | [حال دا چې په حقیقت کښې] دوی لره

خَادِعُهُمْ ۚ وَإِذَا قَامُوْٓا إِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰى ۙ

په دهوکه کښې اچونکې دې دوی لره | اوهرکله چې | اودریږی دوی | مانځه ته | نو اودریږی | دوی سست (۱)

الله په دهوکه کښې غورزولی دی | ............ اوکله چې مونځ ته اودریږی نو سست اودریږی

يُرَآءُوْنَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ إِلَّا قَلِيْلًا ۞ مُّذَبْذَبِيْنَ

خودنه کوی دوی | خلقو ته | اونه یادوی دوی | الله لره | مګر | الږ | حال دا چې حیران پریشان دی

خلقو ته خان ښائی | اوډیر کم خلق الله یادوی | دوی دکفر اواسلام په مینځ کښې دی

بَيْنَ ذٰلِكَ ۖ لَآ إِلٰى هٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلٰى هٰٓؤُلَآءِ ۚ وَمَنْ

په منځ ددغه کښې | نه دی د دوی [مسلمانو] سره | اونه دی د دوی [کافرانو] سره | اوهغه څوک |

...... نه سم یوخوا دی اونه بل خوا [نه مسلمانان دی اونه کافران] | اوڅوک چې

يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ۞ يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ

چې بې لارې کړی هغه لره | الله | نو ته هرګز نه شې موندلې | دپاره دهغه | لاره | اې هغه کسانو |

الله ﷻ بې لارې کړی | د هغوئ دپاره به ته هیڅ کله سمه لاره اونه مومې | ...............انې

---

(۱) **د منافقانو د مونځ کیفیت**:- بیا ددې منافقانو د بدذوقئ بیان کیږی چه د مونځ په شان بهترین عبادت کښې هم ددوی نصیب نشته دې.ځکه چه دوی کښې نیك نیتی،حسن عمل،حقیقی ایمان،او ریښتونې یقین نشته.حضرت ابن عباس رضي الله عنه سترې شوی بدن مونځ ادا کیدو ته مکروه ونیل او هغوئ به فرمانیل چه پکار دی چه مونځ ښه په ذوق و شوق ، او رضا او خوشحالئ او پوره رغبت ،او انتهائی توجو سره مونځ ته اودریږی او دا یقین دې ساتی چه دده آواز الله ﷻ آوری.دده طلب پوره کولو ته تیار دې.دا خو شو د هغه منافقانو ظاهری حالت چه سترې او تنګ زړه سره هسې وخت تیرولو دپاره مونځ ته راځی .خو د دوی اندرونی حالت دادې چه د اخلاص نه په میلونو لرې دی.د دوی رب سره هیڅ تعلق نشته.ددې شهرت دپاره چه دوی ته خلق مونځګزار اووائی او د دوی ایمان ظاهرشی ، دوی مونځ په دې وجه کوی .دې خلقوته به څه ملاؤ شی چه ددوی په زړونوکښې د بتانو مینه ده ؟ همدا وجه ده چه په هغه مونځونوکښې چې په کومو کښې به دوئ یوبل کم لیدل دوئ به هغې کښې غیر حاضر وو.لکه د سحر او ماسختن مونځ کښې.

**په منافقانو باندې ګران مونځ** :- بخاری او مسلم کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمانی چه ټولو نه زیات ګران مونځ په منافقانو دماسختن او سحر دې.که دا خلق ﷺ د زړه نه ددې مونځونو د فضیلت قائل وې نو ډیر لرې نه به راتلل او ضرور به راتلل.ځما خو اراده کیږی چه تکبیر اووایم او بل څوك په خپل ځائې امامت دپاره مقررکړم او مونځ پرې شروع کړم اوڅه خلقو نه لرګی واخلم اود هغه خلقو کورونو ته لاړشم چه کوم خلق جمع کښې نه شاملیږی او لرګی ددې خلقو د کورونو نه ګیر چاپیره واچوم او حکم اوکړم چه د دوی کورونه اوسوزونې.( صحیح بخاری کتاب الأذان)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اٰمَنُوْا | لَا تَتَّخِذُوا | الْكٰفِرِيْنَ | اَوْلِيَآءَ | مِنْ دُوْنِ | |
| چې ايمان موراوړي دي | مه نيسئ | كافران | دوستان | په ځاني | |
| دايمان خاوندانو تاسود مسلمانانو نه سوا د كافرو سره دوستانه مه كوئ | | | | | |
| الْمُؤْمِنِيْنَ ط | اَتُرِيْدُوْنَ | اَنْ تَجْعَلُوْا | لِلّٰهِ | عَلَيْكُمْ | سُلْطٰنًا |
| د مومنانو | آيا تاسو غواړئ | دا خبره چې اوګرخوئ | الله لره | په خان خپل | حجت |
| بلکه صرف مسلمانان سره دوستي كوئ! آيا تاسودا غواړئ چي دخپل خان خلاف د الله ﷻ | | | | | |
| مُّبِيْنًا ﴿۱۴۴﴾ | | | | | |
| ښکاره | | | | | |
| ښکاره دليل قائم كړئ | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** دا منافقان دالله سره دهوكه كوي حال دا چه الله دوی په دهوكه كښې اچولي دي اوكله چه دا خلق مونځ ته اودريږي نو سست پست اودريږي، خلقو ته ځان ښائي او الله لره ډير لږ يادوي دوی د كفر او د ايمان په مينځ كښې پريشانه دي، نه پوره طريقې سره مسلمانانو سره دي او نه دي (كافرو) سره — او څوك چه الله ګمراه كړي نو تاته به د هغه په هدايت راوستو څه لار ملاوه نه شي اې د ايمان خاوندانو ! د مسلمانانو نه علاوه كافرو لره دوستان مه جوړوئ، آيا تاسو دا غواړئ چه الله دپاره خپلو ځانونو باندې (يعني د عذاب مستحق كيدو) يو صفا وجه پيدا كړئ؟

**خلاصه تفسير**

﴿ إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ ﴾ بيشكه منافقان خلق [دايمان په ښكاره كولوكښې] دهوكي كوی الله ﷻ سره [اګر چه ددوی دهوكي دالله ﷻ نه پټې نشي پاتې كيدلې اونه دوی په خپل اعتقاد كښې الله ﷻ سره دهوكه كول غواړي خوكار ئې داسې دې چې ددوی اعتقاد هم دغسې ښكاري] ﴿ وَهُوَ خَادِعُهُمْ ﴾ حالانكه الله ﷻ ددې دهوكو سزا دوی ته وركونكې دې او [هركله چه په زړونو كښې ئې ايمان دې نه او ددغې وجې مونځ لره فرض نه ګنړي اونه په دې كښې دثواب عقيده لري ځكه] ﴿ وَإِذَا قَامُوْٓا إِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰى ﴾ كله چه مونځ ته ورپاسي نو ډير په سستئ سره ورپاسي [ولې چه چستي خوپه اعتقاد او اميد سره پيداكيږي] ﴿ يُرَآءُوْنَ النَّاسَ ﴾ صرف خلقوته [خپلو ځانونو لره مونځ ګذار] ښكاره كوی [چه مسلمانان ئې اوګنړي] ﴿ وَلَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ إِلَّا قَلِيْلًا ﴾ او [هركله چه تش په نوم مونځ كوی ځكه پدغې مونځ كښې] دالله ﷻ ذكر [په ژبه] نه كوی مګر ډير زيات لږ [يعني صرف دمونځ شكل جوړوی چه په نوم مونځ وی او عجيبه نه ده چه صرف كښيناستل پاسيدل دی ولې چه د قرات په زوره وئيلو ضرورت خو په بعضې مونځونو كښې امام ته وی او پخپله خو دوی امامان جوړيدے نشی كه څوك مقتدی مونځ كښې څه وائی بلكه صرف شونډے خوځوی نو څوك ترې څه خبريدی‌شي.داسې بده عقيده خلق كه ژبې هم نه خوځوی نوڅه لرے خبرنه ده].

﴿ مُذَبْذَبِيْنَ بَيْنَ ذٰلِكَ ﴾ زړونده اوسی د دواړو [كفارواو مومنانو] ترمينځه نه [پوره] ﴿ لَآ إِلٰى هٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلٰى هٰٓؤُلَآءِ ﴾ دے خوا نه [پوره] اخوا [ولې چه په ښكاره خومومنان دكفارو نه بيل او په باطن

کنبې کافران د مومنانو نه بیل دی] ﴿ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللهُ ﴾ اوچالره چه الله ﷻ په ګمراهئ کنبې واچوی [الکه چه دخپل عادت په جوړ هغه فعل لره پیدا کوی څوک ئے چه قصد اوکړی] ﴿ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ۝ ﴾ دداسې کس [دمومن کیدو] دپاره به هیڅ لار بیا نه مومې [مطلب داچه ددې منافقانو په لار باندې د راتلو امید مه لرئ په دې کنبې دمنافقانو بد بیانول دی او مومنانو ته تسلی ورکول دی چه ددوی په ورانکار یودې څه غم نه کوی] ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ ائې دایمان خاوندانو تاسو د مومنانو په پریښودو سره کافرانو لره [که منافقان وی اوکه په ښکاره کافران وی] دوستان مه جوړوئی [څنګه چه دمنافقانو خو ئې دې ولې چه تاسوته ددوی دکفراودښمنی حالت معلوم شو] ﴿ اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ۝ ﴾ آیا تاسو [دوی سره دوستی کولو له وجې] داسې غواړئې چه په خپلو خانونو باندې دمجرم کیدو اود عذاب دحقدار کیدو دپاره] دالله ﷻ حجت په ډاګه قائم کړئې [په ډاګه حجت دادې چه هرکله مونږ منع کړی وئ نو بیا تاسو ولې هغسې اوکړل].

## معارف اومسائل

**مسئله**: ﴿قَامُوْا كُسَالٰى﴾ کنبې داعتقادی سستئ بدی بیان شویده، صحیح اعتقادسره بدنی سستی ددې نه خارج ده، که داسې سستی دخوب دغلبې یادرنځ بیماری په وجه وی نو دمعذوره کیدو په وجه ملامتیاپرهم نشته اوکه دغسې څه عذرئې نه وی نو دملامته کولوجوګه دی- [بیان القرآن][1].

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ | فِى الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ | مِنَ النَّارِ | وَلَنْ |
| بیشکه منافقان به وی | په درجه لاندې کنبې | داور | اوهرګز به |
| دایقین اوساتئ چې منافقان به ددزخ په لاندې درجه کنبې پراته وی | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَجِدَ | لَهُمْ | نَصِيْرًا | اِلَّا الَّذِيْنَ | تَابُوْا | وَاَصْلَحُوْا |
| اونه مومې ته | دپاره دهغوئ | مددګار | مګر هغه کسان | چې توبه اوباسی | اواصلاح اوکړی دعمل خپل |
| اوته به هیڅوک ددوئ مددګار اونه مومې البته څوک چې توبه اوباسی او خپله اصلاح اوکړی | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاعْتَصَمُوْا | بِاللّٰهِ | وَاَخْلَصُوْا | دِيْنَهُمْ | لِلّٰهِ | فَاُولٰٓئِكَ |
| اومنګلی ښخی کړی | په دین دالله | اوخالص کړی | دین خپل | الله لره | نودغه خلق |
| اودالله ﷻ دین مضبوطیاسره اونیسی اوخپل دین خالص دالله دپاره کړی نوغه کسان | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ | وَسَوْفَ | يُؤْتِ | اللّٰهُ | الْمُؤْمِنِيْنَ | اَجْرًا | عَظِيْمًا ۝ |
| مومنانو سره دی | او زر به | ورکړی | الله | مومنانوته | بدله | لویه |
| به مومنانوسره ملګری وی اوزر ده چې مومنانو ته به الله ﷻ ډیرلوئې اجر ورکړی | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا يَفْعَلُ | اللّٰهُ | بِعَذَابِكُمْ | اِنْ شَكَرْتُمْ | وَاٰمَنْتُمْ | وَكَانَ اللّٰهُ | |
| څه کوی | الله | په عذاب ستاسو | که شکراوباسئ تاسو | اوایمان راوړئ | اودې الله | |
| الله ﷻ تاسوته په عذاب درکولو څه کوی اخو که تاسو شکر اوباسئ اوایمان راوړئ اوالله تعالی | | | | | | |

[1]) بیان القرآن تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۴۷

| |
|---|
| شَاكِرًا　عَلِيمًا۝ |
| قدردان　پوهه |
| ډير قدردان او په هرڅه پوهه دي |

**آسان ترجمه قرآن:** يقين وکړئ چه منافقان به د جهنم په لاندې طبقه کښې وي . او د هغوی د پاره به څوک مددګار تا ته ملاو نه شي هغه چه کوم خلق توبه وباسي او خپله اصلاح وکړي . او د الله رسۍ پاندې مضبوطې منګولې ولګوي او خپل دين د الله د پاره خالص کړي نو داسې خلق د مؤمنانو سره دي . او الله به مؤمنانو ته ضرور لوئ اجر ورکړي او که تاسو شکر ګذار جوړ شئ او (صحيح معنو کښې) ايمان راوړئ نو د الله څه کار دې چه تاسو ته عذاب درکوي؟ الله ډير قدردان دې (او) د ټولو د حالاتونه خبردار دې.

**خلاصه تفسير**

﴿ إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ ﴾ بيشکه منافقان به د دوزخ نه په لاندې درجه کښې ځی او [ائې مخاطبه] ﴿وَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ نَصِيْرًا﴾ته به هيچرې ددوی هيڅ مددګار بيا نه مومې [چه دوی لره به ددې سزانه بچ کړی شی] ﴿ إِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا ﴾ ليکن [ددوی بعضې] کوم خلق چه [دمنافقت نه] توبه کړی وی او [مسلمانانوسره ئے چه دضرررسولو سلوك کولو دهغې] ﴿وَأَصْلَحُوْا وَاعْتَصَمُوْا بِاللّٰهِ ﴾ اصلاح اوکړی [يعنی بيا هغسے کارونه نه کوی] او [کافرو سره دپناه اخستلو په غرض چه کومه دوستی کوی هغه پريږدی] په الله تعالی باندې پوره تکيه [اوتوکل] لری ﴿وَأَخْلَصُوْا دِيْنَهُمْ لِلّٰهِ﴾ او[د رياء په پرينبودو سره د] دخپل دين [عملونو] لره خالص دالله تعالی [درضا] دپاره په مخه کوی [غرض دا چه دخپلو عقيدو معاملاتو د باطنی اخلاقو او دخپلو عملونو دټولو درستی اوکړی] ﴿ فَأُولٰٓئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ نودا [توبه کوونکی] خلق به [دغه] مومنانوسره[دجنت په درجاتو کښې] وی [چه د رومبے نه کامل ايمان لری] ﴿ وَسَوْفَ يُؤْتِ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ أَجْرًا عَظِيْمًا۝ ﴾ او [دغه] مومنانو ته به الله ﷻ [په آخرت کښې ] لوئې اجر ورکوی [پس هرکله چه دا خلق به مومنانو سره وی نو دوی ته به هم لوئې اجرملاويږی او ائې منافقانو]﴿ مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمْ﴾ الله ﷻ به تاسو ته په سزا درکولو څه کوی ﴿إِنْ شَكَرْتُمْ وَاٰمَنْتُمْ﴾که تاسو [دهغه دنعمتونو چه په تاسو ئے دی] شکر ګزاری کوئی او [ددغه شکرګزارئ زمونږ خوښه طريقه داده چه تاسو] ايمان راوړئی [يعنی دالله ﷻ هيڅ يوکار بند نه دې پروت چه تاسو ته به په سزا درکولوسره هغه روان شی صرف ستاسو کفر چه دلوئې درجې ناشکری دنعمت ده هغه تاسوته دسزا درکولو سبب ده دکه دا پريږدئی نوبيا سراسر رحمت دې] ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ شَاكِرًا عَلِيْمًا۝﴾ اوالله ﷻ [خو دخدمت] ډير قدر کوونکې [اود خدمتګارئ خلوص وغيره لره] ښه پيژندونکې دې [پس څوک چه فرمانبردار اواخلاص کوونکې پاتې کيږی هغه ته ډير هرڅه ورکوی].

....

## معارف او مسائل

قوله تعالى: ﴿وَأَخْلَصُوا دِينَهُمْ لِلَّهِ﴾ د دې آیت نه معلومه شوه چه د الله تعالی په نزد ، هغه عمل مقبول دې چه د ریاء نه پاک وی او خالص د هغه د ذات د پاره وی ، ولې چه فقهاؤ ﷺ د مُخلص دا معنی بیان کړیده: [الذی یعمل لله لا یحب ان یحمده الناس علیه] بحواله مظهری[1].

مُخلص هغه څوک دې چه نیک عمل، خالص د الله تعالی د پاره کوی او دا نۀ خوښوی چه خلق د هغه د عمل تعریف او کړی.

[الحمد لله ! پنځمه پاره ختمه شوه]

| لَا يُحِبُّ | اللّٰهُ | الْجَهْرَ | بِالسُّوْٓءِ | مِنَ الْقَوْلِ | اِلَّا | مَنْ | ظُلِمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نه خوښوی | الله | اوچت آواز | په بده | خبره | مگر | دهغه چانه | چې ظلم پر شوې وی |
| الله ﷻ نه دا خوښه نه ده چې څوک په بده وینا آواز اوچت کړی | خو په چا چې زیاتې شوې وی | | | | | | |
| وَكَانَ | اللّٰهُ | سَمِيْعًا | عَلِيْمًا ۝ | اِنْ | تُبْدُوْا | خَيْرًا | اَوْ تُخْفُوْهُ |
| اودې | الله | ښۀ اوریدونکې | ښۀ پوهه په پټ او ښکاره | که | تاسو ښکاره کوئ | نیکی | یا پټوئ هغه |
| او الله هر څه آوری په هر څه عالم دې | که تاسو په ښکاره نیکی کوئ | او که په پټه نې کوئ | | | | | |
| اَوْ تَعْفُوْا | عَنْ سُوْٓءٍ | فَاِنَّ اللّٰهَ | كَانَ | عَفُوًّا | قَدِيْرًا ۝ | اِنَّ الَّذِيْنَ | |
| یا عفوه کوئ | دبدئ نه | نو بیشکه چې الله | دې | عفوه کونکې | قدرت لرونکې | بیشکه هغه کسان | |
| یا د خلقو بدی معاف کوئ | نو بیشکه الله ﷻ معاف کونکې په هر څه قادر دې | څوک چې........ | | | | | |
| يَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ | وَرُسُلِهٖ | وَيُرِيْدُوْنَ | اَنْ يُّفَرِّقُوْا | بَيْنَ اللّٰهِ | | | |
| چې کفر کونی د الله | او د رسولانو دهغه | او غواړی | چې بیلتون او کړی | په منځ د الله | | | |
| د الله ﷻ او دهغه د پیغمبرانو نه انکار کوی | ......او دا غواړی چې د الله تعالی او په پیغمبرانو باندې ایمان | | | | | | |
| وَرُسُلِهٖ | وَيَقُوْلُوْنَ | نُؤْمِنُ | بِبَعْضٍ | وَّنَكْفُرُ | | | |
| او د رسولانو دهغه کښې | او وائی | چې مونږ ایمان راوړو | په ځینو | او منکران کیږو | | | |
| راوړو کښې فرق او کړی | او دا وائی چې په بعضو ایمان راوړو او په بعضو نۀ راوړو | | | | | | |
| بِبَعْضٍ | وَّيُرِيْدُوْنَ | اَنْ يَّتَّخِذُوْا | بَيْنَ ذٰلِكَ | سَبِيْلًا ۝ | | | |
| په ځینو | او غواړی هغوئ | چې | او نیسی | په منځ د دې کفر او اسلام کښې | یوه لار [بله] | | |
| .........او دا غواړی چې د کفر او ایمان ترمینځه [بله] لار اختیار کړی | | | | | | | |
| اُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْكٰفِرُوْنَ | حَقًّا | وَاَعْتَدْنَا | لِلْكٰفِرِيْنَ | | |
| دا کسان چې دی | هم دوئ | کافران دی | په حقه سره | او تیار کړې دې مونږه | د پاره د کافرانو | | |
| همدغه خلق یقینی کافران دی | او مونږ د کافرانو د پاره رسوا کونکې عذاب | | | | | | |

[1]) وتفسیر ابن ابی حاتم سورة البقرة، رقم الحدیث: ۳۳

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَذَابًا | مُّهِيْنًا۝ | وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | بِاللّٰهِ | وَرُسُلِهٖ |
| عذاب | رسواکونکي | اوهغه کسان | چې ایمان ئې راوړې دې | په الله | او په رسولانو دهغه |
| تیار کړې دې ا اوچا چې په الله او دهغه په پیغمبرانو باندې ایمان راوړو | | | | | |
| وَلَمْ يُفَرِّقُوْا | بَيْنَ اَحَدٍ | مِّنْهُمْ | اُولٰٓئِكَ | سَوْفَ | يُؤْتِيْهِمْ |
| اواونه کړو فرق هغوئ | په منځ دیو کښې | ددوئ نه | نودغه کسان چې دی | زر به | اورکړی الله هغوئ ته |
| او د هغوی په مینځ کښې هیڅ فرق نه کوی ا نو داسې خلقو ته به الله ﷻ دهغوئ | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اُجُوْرَهُمْ | وَكَانَ | اللّٰهُ | غَفُوْرًا | رَّحِيْمًا۝ |
| اجرونه دهغوئ | اودې | الله | معاف کونکې | رحم کونکې |
| اجرونه ورکړی ا اوالله ﷻ معاف کونکې رحم کونکې دې ا | | | | |

الله دا نه خوښوي چه د چا بدي په ژبه ښکاره کړي شي ، هغه که چا باندې ظلم وشي ، او الله هر څه آوري او په هر څه پوهیږي ، که چرې تاسو څه نیك کار په ښکاره کوئ یا په پټه ، یا دچا بدي معاف کړئ نو (دا غوره ده ځکه چه) الله ډیر معاف کوونکې دې (اګرچه په سزا ورکولو) پوره قدرت لري . کوم خلق چه د الله نه او د رسولانو نه انکار کوي او د الله او د رسولانو په مینځ کښې فرق کول غواړي او وائي چه څه ( رسولانو باندې ) مونږ ایمان راوړو او د څه نه انکار کوو او (دغه شان) دا غواړي چه د (کفر او ایمان په مینځ کښې) یوه د منځ لار راوباسي . داسې خلق په صحیح معنو کښې کافر دي او کافرو د پاره مونږ د ذلت عذاب تیار کړي دې او کوم خلق چه په الله او د هغه په رسولانو باندې ایمان راوړي ، او ددوی په مینځ کښې فرق نه کوي ، نو داسې خلقو لره به الله اجر ورکوي او الله ډیر معاف کوونکې دې ، ډیر رحم کوونکې دې .

## خلاصه تفسیر

﴿ لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ ﴾ الله ﷻ بده خبره په ژبه راوړل [هیچا دپاره] نه خوښوی سوا د مظلوم نه [چه دخپل مظلومیت په باره کښې څه ګیلې شکایتونه کوی نو هغه ګناه نه ده] ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا عَلِيْمًا۝ ﴾ او الله ﷻ [دمظلوم خبره] ښه آوری [او دظالم دظلم حالت] ښه پیژنی [په دې کښې دے خبرې ته اشاره ده چه مظلوم ته هم د واقعې نه دخلاف خبرې کولو اجازت نشته اګر که داسې قسم شکایت کول رواخو دی مګر] ﴿ اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ ﴾ که نیك کار په ښکاره کونی یا ئې په پټه کونی [چه په کښې معاف کول هم راځي] یا [خاصکر دچا] څه بدی معاف کړنی نو [زیات غوره دی ځکه چه] ﴿ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا۝ ﴾ الله ﷻ [هم] لوئې معاف کوونکې دے [سره ددې چه] دپوره قدرت خاوند دے [چه دخپلو مجرمانو نه په هر شان سره بدله اخستې شی مګر بیا هم اکثر معافی ورکوی نوکه تاسو هم دغسې کونی نودابه دالله داخلاقو تابعداری کول وی اوبله دا چه الله ﷻ د طرفه به هم تاسو سره دداسې معاملې کولو امید وی] ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ﴾ کوم خلق چه کفر کوی الله سره [لکه چه د دوی دعقیدې اود راتلونکې وینا نه صفا لازمیږی] او [کفرکوی] دهغه درسولانو سره [یعنی بعضو سره خوپه ډاګه ځکه چه دوی دحضرت عیسی علیه السلام اودرسول ﷺ دپیغمبرکیدونه منکر وو اود ټولو سره لازمی لکه چه وړاندې بیان راروان دې ا ﴿ وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّفَرِّقُوْا

بَيْنَ اللهِ وَرُسُلِهٖ ﴾ اوداسې غواړي چه د الله ﷻ او دهغه د رسولانو ترمينځه [دايمان راوړلو د وجې] فرق اولري او [ دې خپله عقيده لره په ژبه هم] ﴿ وَيَقُوْلُوْنَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَّنَكْفُرُ بِبَعْضٍ ﴾ وائي چه مونږ [دپيغمبرانو نه] په بعضو خو ايمان راوړو اود بعضو نه منكر يو [ددې وينا كول اوددې عقيدې لرلو په وجه الله ﷻ سره هم كفر كول لازم شو او ټولو رسولانو سره هم ولې چه الله ﷻ اوهر رسول ﷺ ټولو رسولانو ته رسولان وئيلي دي هركله چه دبعضو نه انكار اوشو نو الله ﷻ او نورو رسولانو لره دروغ اوګڼړلے شو چه د تصديق اوايمان خلاف خبره ده] ﴿ وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَّخِذُوْا بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا ﴾ اوداسې غواړي چه مينځ ترمينځه يوه لاره تجويز كړي [راوباسی لكه دمسلمانانو پشان ئے په ټولو ايمان هم نه وی او نه دټولو نه لكه دمشركانو انكار كوی نو] ﴿ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ حَقًّا ﴾ داسې خلق يقيني طورسره كافر دی [ولې چه په بعضو باندې كفر كول هم كفر دې او دايمان اوكفر ترمينځه هيڅ واسطه نشته لهذا هركله چه په ټولو ايمان نشو نوكفر شو] ﴿ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴾ اوكافرانو لره مونږ سپكوونكې سزا تياره ايښے ده [چه دغه به دوی دپاره هم وی] ﴿ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللهِ وَرُسُلِهٖ وَلَمْ يُفَرِّقُوْا بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ﴾ او څوك چه په الله ﷻ ايمان لری دهغه په ټولو رسولانو هم او د دوی نه په هيچا كښې [د ﴿ دايمان راوړلو په اعتبار سره] فرق نه كوی ﴿ اُولٰٓئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ ﴾ دغې خلقو ته به الله ﷻ ضرور د دوی ثواب وركوی او [چونكه] ﴿ وَكَانَ اللهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴾ الله ﷻ لوئې دبخښنے خاوند دې [په دې وجه دايمان راوړلو نه وړاندې چه څومره ګناهونه شوی دی هغه ټول به اوبخښي او چونكه هغه] لوئې درحمت خاوند دې [څكه به دايمان راوړلو په بركت سره د دوی نيكئې دوچند كړی او ښه ثوابونه به ورته وركړی].

## معارف او مسائل

ددې آيتونو څنې [څخه] په اول، اودويم آيت كښې دنيانه دزورظلم ختمولو يو قانون دې مګر د عامې دنيا دقوانينو پشان نه دې چه يواځې امرانه شان لری بلكه داسې يو قانون دې چه د ويرولواوشوق په انداز كښې خويو طرف ددې اجازت پكښې وركړې شويدې چه مظلوم، دظالم خلاف شكايت كولې شی اوپه عدالت كښې ددې خلاف مقدمه داخلولې شی چه بعينه دعدل اوانصاف تقاضا او د جرمونو د بندولو يوه ذريعه ده،ليكن دې سره يو قيدهم،دسورت نحل په آيت كښې داشان ذكرشويدې:﴿ وَاِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ بِهٖ ۚ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصّٰبِرِيْنَ ﴾ كه څوک درباندې ظلم كوی نوتاسوترهم دهغې بدله اغستې شئ خوشرط دادې چه په بدله اغستو كښې تاسونه زياتې اونشی ورنه تاسوبه ظالمان شئ] حاصل ئې دادې چه دظلم جواب كښې دظلم اجازت نشته بلكه ددې بدله دې هم په انصاف سره واغستې شئ،په دې كښې داهدايت هم شته چه بدله اغستل اګرچه روادی مګرصبر كول او معاف كول ئې ډيرغوره دی.

اود ذكرشوی آيت نه داهم معلومه شوه چه كه يومظلوم دظلم شكايت چاته كوی يا ورته دهغې قيصه تيروی نوداهغه غيبت نه حسابيږی كوم چه حرام دې ولې چه داموقعه پخپله ظالم وركړيده،غرض داچه يو خوا خو قرآن كريم مظلوم ته دظلم دبدلې اغستو اجازت وركړو،اوبل اړخ ته ئې داعلى اخلاقو او د معاف كولو تعليم وركړو اوددې په مقابله كښې ئې دآخرت لويه

فائده، مظلوم ته وروراندې کړه او هغې ئې دې ته تيار کړو چه خپل جائز حق قربان کړي او د ظلم بدل وانخلي لکه فرمائي:

﴿إِن تُبْدُوا خَيْرًا أَوْ تُخْفُوهُ أَوْ تَعْفُوا عَن سُوءٍ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيرًا﴾ که تاسو په ښکاره نيکي کوئ او که په پټه، يا د چا ظلم او بد کول معاف کړئ نو دا غوره دي، ولې چه الله تعالى لوئ معاف کوونکې او لوئ د قدرت خاوند دې،

په دې آيت کښې اصل مقصد، ظلم معاف کولو سره تعلق لري مګر دې سره ئې په ښکاره او پټه نيکئ ذکر کولو سره دې اړخ ته اشاره او کړه چه دا معاف کول يوه لويه نيکي ده چه څوک دې لره اختيار کړي هغه به د الله تعالى د عفو او رحمت حقدار شي،

په آخر د آيت کښې ئې: ﴿فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيرًا﴾ فرمائيلو سره اوښودل چه الله تعالى قادر مطلق دې، چه که او غواړي نو سزا ورکولې شي خو سره د دې هم معاف کوونکې دې ليکن انسان چه په بدل اغستو، يقيني قدرت او طاقت هم نه لري لهذا ده لره خو نور هم مناسب دا دی چه معافي او کړي او خپه [پښه] په دغه ظلم راکاږي،

د ظلم ختمولو او د معاشرې د اصلاح د پاره قرآني اصولو او تربيتي انداز ته او ګورئ چه برابر په برابرئ د ظلم د بدلې اغستلو اجازت ورکولو سره د عدل او انصاف بهترين قانون جوړ کړو، بل اړخ ته ئې مظلوم ته د اعلی اخلاقو ښودنه او کړه او هغه ئې معاف کولو ته تيار کړو چه لازمي نتيجه ئې داسې ده څنګه چه قرآن کريم په بل ځائ کښې بيان کړيده: ﴿فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ﴾ يعنی ستاسو يو دښمن به هم هم ستاسو په داسې کردار سره ستاسو دوست جوړ شي!،

په عدالتي فيصلې کولو او په بدلې اغستلو سره اګر چه د ظلم بند يز خامخا کيدې شي ليکن د دواړو اړخو په زړونو کښې هغسې نه ختميدونکې اثر پريږدي چه په آئنده کښې بيا هم د جنګ جګړو باعث جوړيدې شي، ليکن کوم اخلاقي درس چه قرآن کريم ورکړو هغې سره ژورې زړې دښمنئ په دوستئ کښې بدليږي،

په دريم، څلورم او پنځم آيت کښې قرآن کريم دا ښکاره فيصله ورکړيده چه څوک الله تعالى لره منی مګر د هغه په رسولانو ايمان نه راوړي، يا څنې رسولان منی او څنې نه منی، هغه د الله تعالى په نزد مؤمن نه وی بلکه په ښکاره کافر دې چه په آخرت کښې ئې د خلاصی هيڅ لاره نشته،

**په اسلام باندې خلاصې اډانړه دې په بل مخالف مذهب کښې خلاصې نشي کيدې:!** د قرآن کريم دې ډاکيزې فيصلې، د هغه خلقو بې لارې او کوږتلل په پوره شان ښکاره کړيدی چه د نورو مذهبونو خاوندانو سره په رواداری کښې مذهب او مذهبي عقيدو لره د نيندرې او بخشش په ډول پيش کول غواړي او د قرآن او سنت د ډاکيزو فيصلو خلاف د نورو مذهبونو خاوندانو ته دا ښودل غواړي چه د مسلمانانو په نزد خلاصې موندل يوائې په اسلام اډانړه نه دې چه يهوديان او عيسايان په خپلو مذهبونو باندې د پاتې کيدو په صورت کښې هم خلاصې بيا موندې شی حالانکه دوئ د ټولو پيغمبرانو ﷺ يا کم از کم د بعضو رسولانو خو منکر دی، چه د هغوئ د کافر کيدو او جهنمي کيدو دې آيت اعلان کړيدې،

په دې کښې هيڅ شک نشته چه اسلام، غير مسلمو سره د عدل او انصاف، همدردئ، د احسان او رواداړئ په معامله کښې خپل مثال نه لري خو احسان او سلوک په هغه څيزونو کښې کيدې شی چه خپل حق او ملکيت ئې وی، ليکن مذهبي اصول او عقائد زمونږ ملکيت نه دی چه چاته ئې په

ډالئ اوپیشکش کښې ورکړې شو ،څنګه چه اسلام غیر مسلمو سره په رواداریٔ اوښه سلوک کولو کښې زیات سخی دې،دغه شان دخپل سرحداتو په حفاظت کښې زیات احتیاط اوسختی کوی، اسلام خو غیر مسلمو سره دهمدردیٔ،خیر خواهیٔ اوبې انتهـا رواداریٔ جذبه پیدا کوی، لیکن ورسره دکفر درسمونونه پوره شان دویزاریٔ اعلان هم کوی مسلمانانولره دغیر مسلمونه یو بیل قوم ګرځوی او ددویٔ دقومی شعائرو [خصوصی علاماتو] په پوره شان سره ساتنه هم کوی، اسلام دعبادت پشان دمسلمانانو معاشرت هم دنورونه بیل ساتل غواړی چه بیشمیره مثالونه ئې په قرآن اوسنت کښې موجود دی،

که داسلام اوقرآن داعقیده وې چه په هرملت اومذهب کښې خلاصي موندلې شی نو دې لره دمذهب اسلام په تبلیغ باندې دزورور کولو هیڅ حق نه وو اودې دپاره به دځان اومال قربانی ورکول اصولاً غلط اودعقل خلاف ؤوبلکه په دې صورت کښې به درسول الله ﷺ پیغمبر کیدل اودقرآن کریم نازلیدل معاذالله بیکاره اوعبث وو ،درسول الله ﷺ اودخلفائ راشدینو رضی الله عنهم ټول جهاد به بې معنی بلکه دوطن لاندې کولو دخواهش ثبوت وو [معاذالله]

په دې معامله کښې بعضې خلقو ته دسورت بقره دآیت نمبر [۶۲] نه شبه شویده چه فرمائیلی ئې دی ﴿اِنَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِیْنَ هَادُوْا وَالنَّصٰرٰی وَالصّٰبِئِیْنَ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْیَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَلَا هُمْ یَحْزَنُوْنَ﴾ چاچه ایمان راوړو ،څوک چه یهودیان شو یانصارای شو یا صابیان شو ،په دویٔ کښې چه چاهم په الله تعالی اودآخرت په ورځ ایمان راؤړو اونیک عمل ئې اوکړونو دهغویٔ اجردهغویٔ دپروردګارخواته محفوظ دې،په دویٔ نه خوځه ویره شته اونه به دویٔ غمګین وی،

هرکله چه په دې آیت کښې دایمانیاتو پوره تفصیل نه دې ورکړې شوې بلکه یواځې الله تعالی باندې اوپه ورځ دآخرت باندې دایمان راوړلو ذکر شویدې،نو هغه څوک چې دقرآن کریم نیمګړې مطالعه کوی،دې نه هغویٔ دامطلب واغستو چه یواځې په الله تعالی اوقیامت باندې ایمان راوړل،خلاصی موندلو دپاره کافی دی،په رسولانو باندې ایمان راوړل خلاصی موندلو دپاره شرط نه دی،داسې کسانو دې ته خیال اونکړو چه دقرآن کریم په اصطلاح کښې په الله تعالی باندې هغه ایمان راوړل معتبر دی چه ورسره په رسولانو ﷺ هم ایمان وی،ورنه هسې خو شیطان هم دالله تعالی دوجود اودهغه دیووالی اقرار کوی.

قرآن کریم پخپله داحقیقت په دې الفاظو کښې په ډاګه کړیدې:

﴿فَاِنْ اٰمَنُوْا بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا هُمْ فِیْ شِقَاقٍ ۚ فَسَیَكْفِیْكَهُمُ اللّٰهُ ۚ وَهُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ﴾

یعنی ددویٔ ایمان به هله معتبر داوی چه عامو مسلمانانو پشان ایمان اختیار کړی چه پکښې الله تعالی باندې ایمان راوړلو سره،په رسول ﷺ باندې هم ایمان راوړل لازم دی،ورنه بیا دا وګنړیٔ چه هم دغه خلق بیلتون او اختلاف پیدا کول غواړی نو الله تعالی ستاسوله اړخه دویٔ لره کافی دې اوهغه ډیر آوریدونکې پوهیدونکې دې،

دلته په دې آیت کښې خونورهم په ډاګه اوفرمائیلې شو چه دالله تعالی دیورسول نه هم انکار کول ښکاره کفردې چه دعذاب دجهنم باعث دې یعنی په الله تعالی باندې هغه ایمان راوړل معتبر دی چه ورسره په رسول هم ایمان راوړل وی که داسې نه وی نو ورته په الله تعالی باندې ایمان راوړل هم نشی وئیلې،

په آخرې آیت کښې په ایجابي ډول بیان کړې شویدې چه دآخرت خلاصې دهغه خلقو په برخه کیدېشي چه الله تعالى سره سره په ټولورسولانوهم ایمان لري اوپه دې وجه رسول ﷺ فرمائیلي دي:

إن القرآن يفسر بعضه بعضاً(۱) دقرآن کریم یوه برخه دبلې برخې تفسیراووضاحت کوي،

پخپله دقرآن دتفسیرنه خلاف څه کارکول دچاډپاره روانه دي،

| |
|---|
| يَسْـَٔلُكَ أَهْلُ الْكِتٰبِ |
| اتپوس کوي ستا نه\| دااهل کتاب |
| \| ..........دااهل کتاب[نن]استانه داغواړي |
| أَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتٰبًا مِّنَ السَّمَآءِ فَقَدْ سَأَلُوا |
| چي ته نازل کړې \| په دوئ باندې \|یو کتاب \| د آسمان نه \|نو په تحقیق سره \|اتپوس کړې وو دوئ |
| چي دوئ باندې دآسمان نه یو کتاب رانازل کړه\| اوحال دادې چي دوئ |
| مُوسٰى أَكْبَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَقَالُوا أَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً |
| دموسی نه \|ډیر لوئ \| ددغه تپوس نه\| نو وئیلي وو دوئ\| چي اوښایه مونږ ته \| الله \| ښکاره |
| دموسی ﷺ نه ددې نه لويه مطالبه کړې وه\| ورته ئې وئیلي وو چي مونږته الله ﷻ ښکاره اوښایه |
| فَأَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنْ |
| نواونیول دوئ لره\| یوتندر دبجلۍ\|په سبب دظلم ددوئ \|بیا اونیوۀ هغوئ \|سخی[ګیلګی] لره \| روستو |
| نوددې سرکشۍ په وجه پرې تندر راپریوتو\|بیادوئ سخي[ګیلګی] معبود جوړ کړلو |
| مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ فَعَفَوْنَا عَنْ ذٰلِكَ وَاٰتَيْنَا |
| دهغې نه \| چي راغلې وې هغوئ ته \|ښکاره نښې \| نو معافي اوکړه مونږه \| ددغې ګناه \|او ورکړو مونږ |
| اوحال دادې چي دوئ ته ښکاره نښې راغلې وې\|نومونږ ورته داګناه هم معاف کړه |
| مُوسٰى سُلْطٰنًا مُّبِينًا ۝ وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّورَ بِمِيثٰقِهِمْ |
| موسی ته\| فرمان \| ښکاره \| اوپورته کړو مونږ \| دپاسه دهغوئ \| طور[غر] \| د لوظ اخستلو د پاره |
| اوموسی ﷺ ته موښکاره فرمان ورکړې وۀ\| اومونږ ددوئ دپاسه کوه طور پورته کړو\| چي وعده ترې واخلو |
| وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُلْنَا لَهُمْ |
| اواونیل مونږه \| هغوئ ته \| چي ننوځئ \| په دروازه \| سجده کونکی \| اواونیل مونږه \| هغوئ ته |
| اوورته موحکم اوکړو\| چي [دفلسطین ښار]دروازې ته\| سرټیټې داخل شئ \| اودا حکم مو ورکړې وۀ |
| لَا تَعْدُوا فِي السَّبْتِ وَأَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّيثٰقًا غَلِيظًا ۝ |
| مۀ اوړئ دحدنه\| په ورځ د خالي کښې \|اوواخستله مونږه\| دهغوئ نه\| وعده \| محکمه |
| چي دخالي په ورځ دحدنه تجاوزمۀ کوئ \|اودا مو ترې پخه وعده اخستې وه |

(۱) عمدة القاري، کتاب التفسير، باب سورة الزمر: ج۲۸، ص ۱۴۳

**آسان ترجمه قرآن:** (اې پېغمبره!) اهل کتاب چه تا نه (کومه) مطالبه کوي چه ته په دوی باندې د آسمان نه کتاب نازل کړه نو (دا څه نوې خبره نه ده، ځکه چه) دې خلقو خو د موسیٰ علیه السلام نه ددې نه هم لویه مطالبه کړې وه نو دوی (موسیٰ علیه السلام ته) وئیلي وو چه مونږ ته الله په ښکاره سترګو باندې وښایه نو ددوی دسر کشۍ د وجې نه دوی لره تندر نیولې وو، بیا دوی ته چه کله صفا صفا نښې راغلې، هغې نه وروستو هم دوی سخې لره په خدا یتوب نیولې وو. په دې باندې هم مونږ دوی لره معاف کړل او مونږ موسیٰ علیه السلام ته واضحه اقتدار ورکړو او مونږ په دوی باندې کوه طور اوچتولو سره دوی نه وعده اغستې وه. او مونږ دوی ته وئیلي وو چه (د ښار د دروازې نه) سر ښکته کړئ او داخل شئ او دوئ ته موو ئیلي وو چه تاسو دخالي دورځې په باره کښې د حد نه مه اوړئ او مونږ دوی نه ډیره پخه وعده اغستې وه.

**دآیتونو ربط:** ددې څخه مخکښې آیتونو کښې یې د یهودیانو د غلطو عقیدو ذکر اوفرمائیلو او ورسره یې ددې مذمت هم ذکر کړو. په دې آیتونو کښې هم دهغوئ د خرابو حرکتونو لوئې تفصیل بیانیږي، او ورسره د هغوئ دقباحتونو په وجه د هغوئ د عذاب او سزا ذکر هم شته دې. او دا سلسله تر لرې پورې جاري ده.

## خلاصه تفسیر

[اې محمد ﷺ] ﴿ يَسْـَٔلُكَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتٰبًا مِّنَ السَّمَآءِ ﴾ تاسو نه [یهود] دا درخواست کوی چه تاسو ددوی خواته یو خاص لیکلے شوې کتاب د آسمان نه راوغواړئی نو [تاسو ددغې خلقو نه دې لره عجیب مه ګنړئی ولې چه دا داس ضدی فرقه ده چه] ﴿ فَقَدْ سَاَلُوْا مُوْسٰۤى اَكْبَرَ مِنْ ذٰلِكَ ﴾ دوی [یعنی هغه څوك چه ددوی نه دموسی ﷺ په وخت کښې موجود وو هغوی] دموسی ﷺ نه هم ددې نه هم دیوې لوئې خبرې درخواست کړې وو ﴿ فَقَالُوْۤا اَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً ﴾ او داسې ئې وئیلی وو چه مونږ ته الله ﷻ لره په ډاګه [بې دڅه پردې] رااوښایه ﴿ فَاَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ﴾ چه په دې باندې دهغوی دبے ادبئ له کبله په هغوی آسمانی تندر راپریوتو ﴿ ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ ﴾ بیا [ددې نه نور زیات هغوئ دې حرکت هم کړې دې چه] هغوی څخی [ګیلګی] لره [دعبادت دپاره] تجویز کړې وو پس ددې نه چه ډیر څه دلیلونه [دحق اود باطل د ښاکلو] هغوی ته رسیدلی وو [ددې دلیلونو مطلب دحضرت موسی ﷺ معجزے دی چه دهغې نه دفرعون ترغرقیدو پورې ډیرے لیدلے شوې وې] ﴿ فَعَفَوْنَا عَنْ ذٰلِكَ ﴾ بیا مونږ د دې معافی اوکړه ﴿ وَاٰتَيْنَا مُوْسٰى سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴾ اوموسی ﷺ ته مو غټ رعب ورکړې وو [ددغې رعب زمونږ د معافئ کولو اومهربانئ کولو هیڅ اثر په هغوی نه کیدلو]. [وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّوْرَ بِمِيْثَاقِهِمْ] او مونږ ددې خلقو څخه [په تـوراة بانـدې د عمـل کولـو دپـاره] د قـول او لـوظ اخستلو دپاره کوه طور په دوئ باندې راپورته کړو [وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا] او مونږ دوئ ته حکم کړې وو چې په دروازه باندې په عاجزئ سره داخل شئ [وَقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوْا فِي السَّبْتِ] او مونږ هغوئ ته حکم ورکړې وو چې د خالی [هفتې] د روځې باره کښې [تاسو ته کوم حکم ملاؤ شوې دې چې په دې ورځ ښکار مه کوئی او په دې کښې دشریعت د حد څخه] تجاوز مه کوئی [وَاَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا] او [ددې څخه علاوه نور هم] مونږ ددوئ څخه ډیر سخت قول او لوظ واخستو

[دکوم بیان چې په وَاِذْ اَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِيٓ اِسْرَآءِيْلَ کښې ذکر شوې دې ، لیکن ددومره اهتمام باوجود دې خلقو د خپلو وعدو خلاف اوکړو]

**معارف او مسائل**

دیهودو څه سرداران چه ددې غوښتني په غرض درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو چه هغوئ ﷺ دهم هغسې لیکلې آسمانی کتاب راؤړی څنګه چه حضرت موسی ﷺ راؤړې وو نو هله به ایمان راؤړو ، ددوئ مطلب ایمان راؤړل نه وو بلکه داهسې یوشرط څه چه دخپل ضد دپاره څه بهانه اونیولې شی ، چنانچه الله تعالی ددې آیت په نازلولوسره رسول الله ﷺ لره په دې باندې خبرکړو ، په دې باندې ورته تسلی ورکول ؤوچه ددې قوم په خمبیر کښې بیغمبران ﷺ تنګول اغړلې شویدی او الله تعالی نه د بغاوت کولو هرلوئ نه لوئ حرکت نه هم مخ نه اړوی ، تردې چه ددوئ مشرانو د حضرت موسی ﷺ نه دا غوښتنه هم کړې وه چه مونږته دې الله تعالی په ډاګه اوښودلې شی ، ددې بې ادبئ په وجه په هغوئ آسمانی تندر راؤغورځیدو او هغوئ ئې هلاک کړل ، چه په توحید ښه پوه شو ، د الله تعالی واضح دلیلونه او حجتونه ورته هم ښکاره شو بیائې هم څخی [کیلګی] لره معبود جوړ کړې ؤو ، سره ددې ټولو مونږ هغوئ لره معاف کړل او دهغوئ په دغه ناکړدو موخپه راښکله ورنه شان خودا ووچه ټول کسکرشوې وې او بیخ بنیادئې ویستلې شوې وې . او مونږه ، خپل پیغمبر حضرت موسی ﷺ ته غلبه ورکړه . یوه موقعه داسې هم راغلې وه چه دغه خلقو د تورات شریف د شریعت منلو نه صفاانکار کړې وو نو مونږ پرې دپاسه کوه طور زوړنده اولرلو چه شریعت به خامخا منی ګنی دې غرلاندې به چهنړی کړې شی ، مونږ ورته داهم وئیلی وو چه کله دایلیانو مې ښار په دروازه کښې ننو ځئ نو د الله تعالی دفرمانبردارئ په جذبه کښې مست سر ټیټی به ډیرې عاجزئ سره ورننوځئ ، مونږ هغوئ لره دخالی په ورځ د کبانو [ماهیانو] د ښکار کولو نه منع کړی ؤو او ورته موو ئیلی ووچه زمونږ ددې حکم منلو نه مخ مه تاووئ . په دې شان مونږ ترې مضبوط لوظ قول اغستې وو خو هغوئ د هرهرحکم خلاف ورزی اوکړله ، زمونږ لوظ قول ئې مات کړو ، نو مونږ هغوئ لره په دنیا کښې هم ذلیله کړل او په آخرت کښې هم زیاته ناکاره سزا تیرول هم ددوئ په سرپرته ده .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَبِمَا | نَقْضِهِمْ | مِّيْثَاقَهُمْ | وَكُفْرِهِمْ | بِاٰيٰتِ | اللّٰهِ |
| نو په سبب د ماتولو دهغوئ | | وعدې خپلې لره | او د کفر کولو دهغوئ | په ایتونو | د الله سره |

اخر د دوی د بې لوظئ په وجه او د الله ﷻ د ایتونو نه د انکار کولو په وجه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقَتْلِهِمُ | الْاَنْۢبِيَآءَ | بِغَيْرِ حَقٍّ | وَّقَوْلِهِمْ | | قُلُوْبُنَا |
| او د قتلولو دهغوئ | پیغمبرانو لره | په ناحقه | او [په سبب] ددې وینا دهغوئ | | اچې زړونه زمونږه |

اود پیغمبرانو په ناحقه د قتلولو په وجه او د دې وینا په وجه چې زمونږ زړونه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| غُلْفٌ | بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ | عَلَيْهَا | بِكُفْرِهِمْ | | فَلَا يُؤْمِنُوْنَ |
| په پردو کښې پټ دی | ابلکه مهرو هلې دې الله | په هغې | په سبب د کفر دهغوئ | | نو نه راوړی ایمان هغوئ |

غلافونو کښې پټ دی اخکه ایمان نه راوړو ] [داسې نه ده ] بلکه ددوئ د کفر په وجه پرې الله ﷻ مهر اولګولو نو

إِلَّا قَلِيلًا ۝ وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَىٰ مَرْيَمَ بُهْتَانًا
مگر | لږ | او په سبب د کفر کولو دهغوئ | او دوئيلو دهغوئ | په مريم باندې | د بهتان
ډيرو کمو خلقو په کښې ايمان راوړو | او بيا دوئ په کفر کښې مخکښې لاړل | او په بي بي مريم ئې
عَظِيمًا ۝ وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ
لوئې | او په سبب دوئيلو دهغوئ | چې بيشکه وژلې دې مونږه | مسيح | عيسى | ځوئ
لوئې بهتان اولګولو | او په خپله ئې اوؤئيل چې مونږ عيسى ځوئې
مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن
دمريم | رسول د الله | حالانکه نۀ کړو | قتل هغوئ هغه لره | او نۀ ئې په دار کړو هغه لره | ليکن
دمريم قتل کړې دې | چې هغه دالله رسول دې | او حال دا دې چې نه ئې وژلې دې | او نه ئې په دار کړې دې بلکه
شُبِّهَ لَهُمْ ۚ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا
معامله شکمنه کړې شوه | دپاره دهغوئ | او بيشکه هغه کسان | چې اختلاف ئې کړې دې
خبره پرې ګډه وډه شوې وه | .................. او کومو کسانو چې په دې باره کښې اختلاف کړې وۀ
فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ ۚ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ
په حق دعيسى کښې | خامخا په شک کښې دى | دشان دهغه نه | نشته هغوئ لره | په دې باندې | څه علم
هغوئ تول په شک کښې اخته دى | .................. د دوئ په اصل واقعه هيڅ علم نشته
إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ۝ بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ
مگر | صرف پيروی ده | د ګمان | او نۀ کړو قتل هغوئ هغه لره | په يقين سره | بلکه پورته کړو هغه لره الله
صرف په ګمان پسې روان دى | او يقيني خبره دا ده چه هغوی عيسى قتل کړې نه وۀ | بلکه الله خان ته خيژولې دې
إِلَيْهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ۝ وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ
طرف خپل ته | او | دې الله | الوئ طاقت والا | حکمت والا | او نشته | داهل کتابو نه هيڅوک
او الله ﷻ په هرچا غالب او د حکمت خاوند دې | او په اهل کتابو کښې به هيڅوک پاتې نۀ شى
إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ
مگر | خامخا به ايمان راوړى | په هغه باندې | مخکښې | دمرګ دهغه نه | او په ورځ دقيامت
مگر دهغه دمرګ نه مخکښې به پرې ايمان راوړى | .................. او دقيامت په ورځ به پرې
يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا ۝
به وى هغه | په هغوئ | ګواه |
هغه ګواهى ورکوى |

**آسان ترجمه قرآن:** او بيا چه دوی سره څه اوشو نو دا ځکه چه دوی وعده ماته کړې وه ، او د الله د آيتونو انکار ئې کړې وو او انبياء عليهم السلام ئې په ناحقه وژلي وو ، او دا ئې اووئيل چه ځمونږ په زړه باندئ غلاف ختلي دې حال دا چه حقيقت دا دې چه د دوی د کفر د وجې نه الله تعالى ددوی په زړونو باندئ

مهر لګولې دې. دې وجې نه دوی د لږو خبرو نه سوا په هيڅ خبره ايمان نه راوړي او دا څکه چه دوی کفر اختيار کړم. او په مريم عليها السلام باندې ئې ډيره لويه د بُهتان خبره وکړه او دا ئې اوونيل چه "مونږ دالله رسول عيسٰی ابن مريم لره وژلې وو" حال دا چه نه دوی عيسٰی عليه السلام لره وژلې وو او نه ئې په سولۍ کړې وو. بلکه دوی باندې اشتباه راغلې وه او حقيقت دا دې چه کومو خلقو چه د حضرت عيسٰی عليه السلام په باره کښې اختلاف کړې دې هغوی ددې په باره کښې په شك کښې دی دوی لره ګمان پسې تلو نه سوا لو ر څه علم نشته. او دا يقيني خبره ده چه دوی عيسٰی (عليه السلام) لره نه وو وژلې بلکه الله تعالٰی هغه لره خپل طرف ته پورته کړې وو. او الله د لوئې قدرت او لوئې حکمت والا دې. او اهل کتابو نه داسې څوك نشته چه د مرګ نه مخکښې خوامخواه په حضرت عيسٰی عليه السلام باندې ايمان رانوړي. او د قيامت په ورځ به هغه ددې خلقو خلاف ګواه جوړ شي.

دا ايتونو ربط. ددې څخه مخکښې آيتونو کښې د يهودو د شرارتونو ذکر وو، او ددې شرارتونو په وجه په دوئ باندې د سزا او لعن طعن بيان وو، دې آيتونو کښې هم ديهوديانو د بعضو جرمونو تفصيل ذکر شوې دې. ددې په ضمن کښې د عيسی ﷷ متعلق ددوئ د غلطو خيالاتو ترديد کړې شوې دې. او دا يې واضح کړې دی چې الله ﷻ عيسی ﷷ ددوئ د ظالمونو څخه د بچ کولو د پاره آسمان ته پورته کړې دې. دا خلق دا دعوی کوی چې مونږ عيسی ﷷ قتل کړې دې او هغوئ مو په دار خيژولی دی، دا بالکل دروغ دی، دوئ چې کوم کس قتل کړې وو هغه عيسی ﷷ نه وو بلکه دهغوئ سره په صورت کښې يو شان يو بل کس وو، هغه يې قتل کړو او دې خلقو دا ګڼړل چې مونږ عيسی ﷷ قتل کړو.

## خلاصه تفسير

﴿فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِمْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ﴾نو مونږ [ددوی دحرکتونو په وجه دلعنت، غضب ذلت شکلونو ورانولووغيره په سزا کښې راګير کړل يعنی] ددوی دلوظ ماتولو په وجه ددوی دکفر [او انکار] په وجه دالله ﷻ په احکامو سره ﴿ وَقَتْلِهِمُ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ﴾ او ددوی د وژلو په وجه انبياء [ ﷩] لره [چه د دوی په نزد هم] ناحق [وو] ﴿ وَّقَوْلِهِمْ قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ﴾ او ددوی ددې وينا په وجه چه زمونږ زړونه [داسې] محفوظ دی [چه په کښې دمخالف مذهب يعنی اسلام اثرنشی کيدلې. لهذا په مذهب باندې مونږه بنه پاخه يو، الله ﷻ په دې رد کوی او فرمائی چه دا مضبوطوالی او پوخوالی نه دې] ﴿بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ﴾ بلکه ددوی دکفر په وجه ددوی په زړونوباندې الله ﷻ بند تړلې دے [چه حقه خبره په کښې څه اثر نه کوی] ﴿فَلَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا﴾ نوپه دوی کښې ايمان نشته دې مګر لږ شان [هرکله چه دغه لږ شان ايمان مقبول نه وو نودوی په مخه کافر پاتې شو] ﴿ وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ ﴾او [مونږ دوی لره دلعنت وغيره په سزا کښې راګير کړل] ددوی [ديو خاص] کفر په وجه او [تفصيل يې دادې چه حضرت مريم ﷺ ﴿ عَلٰى مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيْمًا ﴾ باندې د ډير لوئې تور پورې کولو په وجه [چه ترې نه دحضرت عيسی ﷷ دروغژن کول هم لازم رازی ولې چه حضرت عيسی ﷷ په خپلې معجزې سره دهغې صفائی په ډاګه کړې وه]. ﴿ وَّقَوْلِهِمْ اِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيْحَ عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﴾او [داشان د فخر په ډول] ددوی ددې وينا په وجه چه مونږه حضرت مسيح عيسی خوئے دمريم لره چه دالله ﷻ رسول دے قتل کړو

[ددوی دا وینا پخپله د دوی ددښمنئ کولو دلیل دي او انبیاء ﷺ سره دښمنی کول کفر دي بله دا چه دعوی دکفر کول هم کفر دي] ﴿ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ ﴾ حالانکه [سره دکفر کیدو نه ددوی دغه دعوی هم غلطه ده ولې چه] دوی [یهودو] نه هغوی [حضرت عیسی ﷺ] لره قتل کړو اونه یئ په سولئ اوخیژولو ﴿ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ ﴾ لیکن دوی [یهودو] ته اشتباه اوشوه ﴿ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ ﴾ او کوم خلق [یعنی داهل کتابونه] چه دهغوی [یعنی دحضرت عیسی ﷺ] په باره کښې اختلاف کوی هغوی په غلط خیال کښې [اخته] دی ﴿ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ ﴾ دوی سره په دې باندې هیڅ [صحیح] دلیل [موجود] نه دې ﴿ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ﴾ سوا ددې نه چه په اټکلی خبرو باندې عمل کوی ﴿ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ﴾ او دوی [یهودو] هغوی [حضرت عیسی ﷺ] لره یقینی خبره ده چه قتل کړې نه دې [چه دوئ یئ دعوی کوی] ﴿ بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ ﴾ بلکه هغوی لره الله ﷻ خپلې خوا [یعنی آسمان] ته پورته کړو [اوبل سړې یئ دهغوی په شکل اوګرځولو چه هغه په دار باندې خیژولو سره اووژلو اوهم دغه سبب شو دیهودو داشتباه چه ددې په وجه په دوی کښې اختلاف پیداشو] ﴿ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴾ اوالله ﷻ لوئې زبردست [یعنی دقدرت خاوند] دحکمت خاوند دے [چه په خپل قدرت او حکمت ئې حضرت عیسی ﷺ اوساتلو اوپورته یئ کړو اویهود پرې هیڅ خبرنه شو ولې چه ددغه سړی شکل دحضرت عیسی ﷺ پشان وو] ﴿ وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ ﴾ او [یهودو ته به خپل دروغ اود حضرت عیسی ﷺ دنبوت نه انکار باطلیدل ډیرزر هم په دنیاکښې ښکاره شی ولې چه دا آیت دنازلیدو راسې به په څه زمانه کښې] هیڅوک داهل کتابو [یهودو] نه [باقی پاتې نشی مګرهغوی به دحضرت عیسی ﷺ [دنبوت] دخپل مرګ نه [ړښان]وړاندې[چه عالم برزخ ورته ښکاره شی] ﴿ ضرورتصدیق کوی [اګرچه ددغه وخت تصدیق فائده مندنه دې مګردباطل ښکاره کیدوډپاره کافی دې نوددې نه خوداښه شوه چه اوس ایمان راوړی نوفائده ورته اورسوی] ﴿ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا ﴾ او [کله چه دنیا اوبرزخ دواړه ختم شی یعنی] دقیامت په ورځ به هغوی[حضرت عیسی ﷺ] په دغه [منکرینو یعنی دهغوی په انکار] ګواهی ورکوی.

## معارف او مسائل

دسورت آلِ عمران په آیت: ﴿ يَا عِيسَىٰ إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ ﴾ کښې الله تعالی ددې خبرې په لړکښې، [چه دحضرت عیسی ﷺ ددښمنانو [یهودو] ارادې به الله تعالی بیکاره ګرځوی او حضرت عیسی ﷺ لره به ددوئ دزورظلم نه محفوظ ساتی] پنځه وعدې فرمائیلې وې چه تفصیل اومکمل تشریح ئې دسورهِ آلِ عمران په تفسیرکښې بیان شویده، په دغه وعدوکښې یوه وعده داهم وه چه یهودوته به دهغوئ ﷺ د وژلو وس نشی ورکولې بلکه الله تعالی به ئې خپل خان ارخ ته پورته کوی، اوس په دې آیت کښې د یهودودشرارتونو اود دروغودعوؤپه بیان کښې دالله تعالی ددغه وعدې دتکمیل اودیهودودمغالطې تفصیلی بیان اودیهودودې خبرې په مکمل شان ردکول دی چه ګنی دوئ حضرت عیسی ﷺ لره وژلې دې،
په دې آیتونوکښې واضح کړې شوچه: ﴿ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ ﴾ دې خلقوحضرت عیسی ﷺ لره نه خو وژلې دې اونه ئې په دار خیژولې دې، بلکه صورت داشوچه معامله په دوئ مشتبه کړې شوه]

**يهودو ته دغه اشتباه په څه شان راپيښه شوه:؟** ﴿ وَلٰكِنۡ شُبِّهَ لَهُمۡ﴾ په تفسير كښې، د تفسير امام حضرت ضحاک رحمه الله فرمائيلي دي، چه خبره داسې وه چه هر كله، يهودو د حضرت عيسى عليه السلام د وژلو اراده اوكړه نو دهغوئ عليه السلام حواريان يو ځائ راغونډ شو چه حضرت عيسى عليه السلام هم ورله راغې، ابليس د يهودو هغه دستې ته د دې خبرور كړو چه د حضرت عيسى عليه السلام وژلو ته تيار ولاړ وو، څلورو زرو كسانو دغه مكان په ګيره كښې واغستو حضرت عيسى عليه السلام خپلو حواريانو ته اوفرمائيل چه په تاسو كښې داسې څوک شته چه هغه بهر ته اوخى او اووژلې شى، او بيا جنت كښې ماسره وى، يو كس، ځان دې دپاره پيش كړو، هغوئ عليه السلام ورته خپله كرته اوپګړئ وركړه، بيا دغه كس دهغوئ عليه السلام پشان كړې شو، چه بهر راووتو نو يهودو بنديوان بوتلو او په سولئ ئې اوخيژولو او حضرت عيسى عليه السلام آسمان ته اوخيژولې شو [قرطبى]

په ځنې رواياتو كښې راغلى دى چه يهودو خپل يو سړې [طيطلانوس] د حضرت عيسى عليه السلام دوژلو دپاره ليګلې وو، حضرت عيسى عليه السلام خو هلته ځكه نه وو چه الله تعالى آسمان ته خيژولې وو، دغه كس چه بيرته راووتو نو د حضرت عيسى عليه السلام په شكل كړې شوې ؤو، يهودو پرِ د حضرت عيسى عليه السلام ګمان اوكړو او هم دغه خپل سړې ئې اوژلو [مظهرى]

په دې دواړو كښې چه هر يو صورت راپيښ شوى وى قرآن كريم په دې دواړو كښې يو صورت نه دې ټاكلې په دې وجه د حقيقت حال علم پوازې الله جل جلاله ته دې البته قرآن د دې جملې او د نورو تفسيرى رواياتونو څخه قدر مشترك دا راوځى چه يهودو ته په دې كښې سخته مغالطه شوې وه حقيقت حال د دوئ نه پټ پاتې شوې وو، او دخپل خپل ګمان او قياس په بنياد ئې قسما قسم دعوې اوكړې او په خپل منځ كښې ئې اختلاف پيدا شو لكه قرآن كريم فرمائى:

﴿وَاِنَّ الَّذِيۡنَ اخۡتَلَفُوۡا فِيۡهِ لَفِىۡ شَكٍّ مِّنۡهُ ؕ مَا لَهُمۡ بِهٖ مِنۡ عِلۡمٍ اِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوۡهُ يَقِيۡنًا ۙ﴾ يعنى دوئ سره د صحيح علم په بنياد هيڅ يقينى خبره نشته، چاچه د حضرت عيسى عليه السلام په باره كښې اختلاف كړې دې او قسما قسم دعوې ئې كړيدى دغه ټولې د شک او اټكل خبرې دى، د واقعې صحيح صورت دادې چه دوئ حضرت عيسى عليه السلام لره يقيناً قتل كړې نه دې بلكه الله تعالى هغوئ عليه السلام لره خپلې خواته پورته كړيدې،

په بعضې رواياتونو كښې داهم شته چه هر كله دځه كسانو په زړه كښې داخبره راغله چه مونږه خو هم خپل سړې ځكه اووژلو چه دوژلى شوى سړى، يو اخې مخ د حضرت عيسى عليه السلام پشان وو، ليكن نور بدن ئې دهغوئ عليه السلام پشان نه وو، او دا چه كه دغه وژلې حضرت عيسى عليه السلام وو نو زمونږ سړې چرته لاړو؟ او كه دغه وژلې زمونږ سړې وو نو حضرت عيسى عليه السلام بيا څه شو:

﴿ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيۡزًا حَكِيۡمًا﴾ [الله تعالى زبردست دقدرت او د غلبې خاوند دې] كه يهودو په لكونو واره دوژلو منصوبې جوړولې خو هر كله چه الله تعالى د حضرت عيسى عليه السلام د حفاظت ذمه اغستې وه نو دهغه د قدرت او غلبې مخې ته د دوئ د منصوبو څه حيثيت دې؟ هغه د قدرت خاوند دې، صرف ماده پرست خلق، كه د حضرت عيسى عليه السلام د پورته كولو په حقيقت پوه نشو نو دا د هغوئ كمزورى ده، هغه د حكمت خاوند دې، دهغه هر فعل او هر كار په حكمت او ښيګړه باندې بناوى،

په آخر كښې د دې مضمون د تتمې په ډول اوفرمائيلې شو: ﴿وَاِنۡ مِّنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤۡمِنَنَّ بِهٖ قَبۡلَ مَوۡتِهٖ﴾ دا خلق اګرچه د بغض او حسد له كبله دا وخت د حقيقت په سترګو د كتلو كوشش نه كوى او د حضرت عيسى عليه السلام په باره كښې باطل خيالات لرى او د اشان د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم د پيغمبرئ

نه هم انکار کوی لیکن یو وخت داسې هم راتلونکې دې چه سترګې به ئې خلاصې شي او دغه وخت به دوئ ته یقین اوشي چه دحضرت عیسی ﷤ او د محمد ﷺ په باره کښې زمونږ ټول خیالات باطل وو،

ددې آیت یو تفسیر هغه دې چه دتفسیر په خلاصه کښې تیر شو هغه داسې چه په [مَوْتِهٖ] کښې ضمیر اهل کتابو ته راجع کړې شي، په دې صورت کښې دآیت مطلب به دا راوځي چه دا یهود به دخپلو مړکیدو نه لږشان وړاندې، هرکله چه عالم برزخ لره اووینی نو دحضرت عیسی ﷤ په پیغمبرئ به ایمان راوړي، اګرچه دغه وخت به ئې دغه ایمان هیڅ فائده ورته نه رسوي څنګه چه فرعون ته دهغه ایمان راوړلو فائده اونه شوه رسولې چه دخپلو غرقیدو په وخت ئې راوړې وو،

دویم تفسیر ئې هغه دې چه دصحابه کرامو ﷡ او تابعینو رحمهم الله لوئ جماعت اختیار کړې دې او د صحیح حدیث نه یې هم تائید کیږي، هغه دا دې چه د [مَوْتِهٖ] ضمیر حضرت مسیح ﷤ ته راجع دې، په دې صورت کښې به دآیت مطلب داشي چه دا اهلِ کتاب اګرچه دا وخت په حضرت عیسی ﷤ باندې ایمان نه راوړي، یهود خوئې دسره نه مني، بلکه دروغژن او دخانه خبرې جوړونکې ئې بولي او نصاری اګرچه په هغوئ باندې دایمان راوړلو دعوی لري لیکن څنې ددوئ نه خو په خپل جهالت کښې تردې حده اورسیدل چه دیهودو پشان هغوئ ﷤ لره وژلې شوې او سولئ کړې شوې بولي او د بعضو عقیده داده چه ورته خدائ یا دخدائ خوئ وائی، دقرآن کریم په دې آیت کښې دا شودلې شویدي چه داخلق اګرچه اوس دحضرت عیسی ﷤ په پیغمبرئ باندې صحیح ایمان نه لري لیکن هرکله چه هغه قیامت ته نزدې په دې زمکه باندې دآسمان نه راکوځ شي نو دا ټول اهلِ کتاب به پرې صحیح ایمان راوړي، نصاری خو به ټول د یو مخه، په صحیح اعتقاد سره مسلمانان شي، په یهودو کښې به مخالفت کوونکې اووژلې شي او پاتې نور به مسلمانان شي، دغه وخت به هرقسم کفر ددنیا نه ختم کړې شي او په دې زمکه به یو اخې داسلام حکمراني وي، چنانچه دحضرت ابی هریره ﷛ نه یو روایت داسې منقول دې:

عن ابی هریرة ﷛ عن النبی ﷺ انه قال لینزلن ابن مریم حکماً عدلاً فلیقتلن الدجال ولیقتلن الخنزیر ولیکسرن الصلیب وتکون السجدة واحدة لله رب العلمین، ثم قال ابوهریرة واقرا وان شئتم وان من اهلِ الکتٰب الا لیؤمنن به قبل موته، قال ابوهریرة قبل موت عیسی یعیدها ثلث مرات [قرطبی] [1]

دابی هریره ﷛ په روایت رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه عیسی خوئ دمریم به یو عادل حکمران جوړشي او خامخا به راکوځ شي، هغه به دجال او خنزیر لره اووژني، صلیب به مات کړي اودغه وخت به عبادت یو اخې درب العلمین وي،

بیا حضرت ابوهریرة اوفرمائیل چه که تاسو غواړئ نو دقرآن کریم دا آیت هم اولولئ چه په کښې ددې حقیقت ذکر شویدې چه داهلِ کتابو څخه به هیڅوک پاتې نشي مګر په هغوئ ﷤ به د هغوئ ﷤ دمرګ نه مخکښې ایمان راوړي،

ابوهریره ﷛ اوفرمائیل چه دحضرت عیسی ﷤ دمرګ نه وړاندې درې ځل ئې دغه الفاظ بیا بیا اوفرمائیل، ددې آیت تفسیر په ډاګه دا او تاکلې شو چه دا آیت، قیامت ته نزدې دحضرت عیسی ﷤ دنازلیدو سره تعلق لري، ولې چه دیو جلیل القدر صحابی حضرت ابوهریره ﷛ نه په صحیح روایت سره ثابت دی چه [قَبْلَ مَوْتِهٖ] نه مراد دحضرت عیسی ﷤ دمرګ نه وړاندې دې،

[1]) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ٦، ص ١١

ددې تفسیر په بنا آیت شریف دا خبره څرګنده کړه چه حضرت عیسی ﷺ لا تر اوسه پورې وفات شوې نه دې بلکه قیامت ته نزدې به چه هر کله چه د آسمان نه راکوځ شی او دې سره د الله تعالی ټول ترلی حکمتونه پوره شی نو بیا به هم په دې زمکه وفات شی.

ددې تائید د سورت زخرف ددې آیت نه هم کیږي: ﴿وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُونِ ۶۱:۴۳﴾ ایعنی حضرت عیسی ﷺ د قیامت یوه نخښه ده نو تاسو د قیامت په راتلو کښې شک مه کوئ او زما خبره او منئ، د مفسرینو یوې لوئ ډلې دلته لیکلی دی چه د ﴿إِنَّهُ﴾ ضمیر حضرت عیسی ﷺ ته راجع دې او معنی ئې داده چه حضرت عیسی ﷺ د قیامت یوه نخښه ده، لهذا معلومه شوه چه حضرت عیسی ﷺ به د آسمان نه قیامت ته نزدې راکوځیږي او د هغوئ ﷺ راتلل به د قیامت یوه نخښه هم ګرځی.

په دې آیت کښې ﴿لَعَلَمٌ﴾ قراءت هم منقول دې چه دا معنی ترې ښه په ډاګه واضحه کیږي ولې چه د ﴿عَلَمٌ﴾ په فتح د لام سره[1] معنی ئې نخښه ده، د حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه تفسیر هم ددې تائید کوی لکه فرمائي:

عن عبد الله بن عباس رضي الله عنه في قوله تعالى وانه لعلم للساعة قال خروج عيسى ﷺ قبل يوم القيامة [یعنی د حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه نه منقول دی چه دې نه مراد حضرت عیسی ﷺ دې چه د قیامت نه وړاندې به تشریف راوړي. [ابن کثیر] ([2])

خلاصه دا شوه چه ددې آیت [قَبْلَ مَوْتِهِ] سره هر کله چه د حضرت ابی هریرة رضي الله عنه د صحیح حدیث تفسیر شامل کړې شی نو دې نه ښه په ډاګه دا خبره ثابتیږي چه حضرت عیسی ﷺ ژوندې دې، قیامت ته نزدې به د آسمان نه راکوځ شي، په یهودو به مکمله غلبه بیا پیدا کړي، دغه شان د حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه د تفسیر د ﴿وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ نه هم دا مضمون یقینی کیږي.

د تفسیر امام ابن کثیر رحمه الله د آیت ﴿وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ په تفسیر کښې لیکلی دی: وقد تواترت الاحاديث عن رسول ﷺ انه اخبر بنزول عيسى ﷺ قبل يوم القيامة اماما عادلا [ابن کثیر] ([3])

دغه متواتر روایتونه زمونږ استاذ حجة الاسلام حضرت مولانا محمد انور شاه کشمیری رحمه الله راجمع کړيدی چه په شمیر کښې د سلونه زیات دی، د حضرت استاذ رحمه الله په حکم م دغه مجموعه په عربی ژبه کښې جوړه کړه، استاذ رحمه الله ددې نوم: التصريح بما تواتر في نزول المسيح] تجویز کړو، په دغه زمانه کښې هغه شائع شوا وس اوس یو لوئ شامی عالم د حلب عبد الفتاح ابو غده شائع کړیدې، نوره شرح او حاشئې ئې پرې زیاتې کړیدی او په اعلی کتابت سره ئې د بیروت نه شائع کړیده.

**په آخره زمانه کښې د حضرت عیسی ﷺ د نازلیدو عقیده یقینی او اجماعی ده چه منکرئې کافر دې:** ددې پوره تفصیل په آل عمران کښې تیر شویدې هلته ئې اوګورئ په دې کښې د هغه شبهاتو جواب هم ذکر شویدې چه د دغه زمانې ځنې ملحدانو په دې غرض رابرسیره کړیدی چه دا عقیده شکی شی او خلق تر و اوړي، والله ولي الهداية.

---

[1] د لام زبر سره

[2] تفسير ابن كثير، سورة الزخرف رقم الآية: ۵۷، ج ۷، ص ۲۳۶

[3] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية المذكورة: ج ۷، ص ۲۳۶

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا

| نو په سبب دظلم | دهغه کسانو | چې يهوديان شوی دی | حرام کړل مونږه

نود هغه کسانو دظلم اوزياتي په وجه چې يهوديان شوی دی (١).

عَلَيْهِمْ طَيِّبٰتٍ اُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

په دوئ باندې | پاك څيزونه | هغه چې حلال کړې شوی وؤ | د دوئ د پاره | اوپه سبب دمنع کولو د دوئ | دلارې دالله نه

مونږ په هغوئ پاکيزه حلال شوی رزقونه حرام کړل | اوپه دې وجې چې دالله ﷻ دلارې نه ډير

كَثِيْرًا ۙ وَّاَخْذِهِمُ الرِّبٰوا وَقَدْ نُهُوْا عَنْهُ

ډير | او په سبب داخستلو ددوئ | سود لره | او حال دا چې منع کړې شوی وؤ دوئ | ددغه سود نه

خلق منع کوی | اوپه دې وجه چې سودونه اخلی | حالانکه دوئ دسود اخستونه منع کړې شوی وؤ

وَاَكْلِهِمْ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ ؕ وَاَعْتَدْنَا

اوپه سبب دخوړلو ددوئ | مالونو دخلقو لره | په باطلې طريقې سره | اوتيار کړې دې مونږه

اوپه دې وجه چې دخلقو مالونه په ناحقه خوری | اومونږ په دوی کښې د کافرانو دپاره درد ناک عذاب

لِلْكٰفِرِيْنَ مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ۝

دپاره دکافرانو | ددوئ نه | عذاب | دردناك |

تيار کړې دې |..................................

١) د سزا په طور الله تعالى حلال څزونه حراموی:- ددې آيت مبارك دوه مطلبونه کيديشی.يو دا چه دا حرمت قدرتی وی يعنی مقدرات الهی کښې دا وو چه دا خلق به خپل کتاب بدل کړی او په دې کښې به تحريف اوکړی.او حلال څيزونه به په خپل خان حرام کړی. صرف د خپل تشدد او خپلې سختئ په وجه .دويم دا چه حرمت شرعی دې يعنی د تورات د نزول نه مخکښې چه بعضې څيزونه په دوی حلال وو او د تورات راتلو په وخت کښې هغه د دوی د بدکارو په وجه هغه حرام کړې شو،لکه فرمان دې چه [كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ] الخ يعنی د اوښ غوښه او پئ چه حضرت اسرائيل ؑ په خپل خان حرام کړی وو. ددې نه سوا ټول طعامونه د بنی اسرائيلو دپاره حلال وو بيا تورات کښې په دوی بعضې څيزونه حرام شو لکه سورة انعام کښې فرمانی چه [وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا] الخ،اومونږ په يهود هر نوك والا څيز حرام کړو. او د غواګانو اوګډو چيلو وازګه چه بيله وی مونږ په دوی حرامه کړه. دا ځکه چه دوی باغيان او د رسول مخالفت کونکی او اختلاف کونکوی وو. نودلته هم بيانيږی چه د دوی د ظلم او زياتئ په وجه او د الله ﷻ د لارې نه يو طرفته کيدو په وجه او نورو ته د دهوکه کولو په وجه چه د دوی پخوانې عادت وو،د رسولانو د دښمنئ په وجه،چې هغوی به ئې قتلول،هغوی به ئې دروغژن ګنړل،هغوی سره به ئې مقابله کوله،او رنګ په رنګ حيلې او بهانې به ئې تلاش کولې،سود به ئې خوړل اودا حرام وو،او نور دغه شان د خلقو مالونو وهلو پسې شوی وو. او دا به دوی ته معلومه وه. چه الله تعالى دا حرام کړی دی.دا به ئې ښه په زړورتيا کول.په دې وجه په هغوئ حلال څيزونه هم حرام شو. ددې کفارو دپاره دردناك عذاب تيار شوې دی.(ابن کثير)

**آسان ترجمه قرآن:** حاصل دا چه د يهودو د انتهائي زياتو د وجې نه مونږ په دوی باندې پاك څيزونه حرام كړل چه اول دوی ته حلال كړې شوي وو، او دې وجې نه چه هغوی به كثرت سره خلقو لره د الله د لارې نه بندول او سود به ئې اغستو او حال دا چه دوی ددې نه منع شوي وو ، او د خلقو مالونه به ئې په ناحقه طريقه خوړل او دوی كښې چه كوم خلق كافر دي هغوی ته مونږ دردناك عذاب تيار كړې دې.

**د آيتونو ربط:** پورته ذكر شوؤ آيتونو كښې د يهودو د شرارتونو او د دې شرارتونو په وجه ددوئ د سزا بيان وو، دې آيتونو كښې هم د هغوئ د څو قباحتونو بيان دې ، او ورسره ورسره د سزا د يو بل نوعيت هم ذكر فرمائيلې شوی دې . هغه دا چې قيامت كښې خو به دوئ باندې عذاب وی ، په دې دنيا كښې ددوئ د ګمراهئ دا نيتجه ده چې په دوئ باندې ډير پاك څيزونه حرام كړې شو چې هغه ددې څخه مخكښې حلال وو.

**خلاصه تفسير**

﴿ فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا ﴾ نو يهودو ددغه لويو لويو جرمونو په سبب [چه دهغې نه ډيرے خبرې په سورت بقره كښې بيان شوې] ﴿ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبٰتٍ ﴾ مونږ ډيرپاكيزه [يعنى حلال نفع ناك او خوندناك] څيزونه چه [روميې نه] هغوی دپاره [هم] ﴿ اُحِلَّتْ لَهُمْ ﴾ حلال وو [لكه چه په آيت ﴿كل الطعام كان حلا لبنى اسرائيل ﴾ كښې راغلې دې] په هغوی مو [دحضرت موسى ﷺ په شريعت كښې] حرام كړل [چه بيان ئې دسورت انعام په آيت ﴿ وعلى اللذين هادوا حرمنا كل ذى ظفر الخ﴾ كښې راغلى دى او هلته داهم خودلے شوی دی چه دا حلال او پاك څيزونه پرې دهغوی دګناهونو او نافرمانيو په بناء حرام كړې شوی وو﴿ ذالك جزينٰهم ببغيهم الخ﴾ او [دحضرت موسى ﷺ په شريعت كښې هم دغه ټول څيزونه حرام پاتې شول هيڅ يو په كښې حلال نه كړې شو] ﴿وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَثِيْرًا ﴾ په په وجه ددې چه[په آئنده كښې هم هغوی ددغه قسم حركتونو كولو نه واؤ نړيدل لكه دا چه] هغوی [دالله ﷻ په احكامو كښې بدلون اوكړو يا ئې دغه احكام پټ كړل] ډيرو خلقو لره دالله ﷻ دلارې .[يعنى دحق دين دقبلولو] نه ايسارول [ولې چه دهغوی ددې كاروائى له كبله به خواه مخواه عوام كدوډ كيدل اګر چه په رښتنى طلب سره دغه كدوډ كيدېشوه] ﴿ وَّاَخْذِهِمُ الرِّبٰوا وَقَدْ نُهُوْا عَنْهُ ﴾ اوپه دې وجه چه هغوی به سود اخستلو حالانكه هغوی لره [په تورات كښې] ددې نه منع كړې شوی وو ﴿ وَاَكْلِهِمْ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ ﴾ اوپه دې وجه چه هغوی به دخلقو مال په ناحقه طريقې [يعنى په غير شرعى ذريعو] سره خوړلو [پس په دې حق طريقه كښې د شر اچولو دسود اخستلو اوپه ناروا طريقو دنورو مال دخوړلو په وجه په دې كښې سپكوالئ رانغلو ترڅو چه دغه شريعت باقى اوقائم وو، البته په نوی شريعت دعيسى ﷺ كښې څه احكام بدل شوی وو لكه چه د آيت ﴿ ولاحل لكم بعض الذى حرم عليكم﴾ نه معلوميږى اوبيا محمدى شريعت كښې خو په كښې ډير تخفيف اوسپكوالئ راغلو لكه چه ﴿ يحل لهم الطيبٰت الخ﴾ نه ثابت دى دا خو ددنيا سزا وه] او [آخرت كښې] ﴿ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴾ مونږه هغه خلقو دپاره چه په هغوی كښې كافران دی د دردناكے سزا انتظام كړيدے [البته څوك

چه دشرعی قاعدې په جوړ ایمان راوړی نو تیرشوی ټول ګناهونه به یې معاف شي].

## معارف او مسائل

په شریعت محمدی ﷺ کښې هم ځنې څیزونه حرام دی لیکن هغه دجسمانی یاروحانی ضرر باعث جوړولو په وجه حرام کړې شوی دی ، پخلاف د یهود چې هغوئ باندې دپاکیزه څیزونو حرامیدل دهغوئ دنافرمانئ په وجه د سزاپه ډول حرام کړې شوی ؤو په هغه کښې څه روحانی یا جسمانی ضررونه وو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لٰكِنِ الرّٰسِخُوْنَ | | | | | | فِي الْعِلْمِ |
| لیکن کوم خلق چې پاخه دی | | | | | | په علم کښې |
| ...................................... خو په دوئ کښې چې څوک په علم کښې پاخه شوی دی(۱) | | | | | | |
| مِنْهُمْ | وَالْمُؤْمِنُوْنَ | يُؤْمِنُوْنَ | بِمَآ | أُنْزِلَ | | إِلَيْكَ |
| ددوئ نه | اومومنان خلق | هغوئ ایمان راوړی | په هغه تعلیم | چې نازل کړې شوی دې | | تاته |
| ......او مومنان دی | هغوئ په هغه کتاب هم ایمان راوړی کوم چه په تاباندې نازل شوی دې | | | | | |
| وَمَآ | أُنْزِلَ | مِنْ قَبْلِكَ | وَالْمُقِيْمِيْنَ | الصَّلٰوةَ | | وَالْمُؤْتُوْنَ |
| او په هغه | چې نازل کړې شوي دې | مخکښې ستانه | اوقائمونکی | مانځه لره | | او ورکونکی |
| اوپه هغه[کتابونو]هم ایمان راوړی | چې ستانه وړاندې نازل شوی دی | اومونځونه کوی | | | | |

---

(۱) **په اهل کتابو کښې د مضبوط ایمان خاوندان:-** خودوی کښې چه کوم پوخ ایمان والا او په ریښتیا ئې اسلام قبول کړې دې.ددې جملې تفسیر سورة آل عمران کښې تیر شوې دې.او چه کوم ایمان دار دی دوی خو قران پاك او ټول کتابونه منی .حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه دې نه مراد حضرت عبدالله بن سلام،حضرت ثعلبه بن سعید،حضرت زید بن سعید،او حضرت اسید بن عبید رضی الله عنهم دی چه اسلام ئې قبول کړې وو. او نبی کریم ﷺ ئې نبی منلې وو.

**د قراءت وضاحت:-** مخکښې والا جمله [وَالْمُقِيْمِيْنَ الصَّلٰوةَ] د ټولو امامانو قراءت کښې او د ابی بن کعب مصحف کښې داشان دی،خو د علامه ابن جریر رحمه الله د ابن مسعود رضی الله عنه په مصحف کښې [وَالْمُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ] دې صحیح قرات رومبې دې،چه کومو خلقو دې ته د کتاب غلطی ونیلې ده د هغوئ قول غلط دې.بعضې خو وائی چه د دې نصبی حالت د مدح په وجه سره دې لکه [وَالْمُقِيْمِيْنَ الصَّلٰوةَ] کښې چه دی،او کلام عرب کښې او شعرونوکښې برابر قاعده موجود ده. بعضې وائی چه دا په رومبئ جمله عطف دې یعنی [وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُوْا وَالصّٰبِرِيْنَ] اود عربو په کلام کښې او په اشعارو کښې دا قاعده برابرموجود ده بعضې وائی چه دا په راروانه جمله باندې عطف دې یعنی [يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ]یعنی هغوئ په ده هم ایمان راوړی او په مونځ قائمولو هم د دوی ایمان دې یعنی دا واجب او برحق منی او یا دا مطلب دې چه د دې نه مراد فرشتې دی یعنی هغوئ په قران باندې،او د الله تعالی په کتابونو باندې او فرشتوباندې ایمان راوړی.امام ابن جریرهمدا خوښوی،خو په دې کښې د سوچ ضرورت دې،والله اعلم.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الزَّكٰوةَ | وَالْمُؤْمِنُوْنَ | بِاللّٰهِ | وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ | اُولٰٓئِكَ | |
| زكاة لره | او ايمان راوړونكي | په الله | او په ورځ د آخرت | دغه تول كسان چې دي | |
| اوزكوة وركوي | اوپه الله ﷻ اوپه ورځ دآخرت ايمان لري | ...............دغه شان كسانو ته به | | | |
| سَنُؤْتِيْهِمْ | اَجْرًا عَظِيْمًا | | | | |
| زر به وركړو مونږ هغوئ له | اجر | لوئ | | | |
| مونږ ديرلوې اجرور كړو | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** البته دوی (بنی اسرائیلو) کښې چه کوم خلق علم کښې مضبوط دي، او مؤمنان دي، هغوی هغه (کلام) باندې ایمان راوړي چه (اې پیغمبره!) تا باندې نازل شوې دې او په هغه باندې هم چه ستا نه مخکښې نازل شوې دې او قابل د تعریف دي هغه خلق چه مونځ کوي، اوزکوة ورکوي اوپه الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان راوړي. دا هغه خلق دي چه مونږ به دوی ته لوئې اجر ورکړو.

**د ايتونو ربط:** پورته آیتونو کښې د هغه یهودو ذکر وو چې خپل کفر باندې کلك ولاړ وو. اوپه دې پورته ذکر شوؤ څیزونو کښې اخته شوی وو. مخکښې دهغه حضراتو بیان دې چې هغوئ اهل کتاب وو، اوکله چې نبی کریم ﷺ مبعوث شو او دهغوئ په کتابونو کښې چې د نبی کریم ﷺ کوم صفات موجود وو هغه ئې پورا پورا په نبی کریم ﷺ کښې اولیدل نو د ایمان په دائره کښې داخل شو. لکه عبدالله بن سلام ؓ، اسید ؓ او ثعلبه ؓ وغیره، دې آیتونو کښې ددې حضرات تعریف او صفات بیان شوی دی.

## خلاصه تفسير

﴿ لٰكِنِ الرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ ﴾ لیکن پدوی [یهودو کښې] چه څوك په علم [ددین] کښې پاخه [یعنی دهغې په جوړ په عمل کولو باندې مضبوط اوكلك] دی [او دغې خبرې پدوی باندې حق لره په ډاګه اودحق قبلول ئې پرې آسان کړل چه اصلاً او فرعاً بیان ئې راروان دې] ﴿وَالْمُؤْمِنُوْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ﴾ اوڅوك چه پدوی کښې [ایمان راوړنکی دی] چه په دې کتاب هم ایمان راوړی کوم چه هغوی ته راولیږلے شو اوپه هغه کتاب هم [ایمان لری] چه هغوی نه مخکښې [پیغمبرانو ﷺ ته] راولیږلے شو [لکه تورات او انجیل] ﴿وَالْمُقِيْمِيْنَ الصَّلٰوةَ وَالْمُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ﴾ اوڅوك چه پدوی کښې دمونځ پابندی کوونکی دی اوڅوك چه [پدوی کښې] زکوة ورکوونکی دی ﴿ وَالْمُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ﴾ اوڅوك چه [پدوی کښې] په الله ﷻ اود قیامت په ورځ اعتقار لرونکی دی [نو] ﴿ اُولٰٓئِكَ سَنُؤْتِيْهِمْ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴾ داسې خلقو ته به مونږ ضرور [په آخرت کښې] لوئې ثواب ورکوؤ.

## معارف او مسائل

دې آیتونو کښې چې د کومو حضراتو دپاره د کامل اجر وعده ده ،هغه دهغوئ د ایمان او نیکو عملونوپه وجه ده ، او تر کومې چې د نفسی نجات تعلق دې نو هغه د ضروری عقیدو په صحیح کیدو باندې موقوف دې ، خو په دې شرط چې خاتمه یې په ا یمان سره اوشی.

إِنَّآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ كَمَآ
ابیشکه مونږ| وحی کړې ده | تاته | لکه څنګه چې
| انې پيغمبره مونږ تاته هغه شان وحی کړې ده | لکه څنګه چې مو
أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ نُوحٖ وَٱلنَّبِيِّـۧنَ مِنۢ بَعۡدِهِۦۚ وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰٓ إِبۡرَٰهِيمَ
وحی کړې وه مونږه | نوح ﷺ ته | او پیغمبرانو ته| روستو د هغه نه| او وحی اوکړه مونږه| ابراهیم ﷺ ته
نوح ﷺ او د هغه نه پس نورو پیغمبرانو ته وحی کړې وه | ..........او مونږ ابراهیم ﷺ ته
وَإِسۡمَٰعِيلَ وَإِسۡحَٰقَ وَيَعۡقُوبَ وَٱلۡأَسۡبَاطِ وَعِيسَىٰ
او اسماعیل ﷺ| او اسحاق ﷺ| او یعقوب ﷺ ته| او اولاد [د یعقوب ﷺ] ته | او عیسی ﷺ ته
او اسماعیل ﷺ ته ،او اسحاق ﷺ ته ،او یعقوب ﷺ ته او د دوی اولاد ته او عیسی ﷺ ته
وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَٰرُونَ وَسُلَيۡمَٰنَۚ وَءَاتَيۡنَا دَاوُۥدَ
او ایوب ﷺ ته |او یونس ﷺ ته |او هارون ﷺ ته|او سلیمان ﷺ ته|او ورکړو مونږ| داود ﷺ ته
او ایوب ﷺ ته ، او یونس ﷺ ته ، او هارون ﷺ ته او سلیمان ﷺ ته وحی کړې وه| او مونږ داود ﷺ ته
زَبُورٗا ۝ وَرُسُلٗا قَدۡ قَصَصۡنَٰهُمۡ عَلَيۡكَ مِن قَبۡلُ وَرُسُلٗا
زبور | او نور هغه رسولانو ته| چې بیان کړې دي مونږ دهغوئ | تاته | مخکښې ددې نه| او هغه رسولانو ته
زبور ورکړې وۀ| او هغه پیغمبرانو ته موږ وحی لیږلې وه | چې مخکښې موږ تا ته دهغوئ ذکر کړې دې
لَّمۡ نَقۡصُصۡهُمۡ عَلَيۡكَۚ وَكَلَّمَ ٱللَّهُ مُوسَىٰ تَكۡلِيمٗا ۝
چې نه دې کړې مونږ بیان دهغوئ| تاته | او خبرې اوکړې الله| دموسی سره| په خبرو کولو سره
او دهغې پیغمبرانو چې دهغوئ ذکر موږ تا ته نه دې کړې | او الله ﷻ موسی ﷺ سره خاص خبرې کړې دی
رُّسُلٗا مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى ٱللَّهِ
[را اولیږل مونږ] رسولان| زیرې ورکونکی| او یرونکی| د پاره ددې چې نه وی| خلقو لره| په الله باندې
دا ټول پیغمبران انیکانو ته| زیرې ورکونکی او [بدانو] ته ویرونکی رالیږلې شوی وۀ| چې د پیغمبرانو راتللو نه پس خلقو
حُجَّةُۢ بَعۡدَ ٱلرُّسُلِۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمٗا ۝ لَّٰكِنِ ٱللَّهُ
څه دلیل| روستو | د رسولانو نه| او دې الله | غالب قوی| حکمت والا | لیکن الله
سره د الله په وړاندې هیڅ عذر پاتې نشی| او الله ﷻ غالب او صاحب د حکمت دې| خو اګه دوئ نه منی نو څه او شو الله
يَشۡهَدُ بِمَآ أَنزَلَ إِلَيۡكَۖ أَنزَلَهُۥ بِعِلۡمِهِۦۖ
ګواهي کوی | په هغه څیز | چې نازل کړې نی دې | تاته | نازل کړې نې دې هغه | په علم سره
په دې خبره ګواه دې | چې تاته کوم حکمونه رالیږلې شوی دی |هغه نې په خپل کامل علم سره رالیږلې دی
وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ يَشۡهَدُونَۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدًا ۝ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ
او فرښتې هم| ګواهي کوی | او کافی دې | الله | په ګواهئ سره |بیشکه هغه کسان| چې انکار نې اوکړو
او فرښتې هم په دې خبره ګواهي کوی | او صرف د الله ﷻ ګواهي هم کافی ده | چا چې انکار کړې دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَصَدُّوْا | عَنْ سَبِيْلِ اللهِ | قَدْ ضَلُّوْا | ضَلٰلًا | بَعِيْدًا ﴿١٦٧﴾ |
| او منع ئې کړل خلق | دلارې دالله نه | يقيناً چې بې لارې شودحق نه | په بې لارې کيدو | لرې سره |

اوداالله ﷻ دلارې نه خلق منع کوی| ..........هغوی دسمې لارې نه ډېرلرې تلی دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | وَظَلَمُوْا | لَمْ يَكُنِ اللهُ | لِيَغْفِرَ | |
| بيشکه هغه کسان | چې دکفر په لارروان شو | اوظلمونه ئې شروع کړل | نو نهٔ دې الله | چې بخښي | |

چا چې انکار کړې دې | اوپه خلقوظلمونه کوی | الله ﷻ به هغوی هيڅ کله اونهٔ بخښي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَهُمْ | وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ | طَرِيْقًا ﴿١٦٨﴾ | اِلَّا | طَرِيْقَ | جَهَنَّمَ | خٰلِدِيْنَ | |
| هغوئ لره | او نهٔ اوښائي هغوئ ته | لار | مگر | لار | ددوزخ | چې تل به وی | |

اونهٔ به هغوئ ته سمه لار اوښائی | ..........البته د دوزخ لار به ورته اوښائي چې هميشه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيْهَآ | اَبَدًا | وَكَانَ | ذٰلِكَ | عَلَى اللهِ | يَسِيْرًا ﴿١٦٩﴾ |
| په هغې کښې | هميشه | اودې | دا کار | په الله باندې | آسان |

دپاره به په کښې پراتهٔ وی| اوداكار خو الله ﷻ ته ډېرآسان دی

**آسان ترجمه قرآن:** (اې پيغمبره !) مونږ تا باندې داسې وحی رالیږلې ده لکه څنګه چه مونږ حضرت نوح عليه السلام او نورو پيغمبرانو ته هم رالیږلې وه ، اومونږ ابراهيم ، اسماعيل ، اسحاق ، يعقوب او ددوی اولاد ته ،او عيسٰى، ايوب ، ، يونس ، هارون او سليمان ته هم وحي ليږلې وه ، اومونږ داوؤد عليه السلام ته زبور ورکړې وو او ډېر رسولان دی چه د هغوی واقعات مونږ تا ته اورولي دي ، او ډېر رسولان داسې دي چه د هغوی واقعات مونږ تا ته نه دی اورولی،او موسٰی عليه السلام سره الله براه‌راست خبرې کړې وې دا ټول هغه رسولان وو چه(د ثواب) خبرې اورولو او (دوزخ نه) ويرولو دپاره راليږلی شوي وو، دې دپاره چه ددې خلقو د راليږلو نه وروستو خلقو څخه دالله په مخکښې څه بهانه پاتې نه شي ، او دالله قدرت هم کامل دې ، او حکمت هم (دا کافران ئې مني او که نه مني ) ليکن الله چه څه په تا باندې نازل کړي دي د هغې په باره کښې هغه پخپله گواهي ورکوي چه هغه په خپل علم سره نازل کړي دي ، او فرښتې هم گواهي ورکوي ، او (هسې خو ) دالله گواهي بالکل کافي ده يقين وکړه چه کومو خلقو چه کفر کړې دې او خلقو لره ئې دالله د لارې نه بند کړي دي هغوی په گمراهۍ کښې ډير لرې تلی دی کومو خلقو چه کفر کړې دې ( اونورخلق ئې د الله د لارې نه بند کړي دي او په هغوی ئې)ظلم کړې دې ، الله به دوی نه اوبخي او نه به دوی ته څه بله لار وښائي. سوا د دوزخ د لارې نه چه هغې کښې به دوی هميشه هميشه وي او دا الله ته ډيره معمولي خبره ده.

**د آيتونو ربط:** د [يَسْئَلُكَ اَهْلُ الْكِتٰبِ] څخه يې د يهوديانو احمقانه سوال نقل کړو او بيا يې ددې الزام تفصيلي جواب ورکړې شو ، دې ځائې څخه په يو بل عنوان سره د هغوئ هم دا سوال باطل گرځولي کيږی ، [هغه دا چې] تاسو دا وائي چې مونږ په نبی کريم باندې ايمان راؤړو خو په دې شرط چې نبی کريم ﷺ د آسمان څخه يو ليکلې شوې کتاب راؤړی او مونږ ته يې اوښائی. اوس دا آووائي چې په دې پورته آيت کښې چې د کومو انبياء کرامو ﷺ ذکر دې ، دغه انبياء

ﷺ تاسو منئ ، خو دعوئ په حق تاسو داشان مطالبې نه کوئی ، نو تاسو چې کوم دلیل سره دا انبیاء کرام ﷺ منلی دی یعنی معجزو سره ، نو محمد رسول ﷺ سره هم معجزې شته دې ، نو تاسو په نبی کریم ﷺ باندې هم ایمان راوړئی ، خو خبره داده چې ستاسو مطالبه د حق د طلب کولو دپاره نه ده بلکه په دې کښې عناد دې .
مخکښې ئې د انبیاء ﷺ د بعثت حکمت هم بیان کړې دې . او نبی کریم ﷺ ته یې خطاب کړې دې چې که دا خلق ستا په نبوت باندې ایمان نه راوړی نو دوئ خپل انجام خرابوی ، ستاسو د نبوت گواه خو الله ﷻ پخپله دې ، او د الله ﷻ فرښتې هم ددې گواهی ورکوی.

**خلاصه تفسیر**

﴿ إِنَّآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ كَمَآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ نُوحٖ وَٱلنَّبِيِّـۧنَ مِنۢ بَعۡدِهِۦۚ ﴾ مونږ [تاسو لره څه نوے رسول نه دې جوړ کړې چه داسې وران ویجاړ فرمائشونه کوی بلکه] تاسو ته مو [هم هغسې] وحی لیږلې ده څنګه موچه [حضرت] نوح ﷺ ته لیږلې وه او ددوی نه پس نورو ته [مو لیږلې وه] او [دهغوی څخه مو دبعضو نومونه هم خودلی دی چه] ﴿وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَإِسۡمَٰعِيلَ وَإِسۡحَٰقَ وَيَعۡقُوبَ وَٱلۡأَسۡبَاطِ﴾مونږ حضرت ابراهیمﷺ، اسماعیل ﷺ، اسحاق ﷺ، یعقوب ﷺ، او اولاد د یعقوب ﷺ ته [چه څوك پیغمبران تیر شوی دی] ﴿ وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَٰرُونَ وَسُلَيۡمَٰنَۚ ﴾ او عیسی ﷺ ایوب ﷺ یونس ﷺ هارون ﷺ او سلیمان ﷺ ته مو وحی لیږلې وه او [دغه شان] ﴿ وَءَاتَيۡنَا دَاوُۥدَ زَبُورٗا ﴾ مونږه داود ﷺ ته وحی لیږلې وه [چنانچه دوی] ته مو [کتاب] زبور ورکړې وو او [ددوی نه علاوه] ﴿ وَرُسُلٗا قَدۡ قَصَصۡنَٰهُمۡ عَلَيۡكَ مِن قَبۡلُ ﴾ نورو [بعضو] داسې پیغمبرانو ﷺ لره [هم مونږ خاوندان دوحی جوړل کړل] چه حال ئې ددې نه وړاندې [په سورت انعام وغیره په مکی سورتونوکښې] مونږ تاسو ته بیان کړیدے ﴿ وَرُسُلٗا لَّمۡ نَقۡصُصۡهُمۡ عَلَيۡكَۚ ﴾ او [بعضې داسې پیغمبرانو ﷺ لره] مو [دوحی خاوندان جوړ کړل] چه لا ئې [تر اوسه پورې] مونږ تاسو ته بیان ندې کړې ﴿ وَكَلَّمَ ٱللَّهُ مُوسَىٰ تَكۡلِيمٗا ﴾ موسیﷺ لره هم دوحی خاوند جوړ کړو[چنانچه دوی] سره الله ﷻ په خاص خاص طور سره کلام اوفرمائیلو[او] ﴿ رُّسُلٗا مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ ﴾ دغو ټولولره مو [په ایمان باندې] زیری [دخلاصی] ورکونکې او [په کفر باندې دعذاب] ویره آورونکی پیغمبران جوړ کړل دے دپاره مو اولیږل ﴿ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى ٱللَّهِ حُجَّةُۢ بَعۡدَ ٱلرُّسُلِۚ ﴾ دپاره ددې چه خلقو لره دالله ﷻ په مخکښې ددې پیغمبرانو ﷺ [دراتلو] نه پس څه عذر [په ښکاره هم] پاتې نشی [ورنه په قیامت کښې به یې داسې وئیل چه د ډیرو څیزونو ښه والې او خرابوالې په عقل سره نشو معلومیدلے نو بیا زمونږ څه غلطی شوه] ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمٗا ﴾ او [داسې خو] الله ﷻ دپوره زور[او اختیار] خاوند دې [چه که درسولانو دلیږلو نه بغیر یې هم سزا ورکولے نو په دې وجه چه خانله مالك حقیقی دې، ظلم به نه کیدلې اوپه حقیقت کښې دعذر کولو حق هیڅ نشو لرلے لیکن چونکه] لوئې دحکمت خاوند [هم] دې [ځکه ئې د حکمت تقاضا داشوه چه رسولان ﷺ اولیږی چه ظاهری عذر دخلقو نه هم پاتې نشی دحکمت دابیان په مینځ کښې تبعًا راغلې وو، اوس وریسے دمحمد ﷺ په پیغمبرئ ثابتولو سره جواب مکمل کوی اوفرمائی چه که څوك دخپلے دې شك او شبهې په پورته کیدو سره هم پیغمبری نه منی] ﴿لَّٰكِنِ ٱللَّهُ يَشۡهَدُ بِمَآ أَنزَلَ إِلَيۡكَۖ أَنزَلَهُۥ بِعِلۡمِهِۦۖ﴾ لیکن [په مواقع کښې خو ثابته ده او ددې په ثبوت باندې

صحیح دلیل قائم دے چنانچه] الله ﷻ په ذریعه د دې کتاب چه تاسو ته يې ليږلے دې او ليږلے يې هم [په څه شان دې] په خپل علمي کمال سره [چه هغې سره هغه کتاب يوه لويه معجزه جوړ شو چه دپيغمبرئ] يو پرې كړې دليل دے [يعنې دليل دے دداسې معجز كتاب په ذريعه چه ستاسو د پیغمبرئ] گواهي وركوي [يعنې دليل قائموي لکه چه اوس معلوم شو چه معجز كتاب ئے نازل کړو او اعجاز دپيغمبرئ دليل سره خو په واقع كښې نبوت ثابت دې نو بيا د چا دمنلو او نه منلو خيال ئے ولې رازي] ﴿وَالْمَلٰٓئِكَةُ يَشْهَدُوْنَ﴾ او [كه طبعًا ئے زړه خامخا غواړي نو ددوي نه بهترين مخلوق يعنې] فرښتے [ستاسو دپيغمبرئ] تصديق كوي [او د مومنانو تصديق خوليدلے كتلے وو، نوكه څوبيوقوفان ئے نه مني نونه دې منى] ﴿ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا﴾ او [اصلي خبره خو هم هغه ده چه] هم دالله ﷻ گواهي [يعنې دليل قائمول په واقع كښې] كافي ده [ددې حاجت دسره نشته چه څوك دے ئے اومني].

﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴾څوك چه [ددې پريكړو دليلونو نه پس هم] منكر دی او [عجيبه دا چه نور خلق هم] دخدائې ددين نه منع كوي دوي [دحق نه] ﴿ قَدْ ضَلُّوْا ضَلٰلًۢا بَعِيْدًا﴾ په ډيرے لرے گمراهئ كښې پريوتی دی [دا خو په دنيا كښې ددوئ د مذهب حاصل دې او ددې نتيجه په آخرت كښې دا واورئ چه] ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَظَلَمُوْا﴾ بيشكه څوك چه [دحق نه] منكر دی او [حق نه خلق اړوی] دنورو هم نقصان كوی ﴿ لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيْقًا﴾ الله ﷻ به دوی لره چرې هم او نه بخښنی او نه به دوی ته جهنم نه ﴿اِلَّا طَرِيْقَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا﴾سوا بله لار [يعنې دجنت لار] اوښائی په داسې شان چه دې [جهنم]كښې به هميشه هميشه پاتې كيږی ﴿وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا﴾او دالله ﷻ په نزد دا سزا معمولي خبره ده [دے دپاره دبندوبست كولو ضرورت ورته نشته].

## معارف او مسائل

[اِنَّآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ كَمَآ اَوْحَيْنَآ اِلٰى نُوْحٍ وَّالنَّبِيّٖنَ مِنْۢ بَعْدِهٖ] دې نه معلومه شوه چه وحی خالص دالله تعالی حكم اودهغه پيغام دې چه پيغمبرانوته ليږلې شي اوڅنګه چه په تيروشوؤپيغمبرانو ﷺ باندې دالله تعالى وحی نازله شوه، همدغه شان په حضرت محمد ﷺ باندې هم الله تعالى خپله وحى اوليږله، نوچاچه هغه اومنله دې لره هم ضرورمنل پكاردی، اوچاچه ددې نه انكار اوكړو، گوياكښې دهغې ټولونه منكرشو، حضرت نوح ﷺ اوددې نه روستوپيغمبرانو ﷺ دتشبيه وركولووجه شايد داده چه دحضرت آدم ﷺ دوخت نه شروع شوې وحی دړومبی حالت وحى وه چه حضرت نوح ﷺ باندې دهغې تكميل اوشو، گوياكښې دغه اولنې حالت دتعليم رومبې حالت وو، دحضرت نوح ﷺ په زمانه كښې دغه حالت پوره كيدوسره ددې جوګه شوچه امتحان ئې واغستې شى، فرمانبردارو ته انعام اونافرمانوته سزا وركړې شى، چنانچه داولوالعزم پيغمبرانو ﷺ لړئ هم دحضرت نوح ﷺ نه شروع شوه اودوحى الهى نه مخ اړوونكوباندې اول عذاب هم دحضرت نوح ﷺ دوخت نه شروع شو.

خلاصه داشوه چه دحضرت نوح ﷺ نه وړاندې زمانه كښې به دالله تعالى اوپيغمبر په نافرمانئ كولوڅه عذاب نه نازليدو، بلكه خلق به معذوره ګڼړلې شو اومهلت به وركولې شو

او صرف هغوئ به پوهولې شو، دحضرت نوح عليه السلام په زمانه کښې هر کله چه تعليم په ښه شان سره ښکاره شو او د الله تعالى دحکم په منلو کښې هيڅ قسم پټوالې پاتې نشو نو دغه وخت په نافرمانو خلقو باندې عذاب نازل شو، اول دحضرت نوح عليه السلام په زمانه کښې طوفان راغلو، وروسته دحضرت هود عليه السلام حضرت صالح عليه السلام حضرت شعيب عليه السلام او نورو انبياؤ په زمانو کښې په کافرانو قسما قسم عذابونه راغلل، هر کله چه د رسول الله ﷺ دوحى تشبيه، د حضرت نوح عليه السلام او دهغوئ عليه السلام نه روستو راتلونکو پيغمبرانو عليهم السلام دوحى سره وکړې شوه نو په دې کښې اهل کتابو او مشرکينو د مکې ته پوره خبردارې ورکړې شو چه که دوئ ستاسو ﷺ وحى يعنى قرآن کريم نه منى نو دلوئ عذاب حقدار به جوړ شى. [فوائد علامه عثمانى] (١)

دحضرت نوح عليه السلام ذات مبارک پخپله هم يوه معجزه داسې وه چه نهه نيم سوه کاله عمر ورکړې شو په دې ټول عمر کښې ئې يو غاښ هم نه وؤ پريوتې، يو ويښته ئې هم نه ووسپين شوې، بدنى طاقت ئې هم څه کم شوې نه وو او ټول عمر ئې دقوم له اړخه تکليفونه او زيانونه په صبر سره زغمل [مظهرى] (٢)

[وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنٰهُمْ عَلَيْكَ] دحضرت نوح عليه السلام نه پس ئې دپيغمبرانو عليهم السلام اجمالى ذکر اوکړو او دهغوئ عليهم السلام څخه ئې داولوا العزم او جليل القدر پيغمبرانو عليهم السلام ذکر په خاص ډول هم اوکړو، دې سره دا ښودل مقصود دى چه دا ټول انبياء عليهم السلام دى چه ورته په مختلفو طريقو سره وحى راغى، کله ورته فرشته پيغام راوړى، کله ورته ليکلې کتاب ورکولې شى، کله ورسره الله تعالى نيغ په نيغه کلام کوى، غرض دا چه په هرې طريقې سره راغلې وحى باندې عمل کول واجب دى، نو ديهودو دا وينا کول چه مونږ به هله منو چه دتورات په شان ليکلې کتاب نازل شى نو داسو چه کفر او بيوقوفى ده.

دحضرت ابى ذر رضى الله عنه په روايت سره رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه الله تعالى يو لاک شلير ويشت زره رسولان عليهم السلام راليږلى دى چه په کښې درې سوه ديارلس دشريعت خاوندان وو. [قرطبى] (٣)

[رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ] الله تعالى په مخه، پيغمبران عليهم السلام دې دپاره راليږل چه مؤمنانو ته زيرې ورکوى او کافران ويروى چه دقيامت په ورځ خلق څه عذر اونکړې شى، او دا اونه وئيلې شى چه مونږ ته ستاﷻ مرضى او نامرضى معلومه نه وه، که راته معلومه وې نو ضرور به ستاﷻ په مرضئ تلو، هر کله چه الله تعالى پيغمبرانو عليهم السلام ته معجزې ورکړې او وې ليږل، پيغمبرانو عليهم السلام خلقو ته حق لار اوښودله نو اوس ددين حق په نه قبلولو کښې دهيچا هيڅ عذر آوريدل نشى کيدې دا دالله تعالى له اړخه داسې يو پريکړې دليل دې چه دهغې په وړاندې بل هيڅ دليل نشى چليدې بلکه ټول دليلونه پريکړې شى او دا دالله تعالى حکمت او تدبير دې.

دحضرت عبد الله بن عباس رضى الله عنهما نه روايت دې چه ديهوديانو يو جماعت رسول الله ﷺ ته راغلو، هغوئ ﷺ ورته اوفرمائيل چه قسم په خدائ تاسو ته يقينا دا خبره معلومه ده چه زه

---

(١) تفسير عثمانى تحت هٰذه الآية: ج ١، ص ٣٢٦
(٢) تفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٢٤٥
(٣) وكذا في المستدرك للحاكم رقم الحديث: ٤١٦٦ باب ذكر نبى الله وروحه الخ وتفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: ج ٦، ص ١٨

دخدائ په حقه رسول یم، هغوئ ترې انکار اوکړونو په دغه موقعه داآیت نازل شو اَلٰكِنِ اللّٰهُ يَشْهَدُ بِمَآ اَنْزَلَ اِلَيْكَ (۱) په دې کښې دااوښودلې شوچه الله تعالی ددې معجز کتاب په ذریعه چه دهغه دعلمی کمال ننداره ده، ستاسو ﷺ پیغمبرئ باندې ګواه دې، هغه سره دپوهې کتاب نازل کړوچه تاسو ددې جوګه [قابل] نئ، اوفرښتې هم په دې ګواه دی اودعلیم اوخبیرذات د ګواهئ نه پس بیاد کوم یودلیل حاجت باقی پاتې کیږی.

دقرآن مجید اودرسول الله ﷺ درشتینولئ ثابتولونه پس فرمائی چه اوس څوک منکردی اوپه تورات کښې موجود دهغوئ ﷺ حالات اوصفات پټوی خلقوته څه بل بل څیزښکارکولوپه زورهغوئ لره دحق دین نه بل خوا اړوی، نوداسې خلقوته نه خوبه بخښنه نصیب شي اونه هدایت، دې نه په ښه شان معلومه شوه چه هدایت خالص دهغوئ ﷺ په تابعداریٔ کولوبناء دې، اوګمراهی دهغوئ ﷺ دمخالفت کولونوم دې په دې سره دیهودو ، ټول خیالات غلط ثابت کړې شو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَآاَيُّهَا النَّاسُ | | | | | |
| اې خلقو | | | | | |
| اې خلقو! ........ | | | | | |
| قَدْ | جَآءَكُمُ | الرَّسُوْلُ | بِالْحَقِّ | مِنْ رَّبِّكُمْ | فَاٰمِنُوْا |
| په تحقیق سره | راغلې دې تاسو ته | رسول | دحق سره | دطرفه درب ستاسو نه | نو ایمان راوړئ |
| تاسو ته پیغمبر دالله ﷺ دطرفنه دحق تعلیم راوړې دې | ........ نو په دې یقین اوکړئ | | | | |
| خَيْرًا لَّكُمْ ؕ | وَاِنْ تَكْفُرُوْا | فَاِنَّ | لِلّٰهِ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ |
| دا بهتره ده ستاسو دپاره | او که انکار کوئ تاسو | نو بیشکه | الله لره دی | هغه څه | چې په آسمانونو کښې دی |
| خکه چې په دې کښې ستاسو خیر دې | او که انکار کوئ نو هرڅه چې په آسمانونو کښې دی | | | | |
| وَالْاَرْضِ ؕ | وَكَانَ اللّٰهُ | عَلِيْمًا | حَكِيْمًا | | |
| او په زمکه کښې دی | اودې الله | په هر څیز پوهه | حکمت والا | | |
| او په زمکه کښې دی هغه ټول دالله ﷻ دی | او الله ﷻ په هرڅه پوهه اودحکمت خاوند دې | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** اې خلقو دې رسول تاسو ته ستاسو د پروردګار د طرف نه حق راوړې دې اوس (په ده باندې) ایمان راوړئ ، څکه چه داستاسو په حق کښې ډیره بهتره ده او که (اوس هم) تاسو کفر وکړو نو (ښه پوهه شئ چه) ټولو آسمانونو او زمکو کښې چه څه دي ټول دالله دي ، او الله علم والا دې او حکمت والا هم دې.

**د آیتونو ربط** د یهودیانو د اعتراض دجواب او د نبی کریم ﷺ د نبوت د اثبات نه پس اوس ټولو انسانانو ته خطاب کیږی چې ستاسو نجات په دې کښې دې چې تاسو په نبی کریم باندې ایمان راوړئ.

(۱) دلائل النبوة للبیهقی رقم الحدیث: ۷۸۷، باب ما جاء فی دخول عبد الله بن سلام رضی الله عنه.

## خلاصه تفسير

﴿ يَاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ الرَّسُوْلُ بِالْحَقِّ مِنْ رَّبِّكُمْ ﴾ ائې تولو [دټول جهان] خلقو تاسو ته دې رسول ﷺ رښتينې خبره [يعنى رښتينې دعوى رښتينې دليل] راوړو ستاسو دپروردګار له طرفه نه تشريف راوړے دې نو [په صحيح دليل سره ددعوے ثابتولو تقاضا داده چه] ﴿ فَاٰمِنُوْا خَيْرًا لَّكُمْ ﴾ تاسو [پدوى] او څه څه چه دوى فرمائى په ټولو يقين لرئ [ځا چه د رومېے نه يقين کړې دې هغه دے پرې کلك اودرېږى اوچه نه يئ دے پرې کړې نو اوس دې او کړى] دابه ستاسو دپاره ډيره غوره وى [ولې چه خلاصے به بيا مومى] ﴿ وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾ اوکه تاسو منکر شوئ نو [زيان هم ستاسو دے دالله ﷻ هيڅ زيان نه دې ولې چه] دالله [خو] ملکيت دى دا ټول هرڅه [هم] چه په آسمانونو او زمکه کښې [موجود] دى [نو داسې لوئې عظيم الشان مالك قادر ته څه نقصان رسولې شى البته خپل خير غواړئى] ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴾ او الله ﷻ [دټولودايمان اوکفر] پوره خبر لرى [اوپه دنيا کښې چه پوره سزا نه ورکوى نووجه ئے داده چه] دكامل حكمت خاوند [هم] دے [د هغه حکمت ددې تقاضا کوى].

يَاَهْلَ الْكِتٰبِ
انې اهل کتابو |
انې اهل کتابو

لَا تَغْلُوْا فِىْ دِيْنِكُمْ وَلَا تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ اِنَّمَا
مۀ اوخئ دحد نه | په دين خپل کښې | او مۀ وايئ | په الله باندې | مګر | حق | بيشکه
پخپل دين کښې دحد نه مه تيرېږئ | او الله ﷻ ته د حقې خبرې نه سوا بل نسبت مۀ کوئ | خبره داده چې

الْمَسِيْحُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَكَلِمَتُهٗ اَلْقٰهَآ
مسيح | عيسى | خوې | دمريم | رسول دالله دې | اوفرمان دې دهغه | چې اولېږلو الله دغه فرمان
مسيح عيسى دمريم خونې دې | اودالله ﷻ رسول دې | او دهغه حکم دې | چې الله ﷻ

اِلٰى مَرْيَمَ وَرُوْحٌ مِّنْهُ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ
مريم ته | او روح دې | دطرفه دالله نه | نو ايمان راوړئ | په الله | اوپه رسولانو دهغه
مريم ته راولېږلو | اودالله ﷻ دطرفه يوروح دې | نو په الله ﷻ اودهغه په پيغمبرانو باندې ايمان راوړئ

وَلَا تَقُوْلُوْا ثَلٰثَةٌ اِنْتَهُوْا خَيْرًا لَّكُمْ اِنَّمَا اللّٰهُ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ
اومۀ وايئ | درې | منع شئ | دابهتره ده | ستاسو دپاره | بيشکه الله | معبود دې | اکې يو
اودامۀ وائې چې خدايان درې دى | ددې نه منع شئ | هم په دې کښې ستاسو خيردې | معبود صرف يو الله دې

سُبْحٰنَهٗ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗ وَلَدٌ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ
پاك دې هغه | ددې خبرې نه چې وى | هغه لره | خونې | هغه لره دى | هغه هرڅه | چې په آسمانونو کښې دى
هغه ددې نه پاک دې چه څوک دې د هغه خونې شى | د آسمانونو او د زمکې هر څه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَا فِي الْأَرْضِ ط | وَكَفَى | بِاللَّهِ | وَكِيلًا ۝ | |
| او هغه هر څه چې په زمکه کښې دی | اوکافی دې | الله | په حیثیت دخبر اخستو دهغې | |
| د هغه مخلوق دی | ............ اوددې ټولود ساتنې دپاره صرف الله ﷻ کافی دې | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** اې اهل کتابو! خپل دین کښې د حد نه مه اوړئ او دالله په باره کښې د حقې خبرې نه سوا نور څه مه وایئ. مسیح ابن مریم خو صرف دَ الله رسول وو ، او دالله یوه کلمه وه چه مریم ته ئې رسولې وه ، او یو روح وو چه دده د طرف نه (پیدا شوې) وو لو په الله او د هغه په رسول باندې ایمان راوړئ، او دا مه وایئ چه (خدایان) درې دی. دې خبرې نه منع شئ دا ستاسو په حق کښې بهتره ده. الله خو یو معبود دې او دې خبرې نه پاک دې چه د هغه څوك څوئ وي په آسمانونو او زمکو کښې چه څه دي ټول د هغه دي او د ټولو دپاره الله کافي دې.

**د ایتونو ربط:** ددې څخه مخکښې آیتونو کښې یهودیانو ته خطاب وو او دهغوئ د گمراهیانو تفصیل ذکر کړې شوې وو ، دې آیتونو کښې نصاراؤ ته خطاب دې ، او دهغوئ دغلطو عقیدو او د الله ﷻ او د عیسی ؑ متعلق ددوئ د باطلو خیالاتو تردید کړې شوې دې.

**خلاصه تفسیر**

﴿يَاأَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ﴾ ائې اهل کتابو [انجیلیانو] تاسو په خپل دین [یعنی په دې باره] کښې [دحقې عقیدې] دحد نه مه اوځئ؛ ﴿وَلَا تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ ط﴾ اودالله ﷻ په شان کښې غلطه خبره مه کوئی چه [نعوذ بالله دهغه اولاد شته لکه چه بعضو به وئیل ﴿ان الله ثالث ثلثة﴾ یعنی دریمه برخه الله پخپله دې. دوه برخې حضرت عیسی ؑ او حضرت جبرائیل ؑ دې. لکه چه په بل ځائې کښې د ﴿ ولا الملٰئكة المقربون﴾ د زیاتولو نه معلومیږی. او بعضو حضرت مریم ته خدائ وانی لکه چه د ﴿ اتخذونی امی الهین من دون الله ﴾ نه معلومیږی. یا الله ﷻ بعینه پخپله مسیح دې. لکه چه بعضو به وئیل چه ﴿ ان الله هوالمسیح ابن مریم﴾. غرض دا چه دا ټولې عقیدې باطلې دی] ﴿ اِنَّمَا الْمَسِيْحُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ﴾ مسیح عیسی ځوئې دمریم خو بل هېڅ نه دې البته دالله ﷻ رسول دے ﴿وَكَلِمَتُهٗ ۚ اَلْقٰهَا اِلٰى مَرْيَمَ وَرُوْحٌ مِّنْهُ ؗ﴾ اودالله ﷻ یو کلمه [پیدانش] دې چې دې لره الله ﷻ [حضرت مریم پورې [دحضرت جبرائیل ؑ په واسطه] رسولې وو او دالله ﷻ له طرفه یو ساه [دار څیز] دے [چه دغه ساه ئې دحضرت مریم په بدن کښې دحضرت جبرائیل ؑ دپوك وهلو په واسطه رسولې وه باقی نه خو هغه دالله ﷻ ځوئې دې نه د دریو نه یو دے لکه په ذکر شوئ عقیدو کښې چه لازم راځی] ﴿ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ۚ﴾ نو [هرکله چه دا ټولې خبرې غلطې دی ځکه ددې ټولو نه توبه اوکړئ او] په الله ﷻ دده په ټولو رسولانو [د هغوی دتعلیم په جوړ] ایمان راوړئ [او دا اداره دی په توحید باندې پس دتوحید عقیده لرئ] ﴿وَلَا تَقُوْلُوْا ثَلٰثَةٌ ط﴾ اوداسې مه وائی چه [معبودان] درے دی [مقصود تاسو لره دشرك نه منع کول دی او دا ټول په تیرو شوئ قولونوکښې مشترك دے ددې شرك نه] ﴿ اِنْتَهُوْا خَيْرًا لَّكُمْ ط﴾ منع شئ ستاسو دپاره به ډیره غوره وی [او دتوحید اقرار کوونکی شئ ځکه چه] ﴿ اِنَّمَا اللّٰهُ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ط﴾ حقیقی معبود خویو معبود دے [او] ﴿ سُبْحٰنَهٗٓ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗ وَلَدٌ ۘ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ط﴾ هغه دصاحب اولاد کیدونه بری دے څه چه په آسمانونواو په زمکه کښې موجودات دی ټول دهغه ملك دی [اودهغه بری کیدل

او مطلقًا مالك كيدل دتوحيد دليل دې] او [يو دليل دادې چه] ﴿ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا﴾ الله ﷻ په كارسازوكيدو كښې كافي دے [اودده نه سوا نور ټول په كارسازئ كښې ناكافي بل ته محتاج اويو حد ته د رسيدو نه پس عاجزه كيدونكي دي او دا كافي كيدل دكمال دصفتونو بعضي دي اود صفاتو كمال د خدائې د لوازماتو بعضې دے هركله چه دا په غير الله كښې نشي كيدلې نو بل چا له خدائې هم نشي كيدلې لهذا توحيد ثابت شو].

## معارف اومسائل

[وَكَلِمَتُهُ] دې لفظ كښې اوښودلې شوچه حضرت عيسى ؑ دالله تعالى كلمه ده،مفسرينو ددې مختلفې معنې بيان كړيدى.

① امام غزالي رحمه الله فرمائي چه ديوماشوم په پيداكيدوكښې دوه څيزونه كاركوى اولنې څيز نطفه ده اودويم څيزدالله تعالى [كن] فرمائيل دى،چه ددې نه پس ماشوم پيداكيږي. دحضرت عيسى ؑ په حق كښې هركله چه رومبې څه څيزنشته څكه ئې دويم څيزته دنسبت كولوپه وجه ورته [كن] اووئيلې شو(١)،مطلب ئې داشوچه هغوئ دمادي اسبابودواسطې نه بغيرصرف د[كن] كلمې سره پيداشويدې.په دې صورت كښې به د[أَلْقَاهَا إِلَىٰ مَرْيَمَ] دامعنى وى چه الله تعالى داكلمه حضرت مريم ؑ ته اورسوله چه په نتيجه كښې ئې حضرت عيسى ؑ پيدا شو.

② څنې علماؤ[كلمة الله] په معنى د[بشارة الله] اغستې دې،دې نه مرادحضرت عيسى ؑ دې چه الله تعالى دفرښتوپه ذريعه دده زيرې بي بي مريم ؑ ته وركړې وواو ددې دپاره ئې لفظ د[كلمې] استعمال كړولكه فرمائى ﴿إِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ﴾

③ څنې علماؤ[كلمه] دآيت اونښانئ په معنى كښې اغستې ده لكه چه په قرآن كريم كښې هم په دې معنى كښې استعمال شويده:﴿صَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا﴾

[وَرُوحٌ مِّنْهُ] په دې لفظ كښې دوه خبرې دژورې كتنې وړدى، يوداچه حضرت عيسى ؑ ته د[روح] وئيلوڅه معنى ده؟ بله داچه الله تعالى ته ددې دنسبت كولوڅه مطلب دې؟په دې سلسله كښې دمفسرينورحمهم الله كنړاقوال نقل كړې شويدى:

① څنې علماء رحمه الله وائى چه هركله ديوڅيزپاكى اوپاكيزګى بيانول وى نومبالغې دپاره په هغې د[روح] اطلاق كولې شي،په دې بناهركله چه دحضرت عيسى ؑ په پيدا كيدو كښې دپلارنطفې لره دخل نه وو،هغه صرف دالله تعالى د ارادې اودهغه دكلمې د[كُن] نتيجه وو،څكه هغوئ ؑ په پاكئ اوپاكيزګئ كښې كاملې درجې ته رسيدلې وو،لهذادعرف دمحاورې په جوړورته [روح] اووئيلې شو، الله تعالى ته ددې نسبت كول دهغوئ ؑ دعظمت اوشرافت بيانولودپاره دى،څنګه چه د[مساجد] او[كعبې] نسبت الله تعالى ته ددې عظمت او شرافت ښكاره كولودپاره وى لكه [مساجدالله] او [بيت الله] وئيلې شي يادېومخلص ترين عبادتګذاربنده نسبت چه الله تعالى ته كولې شي،چنانچه په سورت بنى اسرائيل كښې داصيغه درسول الله ﷺ دپاره داسې استعمال شويده:﴿أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ﴾

---

(١) روح المعاني تحت هذه الآية: ج ٢، ص ٢٢٦

② ځنې علماؤ رحمهم الله فرمائيلي دي چه هرکله دحضرت عيسى عليه السلام د پيغمبر کولو مقصد دا وو چه دخلقو په مړوزړونو کښې روح واچوي اوبيائې ژوندي کړي، هرکله چه هغوئ عليه السلام د روحاني ژوند سبب وو ځکه چه روح د جسماني ژوندون سبب وي نو په دې وجه حضرت عيسى عليه السلام ته هم [روح] اووئيلې شو، لکه ځنګه چه پخپله قرآن کريم د پاره هم دا لفظ استعمال شويدې: ﴿وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا﴾ ولې چه قرآن کريم هم روحاني ژوند خلقوته وربخښي،

③ ځنې علماؤ رحمهم الله [روح] په معنى د [راز] سره اغستې دې، هرکله چه حضرت عيسى عليه السلام دخپل عجيب اوغريب [ناآشنا] پيدائش په وجه د الله تعالى يو نشاني اوراز وو ځکه ورته [روح الله] اووئيلې شو.

④ ځنې علماؤ رحمهم الله ددې معنى په حذف دمضاف سره ﴿ذُو رُوحٍ مِّنْهُ﴾ اغستې ده، هرکله چه ټول سادار ځيزونه په [ذي روح] کيدو کښې يو شان دي، په دې وجه دحضرت عيسى عليه السلام د بيلتون راوستو د پاره الله تعالى ددوئ نسبت خپل ځان ته اوکړو،

⑤ ديو قول په جوړ ددې معنى [پوک وهل] دي چه حضرت جبرئيل عليه السلام دحضرت مريم عليها السلام په ګريوان کښې دالله تعالى په حکم پوک وهلى وو، چه دهغې له کبله په حضرت عيسى عليه السلام بارداره شوې وه، په دې لحاظ ورته [روح الله] اوفرمائيلې شو، لکه دقرآن کريم په بل آيت کښې چه دې ته اشاره شويده: ﴿فَنَفَخْنَا فِيهِ مِن رُّوحِنَا﴾

دې نه علاوه نور هم ګڼ احتمالات بيان کړې شويدي، خو هرځنګه چه وي ددې مطلب دانشى کيدې چه حضرت عيسى عليه السلام دالله تعالى يو جزو [برخه] دې اودغه روح دحضرت عيسى عليه السلام په انساني شکل کښې ښکاره شوې دې،

**لطيفه**: علامه محمود آلوسي بغدادي رحمه الله يو واقعه ليکلې ده چه دهارون الرشيد په دربار کښې يو عيسائي طبيب، حضري علي بن الحسين واقدي رحمه الله سره په مناظره کښې داسې اووئيل چه ستاسو په کتاب [قرآن کريم] کښې ديو لفظ نه دامعلوميږي چه حضرت عيسى عليه السلام دالله تعالى جزو [برخه] دې اوپه دليل کښې ئې هغه آيت اولوستلو په کوم کښې چه د [رُوحٌ مِّنْهُ] لفظ راغلې دې، علامه واقدي رحمه الله دهغه په جواب کښې يو بل د آيت ﴿وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مِّنْهُ﴾ اولوستلو چه په دې کښې ئې ورته اوښودل چه که [مِّنْهُ] نه مطلب دا شي چې عيسى عليه السلام د الله تعالى جز دې. نو بيا د زمکې اود آسمانونو ټول ځيزونه دالله تعالى جزونه [برخې] ثابتيږي. دغه نصراني ددې هيڅ جواب اونشو کړې اومسلمان شو(1).

[وَلَا تَقُولُوا ثَلَاثَةٌ] دقرآن کريم دنازليدو په وخت نصاراى چه په کومولويو فرقو کښې تقسيم وو، د [تثليث] په باره کښې ددوئ عقيده په بيلوبيلو اصولو باندې بناء وه، يوې فرقې داوئيل مسيح بعينه خداى دې يعنى پخپله خداى دحضرت مسيح عليه السلام په شکل کښې دنياته راکوز شويدې، بلې فرقې به دا وئيل چه حضرت مسيح عليه السلام دالله تعالى ځوئ دې، دريمې فرقې دا دعوې لرله چه ديو والى راز په دريو کښې پټ دې، پلار، ځوئ او مريم په دې فرقې کښې هم

---

(1) روح المعاني تحت هذه الاية: ج ٢، ص ٢٢٤

د وه ډلې وې دغه بلې ډلې به د مريم په ځاې [روح القدس] ته دريم [اقنوم] وئيلو. غرض داچه دغې خلقو حضرت مسيح ﷺ لره دريم د درېوځخه منلو، په دې وجه قرآن کريم درې واړه فرقوله بيل بيل هم مخاطب کړيدى اويوځاې هم اوپه نصارى ئې دا واضحه کړيده چه حق هم يودې او هغه داچه حضرت مسيح ﷺ د مريم نه پيداشوې انسان اود الله تعالى رشتينې رسول دې، دې نه زيات نورهرڅه چه وئيلې شى هغه ټول باطل اولغودى، خواه په دې کښې [تفريط] وى لکه ديهودوپه عقيده کښې حضرت مسيح ﷺ ته ټوتکه بازاودځانه خبرې جوړوونکې وئيلې شويدى، ياپکښې [افراط] وى لکه دنصارى عقيده چه ده چه وائى هغه په خپله خداى يادخداى ځوى دې ياددرېوځنې دريم دې.

په قرآن کريم په بې شميره آيتونوکښې، يوارخ ته خو يې دنصاراؤاويهودوګمراهى په ډاګه کړه اوبل ارخ ته ئې دحضرت عيسى ﷺ لوړشان اود الله تعالى په نزد، دهغه اعلى مقام ئې ښکاره کړې دې، دپاره ددې چه دافراط اوتفريط دکړولارونه دحق معتدله لارڅرګنده شى،

په عيسائى عقيدو، اودهغې په مختلفوارخونوباندې اوددې په مقابله کښې که د اسلام په حقانيت باندې تفصيلى معلومات حاصلول غواړئ نو دحضرت مولانارحمت الله صاحب کيرانوى مشهور کتاب [اظهار الحق] مطالعه کړئ چه دعربئ نه دهغې ترجمه سره دشرح اوتحقيق [بائبل سے قرآن تک] نه اوس اوس، دکراچئ دار العلوم په درېوځ جلدونو کښې شائع کړيدې.

[لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۗ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا] [يعنى په آسمانونو اوزمکه کښې، دپورته نه ښکته څه چه دى، هغه ټول دده مخلوق، مملوک اوبندګان دى نوبيااوښائي چه دهغه شريک، ياځوئ، څوک اوڅنګه کيدې شى؟ او الله تعالى دټولو کارونوجوړونکى دې اودټولود کارجوړولودپاره هم دې کافى اوپوره دې، دبل چاحاجت نشته، بيااووائي چه هغه ته دشريک يادځوئ حاجت اوضرورت څنګه راپيښيدې شى؟

خلاصه داشوه چه په مخلوق کښې هيڅوک دده دشريک جوړيدوجوګه نشى جوړيدې اونه دده په ذات کښې څه ګنجائش کيدې شى، اونه ئې ورته حاجت شته، دې نه معلومه شوه چه په مخلوقاتوکښې چاته دخداى شريک ياځوئ وئيل دهغه چاکاردې چه ايمان اوعقل دواړه نه لرى،

**په دين کښې غلوحرامه ده:** **قوله تعالى:** [لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ] په دې آيت کښې اهل کتاب په دين کښې د [غلو] نه منع کړې شويدى، د [غلو] لفظى معنى حدنه وتل دى اوامام جصاص رحمه الله په [احکام القرآن] کښې ليکلى دى،

الغلوفى الدين هومجاوزة حد الحق فيه.(١) ددين په باره کښې غلوداده چه په دين کښې دټاکلى حدودونه پر ورتير شى، اهل کتاب دواړه ډلې يهوداونصاراى، ددې حکم مخاطب څکه جوړکړې شوچه په دين کښې غلو کول په دې دواړومشترک څکه دى چه عيسايانو دحضرت عيسى ﷺ په منلو او تعظيم کښې دحد نه تيريدل اوکړل، هغه ئې خداى، دخداى ځوئ يادريم خداى جوړکړو، اويهودو دهغوئ ﷺ په نه منلو اوردکولو کښې دحدنه تيريدل اوکړل چه هغه ئې رسول هم اونه منلو بلکه معاذ الله دهغوئ ﷺ په موربى بى مريم باندې تورپورې کړواودهغوئ ﷺ په نسب ئې عيب اولګولو.

(١) أحكام القرآن للجصاص، سورة النساء، باب استتابة المرتد: ج ٥، ص ١٥٨

هر کله چه په دین کښې دحدنه دتیریدلو په سبب دیهودو او نصاراؤ ګمراهي او تباهي په لیدلو کتلو کښې راغلې وه، په دې وجه رسول الله ﷺ خپل امت ته په دې معامله کښې دپوره احتیاط تاکید اوفرمائیلو، چنانچه دمسند احمد په حواله دحضرت فاروق اعظم رضی الله عنه په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلي دي، «لاتطروني كما اطرت النصارى عيسى ابن مريم فانما انا عبد فقولوا عبد الله ورسوله» زما په تعریف کولو کښې داسې زیاتي مه کوئ څنګه چه نصاراؤ دعیسی ابن مریم په معامله کښې کړیدي ښه پوه شئ چه زه دالله تعالی بنده یم په دې وجه تاسو ماته دالله بنده اودهغه رسول وائې. [داروایت، بخاری اوابن مدینی هم روایت کړې دې اوددې سند ته ئې صحیح ونیلی دی][۱]

خلاصه داشوه چه زه د الله ﷻ بنده او بشر کیدلو کښې تولوسره شریک یم دالله تعالی بنده او بشر یم، زما د تولونه لوپه درجه داده چه دالله تعالی رسول یم، ددې نه نورمالره داسې مخکښې کول چه دالله تعالی په صفتونو کښې م شریک اوګرځوئ، دا [غلو] ده تاسو دنصاراؤ پشان چرته په دې غلو کښې راګیرنشئ اودیهودو اونصاراؤ [غلوفی الدین] صرف انبیاؤ ترحده پورې پاتې نشوه، بلکه هر کله چه هغوئ په دې عادت شونو دانبیاؤ ﷺ دحواریینو، تابعدارانو او نائبانو په مقابله کښې ئې هم دغه رویه اختیار کړه، رسول ﷺ نه ئې خدائ جوړ کړې ؤو، د رسول ﷺ تابعدارانو لره ئې دمعصومانو درجه ورکړه، په دې کښې ئې دا تحقیق اوتنقید هم اونکړو چه دغه خلق په رشتیا دانبیاؤ ﷺ تابعداران اودهغوئ ﷺ په تعلیم باندې په صحیح طریقه کاربند دي، یا صرف دوراثت اونسب په توګه عالم، شیخ اوپیر ګنړلې شي، نتیجه ئې داراؤخته چه بیاددوئ قیادت دداسې خلقو په لاس کښې راغې چه پخپله هم ګمراهان وواوددوئ ګمراهي به ئې نوره هم زیاتوله، ددین اودینداري دلارې نه ددوئ دین بربادشو. قرآن کریم ددغسې خلقو حالت په دې آیت کښې داسې بیان کړیدې «اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ» [یعنی دغې خلقو خپل مذهبی پیشوایان هم دمعبود په درجه کښې اوګرځول، په دې ډول ئې رسولان دوړاندې نه خدایان ګرځولي وواودرسول ﷺ دتابعدارئ په نوم ئې دپخوانو مذهبونو پیشوایانو هم عبادت شروع کړو.

دې نه معلومه شوه چه دین کښې غلو [دحدنه تیریدل] داسې یو تباه کوونکې څیزدې چه د پخوانو امتونو دین ئې هم ددین په نوم باندې برباد کړیدې، په دې وجه زمونږ آقا اومولا رسول الله ﷺ خپل امت لره ددې لوئ وبانه دساتلو دپاره مکمل انتظامونه اوکړل.

په حدیث کښې راغلی دی چه دحج په موقع، هر کله چه رسول الله ﷺ دجمرود ویشتلو دپاره حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه دګیټکو [شکو] راجمع کولو اوفرمائیل نوهغوئ رضی الله عنه درمیانه ګیټکئ [شګې] پیش کړې، د هغې په لیدوئې هغه ډیرې خوښې کړې اودوه ځل ئې اوفرمائیل، [بمثلهن، بمثلهن] [یعنی په داسې درمیانه ګیټکو [شکو] باندې جمرې ویشتل پکاردی] بیا ئې اوفرمائیل:

---

[۱] مسند أحمد، مسند عمر بن الخطاب رضی الله عنه، رقم الحدیث: ۲۹۸، وصحیح البخاری، کتاب الأنبیاء، باب واذکر فی الکتاب مریم الخ: ج۱، ص ۴۹۰

ایاکم والغلو في الدين فانما اهلك من قبلكم بالغلو في دينهم(١)، په دین کښې د غلو نه ځان ساتئ ولې چه تاسو نه رومبی امتونه په دین کښې د غلو په وجه هلاک او برباد شو، دې حدیث نه څو ضروري مسئلې معلومې شوې.

**ضروري فائدې:** ① اول دا چه دحج په موقعه دجمرو ويشتلو دپاره دداسې ګيټګئ [اشکې] استعمالوی چه نه ډيرې غټې اونه ډيرې ورې وی ولې چه دا [غلو في الدين] ده.

② بله تردا معلومه شوه چه دهر څه شرعی حد هغه دې چه رسول الله ﷺ په خپل قول اوعمل سره ټاکلې وی هغې نه تيريدل [غلو] ده.

③ دريمه دا په ډاګه شوه چه د [غلو في الدين] تعريف دادې چه په څه کار کښې دهغې دمسنون حد نه تيريدل اوکړې شی.

**دمحبت ددنيا حدود:** دضرورت نه زيات ددنيا دمال، دولت، اوعيش عشرت طمع لرل په اسلام کښې بد ګنړلې شويدې، اودهغې دپريښودو هدايت هم قرآن کريم کښې ډير ځايه راغلی دی ليکن رسول الله ﷺ څنګه چه ددنيا دطمع اومحبت نه منع کړيده دغه شان ئې په خپل قول اوعمل سره دهغې حدود هم اوټاکل، نکاح کول ئې خپل سنت اوګرځول اوهغې سره ئې دخلقو شوق پيدا کړو، د اولاد پيدا کولو فائدې اودرجې ئې اوښودلې، خپل بچيانو سره ئې ښه ګذران کول اودهغوئ حقونه اداکول ئې فرض اوګرځول، خپلو اودهغوئ دضروریاتو پوره کولو دپاره ئې څه روزی ګټل [فريضة بعد الفريضة] اوفرمائيل، تجارت، کرونده کول، کار، کسب، اومزدوری کول ئې ضروری اوګرځول، داسلامی حکومت قائمول او اسلامی نظام ته رواج ورکول ئې دنبوت فريضه اوګرځوله، په خپل عمل سره ئې په پوره جزيرة العرب کښې دحکومت يو نظام قائم کړو اوخلفائ راشدينو رضي الله عنهم هغې لره ددنيا ګوټ ګوټ [کونج کونج] ته خور کړو، دې نه معلومه شوه چه د ضرورت په اندازه په دغې څيزونو کښې مصروفه کيدل ددنيا په محبت کښې نه حسابيږی، او نه په حرص اوطمع کښې،

يهودو اونصاراؤ دا حقيقت اونه پيژندو او په رهبانيت کښې راګيرشو، قرآن کريم دغسې کوږتلل په دې الفاظو کښې رد کړل.

﴿وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ إِلَّا ابْتِغَاءَ رِضْوَانِ اللَّهِ فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا﴾ [يعنی دې خلقو، دخپله ځانه درهبانيت [د دنيا د پريښولو] طريقې اختيار کړې چه مونږه دهغې په ذمه لګولې نه وې، بيا چه کوم څيزونه ئې په ځان پخپله اينبی ووهغه ئې پوره هم نکړې شو.

**دسنت اوبدعت حدود:** رسول الله ﷺ په عباداتو، معاملاتو اومعاشرت [يعنی ټولوڅيزونو] کښې په خپل قول اوعمل سره منځوميانه حدود ټاکلی دی چه دهغې نه روستو پاتې کيدل کوتاهی اوترې نه تيريدل ګمراهی ده، په دې وجه هغوئ ﷺ بدعات اومحدثات په ډيرې سختئ سره منع کړيدی لکه فرمائی: ﴿كُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ وَكُلُّ ضَلَالَةٍ فِي النَّارِ﴾(٢)، يعنی هر بدعت ګمراهی ده اودهرې ګمراهئ انجام جهنم دې،

١) مسند أحمد، مسند عبدالله بن عباس رضی الله عنه: رقم الحديث: ٣٣٠٥

٢) سنن النسائی، کتاب صلوة العيدين، باب کيف الخطبة: ج ١، ص ٢٣٢

بدعت هغه څيزته وئيلې شي چه د رسول الله ﷺ په قول او عمل کښې په ښکاره يا په اشارې سره موجود نه وی، حضرت شاه ولی الله قدس سره ليکلی دی چه بدعت لره اسلام ځکه سخت جرم ګرځولې دې چه هغه د دين د بدلولو لار ده، پخوانو امتونو کښې داسې اوشو چه هغوئ په خپل کتاب او د خپل رسول ﷺ په تعليماتو کښې د خپله ځانه زياتې را وستو او هر راتلونکی نسل به پکښې نور نور زياتې کولو، تردې چه بيا دا پته هم نه لګيده چه اصل دين څه وو او د خلقو هغه زياتوالی پکښې کوم يو دی؟

شاه صاحب رحمه الله په خپل کتاب [حجة الله البالغة] کښې دا بيان کړيدی چه په دنيا کښې د دين د بدلولو کوم کوم اسباب راپيښ شويدی او اسلامی شريعت د دغې تولو په دروازو باندې ځکه پهره اودرولې ده چې د هيڅ يو سوری نه دا وباپه دې امت کښې خوره نشی

**د عالمانو او پيرانو په تعظيم او تابعدارئ کولو کښې د رميانه لار:** د دغې اسبابو څنې، د دين په باره کښې زوروالې او سختی، يعنی [غلوفی الدين] ئې لوئ سبب او ګرځولو[1] خو افسوس دې چه د رسول الله ﷺ د دې دومره غمخوارئ او د شريعت دې دومره پابندو سره بيا هم، امت په [غلو] کښې ډير بد بد راګير دې، د دين په تولو اړخونو دې نخښې نښانې څرګندې دی، خصوصا کوم څيزچه ملت د پاره هلاکونکې او زيات ضرری ثابتيږی هغه د دينی مشرانو او پيشوايانو معامله ده، د مسلمانانو يوه ډله دې طرفته تلی ده خو چه مشران او پيشوايان ، عالمان او بزرګان هيڅ څيزنه دی، وائی چه مونږ لره کتاب الله ځکه کافی دې چه څنګه پرهغوئ پوهيږی، مونږه هم پرې هغسې پوهيږو ، [هُمْ رِجَالٌ وَنَحْنُ رِجَالٌ] [هغوئ هم سړی دی او مونږه هم سړی يو] نتيجه ئې دا راوځته چه هر هغه فسادی او هوسناک، ځان لره د قرآن عالم بولی چه پوهيږی، او نه د قرآنی حقيقتونو او علومونه واقف وی، او نه د رسول الله ﷺ د بيان او تفسير نه خبر وی او صرف د قرآن کريم څه ترجمه ئې کتلی وی، هغه تفسير او تشريح چه پخپله د رسول الله ﷺ يا د هغوئ ﷺ د براه راست شاګردانو [صحابه کرامو رضی الله عنهم نه منقول وی هغه د سره نه ګوری او کومه خبره ئې چه په خپل ذهن او خيال کښې راشی هغه په قرآن کريم باندې وراوتپی، حالانکه که بغير د استاذ نه صرف کتاب کافی ګرځيدې نو الله تعالی په دې قادر وو چه ليکلې نسخې به ئې خلقو ته رالېږلې او رسول الله ﷺ به ئې دې د پاره د معلم او استاذ په حيثيت نه لیږلو ، که ژور نظر او کړې شی نو معلومه به شی چه دا خبره يو اځې کتاب الله سره خصوصيت نه لری، بلکه يو اځې په ترجمې کتو باندې هيڅوک د دغې فن، عالم نشی جوړيدې، د ډاکترئ يا د يونانی طب، د کتابونو په ترجمو کتلو سره ترننه پورې هيڅوک حکيم يا ډاکټرنه دې جوړ شوې، د انجنيرئ په کتابونو کتلو باندې هيڅوک انجنئير نه دې جوړ شوې، د درزی توب يا اخلی پخلی د کتابونو په کتلو سره څوک درزی يا باورچی [اشپز] نه دې جوړ شوې بلکه دا ټول د زده کړې ورکولو ، زده کړې کولو ، استاذئ او شاګردئ ضرورت لری، مګر افسوس دې چه قرآن او سنت داسې يو زياتې شې ګنړلې شی چه د هغې

---

[1] حجة الله البالغة: ج ۱، ص ۲۲۸ نه ۲۳۰

دپاره دمعلم ضرورت نشی محسوسولې، چنانچه د تعلیمیافته خلقو ګنړشمیرخوپه دې [غلو] کښې اوبهیدل چه صرف دقرآن کریم مطالعه کول ئې کافی اوګنړل، دپخوانو علماؤ تفسیرونه تعبیرونه، دهغوئ په نقشِ قدم باندې تلل اوتابعداری کول ئې بیخی شاته اوغورځوله. بل اړخ دمسلمانانو ګنړشمیرپه دې [غلو] کښې ډوب شوچه په سترګوپټوئې هر هغه چا لره یې دینی مشران او پیشوایان جوړکړل چه خپل زړه ئې غواړی اوبیاپه پټو سترګو هغوئ پسې روان دی، دغه خلق ددې پته هم نه لګوی چه زمونږ دغه مقتدایان اوپیشوایان دعلم وعمل، اصلاح اوتقوی په تول صحیح هم خیژی اوکه نه؟ هغوئ دې ته هم خیال نه کوی چه ددوئ تعلیم ورکول دقرآن اوسنت خلاف خونه دی؟ اسلامی شریعت د [غلو] نه دساتلوپه غرض ددې دواړوترمنځه داطریقه کاراوښودله چه [کتاب الله] د [رجال الله] نه ازده کړئ، او [رجال الله] په [کتاب الله] اوپیژنئ، یعنی دقرآن اوسنت دمشهوروتعلیماتوپه ذریعه، اول دغه خلق اوپیژنئ کوم چه دکتاب اوسنت په علوموکښې مشغول دی او دهغوئ ژوند دکتاب اوسنت په رنګ، رنګ شوی وی بیادکتاب اوسنت په هرې کړکیچنې مسئلې کښې دهغوئ تفسیراو تشریح دخپلې رائ نه وړاندې ګنړئ اوتابعداری ئې کوئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَنْ يَّسْتَنْكِفَ | الْمَسِيْحُ | اَنْ يَّكُوْنَ | عَبْدًا لِّلّٰهِ | وَلَا | الْمَلٰٓئِكَةُ |
| هیڅ کله عار نه ګنړی | مسیح | دا خبره چې شي | بنده دپاره دالله | اونه | فرښتې |
| مسیح (حضرت عیسی ؑ) هیڅکله دا شرم نه کوی | چې هغه ته دې دالله بنده او وئیلې شي | اونه هغه فرښتې | | | |
| الْمُقَرَّبُوْنَ ۭ | وَمَنْ | يَّسْتَنْكِفْ | عَنْ عِبَادَتِهٖ | وَيَسْتَكْبِرْ | فَسَيَحْشُرُهُمْ |
| مقربې | اوڅوک | چې شرم اوکړی | دبندګۍ دهغه نه | اوتکبر اوکړی | نوزر به راجمع کړی الله دوئ |
| چې مقربې دی | اوڅوک چې دالله ﷻ عبادت کښې شرم کوی | اوکبر کوی | نو زر ده چې الله ﷻ | | |
| اِلَيْهِ | جَمِيْعًا ۝ | فَاَمَّا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا | الصّٰلِحٰتِ |
| طرف خپل ته | ټول | نوهغه کسان | چې ایمان ئې راوړې دې | اوکړې ئې دی | نیک عملونه |
| به ټول خلق دقیامت په ورځ راجمع کړی | نوچا چې ایمان راوړې وی | او نیک کارونه ئې کړی وی | | | |
| فَيُوَفِّيْهِمْ | اُجُوْرَهُمْ | وَيَزِيْدُهُمْ | مِّنْ فَضْلِهٖ ۚ | وَاَمَّا الَّذِيْنَ | |
| نوپوره به ورکړی الله هغوئ ته | بدلې دهغوئ | اوزیات به ورکړی هغوئ ته | دفضل خپل نه | اوهغه کسان | |
| نوهغوئ ته به خپلې خپلې بدلې پوره پوره ورکړی | اودخپل فضل نه به ورله زیاتې هم ورکړی | اوچا چې | | | |
| اسْتَنْكَفُوْا | وَاسْتَكْبَرُوْا | فَيُعَذِّبُهُمْ | عَذَابًا | اَلِيْمًا ۙ | |
| چې شرم يې ګنړلې وی | اوتکبر يې کړې وی | نو عذاب به ورکړی هغوئ ته | عذاب | دردناک | |
| (دالله ﷻ بندګی) شرم ګنړلې وی | او کبر ئې کړې وی | نوهغوئ ته به دردناک عذاب ورکړی | | | |

وَلَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿١٧٣﴾

او به نه مومي | هغوئ دپاره دخان | سوا دالله نه | څوک دوست | اونه څوک مددګار

او د خپل ځان دپاره به دالله ﷻ نه سوا بل څوک ملګرې یا مددګار اونه مومي

**آسان ترجمه قرآن:** مسیح کله هم دې خبرې لره څه شرم نه ګڼړي چه هغه دې دالله بنده وي، او نه نزدې فرښتې (په دې کښې څه شرم ګڼړي) او څوک چه دالله بندګئ لره شرم ګڼړي ، او تکبر کوي، نو (هغه دې ښه پوهه شي چه ) الله به دوی ټولو لره خپل ځان ته راجمع کړي بیا چه کومو خلقو ایمان راوړې دې او نیک عمل ئې کړې دې هغوی ته به پوره پوره ثواب ورکړي، او خپل فضل سره به ددې نه زیات هم ورکړي پاتې شو هغه خلق چه هغوی (بندګئ لره ) شرم ګڼړلې وو او تکبر ئې کړې وو نو هغوی ته به دردناك عذاب ورکوي ، او دالله نه سوا به دوی ته څوك معاون او مددګار ملاؤ نه شي.

### خلاصه تفسیر

[نصارى هیڅ ‌یې هېڅه حضرت عیسى ؑ لره اله یا د اله جز جوړوي.پخپله دحضرت] مسیح [شان دادې چه په زمکه د استوګنې په زمانه کښې خو دهغه دبندګئ اقرار چه خپله خدائی پرې باطلوی مشهوره او ټولو ته معلومه ده لیکن اوس هم د آسمان داستوګنې په زمانه کښې چه د زمکې د استوګنې نه زیاته پورته او دلوړ والی ګمان پرې کیږی یا تر قیامته پورې هغه چه په کوم حالت کښې وی،که په دې کښې ترې هم څوك تپوس اوکړی ﴿لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ﴾ نوپه دغه حالت کښې به هم] هیچرې د الله ﷻ دبنده جوړیدو شرم [او انکار] نه کوی ﴿وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ﴾ اونه به مقربې فرښتې [چرته شرم اوکړی چه په کښې حضرت جبریل ؑ هم راغې چا لره چه د اله جز یعنی برخه منی پخپله هغه نه هم که څوك تپوس اوکړی] او [هغه به شرم څنګه اوکړی چه ددې شرم کولو داسې خراب انجام دې چې! ﴿وَمَنْ يَّسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيَسْتَكْبِرْ﴾ څوك دالله ﷻ دبندګئ نه شرك او تکبر کوی نو [دهغه انجام واورئ] ﴿فَسَيَحْشُرُهُمْ اِلَيْهِ جَمِيْعًا﴾ الله ﷻ به ضرور ټول خلق خپلې خواته [دحساب په موقعه] راجمع کړی ﴿فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ بیا چه کومو خلقو [په دنیا کښې] ایمان راوړې وی اوهغوی ښه کارونه کړی وی [یعنی په بندګئ کولو کښې پاتې کیږی، ولې چه حاصل د بندګئ هم دغه ایمان او عملونه دی] ﴿فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ﴾ نو هغوی ته به خودهغوی پوره ثواب [هم] ورکوی [چه په ایمان او نیکوعملونو باندې ادانړه کیدو په باره کښې یې نص وارد شوې وی] او [ددې نه علاوه] هغوی ته به په خپل فضل سره نور زیات [هم] ورکوی [چه په تفصیل ئې نص نه دې وارد شوې] ﴿وَاَمَّا الَّذِيْنَ اسْتَنْكَفُوْا وَاسْتَكْبَرُوْا﴾ او کومو خلقو چه [د بنده جوړیدو نه] شرم کړې وی اوتکبر یې کړې وی ﴿فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا﴾ نو هغوی ته به دردناکه سزا ورکوی ﴿وَلَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا﴾ اودغه خلق به چا غیرالله لره خپل یار او مددګار نه مومئ.

## معارف او مسائل

**دالله تعالى بنده كيدل داعلى درجې شرافت اوعزت دي:** ﴿لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ﴾ حضرت مسيح ﷺ دالله تعالى په بنده جوړيدو كښې هيڅ شرم نه كوى او دالله تعالى مقربې فرښتې هم په دې كښې څه شرم نه كوى! ولې چه دالله تعالى بنده كيدل دهغه عبادت كول او دهغه حكمونه په ځاى راوړل خودلوړې درجې شرافت اوعزت دي، دحضرت مسيح ﷺ اودمقربينو فرښتونه ددې نعمت قدر او قيمت اوپوښتئ، هغوئ به په دې كښې شرم ولې كوى، البته ذلت او عذاب خودالله تعالى نه سِوا دنورچاپه بندګئ كښې دي، لكه نصاراوچه حضرت مسيح ﷺ لره ابن الله [دالله ځوئ] او معبود اومنلو، مشركانو، فرښتې دالله تعالى لونړه اومنلې، دهغوئ او دبتانو عبادت ئې شروع كړل نو دوئ دپاره هميشه دپاره عذاب اوذلت دي [فوائدعثمانى] (١)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يٰاَيُّهَا النَّاسُ | قَدْ جَآءَكُمْ | بُرْهَانٌ | مِّنْ رَّبِّكُمْ | وَاَنْزَلْنَآ |
| اې خلقو | راغلې دې تاسو ته | دليل | دطرف درب ستاسو نه | او نازل كړې دې مونږه |
| اې خلقو! تاسو ته دالله ﷻ دطرفنه ښكاره دليل راغلې دې ..................اوتاسو ته مو | | | | |
| اِلَيْكُمْ نُوْرًا مُّبِيْنًا ۝ | فَاَمَّا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ | وَاعْتَصَمُوْا | |
| تاسوته ǀ نور ǀ ښكاره | نو هغه كسان | چې ايمان ئې راوړو په الله باندې | او منګولې ئې ښخې كړې | |
| ښكاره رڼا [د نبى كريم په صورت كښې] راليږلې ده نو چا چې په الله ﷻ ايمان راوړو او دهغه په احكامو | | | | |
| بِهٖ | فَسَيُدْخِلُهُمْ | فِيْ رَحْمَةٍ | مِّنْهُ | وَفَضْلٍ |
| په هغه | نو زر به داخل كړى الله هغوئ | په رحمت كښې | دطرفه خپل نه | او په مهربانئ كښې |
| .............ئې منګلې ښخې كړې نو الله ﷻ به ئې په خپل رحمت او فضل كښې داخل كړى | | | | |
| وَّيَهْدِيْهِمْ | اِلَيْهِ | صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ۝ | | |
| او او به ښائى هغوئ ته | طرف خپل ته | لاره ǀ نيغه | | |
| او په سمه نيغه لار به ئې روان كړى | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** اې خلقو تاسوته ستاسو د پروردګار د طرف نه صفا دليل راغلې دې او مونږ تاسو ته يو داسې رڼرا راليږلې ده چه د لارې پوره وضاحت كوي نو كومو خلقو چه په الله ايمان راوړې دې او په هغه ئې منګول لګولې ده. الله به هغوى لره خپل فضل او رحمت كښ داخل كړي او دوى به خپل ځان څخه راتلو د پاره نيغې لارې ته ورسوي.

---

(١) تفسير عثمانى تحت هٰذه الآية: ج ١، ص ٣١٩

## خلاصه تفسیر

﴿ يَأَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُمْ بُرْهَانٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ ﴾ ائې [ټولو] خلقو یقینًا تاسو ته ستاسو د پروردګار له طرفه یو [کافی] دلیل راغلې دې [چه هغه مبارك ذات درسول الله ﷺ دې] ﴿ وَأَنزَلْنَا إِلَيْكُمْ نُورًا مُّبِينًا ﴾ او مونږ تاسو ته یو صفا نور درلیږلے دے [چه هغه قران کریم دې نو درسول الله ﷺ او قران کریم په ذریعه چه څه تاسو ته اوخودلے شی هغه حق دی چه په کښې بیان شوی مضمونونه هم داخل دی] ﴿ فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَاعْتَصَمُوا بِهِ ﴾ نوکومو خلقو چه په الله تعالی باندې ایمان راوړلو [چه هغه دپاره د توحید او د تنزیه او پاکوالی عقیده لرل لازم دی] او هغوی الله تعالی [دهغه دین] لره [یعنی اسلام لره] مضبوط اونیولو [چه دوی دپاره درسول ﷺ اوقران پاك تصدیق کول لازم دی] ﴿ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِي رَحْمَةٍ مِّنْهُ ﴾ نو داسې خلقو لره به الله تعالی په خپل رحمت [یعنی جنت]کښې داخل کړی ﴿ وَفَضْلٍ وَيَهْدِيهِمْ إِلَيْهِ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴾ اوپه خپل فضل کښې [به یې واخلی یعنی جنت کښې د داخلیدو نه علاوه به ورته نور لوئې لوئې نعمتونه ورکړی چه دیدار الهی په کښې هم شامل دې] او خپل ځان ته [درسیدو] به دوی ته نیغه لار اوښائی [یعنی پدنیا کښې یې: درضا په لار ولاړ اوکلك اولری او دے نه دایمان اونیکو عملونو د پریښودونکی حالت معلوم شو چه ورته به دا نتیجې نه ملاویږی].

## معارف اومسائل

**د[برهان] نه مطلب دې ځه:** [قَدْ جَاءَكُمْ بُرْهَانٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ] د[برهان] لفظی معنی دلیل ده چه مرادترې درسول الله ﷺ ذات اقدس دې [روح]

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائیلی دی چه درسول الله ﷺ ذات اقدس نه په لفظ د[برهان] سره ځکه تعبیر اوکړې شوچه ددوئ ذات مبارك، ددوئ ﷺ بهترین اخلاق ددوئ ﷺ معجزات اوپه دوئ ﷺ باندې دکتاب نازلیدل، داټول څیزونه، ددوئ ﷺ دپیغمبرئ او رسالت، ډاګیز دلیلونه دی، چه دهغې په لیدوسره دبل دلیل حاجت نه پیښیږی، لهذا اګرل پکاردی چه ددوئ ﷺ ذات اقدس پخپله یو جثه دار دلیل دې.

او د[نور] نه مراد قرآن کریم دې، [روح] لکه چه دسورت مائده ددې آیت نه هم معلومیږی، ﴿قَدْ جَاءَكُم مِّنَ اللَّهِ نُورٌ وَكِتَابٌ مُّبِينٌ﴾ تاسوته دالله تعالی له اړخه یو روښانه څیز راغلې دې اوهغه یو کتاب واضح، یعنی قرآن کریم دې [بیان القرآن]([1])

په دې آیت کښې څه ته چه [نور] وئیلې شوی دی ورپسې بیاهغې ته [کتاب مبین] وئیلې شویدی، دلته داشبه کول نه دی پکارچه عطف تغائر[بیلوالې] غواړی لهذا[نور] او [کتاب] یونشی کیدې بلکه دادواړه بیل بیل څیزونه دی ځکه جواب ئې دادې چه په عطف کښې بیلوالې دعنوان کافی دې اګرچه مصداق اومعنون هم یو څیزوی [روح]([2])

---

[1]) بیان القرآن، سورة المائدة آیة: ۱۵، ج ۲، ص ۱۴

[2]) روح المعانی تحت هٰذه الآیة المذکورة: ج ۴، ص ۲۲۸

که د [نور] نه مراد درسول الله ﷺ ذات اقدس وي او [کتاب] نه مراد قرآن کریم وي نو داهم صحیح دی [روح] (۱) لیکن دې نه دهغوئ ﷺ داسې خالص نور کیدل نه ثابتیږي چه بشریت اوجسمانیت سره هیڅ سمون نه خوري.

| | |
|---|---|
| يَسْتَفْتُونَكَ ط | قُلِ |
| غواړي خلق فتوی ستانه | اووايه |
| [ائې پیغمبره ﷺ دوئ ستانه[دکلاله باره] کښې تپوس کوی] ورته اووايه | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اللهُ | يُفْتِيكُمْ | فِي الْكَلٰلَةِ ط | إِنِ امْرُؤٌا | هَلَكَ | لَيْسَ | لَهٗ |
| چې الله | فتوی درکوی تاسو ته | په کلاله کښې | که یو داسې سړې | مر شی | اچې نه وی | هغه لره |

چې الله ﷻ درته دکلاله حکم ښائی (۲) [که یوسړې بې اولاده [اوبې موروپلاره] مړشی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَدٌ | وَلَهٗٓ | أُخْتٌ | فَلَهَا | نِصْفُ | مَا | تَرَكَ ج | وَهُوَ | يَرِثُهَآ |
| اولاد | اوی هغه لره | یوه خور | نوده هغې لره | نیمه | دهغې مال | چې پریښې وی | او ورور | میراث وړی دخور |

اودهغه یوه خوروی انونیم میراث دهغې دې [اوکه خوربې اولاده مړه شی ]نو روربه ئې دټول مال مالک وی (۳)

---

۱) روح المعاني تحت هٰذه الآية المذكورة: ج ۳، ص ۲۲۸

۲) **د آیت شان نزول**:- حضرت براء ؓ فرمائی چه سورتونوکښې د ټولو نه آخری سورت سورة برات نازل شوې دې او آیتونو کښې ټولو نه آخری آیت [**یستفتونک**] نازل شوې دې (صحیح بخاری کتاب التفسیر) حضرت جابر بن عبدالله ؓ فرمائی چه خپله بیمارنی کښې بې هوشه پروت ووم،او دې کښې د الله رسول ﷺ خما پوښتنې ته راغلو،نبی کریم ﷺ اودس اوکړو او هغه اوبه ئې په ما واچولې او څه په هوش کښې راغلم .او ما اووئیل یارسول الله ﷺ ! د واراثانو لحاظ سره څه کلاله یم،خما میراث به څنګه وی ؟ نو په دې الله ﷻ آیت د فرائضونازل کړو(صحیح بخاری).
د کلاله د تعریف په باره کښې د سورة نساء آیت نمبر ۱۲ تفسیر اوګورئ.او د باقی جملوتفسیرد ابن کثیره نه ماخوذ دې (ابن کثیر)

۳) **د کلاله خور ته نیمه حصه ملاویدل**:- بیا فرمائی چه د هغه ولد نه وی،ددې نه بعضو خلقو دا دلیل نیولې دې چه په کلاله کښې د پلار نه کیدل شرط نه دې،بلکه چه د چا اولاد چې نه وی هغه کلاله دې.په روایت د ابن جریر ؒ حضرت عمر ابن خطاب ؓ نه مروی دې خو صحیح قول د جمهورو دې او د حضرت صدیق ؓ فیصله هم دا ده چه د هغه نه والد وی اونه ولد او د دلالت هم د دې آیت مبارک نه

پس چې کوم الفاظ دی. د هغې نه هم کیږی په کوم کښې چې فرمائی [**وَلَهٗٓ أُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ**]
یعنی چې د ده خور وی نوخور لره د ټول پریخودې شوی مال نیم په نیمه حصه ده.
**د پلار په وجود کښې د خور محرومتیا**:- اوکه خور پلار سره وی نو پلار دا د میراث نه محرومه کولې شی.او دې ته اجماعی طور هیڅ نه ملاویږی .نو ثابته شوه چه کلاله هغه دې چه د هغه ولد نه وی او دا خو د نص نه ثابت دی.اوپلار نې هم نه وی اود اهم د نص نه ثابتیږی.خو د لږ غور نه پس څکه چه د خور نیمه حصه د پلار موجودګئ کښې نه کیږی .بلکه هغه دورثې . ....[بقیه په راروانه صفحه...

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِن لَّمْ يَكُن | لَّهَا | وَلَدٌ | فَإِن | كَانَتَا | اثْنَتَيْنِ | فَلَهُمَا | الثُّلُثَانِ | |
| که چرې نه وي | هغې لره | اولاد (۱) | نو که چرې | وي | دوه (۲) | نو دې هغوئ دواړو لره | په دريو کښې دوه حصې | |

نو که د مړي وارثان دوه خويندې وي | نو هغوئ به د ټول ميراث نه دريو

...بقيه د تيرمخ]..نه محرومه وي. حضرت زيد بن ثابت نه د دې مسئلې باره کښې تپوس کيړې چه يوښځه مړه شي او د دې يو خور او خاوند دې.نو دوي اوفرمائيل چه نيمه به خاوند ته ورکړې او نيمه به خور ته.هرکله چه د دوي نه د دې دليل اوپوښتلې شو

نو دوي اوفرمائيل چه څما موجودګئ کښې نبی کريم ﷺ ددې مسئلې دا صورت فرمائيلې وو.(احمد)

**د لور په وجود د خور محروميا:-** حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه او حضرت ابن زبير رضي الله عنه نه ابن جرير کښې منقول دی چه د دواړو فتوی د هغه مرده باره کښې چه يو لور او يو خور پريږدی دا وه چه په دې صورت کښې به خور محرومه وي. اودې ته به هيڅ نه ملاويږی ځکه چه د قرآن دې آيت مبارک کښې د نيمې حصې ملاويدو صورت بيان شوې دې چه د مرده اولاد نه وي او دلته اولاد شته،

**د لور په وجود کښې د خور عدم محروميا:-** ليکن جمهور ددې خلاف دی،هغوئ وائی چه دې صورت کښې به هم لور ته نيمه حصه ملاويږی.په سبب د فرضو او نيمه به خور ته ملاويږی.په سبب د عصبه. اسود رضي الله عنه وائی چه حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ زمانه کښې فيصله اوکړه چه نيمه به جينئ ته اونيمه خور ته ملاويږی (صحيح بخاری).

صحيح بخاری کښې يو روايت کښې دی چه حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه د لور او نمسئ او خور باره کښې فتوی ورکړې وه چه نيمه به لور ته او نيمه خور ته بيا ئې اوفرمائيل چه لړ خو ابن مسعود رضي الله عنه ته هم ورشه،چې هغه هم ماسره موافقت کوی.خو هرکله چه ابن مسعود رضي الله عنه نه سوال اوشو او د حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه فيصله ورته واورولې شوه نو دوي اوفرمائيل چه بيا خو به څه ګمراه شم، اوهدايت يافته خلقو نه به شمير نه يم.واورئی دې کښې څه هغه فيصله کوم چه کومه نبی کريم ﷺ کړې ده. نيمه به لور ته او شپږمه حصه به نمسئ ته او دوه ثلثه پوره شو او چه کوم باقی پاتې شی هغه خورته .نومونږ بيا واپس شو او حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه ته مو دا خبرورکړو، نووې فرمائيل چه په تاسو کښې ترڅو پورې دا علامه موجود وي نو څمانه تپوس مه کوئی.( صحيح بخاری)

۱) **د رور د کلاله خور نه ميراث اوړل:-** بيا فرمان دې چه دا به د هغه وارث وي که د ده اولاد نه وي يعنی رور د خپلې خور په ټول ميراث کښې وارث دې.په دې صورت کښې چه هغه کلاله مړه شي يعنی د هغې اولاد نه وي اونه ئې پلار وي ،ځکه چه د پلار موجودګئ کښې خو رور ته به ميراث کښې هيڅ نه ملاويږی.خوکه رور سره بل څوک حصې والا وارث وي لکه خاوند يا مور يا رور نو ده ته به د هغې حصه ملاويږی.او د باقی مال وارث به رور وي. صحيح بخاری کښې دی چه نبی کريم ﷺ فرمائی فرائض د دوی اهل سره يو ځائې کړئی او چه کوم باقی پاتې شی نو هغه د هغه سړی دی چه د ټولو نه ورته زيات نزدې وي (صحيح بخاری).

۲) **د دوو خويندو نه د زياتو صورت:-** بيا فرمائی که خويندې دوه وي نو هغې ته به د متروکه مال نه دوه ثلث ملاويږی .هم دا حکم د دوو نه د زياتو خويندو هم دې.هم ددې ځائې نه يو جماعت د دوو لونړو حکم کړې دې .لکه چه د دوو نه د زياتو خويندو حکم د لونړو حکم سره دې.او د هغه آيت مبارک الفاظ دا دی چه [فَإِن كُنَّ نِسَاءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ] (ابن کثير)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِمَّا | تَرَكَ ط | وَإِنْ | كَانُوٓا | إِخْوَةً | رِّجَالًا | وَّنِسَآءً |
| دهغه مال نه | چې پریښې وی مړی | اوکه چرې | وو | ارونړه خویندې | نارینه | اوښځې |
| کښې دوه برخې اخلی | ..........اوکه ډیر رونړه خویندې وی (١) | | | | | |

(١) **د رونړو او خویندو د جمع کیدو په صورت کښې حکم:-** بیا فرمائی که رور او خور دواړه وی نو د سړی حصه به د دووښځو برابر وی.دا حکم د عصباتو هم دې .که هلك او که نمسی وی یا رور وی هرکله چه په دوی کښې سړې یا ښځه دواړه موجود وی نو څومره چه دوو ښځو ته ملاویږی نو دومره به یو سړی ته ملاویږی.
**د احکامو بیانولو حکمت:-** الله ﷻ خپل فرائض بیان فرمائی.خپل حدونه مقرروی،خپل شریعت واضح کوی،چه هسې نه تاسو دهوکه شئ،الله ﷻ د ټولو کارونو د انجام نه واقف دې ،اود هر مصلحت نه دانا ،د بنده ګانو خیرخواه دې،د مستحق د استحقاق پیژندونکې دې.
د ابن جریر رحمه الله روایت کښې دی چه نبی کریم ﷺ او صحابه کرام چرته په سفر روان وو ،د حذیفه رضی الله عنه د اوښې سر نبی کریم ﷺ پسې چې کوم صحابی ناست وو د هغه کجاوې سره برابر وو،او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د سورلئ د حذیفه رضی الله عنه سره روستو دویم کس سره برابر وو اودا آیت مبارك نازل شو.نو نبی کریم ﷺ حضرت حذیفه رضی الله عنه ته دا آیت مبارك واورولو، او حضرت حذیفه رضی الله عنه حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه ته او دې نه پس حضرت عمرفاروق رضی الله عنه چه کله دا آیت مبارك و اوریدو او دې باره کښې ئې سوال اوکړو نو وې وئیل چه په الله قسم ته ناپوهه ئې،څکه چه ماته نبی کریم ﷺ آورولې وو هم دغه شان ما تاته واورولو. په الله قسم ما په دې کښې هیڅ زیاتی نه ده کړې.حضرت عمرفاروق رضی الله عنه به فرمائیل چه اے الله ﷻ ! اګر چه تا ظاهر کړی دی مګر ما باندې نه دی ظاهر شوی.(الطبری)
خو دا روایت منقطع دې.هم ددې روایت یو بل سند کښې دی چه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دوباره دا سوال د خپل خلافت په زمانه کښې کړې وو.
**دکلاله په باره کښې د عمر رضی الله عنه عدم تشفی:-** او یو حدیث مبارك کښې دی چه حضرت عمرفاروق رضی الله عنه نبی کریم ﷺ نه تپوس کړې وو چه یارسول الله ﷺ ! د کلاله میراث به څنګه تقسیمیږی ؟ په دې باندې الله ﷻ دا آیت مبارك نازل کړو،خو د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه پوره تشفی نه وه شوې،څکه ئې خپلې لور او د نبی کریم ﷺ بی بی حضرت حفصه رضی الله عنها ته فرمائیلی وو چه کله نبی کریم ﷺ خوشحاله وی نو ته د دې تپوس اوکړه. نو حضرت حفصه رضی الله عنها یوورځ هم دغه شان موقع اوموندله او تپوس ئې اوکړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه شاید ستا پلار تاته د دې د تپوس کولو هدایت کړې دې.څما خیال دې چه هغه به دا معلوم نکړې شی.حضرت عمرفاروق رضی الله عنه چه کله دا واوریدل نو وې فرمائیل چه هرکله نبی کریم ﷺ دا اوفرمائیل نو اوس څه دانشم معلومولې.
اویو روایت کښې دی چه د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په حکم چه کله حضرت حفصه رضی الله عنها سوال اوکړو نو نبی کریم ﷺ ورته په یو پاڼړه دا آیت مبارك په چا اولیکلو،بیا ئې اوفرمائیل چه عمر رضی الله عنه تاته د دې د تپوس کولو وئیلی دی ؟ څما خیال دې چه هغه به دا صحیح نه کړی.آیا هغه ته دګرمئ هغه آیت مبارك یاد نه دې (یعنی هغه ایت چې د ګرمئ په موسم کښې نازل شوې وو) چه کوم په سورة نساء کښې دې،اوهغه کافی نه دې څه؟ [وَإِن كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَٰلَةً] بیا چه کله نبی کریم ﷺ نه خلقو سوال اوکړو نو هغه آیت نازل شو چه کوم د سورة نساء په اخرکښې دې.اودا حدیث مبارك مرسل دې.
یو ځل حضرت عمرفاروق رضی الله عنه صحابه کرام رضی الله عنهم جمع کړل او یو تکره ئې راوخسته چه هم نن دکلاله باره کښې فیصله کوم چه په پرده کښې هم ښځو ته هم .... [بقیه په راروونه صفحه...

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلِلذَّكَرِ | مِثْلُ | حَظِّ | الْأُنْثَيَيْنِ ط | يُبَيِّنُ | اللّٰهُ | لَكُمْ |
| نو ده حصه دپاره دنارينه | په برابر | دحصې | ددوؤ ښځو | بيانوي | الله | تاسو ته |

نو بيا به دسړي يوه حصه دښځو د دوؤ حصو برابر وي | الله ﷻ تاسو ته خپل حكمونه بيانوي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ تَضِلُّوا ط | وَاللّٰهُ | بِكُلِّ | شَيْءٍ | عَلِيمٌ ۝ ع |
| چې بې لارې نه شئ | او الله | په هر | څيز | عالم دې |

چې تاسو بې لارې نه شئ | او الله ﷻ په هرڅه ښه پوهه دې

...بقيه د تيرمخ]. معلومه شي، نو په هغه وخت كښې كور كښې يو مار راووتلو، او ټول خلق خواره شو. نو عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائيل كه د الله ﷻ د دې د پوره كولو اراده وې نو دا به نې پوره كړې وې. ددې اسناد صحيح دی (الطبری).

**په دې مسئلو كښې د عمر رضي الله عنه عدم تشفی:-** مستدرك حاكم كښې دی چه حضرت عمرفاروق رضي الله عنه اوفرمائيل چه درې مسئلې كه ما د نبی كريم ﷺ نه پوښتلې وې نو دا به ماته د سرو اوښانو د ملاويدو نه زيات خوښ وو ① يو خودا چه نبی كريم ﷺ نه پس به خليفه څوك وی؟ ② دويم دا چه كوم خلق د زكوة قائل وی خو وائی چه مونږ به ئې تاته نه دركوؤ، نو دوی سره د جنګ كول څنګه دی ؟ ③ دريم د كلاله باره كښې (حاكم). او يو حديث مبارك كښې د زكوة نه وركونكو په ځائې د سودی مسئلو بيان دې (حاكم).

حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه آخری وخت كښې ما د دوی نه واوريدل چه قول هغه دې چه كوم ماواوريدو ؟ چې تپوس مو ترې اوكړو چه هغه څه دی ؟ نو وې فرمائيل چه كلاله هغه دې چه د چا اولاد نه وی (حاكم).

**د شيخينو اختلاف:-** او يو روايت كښې دی چه حضرت عمرفاروق رضي الله عنه فرمائی چه ځما او د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه مينځ كښې دكلاله باره كښې اختلاف پيدا شو اوخبره هم هغه وه چه كومه ما ونيله. حضرت عمرفاروق رضي الله عنه خپل سكه رونړه او چه كوم د مور نه وی (او د پلار نه وی) جمع شی نو دائې ثلث كښې شريك كړی وو، اوحضرت ابوبكر صديق د دې خلاف وو.

ابن جرير كښې دی چه خليفة المسلمين حضرت عمرفاروق يو رقعه باندې د نيكه د ميراث او كلاله باره كښې څه اوليكل ،بيا نې استخاره اوكړه، او څه وخت چې نې آرام اوكړو، او د الله ﷻ نه ئې د دې دعا اوكړه، چه انې الله ﷻ ا كه ستا په علم كښې په دې كښې بهتری وی نو دا جاری كړه. بيا چه كله دوی زخمی شو نو دوی دا رقعه راوغوښته او هيچا ته د دې علم او نشو چه په دې كښې ئې څه ليكلی وو، بيا نې پخپله اوفرمائيل چه ما په دې كښې د نيكه او كلاله باره كښې ليكلی وو. او ما استخاره كړې وه، بيا ځما خيال اوشو چه تاسو هم په دې پرېږدم چه په څه تاسويئ. ابن جرير كښې دی چه عمرفاروق رضي الله عنه اوفرمائيل د كلاله په باره كښې چې زه د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه نه خلاف كوم نو ماته شرم راځی او د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه فرمان وو چه كلاله هغه ده چه د چا ولد نه وی، او هم په دې د جمهور صحابه كرام رضي الله عنهم او تابعين رحمهم الله او آئمه دين دی. هم دا حال د څلور وارو امامانو او اوؤ واړه فقهاؤ دې، او هم په دې باندې قران پاك دلالت كوی لكه څنګه چه الله ﷻ واضح كړی دی او فرمائی چه ستاسو دپاره مو ښكاره ښكاره بيانونه كړی دی چه تاسو ګمراه نه شئ، او الله ﷻ ته هر څيز ښه معلوم دې. والله اعلم.

**آسان ترجمه قرآن:** (اې پیغمبره!) خلق ستا نه (د کلالې د حکم) تپوس کوي. ته ووایه چه الله تاسو ته د کلاله د حکم په باره کښې وائي که څوك په دې حال کښې مړ شي چه د هغه اولاد نه وي، او د هغه يو خور وي نو هغه به د ده په ترکه کښې د نیمې حقداره وي او که د دې خور اولاد نه وي (او هغه مړه شي او د هغه څوك ورور ژوندې وي) نو هغه به د دې خور وارث وي او که خویندې دوه وي نو د ورور د ترکې نه هغه په دريو حصو کښې د دوه حصو (۳/۲) حقدارې دي او که (د مړي) ورونړه هم وي او خويندې هم نو يو سړي ته به د دوه ښځو برابر حصه ملاويږي. الله تاسو ته وضاحت کوي دي د پاره چه تاسو گمراه نه شئ. او الله په هر څه پاندې پوهيږي.

**دايتونو ربط:** دسورت دشروع کیدو څخه لږ ورستو د میراث احکام ذکر شوی وو. بیا دهغه ځائې څخه تقريبا د يوې پارې څخه ورستو د نورو احکامو سره سره بیا د میراث احکامو ته واپسی اوشوه، اوس د سورت په آخر کښې بیا د میراث احکامو ته واپسی ده. ددې په دريو مختلفو ځايونو په ذکر کولو کښې حکمت شايد دادې چې د اسلام نه مخکښې د ميراث په احکامو کښې ډير ظلم کيدو. نو د سورت په شروع کښې، بيا په مينځ کښې، او آخر کښې ددې ذکر كولو سره مخاطبينو ته ددې خبرې يادگيرنه کول دی چې په دې باب کښې دوی نور هم ډير اهتمام اوکړی.

## خلاصه تفسير

﴿ يَسْتَفْتُونَكَ ﴾ خلق تاسو ته [دکلالےدمیراث په باره کښې يعنى چه دهغه نه اولاد وی اونه مور پلار] حکم معلوموی تاسو [جواب کښې] ﴿ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلٰلَةِ ﴾ ورته اوفرمائي چه الله تاسوته دکلالے په باره کښې حکم درکوی [هغه دادې چه] ﴿ اِنِ امْرُؤٌا هَلَكَ لَيْسَ لَهٗ وَلَدٌ وَّلَهٗٓ اُخْتٌ ﴾ که څوك مړشی [داسې] چه اولاد ئے نه وی [نه نارينه او نه زنانه اونه يئ مور پلار وی] اودهغه يو [عينى يا علا تى خوروې] ﴿ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ ۚ وَهُوَ يَرِثُهَآ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهَا وَلَدٌ ﴾ نودغے خور ته به دتمام مال نيمه ملاويږ [يعنى پس دهغه د حقوقو نه چه بيان ئےوړاندې تيرشويدې اوپاتې نيمه به يئ نورو عصباتو ته ورکولې شی که عصبه يئ هيڅوك نه وی نودغه نيم به بيا] هم دې ته ورکولې شی] او دغه کس به ددغې [خپلې خور] وارث [دټول ميراث] وی که [دغه خور ئے مړه او] دهغې اولاد نه وی [او مورپلاريئ هم نه وی] اوکه [داسې] خويندے دوه [يا زياتے] وی او هغوئ ته به د هغه دټول ميراث نه په دريوکښې دوه برخے ملاويږی [او دريمه برخه به عصبوته ورکولې شی ورنه بيا به هم دوی ته ورکولې شی] ﴿ فَاِنْ كَانَتَا اثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا الثُّلُثٰنِ مِمَّا تَرَكَ ﴾ اوکه [دداسې مړی چه اولاد او مورپلار ئے نه وی پاتې شوی او دغه مړے نارينه يا زنانه وی] وارثان ئے گنړ [يعنى ديو نه زيات همدغسې] ﴿ وَاِنْ كَانُوْٓا اِخْوَةً رِّجَالًا وَّنِسَآءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ ﴾ رونړه خويندے وی نارينه او که زنانه وی نو [ميراث به يئ داسې تقسيمېږی چه] نارينه ته به د دوؤ زنانوؤ دبرخے برابر [برخه] وی [يعنى رور ته به دوچنده برخه وی او خورته به يو برخه ليکن يو عينى رور سره به علا تی رونړه خويندے ټولې ساقطيږی اوپه عينى خور سره

کله ساقطیږي او کله ئې برخه کمیږي چه تفصیل ئې د میراث په کتابونو کښې شته دې] ﴿يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اَنْ تَضِلُّوْا ۗ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ﴾ الله ﷻ تاسو ته [د دین خبرې] بیانوی چه تاسو [د نا خبرئ په وجه] په ګمراهئ کښې پریوته نه شئ [داخو د ریادول او احسان دې] او الله ﷻ هر څیز لره ښه پیژنی [نو د احکامو د ښیګړو نه هم خبر دې او په احکامو کښې د دې لحاظ ساتلې شی د اد حکمت بیان دې].

## معارف او مسائل

**ضروری فائدې:** ① [يَسْتَفْتُوْنَكَ ۗ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلٰلَةِ] دلته د کلالې د حکم او د دې د شان نزول بیانولو نه څوخبرې معلومې شوې اول داچه چه څنګه ئې وړاندې ﴿وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ فرمائیلو نه پس، د تمثیل په طریقه د اهلِ کتابو حال بیان کړې وو د غه شان ئې ﴿فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَاعْتَصَمُوْا بِهٖ﴾ نه پس د رسول الله ﷺ صحابه کرام رضی الله عنهم په طریقه د تمثیل ذکر کړل د پاره د دې چه د وحی نه پس د سرغړوونکو ګمراهی او ناکاروالې او د وحی د تابعدارئ کوونکو په حق کیدل او ښه والې په ښه شان سره ذهن کښې کښینی.

② د دې په ذیل کښې دویمه خبره دا هم ښکاره شوه چه اهلِ کتابو خویو د غضب دا کار او کړو چه الله تعالی لره ئې د شریک او اولاد جوړولو غوندې یوه ناکاره خبره ئې خپل ایمان جوړه کړه او د وحی الهی خلاف کولو ته ئې پوره ملا او تړله، بل خوا د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم حالت دا دې چه د ایمان اصول او عبادتونه خو لا پریږده چه په جزئی معاملاتو او د میراث او نکاح وغیره په معمولی مسئلو کښې هم د وحی په انتظار او لټون کښې وی او په هره خبره کښې رسول الله ﷺ ته ګوری د خپل عقل او خواهش په بنا، هیڅ کار نه کوی، که یو ځل ئې تسلی او نشی نو بیا بیا په خدمت کښې حاضریږی او مسئله معلوموی.

ببین تفاوتِ ره از کجااست تا بکجا:

ترجمه: او ګوره د دواړو په مینځ کښې د لارې تفاوت د کوم نه تر کومه ځایه پورې دې.

او دا هم معلومه شوه چه رسول الله ﷺ به هم د وحی د حکم راتلو نه بغیر د خپله اړخ هحکم نه کولو که په یو موقعه به د وحی حکم موجود نه وو نو حکم کولو د پاره به ئې د وحی انتظار کولو چه وحی به راغله هله به ئې حکم او کړو، دا شان پکښې د دې اړخ ته هم اشاره ده چه په یو ځل، کتاب نازلولو کښې [څنګه چه د اهلِ کتابو غوښتنه وه] هو مره خوبی نه وه، څومره چه د موقعې مطابق د ضرورت او حاجت مناسب په لړه لړه نازلیدو کښې وه، ځکه چه په دغه صورت کښې، هر څوک د خپل ضرورت موافق، سوال کولې شی، او د وحی متلو په ذریعه هغه ته د دې جواب ملاویدې شی، لکه چه په دې موقعه او د قرآن کریم په نورو ګڼړو موقعو کښې موجود دی. دا صورت یو خوا د یر زیات فائده مند دې او بل خوا پکښې د الله تعالی د ذکر سره شرف او د الله تعالی د خطاب کولو عزت هم پکښې دې، دا د اسې د لوئ فخر خبره ده چه بل هیڅ امت ته نه ده نصیب شوې ﴿وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ﴾

دکوم صحابی رضي الله عنه دخیرپه غرض یادهغه دسوال په جواب کښې چې څه آیت نازل شوې وی هغه دهغه په بزرګۍ اولوئي اوعزت کښې حسابیږي، اودا ختلاف په صورت کښې دیو صحابی درائ یاوینا په مناسبت که څه وحی نازله شوی وی نوترقیامته پورې ددې په وجه دهغه خوبی اونیک نامی جاری پاتې کیږي، نودکلالې په باره کښې دسوال اوجواب بیانولوسره دغه شان د عامو سوالونو او جوابونو اړخ ته اشاره اوکړې شوه [فوائدعثمانی]([1])

[ تمت سورة النِسآءِ وللهِ الحمدُاوله وآخِره ]

| ایاتونه | | | سورة المائدة مدنية وهي مائة وعشرون اية وستة عشر ركوعا | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | | | |
| ۳ | | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | | ۱۶ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| یٰۤاَیُّهَا الَّذِیۡنَ | اٰمَنُوۡۤا | اَوۡفُوۡا | بِالۡعُقُوۡدِ ؕ | اُحِلَّتۡ | لَکُمۡ |
| اې هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | پوره کړئ | تولې وعدې | حلال کړې شو | ستاسو دپاره |

اې مومنانو! خپلې وعدې پوره کوئ|...................... تاسودپاره د څاروؤ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بَهِیۡمَۃُ | الۡاَنۡعَامِ | اِلَّا | مَا | یُتۡلٰی عَلَیۡکُمۡ |
| تول څریدونکی څاروی | دځناورو | ما سوا د | هغې نه | چې لوستې به شی په تاسو باندې |

تول قسمونه حلال دی|.....................مګر دکومو بیان چې به وړاندې تاسو ته اوشی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| غَیۡرَ مُحِلِّی | الصَّیۡدِ | وَاَنۡتُمۡ | حُرُمٌ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ |
| مګر حلال مه ګڼرئ | ښکار | حال دا چې تاسو | احرام تړونکی یئ | بیشکه الله |

خوخان دپاره ښکار حلال مه ګڼرئ چې تاسود احرام حالت کښې یئ| بیشکه الله ﷻ

| | | |
|---|---|---|
| یَحۡکُمُ | مَا | یُرِیۡدُ ۝۱ |
| حکم کوی | دهغه څه | چې غواړی |

چې څه غواړی هغه حکم کوی|

**اې دایمان خاوندانو! وعدې پوره کړئ تاسو دپاره هغه دڅلورو خپو ځناور حلال شوي دي چه څاروو کښې داخل (یا دهغې مشابه) وي سوا د هغه نه چه تاسو ته به لوستې شي په دې شرط چه کله تاسو د احرام په حالت کښې یئ هغه وخت ښکار لره حلال ونه ګڼرئ الله چه دکوم څیزاراده کوي دهغې حکم ورکوي.**

**د سورت شان نزول او د مضامینو خلاصه::** دا د سورة مائده اولنې آیت مبارك دې دې. په اتفاق سره دا سورة مدنی سورة دې. او په مدنی سورتونو کښې هم د تولو آخری سورة دې. تر دې پورې چې ځینې حضراتو دې ته د قرآن پاك آخری سورة هم وئیلې دې. مسند احمد کښې د عبدالله بن

[1]) تفسیر عثمانی تحت هٰذه الآیة: ج۱، ص ۳۲۱، ۳۲۲

عمر ﷺ او اسماء بنت یزید ﷺ نه منقول دی چې سورة مائده په رسول کریم ﷺ باندې هغه وخت کښې نازل شو کله چې نبی کریم ﷺ په سفر کښې په عضبا نومې اوښه باندې سوارۀ وو. اوښه بې بسه شوه نو نبی کریم ﷺ دهغې نه لاندې راکوز [راکښته] شو. او د ځینې روایتونو نه ددې تائید کېږی چې دا سفر د حجة الوداع سفر وو. حجة الوداع د هجرت په لسم کال کښې شوې وه. او دې نه چې کله واپس شو نو نبی کریم ﷺ په دې دنیا کښې تقریبا اتیا ورځې ژوندې وو. ابن حیان ﷺ په بحر محیط کښې فرمائی چې د سورة مائده ځینې اجزاء په حدیبیه او ځینې د فتح مکه د سفر په موقع او ځینې د حجة الوداع په سفر کښې نازل شوی دی. ددې نه معلوم شو چې دا سورة د نزول قرآن پاك په آخری مراحلو کښې نازل شوې دې، خواه بالکل آخری سورة نه وی.

روح المعانی کښې د ابو عبید حمزه بن حبیب او عطیه بن قیس دا روایت د رسول کریم ﷺ نه منقول دې چې ﴿المائدة من اخر القرآن تنزيلا فاحلوا حلالها وحرموا حرامها﴾ یعنی سورة مائده دهغه ځیزونو نه دې چې د قرآن پاك د نازلیدو په آخری زمانه کښې نازل شوې دې. په دې کښې چې کوم ځیز حلال کړې شوې دې هغه همیشه حلال او چې کوم حرام کړې شوې دې هغه همیشه حرام اوګنړئ.

داسې یو روایت ابن کثیر ﷺ د مستدرك حاکم حوالې سره د جبیر بن نفیر ﷺ نه نقل کړې دې چې هغه ﷺ د حج نه پس د عائشه صدیقه ﷺ خدمت کښې حاضر شو، عائشه صدیقه ﷺ ورته اوفرمائیل چې جبیر ﷺ ته سورة مائده لولې؟ هغوئ اوفرمائیل چې آؤ لولم. عائشه صدیقه ﷺ اوفرمائیل چې دا د قرآن عظیم الشان آخری سورة دې، دې کښې چې د حلال او حرام کوم احکام راغلی دی هغه محکم دی. په هغې کښې د نسخ احتمال نشته دې. ددې خاص اهتمام کوه. سورة مائده کښې د سورة نساء پشان فروعی احکام، معاملات، معاهدات وغیره زیات بیان شوی دی. په دې وجه روح المعانی وئیلی دی چې سورة بقره او سورة آل عمران د مضامینو لحاظ سره یو شان دی. ځکه چې په دې کښې زیات احکام د اصول و عقائد، توحید، رسالت، قیامت وغیره راغلی دی. فروعی احکام ضمنی دی. او سورة نساء او سورۀ مائده د مضامینو اعتبار سره یو شان دی ځکه چې په دې دواړو کښې اکثر فروعی احکام بیان شوی دی. د اصولو بیان ضمنی دې.

سورة نساء کښې خپلو کښې د معاملاتو او د حقوق العباد ذکر باندې زور ورکړې شوې دې. د ښځې خاوند حقوق، د مورپلار حقوق او د نورو رشته دارو حقوق تفصیل سره بیان شوی دی. د سورة مائده په اولنی آیت مبارك کښې هم د دې ټولو معاملاتو او معاهداتو د پابندئی کولو او ددې د پوره کولو هدایت راغلی دې ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَوۡفُواْ بِٱلۡعُقُودِ﴾ په دې وجه د سورة مائده بل نوم سورة عقود هم دې [محیط].

د معاهداتو او معاملاتو باره کښې دا سورة او خاص کر ددې اولنې آیت مبارك یو خاص حیثیت لری. په دې وجه کله چې رسول کریم ﷺ عمرو بن حزم ﷺ د یمن ګورنر جوړ کړو او هلته ئې لیږلو نو یو فرمان ئې ورته لیکلې ورکړو. او ددې فرمان په سرنامه باندې رسول کریم ﷺ دا آیت مبارك لیکلې وو

## خلاصه تفسير

﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ ائې د ايمان خاوندانو [ستاسو د ايمان مقتضاداده چه] ﴿ أَوْفُوا بِالْعُقُودِ ﴾ خپل لوظونه [چه دايمان په ترس کښې مو الله ﷻ سره کړی دی] پوره کړئ [يعنی شرعی احکام په ځائې راوړئې ولې چه ايمان راوړلو سره ددې په ځان لازمول راغلل چه مقتضا ئې پوره کول دی] ﴿ أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيمَةُ الْأَنْعَامِ ﴾ تاسودپاره ټول څاروی چه پشان د[دې] څاروو [يعنی داوښ غوا چيلۍ] وی [چه حلالوالئ ئې ددې نه مخکښې په سور انعام کښې [چه مکی دې] معلوم شوې دې نو ددې پشان ټول [څاروی] حلال شويدی [لکه هوسئ، ځنګلی غوا وغيره چه داوښ چيلۍ غوا پشان دی په دې خبره کښې چه ځيرونکی چه ښکاری نه سوا دهغه ځناورو نه چه په نورو شرعی دليلونو حديث وغيره سره مخصوص او مستثنٰی شويدی لکه خر، قچر وغيره شو ددغې متشنياتونه سوا نور ټول ځناورکورنی او ځنګلی حلال دی] ﴿إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ﴾ مګر دکومو بيان چه [په راتلونکی آيت ﴿ حرمت عليكم الميتة الخ﴾ کښې] راروان دے [چه هغه سره ددې نه چه بهيمة الانعام کښې داخل دی اوپه مخصوص بالحديث وغيره سره خارج شويدی خوبياهم حرام دی اوباقی تاسو دپاره حلال دی] ليکن [په دې کښې چه کوم] ښکار [چه دې هغې لره] حلال مه ګنړئی کله چه تاسو په احرام [يا حرم] کښې يئ [لکه تاسو دحج او عمرے احرام تړلې وی اګر چه دحرم نه بهر يئ چه غالباً ښکار به هم په حرم کښې دننه وی ولې چه اصل وجه ددې داده چه ښکار په حرم کښې وی اوتاسو په احرام کښې هم نه يئ په دواړو حالتونوکښې ښکار داوچے او صحرائی [وحشی] حرام دې] ﴿ إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ ﴾ بيشکه الله ﷻ چه څه اوغواړی حکم ئې کوی [يعنی هم هغه خبر وی نو کوم ځناور ئې چه اوغوښتل هميشه دپاره يئ د ذات په لحاظ حرام کړل سوا د مجبورئ د حالت نه اوکوم لره يئ چه اوغوښتل هميشه دپاره يئ حلال او کړل کوم لره يئ چه اوغوښتل په بعضې حالت کښې يئ حلال کړې دې نه په هر حالت کښې تاسو لره غاړه اېښودل پکاردی].

## معارف اومسائل

ددې سورت دړومبی آيت ړومبې جمله يوهرجامع جمله ده چه په تشريح اوتفسيرکښې ئې په زرګونه مخونه ليکلې کيدې شی اوليکلې شويدی، ارشاددې: [يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ] [اې دايمان خاوندانو: خپل لوظونه په مخه پوره کوئ، په دې کښې اول [يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا] اوفرمائيلې شو چه په دې سره دمضمون لوړوالی ته دخلقو مخه راواړلې شوه هغه شان چه په دې کښې شوې حکم بعينه دايمان تقاضاده، بيائې حکم اوفرمائيلو:

[أَوْفُوا بِالْعُقُودِ] [عقود] د[عقد] جمع ده معنی ئې تړل دی، ددوو کسانو، ياد دوودلو ترمنځه تړلی شوی اوغوټه شوی لوظ ته هم [عقد] ونيلې شی، ځکه ئې معنی [عهود] [الوظونه] شو،

دتفسيرامام ابن جرير رحمه الله په دې باندې دصحابه کرامو رضي الله عنهم اوتابعينو مفسرينو اجماع نقل کړيده امام جصاص رحمه الله فرمائيلی دی چه عقدورته اوونيلې شی اوکه عهداو معاهده ورته اوونيلې شی، ددې اطلاق په داسې يوه معامله کولې شی چه دهغې په ذريعه دوه فريقه خلقو، په راتلونکې زمانه کښې دڅه کاردکولو يا پرينښولو پابندی په يوبل اچولی وی اودواړه په اتفاق سره دهغې پابندشوی وی، زمونږ په عرف کښې داسې تړون [معاهد] نوميږی، نوددې

جملې دمضمون خلاصه داشوه چه خپل منځ کښې دشوؤمعاهدوپوره کول لازم اوضروري ګڼړئ،

اوس ګورو چه ددې معاهدونه کومې معاهدې مراد دی، په دې باره کښې په ښکاره، دمفسرينو اقوال مختلف ښکاري، ① چاتر هغه معاهدې مراداغستي دی، چه دايمان او عبادت په باره کښې الله تعالی دخپلو بندګانو نه اغستي دی، ② چاتر هغه معاهدې مراد اغستي دي چه الله تعالی دخپلونازل کړو هغه احکامو په باره کښې دخپلو بندګانو نه اغستي دی کوم کښې چه د حلالو او حرامو بيان راغلې دې، دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه هم دا منقول دی، ③ اوځنو تر هغه معاهدې مراد اغستي دی چه خلق ئې خپل منځ کښې يوبل سره تړون کوي ،لکه دنکاح، آخستل او خرڅول وغيره معاهدې چه شوې. په مفسرينو کښې ابن زيد اوزيدبن اسلم داموقف لري، ④ اوځنو فرمائيلي دی چه دې نه هغه قسمونه اولوظونه مراددی چه دجاهليت په زمانه کښې به ئې خپل منځ کښې يوبل سره دامداد کولو د پاره اخستل،، مجاهد رحمه الله ربيع رحمه الله قتاده رحمه الله وغيره مفسرينو هم دغسې فرمائيلي دی تو صحيح داده چه دې کښې هيڅ تضاد يا اختلاف نشته، بلکه دا ټول قسمونه دمعاهداتو ،په لفظ عقود کښې داخل دی چه قرآن کريم دټولو د پوره کولو هدايت کړې دې،

په دې لحاظ امام راغب اصفهاني رحمه الله فرمائيلي دی چه دمعاهداتو ټول قسمونه، ددې لفظ په حکم کښې داخل دی، بيائې اوفرمائيل چه ددې ابتدائی قسمونه درې دی، ① يوقسم هغه معاهده ده چه دانسان اورب العلمين ترمنځه ده، مثلاً دايمان، عبادت، عهد يا دحلالو حرامو د پابندئ کولولوظ. ② بل قسم هغه معاهده [لوظ] دې چه انسان په خپله دخپل ځان سره کړې وې لکه چه څوک دڅه منښتې [نذر] پوره کولوذمه په خپل سرواخلي، ياپه قسم خوړلو سره څه څيزپه خپله ذمه لازم کړي، ③ دريم قسم هغه معاهده چه انسانان ئې خپل منځ کښې يوبل سره کوي، دې دريم قسم کښې ټول هغه معاهدات [الوظونه اوقولونه] شامل دی چه دوه کسان، دوه ډلې يادوه حکمتونه ئې خپل مينځ کښې کوي،

د حکومتونو خپل مينځ کښې بين العالمی معاهدات ، يا خپلو کښې معاهدې ، د جماعتونو خپلو کښې عهدو ميثاق او د دوؤ انسانانو په مينځ کښې هرقسمه معاملات ، نکاح ، تجارت، شرکت ، اجاره ، هبه وغيره ، دې ټولو معاهداتو کښې چې کوم جائز شرطونه دی هغه خپلو کښې اوشی، نو ددې آيت مبارك مطابق ددې پابندی کول په هرفريق باندې لازم اوواجب ده. او د جائزقيدلګولو مطلب دادې چه دشريعت نه خلاف شرط لګول يادهغې قبلول هيچالره روانه دی،

دورپسې آيت په دويمه جمله کښې ددې عامې ضابطې. خاص جزئيات ذکر کړې شوې دی، [أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيمَةُ الْأَنْعَامِ] د [بهيمة] لفظ، هغه ځناورودپاره استعماليږی چه دعادت له مخې دعقل خاوندان نشی ګڼړلې، ولې چه هر کله چه ددې ويناعادت له مخه په پوه کښې نشی راتلې نوددوئ مرادنامعلوم پاتې کيږی. امام شعراني رحمه الله فرمائيلي دی چه [بهيمې] ته د [بهيمې] ونيلووجه دانه ده چه ددې عقل نشته، اودعقل په خبرودوئ نه پوهيږی، ځنګه چه د عامو خلقو خيال دې، بلکه په حقيقت کښې هريوځناورڅه چه هره اونه[درخت] او کانړي هم دعقل او ادراک نه خالی نه وی، البته هرکله چه په درجو کښې فرق ضرورشته، يعنی ددې څيزونو هومره عقل نشته څومره چه دانسان شته. لهذا يوائې انسان داحکامومکلف جوړ کړې شواونور ځناورددې مکلف جوړنکړې شو ،ورنه هسې خو هر يو ځناور څه چه هرې اونې[درختې]

او کانړي ته دخپل ژوند دضروریاتو په باره کښې الله تعالی عقل او ادراک ورکړې دې، ولې چه هریو څیز د الله تعالی تسبیح کوي،

﴿وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ﴾ که د دې عقل نه وې نو خپل خالق او مالک به ئې څنګه پیژندلو چه دهغه ثنا ء صفت به ئې بیانولو؟

دامام شعرانی رحمه الله دفرمائیلو خلاصه داده چه [بهیمې] ته دبې عقلئ په وجه [بهیمه] نشي وئیلې چه په دې وجه ورته څیزونه نامعلوم پاتې کیږي، بلکه په دې وجه ورته [بهیمه] وئیلې شي چه دهغې په وینا باندې خلق نه پوهیږي او داورته نامعلوم پاتې کیږي. په هرحال هر ساداړ څیزته بهیمه وئیلې شي او څنې حضرات ځاروؤ دپاره هم دا لفظ استعمالوي،

﴿أَنْعَامِ﴾ دنعم جمع ده چه مطلب ترساتلی شوي ځاروي مثلاً غوا، اوښ، چیلئ[بزې] میښه [ګامیښه] وغیره دي، ددې اته قسمونه په سورت انعام کښې بیان شویدي. دبهیمه لفظ عام وو د انعام لفظ خاص کړل، دآیت مطلب دا شو چه دساتلو شوؤ ځاروؤ اته قسمونه تاسو دپاره حلال کړې شو. هرکله چه د﴿عُقُودِ﴾ نه مراد ټول لوظونه او قولونه دي، ددې څخه دا لوظ او قول هم دې چه الله تعالی د حلالو او حرامو د پابندئ په باره کښې دخپلو بند ګانو نه اغستې دې، په دې جمله کښې ددغې خاص لوظ او قول بیان راغلې دې چه الله تعالی تاسو دپاره اوښ، چیلئ، غوا، میښه وغیره حلال کړیدي، نو دې لره د شرعی قاعدې په جوړذبح کولې او خوړلې شئ.

په دې حدودو کښې دننه د الله تعالی دحکمونو پابندي کوئ، مه خو داسې کوئ چه دمجوسیانو او بت پرستو پشان، مطلقاً دې ځاروؤ ذبح کول حرام او ګرځوئ ولې چه دا د الله تعالی په حکمت باندې اعتراض او دهغه دنعمت ناشکري ده، او دنورو غوښو خوړونکو دلو پشان کیږئ چې دهر قسم پابندئ نه آزاد هر قسم ځناور خورئ، بلکه د الله تعالی دراليږلی قانون په جوړ دهغه حلال ګرځولی ځناور خورئ او دهغه حرام ګرځولی ځناور مه خورئ، ولې چه یواځې الله تعالی دکائنا تو پیدا کوونکې دې، هغه دهر ځاروي دحقیقت او خاصیت نه خبر دې او ددې نه هم خبر دې چه په انسان کښې ددغې ځناور وڅه څه اثرات پیدا کیږي، هغه انسان دپاره، هغه پاکیزه او ستره څیزونه حلال ګرځولی دي چه د هغې په خوړلو سره په انساني صحت او دهغه په اخلاقو څه بد اثر نه پریوځي، او دهغه پلیتو او خیټن ځاروؤ خوړلو نه ئې منع کوي چه د انسان صحت تباه کوي یا ئې اخلاق خرابوي، لهذا ددې عام حکم نه ئې څو څیزونه مستثنی کړل.

رومبئ استثنا ئې دا او کړه [إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ] [سوا دهغه ځاروؤنه چه قرآن کریم حرام ګرځولی دي، مثلا مردار شوي ځاروي یا خنزیر وغیره شو. دویمه استثنا ئې دا او کړه [غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَأَنتُمْ حُرُمٌ] مطلب ئې دادې چه ځاروي تاسو لره حلال دي، دځنګل ښکار هم تاسو لره حلال دې مګر چه کله تاسو دحج یا عمرې احرام تړلې وي نو دغه وخت ښکار کول دجرم او ګناه کار دې دهغې نه ځان ساتئ په آخر دآیت کښې ئې ارشاد او فرمائیلو [إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ] مطلب دا چه الله تعالی څه غواړي دهغې حکم ورکوي، چاته په هغې کښې دا خوادیخوا کولو او دنه منلو هیڅ حق نشته، کیدې شي په دې کښې دې حکمت ته اشاره وي چه انسان ته دځنې ځناورو دذبح کولو او دهغې دخوړلو اجازت ورکول څه ظلم نه دې، کوم مالک چه دا ټول څیزونه جوړ کړي دي، هغه په پوره حکمت او بصیرت سره دا قانون جوړ کړیدې چه کمترلره ئې برتر دپاره دخوراک څیز جوړ کړیدې، دزمکې خاؤره ئې داونو خوراکه جوړ کړیده، اونې ئې دځناورو خوراکه او ځاروي ئې

دانسان خوراکه جوړ کړیده، هرکله چه انسان نه بهتر، بل هیڅ مخلوق په دنیاکښې نشته په دې وجه انسان دهیڅ خوراکه نشی جوړیدې.

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحِلُّوْا

| انې هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | مه ګنړئ حلال

| انې دایمان خاوندانو داللہ ﷻ د نښو نښانو بې حرمتی مهٔ کوئ

شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَآئِدَ

نښې د الله |اونهٔ میاشتې د حرمت |اونهٔ څاروی دقربانۍ| اونهٔ پټې والاڅاروی

او نهٔ د معززو میاشتو | اونه دقربانۍ د څاروؤ | اونه د هغه څاروی چې [دالله ﷻ دنوم] پټې ورته اچولې شوې وی

وَلَآ آٰمِّيْنَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ

اونهٔ[قصدکونکی| محترم کورته |حال دا چې غواړی هغوئ| فضل | درب خپل نه

اونهٔ هغه کسان چې بیت الحرام[کعبې]ته روان وی | دخپل رب فضل خوشحالی لټوی .........

وَرِضْوَانًا ؕ وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا ؕ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ

اود [هغه]رضا |اوکله چې |احرام ختم کړئ تاسو|نو بیا ښکار کوئ تاسو |اونهٔ دې کړی باعث تاسو

.........اوهرکله چې د احرام پابندی ختمه شی | نو بیا ښکار کولې شئ |او [خیال ساتئ] چې یوه ډله چې

شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ

دشمنی دیو قوم|چې هغوئ منع کړی یئ تاسو |د مسجد حرام نه | په دې خبره چې زیاتې اوکړئ تاسو

تاسونې دمسجدحرام نه منع کړی یې د هغوئ کردار دې تاسو په ظلم کولو باندې اماده نکړی چې تاسو هم

وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۠ وَلَا تَعَاوَنُوْا

اومدد کوئ |دیوبل سره په نیکئ کښې|او په تقوی کښې | اومهٔ کوئ مدد د یو بل سره

پرې ظلم اوکړئی اود نیکئ اوپرهیزګارئ په کارونو کښې یوبل سره مدد کوئ | او دګناه او

عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۠ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝

په ګناه |او په زیاتی کښې |او اوویریږئ دالله نه| بیشکه الله | ډیر سخت دې| په عذاب کښې

دظلم په کارونو کښې هیڅ‌سره مددمهٔ کوئ| اوداللہ ﷻ نه ویره کوئ | .بیشکه الله ﷻ سخت عذاب ورکونکې دې

**آسان ترجمه قرآن:** اې دایمان خاوندانو ا دالله د نښو بې عزتي مه کوئ ، اونهٔ دعزت د میاشتې ، او نه د هغه څناورو چه د قربانۍ د پاره حرم ته بوتلې شي ، نه د هغه پټو کومې چه ددوی په مرو کښې وي او نه دهغه خلقو چه دالله دفضل اود رضاء حاصلولو دپاره د بیت الحرام اراده کوي اوکله چه تاسو احرام پرانزئ نو ښکار کولې شئ او د یو قوم سره ستاسو دا دښمنې چه هغوی تاسو د مسجد حرام نه بند کړی وئ تاسو دې په دې خبره آماده نه کړی چه تاسو ( په هغوی باندې ) زیاتې وکړئ او په نیکئ او تقوې

کښې د يو بل سره امداد کوئ ، او په ګناه او ظلم کښې د يو بل سره امداد مه کوئ ، او د الله نه ويريږئ بې شکه د الله عذاب ډير سخت دې.

**د آيتونو تړون:** د سورة مائده په ړومبي آيت مبارك کښې د معاهداتو د پوره کولو تاکيد وو. دې معاهداتو کښې يو معاهده دا هم وه چې الله تعالى کوم حلال او حرام مقرر کړی دی د هغې پابندئ اوکړئ. دې دويم آيت مبارك کښې د دوؤ اهمو دفعاتو بيان دې. يو د شعائر الله تعظيم او ددې د بې حرمتئ نه بچ کيدل. بل خپل او پردي ، دوست او دښمن ټولو سره د عدل او انصاف والا معامله کول او د ظلم بدله په ظلم سره د اخستلو نه ممانعت راغلې دې.

ددې آيت د نازليدو يو څو واقعات دی. اول هغه واؤرئ چې مضمون پوره په پوهه کښې راشي. يوه د حديبيه واقعه ده چې د هغې تفصيل قرآن عظيم الشان په بل ځائې کښې بيان کړې دې. هغه داده چې د هجرت په شپږم کال رسول کريم ﷺ او صحابه کرامو ﷺ د عمرې کولو اراده اوکړه. رسول کريم ﷺ د يو زرو نه زيات صحابه کرامو ﷺ سره احرام اوتړلو او دعمرې په نيت مکې مکرمې ته روان شو. هرکله چې مکې ته نزدې د حديبيه مقام ته اورسيدل نو مکې والو ته ئې اطلاع ورکړه چې مونږ د جنګ يا جنګي مقصدونو د پاره نه يو راغلی بلکه صرف دعمرې کولو دپاره راغلی يو. مونږ ته ددې اجازت راکړئ. دمکې مشرکانو ورته اجازت ورنه کړو. او ډيرو سختو او خرابو شرائطو سره ئې ورسره دا معاهده اوکړه چې تاسو ټول احرامونه خلاص کړئ او واپس لاړ شئ. او راتلونکی کال د عمرې دپاره په داسې حالت کښې راشئ چې تاسو سره وسله نه وی. او صرف درې ورځې به قيام کوئی او عمرې کولو نه پس به واپس کيږئ. او نور هم ډير د اسې شرطونه وو چې د هغې منل د مسلمانانو د وقار او عزت خلاف وو. د نبی کريم ﷺ په حکم سره ټول په اطمينان کښې شو او واپس شو. بيا په اوومه هجرئ کښې دوباره د ذی قعده په مياشت کښې هم ددې شرطونو لاندې ئې د اعمره ادا کړه. بهر حال د حديبيه دې واقعې او دې سختو شرطونو د صحابه کرامو ﷺ زړونو کښې د مکې د مشرکانو خلاف ډير زيات نفرت پيدا شوی وو او ددوئ خلاف ئې په زړونو کښې بغض او کينه تخم کړې شوې وه.

دويمه واقعه دا راپيښه شوه چې د مکې مشرکانو کښې حطيم بن هند خپل د تجارت مال مدينې منورې ته راؤړو. او د مدينې منورې نه بهر ئې خپل مال پريښودو او راغلو د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د مسلمانانو مطمئن کولو دپاره ئې د خپل مسلمانيدو اظهار اوکړو خو دې په زړه کښې منافق وو. او رسول کريم ﷺ ددهٔ د راتلو نه مخکښې په ذريعه دوحی خبر شوی وؤ او صحابه کرامو ﷺ ته فرمائيلي وو چې مونږ ته يو کس راروان دې چې هغه به دشيطان په ژبه خبرې کوی او کله چې دې واپس شو نو رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې دا کس کفر سره راغلې وو او دهوکې او غدارئ سره واپس شو. دا کس د نبی کريم ﷺ د مجلس مبارك نه راؤوتلو او نيغ د مدينې منورې نه بهر لاړو. او هغه ځائې کښې د مدينې والو څناور ښريدل. او هغه ئې ځان سره بوتلل صحابه کرامو ﷺ ته ددې خبر لږ وخت پس اوشو دوئ ﷺ ورپسې شو خو هغه ډير لرې تلې وو. بيا کله چې د هجرت په اووم کال رسول کريم ﷺ د حديبيه د قضا عمرې د ادا کولو دپاره صحابهٔ کرامو ﷺ سره تلل نو د لرې نه ئې د تلبيه آواز واؤريدو ، چې وې کتل نو هم هغه حطيم بن هند عمرې دپاره روان وو او ده

سره د مدينې والو هغه څاروی هم وو. دې وخت صحابه کرامو رضي الله عنهم دا غوښتل چې په ده باندې حمله اوکړي او ددهٔ نه خپل څناور واخلي او دې ختم کړي.
دریمه واقعه دا راپیښه شوه چې د هجرت په اتم کال رمضان المبارك کښې مکه مکرمه فتح شوه. او د مکې مکرمې مشرکان نبی کریم ﷺ بغیر د څه انتقام نه آزاد کړل. هغوئ آزادانه طور سره خپل کارونه کول. او تر دې چې حج او عمره ئې هم د جاهلیت د زمانې په طریقه باندې کول. دې وخت د څینې صحابه کرامو رضي الله عنهم په زړونو کښې دا خیال راغلو چې دوئ نه د حدیبیه د واقعې انتقام واخلی. څکه چې دوئ مونږ جائز او حق طریقې سره د عمرې کولو نه منع کړي وو. مونږ دوئ ولې پریږدو چې ناجائزه او غلطې طریقې سره عمره او حج ادا کړي. په دوئ حمله اوکړي، د دوئ څاروی قبضه کړي، او دوئ اوژني.
ابن جریر رحمه الله دا واقعات دعکرمه رحمه الله او سدی رحمه الله روایت سره نقل کړی دی. دا څو واقعات وو چې ددې په وجه دا آیت مبارك نازل شو. او دې کښې مسلمانانو ته دا هدایت ورکړې شوې دې چې د شعائر الله تعظیم په تا فرض دی. او که ستاسو یو دښمن سره دښمنی او بغض وی نو ددې په وجه په دې کښې خلل مه اچوئی. په اشهر حرم کښې قتل و قتال هم جائز نه دې. د قربانئ څاروی حرم ته نه پریښودل او ددې قبضه کول هم جائز نه دی. او کوم مشرکان چې احرام اوتړی او دالله تعالی د رضا حاصلولو قصد اوکړې، نو اګر چې ددوئ دا خیال ددوئ د کفر په وجه ښه نه دې خو بیا هم د شعائر الله د حفاظت او احترام دا تقاضا ده چې دوئ سره هیڅ غرض مه ساتئ. تاسو چې کومو خلقو د عمرې کولو نه منع کړی وې، هغوئ نه د هغوئ د بغض او عداوت انتقام داسې اخستل جائز نه دی چې تاسو هغوئ مکې ته نه پریږدئی یا د شعائر حج ادا کولو نه ئې منع کړئی. څکه چې دا به دهغوئ د ظلم په بدله کښې زمونږ د طرفنه ظلم وی. اودا په اسلام کښې ناروا دی. اوس دآیت مبارك پوره تفصیل اوګورئی.

## خلاصه تفسیر

﴿ يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحِلُّوا شَعَائِرَ اللَّهِ ﴾ائې دایمان خاوندانو بےحرمتی مه کوئی دالله ﷻ د [دینی] نخښو [یعنی دکومو څیزونو د ادب دحفاظت دپاره چه الله څه احکام مقرر کړی دی ددغې احکامو نه په خلاف کولو سره دهغې بےادبی مه کوئی لکه دحرم او احرام تاکلے ادب شو چه په دې کښې ښکار مه کوئی نوښکار کول به بې ادبی او حرام وی] ﴿ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ ﴾ اومه دحرمت دمیاشتو[داسې بےادبی کوئی چه په دې کښې کافرانوسره جنګونه شروع کړئ] ﴿ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَائِدَ وَلَا آمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ ﴾ اومه په حرم کښې د قربانئی د څارو [بےادبی کوئی چه په هغې تعرض اوکړئی] اومه دهغه څاروو[بے ادبی کوئی]چه په غاړو کښې یې [ددې نخښے دپاره] پټے اچولې شوې وی [چه دا دالله ﷻ دپاره یو قسم منښته ده چه په حرم کښې به ذبح کیږی] اومه دهغه خلقو [بےعزتی کوئی] چه دبیت الحرام [یعنی دبیت الله شریف] په اراده روان وی [او] ﴿ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّن رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا ﴾ دالله ﷻ دفضل اورضامندئی طلبګار وی [یعنی ددې څیزونو د ادب په وجه په کافرانو هم څه تعرض مه کوئی] او[په تیرشوی آیت کښې چه د احرام دادب ساتلو په وجه ښکار حرام ګرزولې شویدې هم هغه تر احرامه پورې دی ورنه] ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ

﴿فَاصْطَادُوْا ۚ﴾ کله چه تاسود احرام نه بهر شئ نو [اجازت دي چي] ښكار كوئى [خو شرط دادي چه ښكار په حرم شريف كښې نه وى] ﴿وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ﴾ او [دكومو څيزونو نه چه تاسو بند كړى شوئى په هغې كښې] داسې دې او نشى چه تاسو ديو قوم سره په دې وجه بغض لرئ چه هغوى [تاسو لره د حديبئ په كال] مسجد حرام [ته دتلو] نه ايسار كړي وني [د قريشو كافران تري مراد دى] دغه [بغض] په تاسو باندې ددې باعث جوړشى چه تاسو [دشريعت] دحد نه بهر شئ ﴿وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۖ وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۖ﴾ [يعنى ددې په خبرو كښې] ديوبل مدد كوئى [لكه دا احكام دى چه ددې د عمل كولو شوق نورو كښې هم راپاره كوئى] اوپه ګناه اوزياتئى [يعنى داسې مه كوئى او دنيكئ او تقوى په دې قسم خبرو كښې] ديوبل مدد كوئى [لكه هم دغه احكام شو چه څوك ددې خلاف كول شروع كړي نود هغوى مدد مه كوئى] ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۖ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝﴾ او الله ﷻ نه ويريږئى [چه ددې په وجه دټولو احكامو پابندى كول آسانيږى] بيشكه الله ﷻ [داحكامو مخالفت كوونكو ته] سخته سزا وركونكې دې.

## معارف او مسائل

دآيت په رومبئ جمله كښې ارشاد دې، [يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ] [اې دايمان خاوندانو دالله تعالى دنښانيانوبې حرمتى مه كوئ] دلته [شعائر] دشعيره جمع ده چه معنى ئې ده نخښه، لهذا شعائر او شعيره هغه محسوس څيزته وئيلې شى چه دڅه څيزنخښه وى، اسلامى شعائربه هغه كارونو او عملونو ته وئيلې شى چه دعرف په لحاظ دمسلمانئ نخښه ګڼړلې شى، هغه محسوسيږى اوليدلې كتلې شى، لكه مونځ، آذان، حج، هلكان سنتول، اودسنت په جوړيږه وغيره چه دى. په دې آيت كښې دشعائرالله تفسيرپه مختلفو الفاظوسره منقول دې مګردې كښې دټولونه صفاخبره هغه ده چه بحرمحيط اوروح المعانى كښې دحضرت حسن بصرى رحمه الله او عطاء رحمه الله نه منقول ده چه امام جصاص رحمه الله ورته دټولو قولونوراجمع كوونكې وئيلې ده، هغه خبره داده چه شعائرالله نه مرادټولى ددين نښانې احكام القرآن كښې معالم دين الله ذكر دې او معالم نه مراد نښانې دى نه شريعونه اوددين ټاكلى واجبات، فرائض اوددې حدود دى، په دې آيت كښې د[لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ] دارشادهم داخلاصه ده چه دالله تعالى دشعائروبې عزتى مه كوئ، دهغې بې عزتى [۱] يوخوداده چه دسره دااحكام شاته اوغورځولې شى، بلكه داده چه نيمګړې عمل پرېاوكړې شى، [۳] دريم داچه دټاكلى حدودونه پرې ور تيرشى، په [لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ] كښې دې درې واړوصورتونونه منع كړې شويده،

قرآن كريم هم داهدايت په يوبل عنوان سره داشان ارشاد كړيدې ﴿ذٰلِكَ ۖ وَمَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ ۝﴾ څوك چه دالله تعالى دحرمتونو تعظيم كوى نوهغه دزړونو دتقوى اثردې، دآيت په دويمه جمله كښې دشعائرالله ديوخاص قسم، يعنى دحج دشعائروڅه تفصيلات بيان كړې شويدى ،فرمائى، [وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَآئِدَ] يعنى په حرامو مياشتو كښې په جنګ كولوسره دهغې بې عزتى مه كوئ، مياشتې حرامې څلوردى چه پكښې جنګ كول دشريعت له مخې حرام ووهغه ذوالقعده، ذوالحجه، محرم، اورجب دى چه بيادجمهوروعلماؤپه نزد دا حكم منسوخ شو ، داشان په حرم دمكې كښې دقربانئ كيدونكې څاروخصوصاً دهغې چه په غاړه

کښې ورته پټې اچولې شوې وي، بې عزتي مه کوئ، ددغې څناورودبې عزتئ يوصورت خودادې چه حرم شريف ته درسيدونه دا ايسارکړې شي، يابيخي ضبط کړې شي، بل صورت ئې دادې چه دې نه بل څه کاردسورلئ يادپيوحاصلولووغيره واغستې شي، په آيت کښې داټول صورتونه ناروا ګرځولې شوي دي.

بيائې اوفرمائيل [وَلَآ آٰمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا] يعنې دهغه چاپې عزتي مه کوئ چه دحج په اراده مسجدحرام ته دتلودپاره دکور نه وتلي وي اومقصودئې داوي چه په داسې کولوسره دوئ دالله تعالى فضل اورضاحاصله کړي، ددې خلقودبيعزتئ نه کولو مطلب دادې چه په دغه سفرکښې دِورسره جګړه اونکړې شي، اونه دِورته څه تکليف وراورسولې شي.

بيافرمائي: [وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا] يعنې داحرام په حالت کښې دښکارکولونه چه منع کړې شوې وه دهغې حدداسې اوښودلې شوچه هرکله تاسوداحرام نه اوځئ نوپه ښکارباندې بنديز ختم شو، اوس ښکارکولې شئ.

په دغه ذکرشوې آيت کښې دهغې معاهدې [الوظ] دداسې يوضروري جزبيان شويدې کوم چه دهرانسان اودرب العلمين ترمنځه شويده، دهغې څوبرخې تردې پورې بيان شوې چه پکښې اول، مطلقا د شعائرالله تعظيم اودهغې دبيعزتئ نه دځان ساتلوهدايت دې، اوبياپه خاص ډول ددې شعائرالله څه تفصيلات دي، کوم چه حج سره تعلق لري، په دې لړکښې حج له روان مسافرو او دوئ سره روان دقربانئ دځاروؤسره مزاحمت نه کولواوددې دبې عزتئ نه دځان ساتلو هدايت شويدې،

وريسې دمعاهدې دويم جزئې داشان ارشادکړو، [وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا] يعنې کوم قوم چه تاسوسره دحديبئې دواقعې په وخت په مکه مکرمه کښې د داخليدو، اودعمرې اداکولونه ايسارکړې وئ اوتاسو، په سخت غم اوغصه کښې ناکام واپس راروان وې، اوس چه تاسوته څه زوراوقوت حاصل شونوداسې نه دې کول پکارچه دغم، بغض او غصې له کبله ددې بدل واخلئ اودوئ لره بيت الله شريف ته دتلواومسجدحرام کښې د داخليدونه بندکړئ، ولې چه داظلم دې، اواسلام دظلم بدله په ظلم سره اغستل نه غواړي، بلکه دابنائي چه دظلم په بدله کښې دانصاف اوکړې شي اوپه انصاف دټينګ پاتې شي، هغوئ دځپل زور، زبردستئ په موقعه مسلمانان دې نه په ظلم سره ايسارکړي ؤوچه مسجدحرام کښې داخل شي اوعمره اوکړي، نواوس دهغې جواب په دې شان نه دي ورکول پکارچه مسلمانان دِهم دځپل زور، اقتدارپه وخت هغوئ لره دحج دکارونونه بندکړي،

دقرآن کريم تعليم دادې چه په عدل اوانصاف کښې ددوست، دښمن ټول برابراويو شان وي، که دمسلمانانو دښمنان هرڅومره سخت وي، دوئ ته يې هرقسم زيان تاوان رسولې وي نوداسې خلقوسره هم دانصاف نه کاراغستل ستاسوفرض دي،

دايواځې داسلام د خصوصياتو نه دې چه هغه ددښمنانو دحقوقوحفاظت کوي او دهغوئ دظلم جواب په ظلم سره نه، بلکه په انصاف سره ورکول ښائي.

**ځپل منځ کښې دلاس امدادکولوقرآنی اصول:** [وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۖ وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۖ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ] دا، دسورتِ مائده ددويم آيت آخري جمله ده، په دې کښې قرآن

کریم دیوی داسې اصولی اوبنیادی مسئلې په باره کښې یو حکیمانه فیصله ورکړیده چه دټول جهان دنظام روح دې، او په هغې باندې دانسان هره ښیګړه، کامیابی بلکه پخپله دژوند او بقا اډانړه ده چه هغه خپل منځ کښې دلاس امداد کولو مسئله ده، هرهغه انسان چه پوهه لری، نو هغه په دې خبردې چه ددې دنیا پوره انتظام دانسانانو په خپل منځ کښې یو بل سره په امداد کولو باندې ولاړدې، زور آوریامالداروی، په یو اځې ځان دخپل دژوند ضروریات پخپله نشي حاصلولې یو انسان په یو اځې ځان دخپل خوراک دپاره دغلې کرلو او دهغې دراټولو نه چه واخلې دخوراک دپاره دتیارولو تروخته پورې ټول هرڅه پخپله نشي کولې، داغوستلو دپاره دپونبې دکرلو نه چه واخلې دخپل بدن په جوړ دجامې تیارولو پورې ټول انتظام په یو اځې ځان پخپله کولې نشی، نه په یو اځې ځان خپل پیټې دیو ځائ نه بل ځائ ته اوړلې شی. غرض داچه هرانسان دخپل ژوند په هره برخه کښې دزرګونو څه چه دلکونو انسانانو محتاج دې، خپل منځ کښې یو بل سره دامداد کولو په اډانړه ددنیا ټول نظام ولاړدې، که ژور نظر اوکړې شی نو دالاس امداد کول یو اځې په ژوند کښې نه بلکه دمرګ نه چه واخلې تر ښخید وپورې ټولې پورئ هم ددې لاس امداد حاجت لری، بلکه ددې نه هم زیات داچه دښخیدونه پس هم انسان دخپلو پسماندګانو د دعا اوثواب رسولو محتاج وی،

الله تعالی په خپل رسیدونکی حکمت او کامل قدرت سره، ددې جهان، داسې یو محکم نظام جوړ کړیدې چه هر یو انسان ئې دبل انسان حاجتمند جوړ کړیدې، غریب بنده دپیسو دپاره دمالدارو محتاج دې، اولوئ نه لوئ مالدار هم، محنت او خوارئ دپاره دغریب مزدور محتاج دې، سوداګر د ګاکانو او ګاکان دسوداګرو محتاج دی، دمکان جوړولو دپاره یو مالک، د ګلکار، لوهار [آهینګر] او ترکانړ [نجار] وغیره محتاج وی، او داټول دهغه محتاج وی، که داټول ارخیز حاجت نه وې اولاس امداد کول یو اځې په پورتوالی اړه لرلې نوچابه دچاکار کولو، ددې به هم هغه انجام ووکوم چه په دې دنیا کښې دعام اخلاقی قدرونو کیږی، که دکارونو ویش دیو حکومت یابین الاقوامی ادارې له اړخه دځه قانون په ذریعه وې نو دهغې به هم داانجام وو کوم چه نن صباددنیوی قانون انجام دې، چه قانون په دفعاتو کښې محفوظ دې، په بازارونو، دفترونو کښې، رشوت، بی ځایه رعایت، خپل فرض نه پیژندل او بې عملی دقانون په ډول چلیږی، دا خالص دحکیم الحکماء قادر مطلق الهی نظام دې، چه دمختلفو خلقو په زړونو کښې دمختلف کاروبار تمنا او قابلیت پیدا کړو، او هغوئ دخپل خپل ژوند بنیاد هم دغه کار جوړ کړو،

هریکے را بهرکارے ساختند میل اورادردلش انداختند

[هر یو ئې خپل خپل کارلره پیدا کړو، دهغې شوق او مینه ئې ورته په زړه کښې واچوله]
ورنه که یو بین الاقوامی ادارې یا یو حکومت دخلقو ترمنځه دکارونو ویش کولې، یو ډلې ته ئې دترکانړئ [نجارئ]، بلې ډلې ته ئې دلوهارئ [آهینګرئ] چاته دشاخیلئ اوچاته ئې دمشکی توب، چاته ئې دخوراک انتظام سپارلې وې، نوچابه دغه حکمونه په داشان منلی ووچه دورځې آرام اود شپې به ئې خوب په ځان حرام کړې وې او په دغه کار کښې به لګیا پاتې شوې وې،

الله تعالی دهغه کارمینه دانسان په زړه کښې اچولې ده کوم دپاره ئې چه هغه پیدا کړې دې، هغه دځه قانونی مجبورئ نه بغیر، هم دغه خدمت دخپل ژوند کارګرې، ددې په ذریعه خپله روزی حاصلوی، ددغې محکم نظام دانتیجه وی چه ټول انسانی ضروریات په معمولی خرچ

سره، په آسانئ حاصلیدې شی، تیارې پخې خوراکې، گندلې جامې، جوړشوې فرنیچر، تیارشوې مکان، هریو انسان په څه قدرې رقم لګولو سره حاصلولې شی، که دانظام نه وې نویو کروړیتی انسان به دیو غنمودانه هم په خپل ټول دولت خرچ کولو سره نه شوه حاصلولې، هم ددې قدرتی نظام نتیجه داده چه په هوټل کښې څوک پاتې شی او دکوم ځیزنه چه هغه فائده پورته کوی اوپه هغې ټولو ځیزونو کښې ځان ځان لره غورفکراوکړی نومعلومه به شی چه اوړه پکښې دامریکې لګیدلې دی، غوړی پکښې دپنجاب، غوښه پکښې د ند. مسالې پکښې د مختلفو ملکونو، لوښی اوفرنیچرپکښې دمختلفو ملکونو، کار کوونکی بیرګان او اشپزان پکښې دمختلفو ښارونو به په خدمت کښې لګیاوی، یوه لقمه [ګوله] چه د انسان خلې ته رسی په هغې کښې لکونو مشینونو، ځاروؤاوانسانانو کار کړې وی، هله ئې دخلقودخلې خوند په مزه کړې وی، که دصباپه ټائم کښې خپل کاردپاره درې څلورو میله تلل څوک نشی کولې، نو ټیکسی، رکشه، ټانګه وغیره نیولې شی، چه په هغې کښې لګیدلې اوسپنه دآسټریلیا، لرګې دبرما، مشینری د امریکې، ډرائیوردفرانټیر، کنډکټر یوپی او کوچوان دپیښوروی، دکوم کوم ځائ سامان پکښې لګیدلې اودکوم کوم ځائ مخلوق، ستاسو دخدمت دپاره ولاړدې، داټول ځیزونه اوټول خدمتونه دڅورویوپه بدله کښې حاصلولې شی، داکوم حکومت مجبوره کړی یاچاپابندکړیدی چه داټول ځیزونه ئې ستادپاره برابر کړل، داکارقدرت دهغه قانون دې چه دزړونو مالک په تکوینی ډول دهریوپه زړه جاری کړیدې،

نن صباسوشلسټ ملکونو داانتظام په خپل سر اغستې دې اوقدرتی قانون ئې بدل کړیدې کومو انسانانو ته ئې چه کوم کوم کارونه سپارلی دی هغې دپاره ئې اول دهغوئ آزادی په زورظلم سره راؤشوکوله، په نتیجه کښې ئې په زرګونو انسانان اووژلې شو، په زرګونو بندیوان کړې شو، اوپاتې نورانسانان ئې دانتهائی زور، ظلم په ذریعه دمشین دپرزوپشان استعمال کړل که په نتیجه کښې دڅه ځیزونو پیداوارپه څه ځایونو کښې زیات هم شونود انسانانو دانسانیت په ختمولو سره زیات شو، لهذاداسوداهم ارزانه نه، بلکه ډیره ګرانه پریوته، په قدرتی نظام کښې هرانسان آزادهم دې او طبیعتونو دقدرتی تقسیم په بِنا، خاص خاص کارونودپاره دخپل خپل طبیعت په بِنامجبوره هم وی، ځکه پکښې هیڅوک هم جبرنه محسوسوی، که کارډیرسخت یاذلیل نه ذلیل وی بیاهم هغې دپاره ددغه کارونو خلق پخپله وروړاندې کیږی اوپه کوشش سره دهغې دپاره خلق په هرځائ اوپه هره زمانه کښې ملاویږی اوکه دغې کارونودپاره حکومت چالره مجبوره کړل نوهغوئ به تړپه تیښته شی،

خلاصه داشوه چه دټولې دنیانظام یوتربله تړون باندې ولاړدې، لیکن ددې تصویربل اړخ هم شته، که دجرمونو، غلاګانو، ډاکو، قتلونو اولوټ ماروغیره دپاره دایوتربله لاس امداد په کارراوستې شی، دغلوډاکې مارو، لوئ لوئ اومضبوطې ډلې شی نودغه خبره ددې جهان ټول نظام وران ویجاړ کولې شی، دې نه معلومه شوه چه یوتربله امدادکول یوقسم دوره مخیزه توره ده، چه پخپل ځان هم استعمالیدې شی، ددنیانظام هم تباه کولې شی، اوداجهان هرکله چه دخیراوشرښه اوخراب نیک اوبدپه ګډه جوړشوې یوقسم معجون دې، ځکه داسې کیدل پکښې څه لرې خبره نه وه چه جرمونو، قتلونو، ډاکویانقصان رسولو کښې یوتربله د امدادکولوقوت استعمال کړې شی، دایواځې احتمال نه بلکه دواقعې په صورت کښې دټولو مخې ته راغلل،

ددې درد عمل په ډول هوښيارانو د دنياد خپل تحفظ دپاره، د مختلفو نظريو په بنياد د خاص خاص جماعتونو يا قومونو بنياد کيښوده، چه کله چرې ديو قوم يا ډلې په خلاف بل يو قوم راپورته شي نو د غه ټول د هغوئ په مقابله کښې د هغې په شاد تمبولو دپاره خپل منځ کښې يو بل سره دلاس امداد کولو قوت استعمالوي،

**دقوميتونو تقسيم:** عبد الکريم شهرستاني رحمه الله په خپل کتاب ملل او نحل کښې ليکلي دي چه په اول کښې هر کله چه انساني آبادي زياته نه وه نو د دنيا د څلورو طرفونو په لحاظ سره څلور قومونه جوړ شو، ① مشرقي ② مغربي ③ شمالي ④ جنوبي يعنی د څلورو واړو طرفو خلقو به خپل قوم د بل نه بيل گنړلو او خپل منځ کښې دلاس امداد کولو بنيادئې هم په دې قائم کړو. چه خلق نور هم زيات او گنړ شو نو د نسب او خاندان په بنياد باندې د قوميت او يو بل سره د ترون تصوريو اصول جوړ شو، چنانچه د عربو ټول نظام هم په دې بنياد ولاړ وو، هم په دې بنياد به جنگونه کيدل،

① بنو هاشم ② بنو خزاعه ③ بنو تميم به خپل منځ کښې هم يو تربله بيل بيل قوم گنړلې شو، په هندوستاني هندوانو کښې د پورته ښکته ذات بيلتون خوترننه پورې هم دغسې چليږي،

ديورپې قومونو نوي دورخونه خپل ذات نسب باقي او ساتلو او نه ئې د دنيا نسبونه څه او گنړل، چه د دنيا کښې دي خلقووده او کړه نو نسبي او قبائلي قوميتونه او تقسيمونه ئې ختم کړل او د علاقو، صوبو، وطنونو او دژبو په بنيادئې انسانيت ټوټې ټوټې کړو، او په دې بنيادئې بيل بيل قومونه مخې ته راوستل او نن په ټوله دنيا کښې تقريباً هم دغه طريقه چليږي، تردې چه دې جادو په مسلمانانو هم اثر او کړو، يو اخې په عربو، ترکيانو، عراقيانو، سنديانو کښې تقسيم نه شو، بلکه نور نور تقسيمونه په دې کښې داسې اوشو، چه د مصر، شام، حجاز، نجد، پنجاب، بنگال، سيند او هندوستان خلق څان له بيل بيل قومونه جوړ شو، د حکومت ټول کاروبار هم په دې بنيادونو باندې او چلولې شو، تردې چه صوبائي عصبيتونو د دوئ په رگ رگ او وينه کښې څائ اونيو ژاو دهرې صوبې خلقو، خپل منځ کښې دلاس امداد کولو بنياد هم په دې کيښو و.

**قوميت او اجتماعيت دپاره قرآني تعليم:** قرآن کريم بيا انسان ته هغه هير کړې سبق راياد کړو، د سورت نساء د سر په آيتونو کښې ئې دا په ډاگه کړل چه تاسو ټول انسانان ديو مور پلار اولاد ئې، رسول الله ﷺ د حجة الوداع په موقعه ددې تشريح په دې اعلان کولو سره او فرمائيله چه څوک عربي دعجمي نه او څوک سپين پوستې تورپوستي نه غوره نشي کيدې، د غوره والي اداره په تقوی او د الله تعالی په فرمانبرداري ده، قرآن کريم دا اعلان هم او کړو ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ﴾ په دې سره ئې حبشي، تورپوستی، د سپين پوستو ترکيانو او روميانو او د لاندې ذات عجميان يې د عربو د قريشيانو او هاشميانو رونړه جوړ کړل، د قوميت او رورولۍ بنيادئې په دې کيښود و چه د الله تعالی او رسول ﷺ منونکي خلق يو قوم او نه منونکي بل قوم دی، هم په دې بنياد ابوجهل او ابی لهب سره د رسول الله ﷺ د خپلوئ مزې [تار] اوشليدو او د بلال حبشي رضی الله عنه او صهيب رضی الله عنه رومي سره ئې ترون اوشو،

حسن زبصره بلال زحبش صهيب از روم
زخاک مکه ابوجهل اين چه بوالعجمی است

حضرت حسنِ بصری رضی الله عنه د بصري وو، حضرت بلال رضی الله عنه حبشي وو، حضرت صهيب رضی الله عنه د روم وو او د مکې مکرمې په پاکه خاوره کښې ابوجهل پيدا شو داځو مره دلوئ تعجب او حيرانئ خبره ده،

تردې چه قرآن کريم دا اعلان هم اوکړو، ﴿خَلَقَكُمْ فَمِنكُمْ كَافِرٌ وَمِنكُم مُّؤْمِنٌ﴾ تاسو ټول الله تعالى پيدا کړئ نو څه په تاسو کښې کافران او څه مؤمنان دی] د بدر، احد، احزاب، او حنين په جنګونو کښې په دې قرآنی تعليم په ښکاره داسې عمل شوې وو چه هر کله دې مسلمان نسبی رورد الله تعالى او دهغه د رسول الله ﷺ د فرمانبردارئ نه بهر اووتو نو دهغه د رورولئ او امدادنه محرومه شو، تردې چه دهغه توری ئې سر قلم کړو، چه نسبی رور به سره دوسلې مقابلې ته رااووتو، نو بل اړخ ته به اسلامی رور امداد د پاره رامخکښې شو، د بدر، احد، او د خندق د غزاګانو واقعات په دې ګواه دی،

هزار خويش که بيګانه از خدا باشد    فِدائے يک تنِ بيګانه که آشنا باشد

[په زرګونو خپلوان چه د الله تعالى نه باغيان وی، دهغه يو پردی کس نه دِ قربان وی چه د الله تعالى فرمانبرداروی،

په تير شوی آيت کښې يو بل سره دلاس، امداد کولو معقول او صحيح اصول، قرآن کريم داښودلی دی] [وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ ۖ وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ] [په نيکئ او خداترسئ کښې ديو بل سره امداد کوئ، په بدئ او ظلم کښې دغسې امداد مه کوئ]

دې ته ښه خيال اوکړئ چه قرآن کريم داسې اونه فرمائيل چه خپلو مسلمانانو رونړو سره امداد کوئ، او نورو سره مه کوئ، بلکه ددې اصل بنيادئې نيکی او خداترسی اوګرځوله، ددې صفا او ښکاره مطلب دارا اوځی چه مسلمان رور هم که زور ظلم کوی نو دهغه امداد هم مه کوئ بلکه کوشش دا کوئ چه هغه د زور ظلم نه ايسار او بند کړئ، ولې چه په حقيقت کښې داسې کول دهغه صحيح امداد ځکه دې چه زور، ظلم کولو سره دهغه دنيا او آخرت د تباه کيدونه اوساتئ،

په صحيح بخاری او مسلم کښې د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ داسې اوفرمائيل، [أُنْصُرْ أَخَاكَ ظَالِمًا أَوْ مَظْلُومًا] د خپل رورمسلمان امداد کوئ که هغه ظالم وی يا مظلوم] صحابه کرامو رضی الله عنهم په حيرانتيا سره تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ د مظلوم امداد کول خو زمونږ پوه کښې راځی د ظالم امداد کول څه معنی لری، هغوئ ﷺ ورته اوفرمائيل چه د ظالم امداد کول، ظلم نه هغه لره بندول دی(١)،

قرآن کريم ددې تعليم اصل پيمانه [براو تقوی] [نيکی او خداترسی] جوړه کړه، د مسلم قوميت ودانَي ئې په دې اډانړه کړه، په دې بنياد دلاس امداد بلنه ئې ورکړه او ددې په مقابله کښې ئې [إِثْم] او [عُدْوَان] سخت جرم اوګرځولو، په دې کښې ئې دامداد کولو نه منع اوکړه.. جمهورو مفسرينو رحمهم الله دلته د [بِر] معنی [فعل الخيرات] [انيک عمل کول] او د [تقوی] معنی [تَرْكُ الْمُنْكَرَات] [ناکاره کارونه پرينښودل] کړيده، [إِثْم] د مطلق ګناه او نافرمانئ معنی ورکوی خواه دهغې تعلق

---

(١) صحيح البخاری، کتاب الاکراه، باب يمين الرجل الخ: ج ٢، ص ١٠٢٨، وصحيح مسلم، کتاب البر والصلة والآداب، باب نصر الأخ ظالماً الخ: ج ٢، ص ٣٢٠

حقوق العباد سره وي او که عباداتو سره وي. د [عدوان] لفظي معنى [ د حد نه ورتیریدل ده] چه مراد ترنه زور ظلم دي،

په بر او تقوى کښې امداد کولو د پاره رسول الله ﷺ فرمائیلي دي : [الدال علی الخیر کفاعله](١) [د نیکۍ طریقه او لار ښودونکي د ومره ثواب حاصلوي څومره چه پخپله دهغې کوونکي حاصلوی] دا حدیث ابن کثیر رحمه الله د بزار په حواله نقل کړیدي، او صحیح بخاری کښې راغلي دي چه رسول الله ﷺ او فرمائیل چه څوک نیکۍ ارخ ته بلنه او لار ښودنه کوي دهغه ثواب به دهغه هر یو کس برابر وي څوک چه پرعمل کوي، او عمل کوونکو ثواب به هیڅ قدرې نشي کمولې، دغه شان که چا ګمراهۍ یا دځه ګناه ارخ ته بلنه ورکړه، نو په هغې کښې دعمل کوونکو ځنې د هر یو هغه غوندې ګناه به دده هم وي بغیر ددې نه چه دعمل کوونکو په ګناه کښې څه کمې او کړې شي(٢)،

ابن کثیر رحمه الله د طبرانی په روایت د رسول الله ﷺ دا فرمان نقل کړیدي: څوک چه ظالم سره د امداد کولو د پاره او وتلو، هغه د اسلام نه خارج شو(٣)، په دې بنا پخوانو بزرګانو د ظالمانو بادشاهانو، حاکمانو د ملازمت کولو او دهغوئ د ارخه د څه عهدې قبلولو نه سخته ډډه کړیده، ولې چه هغې لره قبلول ئې دهغوئ امداد کول ګنړل. په تفسیر روح المعانی کښې د آیت، ﴿فَلَنْ أَكُونَ ظَهِيرًا لِّلْمُجْرِمِينَ﴾ لاندې د رسول الله ﷺ دا حدیث شریف نقل کړیدې چه هغوئ ﷺ او فرمائیل، دقیامت په ورځ به آواز او کړې شي چه چرته دي ظالمان خلق او دهغوئ امدادیان، تردې چه ظالمانو د پاره کوم خلقو چه دوات، قلم سم کړي وي، دغه ټول به هم دا وسپنې په یو تابوت [صندق] کښې راجمع کړې شي او په جهنم کښې به ورګذار کړې شي(٤).

دا د قرآن او سنت هغه تعلیم دې چه په دنیا کښې ئې دنیکۍ، انصاف، همدردۍ او ښکلي خوئ خصلت خورولو د پاره د ملت هر یو غړې بلونکې ګرځولې وو، د جرمونو او د ظلم زیاتۍ د بندیز راوستو د پاره ئې د ملت هر یو غړې، د اسې سپائي جوړ کړې وو چه په پټه او ښکاره د الله تعالی دویرې په وجه، په فرض پوره کولو مجبوره وي. هم ددې حکیمانه تعلیم او تربیت نتیجه وه چه دنیا د صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو رحمهم الله په زمانه کښې اولیدله، نن هم چرته چه په یو ملک کښې د جنګ خطره راپیښه شي، نود ښهري دفاع محکمې قائمې کړې شي او د قوم هر یو غړي ته د څه فنونو ښود لو بند وبست خو کولې شي، مګر د جرمونو د بندولو د اسې هیڅ انتظام نشته چه دهغې په ذریعه خلق، نیکۍ ته بلونکي او بدۍ نه بندوونکي سپایان جوړ کړې شي، ښکاره خبره ده چه ددې مشق نه په فوجي پریډ سره کیدې شي او نه د ښهري دفاع په طریقو سره. دا هنرخو په تعلیمي درسګاهونو کښې ښودلې شي چه نن صبا، د بد قسمتۍ په وجه، ددې د نوم نه هم خلق ناواقفه دي، د بر او تقوی او ددې د تعلیماتو داخله دنن صبا په تعلیمي ادارو کښې منع کړې شویده، داثم او عدوان هره یوه لاره آزاده ده، بیا دابې وسه پولیس تر کومې پورې د جرمونو بندیز او کړي هر کله

(١) جامع الترمذی، أبواب العلم، باب ما جاء الدال علی الخیر کفاعله: ج ٢، ص ٩٥

(٢) دا حدیث حاجز بنده ته په جامع الترمذی، أبواب العلم، باب ما جاء فیمن دعا الی الهدی الخ: ج ٢، ص ٩٦ کښې ملاو شوی دی۔

(٣) المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث: ٦١٨، وتفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٢، ص ١٢

(٤) روح المعانی: ج ٢٠، ص ٥٦

چه ټول قوم د حلالو، حرامو، د حق او ناحق نه ناخبره جرمونه کول خپله پیشه جوړه کړي، نن صبا چه هر چرته، غلاګاني، ډاکې، بې حیائي، قتلونه او لوټ ماري زیاته ده، په هر ملک کښې ورځ تر ورځه ترقي کوي او قانوني مشینري د دې د بندولو نه عاجزه ده، نو د دې هم دغه دوه سببه دي چه یو خو اخو حکومتونه د دې قرآني نظام نه لرې شویدي، د حکومتونو خاوندان د برا و تقوی په اصولو باندې د عمل کولو نه ډډه کوي، اګرچه د دې په نتیجه کښې په زرګونو سختې برداشت کولې شي، کاش، چه تجربې د پاره خو د دوئ د اتاریخ ګوټ [غرپ] دستوني تیر کړې وې او دا تماشه ئې کړې وې چه څنګه دوئ ته او عوامو ته ئې دامن، آرام او راحت پاکیزه ژوند نصیب کیږي، بل اړخ ته عوام، جرمونو بندولو سره صرف د حکومت کاربولي، هغوئ په دې عادت شویدي چه هر مجرم په جرم باندې پرده اچوي، خالص د حق ښکاره کولو او د جرمونو بندولو په غرض د رشتیاؤ د ګواهئ ورکولو رواج په هغوئ کښې پاتې نشو، هغوئ لره په دې خبره پوهیدل پکار دي چه د مجرم په جرم باندې پرده اچول او د ګواهئ نه ځان ساتل د جرم مدد کول دي چه د قرآن کریم له مخې حرام او سخته ګناه ده او د [وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ] د حکم نه سخت بغاوت کول دي.

| |
|---|
| حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ |
| حرام کړې شوه \| په تاسو باندې \| مرداره \| او وینه \| او غوښه دخنزیر |
| په تاسو باندې حرام کړې شوې ده مرداره او وینه او د خنزیر غوښه |
| وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوذَةُ |
| او هغه خناور \| چې آواز شوې وی \| د غیر الله \| په هغې باندې \| او مرئ خفه مړ خناور \| او وهلې شوې مړ خناور |
| او هغه چې د الله ﷻ نه سوا د بل چا په نوم حلال شوې وی \| او چې مرئ ئې خفه شوې وی \| او چې د ګزار نه مړ شی |
| وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا |
| او رغښتې مړ خناور \| او د ښکر په ډغره مړ خناور \| او هغه خناور \| چې وې خوړی \| درنده \| بغیر د هغې نه |
| او چې راغورزیږی \| او چې بل خناور ئې په ښکر او وهی او مړ شی \| او چې یو درنده ترې نه خوراک کړې وی \| بغیر د هغې نه |
| ذَكَّيْتُمْ وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَأَنْ |
| چې حلال ئې کړئ تاسو \| او هغه خناور \| چې ذبحه کړې شوې وی \| په دربار باندې \| او دا هم ناجائز دی |
| چې تاسو ژوندي موندې وی \| او حلال کړې مو وی \| او هغه چې د بتانو په نوم ذبح شوې وی \| او دا چه |
| تَسْتَقْسِمُوا بِالْأَزْلَامِ ذَٰلِكُمْ فِسْقٌ الْيَوْمَ |
| چې تاسو قسمتونه معلوم کړئ \| په غشو د فال سره \| دا ټول کارونه ستاسو \| فسق دې \| نن ورځ |
| د جوارئ په غشو تقسیم کوئ \| دا ټول د ګناه کارونه دی \| نن ورځې کافران |
| يَئِسَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ دِينِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ |
| نا امیده شو \| هغه کسان \| چې کافران دی \| د دین ستاسو نه \| نو تاسو مه ویریږئ د هغوئ نه |
| ستاسو د دین \| تباه کولو نه پوره پوره مایوس شوی دی \| نو د هغوئ نه مه ویریږئ |

وَاخْشَوْنِ ۚ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ

او ويريږئ زما نه | نن ورځ | مكمل كړو ما | دپاره ستاسو | دين ستاسو | او تمام كړو ما | په تاسو باندي

اوزما نه ويريږئ | نن ما ستاسو دين كامل كړو | اوخپل نعمتونه مي درباندي پوره كړل

نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ

نعمت زما | اوراضى شوم زه | دپاره ستاسو | په اسلام | په حيثيت د دين سره | اوڅوك چي | مجبور شي

اواسلام مي ستاسو دپاره غوره دين منتخب كړو | ..............نوڅوک چي دلوږي نه مجبوره شي

فِيْ مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝

په لوږه كښي | حال دا چي نه وي | مائل | ګناه ته | بيشكه الله | بښونكي | مهربان دي

..........چه ګناه ته ئي ميلان نه وي | اودغه غوښي اوخوري | نو الله بښونكي مهربان دي

**آسان ترجمه قرآن:** په تاسو باندې مردار ځناور، او وينه، او د خنزير غوښه او هغه ځناور حرام كړې شوي دي چه هغې باندې دالله نه سوا د بل چانوم اخستې شوې وي او هغه چه دمرۍ ځفه كيدو دوجې نه مړشوې وي، اوچه د ګذار دوجې نه هلاكه شوي وي، اوچه د بره راغورځيدلي وي او مړه شوي وي اوچه هغې لره يو ځناور په ښكر وهلي وي او مړه شوي وي، او چه هغې لره څه درنده خوړلي وي، هنه چه تاسو (دهغې د مړ كيدو نه مخكښ) هغه هم حلال كړې وي، او هغه (ځناور هم حرام دي) چه هغه د بتانو په (دركاه) نوم حلال شوې وي، اودا خبره هم (ستاسو دپاره حرامه ده) چه تاسو د جوارۍ په غشو (غوښه وغيره) تقسيم كړئ دا ټولي خبرې د سختې ګناه دي نن كافرستاسو د دين (د مغلوب كيدو نه) نااميد شوي دي نو دهغوى نه مه ويريږئ، او ځما ويره زړه كښ وساتئ نن ما تاسو ته ستاسو دين مكمل كړو، او په تاسو مي خپل نعمت پوره كړو، اوتاسو د پاره مي اسلام ددين په توګه (هميشه دپاره) خوښ كړو (نو ددين د احكامو پوره پابندي وكړئ) هنه څوك چه د سختې لوګې په حالت كښ مجبوره شي (او ددې مجبورۍ په حالت كښ ددې حرامو څيزونو نه څه وخوري)، په دې شرط چه د ګناه د رغبت د وجې نه ئې داسې نه وي كړي نو الله ډير معاف كوونكې، ډير مهربان دي.

## خلاصه تفسير

﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيْرِ﴾ په تاسو باندې [داخاروى وغيره] حرام كړې شويدى مرداره [خاروى چه ذبح كول ئے واجب وى اوسره دهغې ېے دڅه شرعى وجې نه مړ شى] اووينه [چه بهيدونكې وى] اود خنزير غوښه [داشان دده بدن ټول هرڅه] ﴿ وَمَاۤ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوْذَةُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيْحَةُ﴾ اوهغه خاروى چه [دنزديكت په اراده] دغيرالله په نامه كړې شوى وى اوچه دمرۍ خپه كيدو په وجه مړ شوى وى اوچه په څه ګوزار سره مړشى اوچه دلوړے نه په راپريوتلو مړشى [الكه دپورته غرنه راپريوزى يا په كوهى كښې ورپريوزى] اوهغه چه په ډغره مړشى ﴿ وَمَاۤ اَكَلَ السَّبُعُ اِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ ﴾ اوهغه چه څه درنده ئے [درانيولو نه پس] خورى [اوددې غم نه مړشى] ليكن [منخنقه نه ماأكل السبع پورې ذكر شوۍ خاروو نه] كومو لره چه تاسو [دساه وتلو نه مخكښې دشرعى قاعدې مطابق] ذبح كړئ [هغه به حرام نه وى] ﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَاَنْ

تَسْتَقْسِمُوْا بِالْاَزْلَامِ ﴾ او همدغه شان کوم ځاروی چه [دغیرالله] په عبادت خانو باندې ذبح کړې شی [حرام دی اګر چه په ژبه او وینا سره دغیرالله په نوم نه کړې شی ولې چه د حراموالی اوانړه په ناروا نیت باندې ده دا کله په وینا سره دغیرالله په نامه کولې شی او کله دکولو سره چه هغه په دغسې مقاماتو ذبح کړې شی] اودا [هم حرام دی] چه [غوښه یابل څه] اویشئ په ذریعه د خسنړی اچولو دغشو ﴿ ذٰلِكُمْ فِسْقٌ ﴾ دا ټول ګناه ده [اوحرام] دی .﴿ اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ ﴾ نن ورځ [یعنی اوس] نااميده شو کافرخلق ستاسو ددین [دمغلوب کیدو او ختمیدو] نه [ولې چه ماشاءالله دا ښه خورشو] ﴿فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ ﴾نودوی[کافرو]نه مه اویرېږئ]چه ستاسو دین[به ختم کړې شی]او زمانه په مخه ویرېږئ [یعنی زما دحکمونو مخالفت مه کوئ] ﴿ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ ﴾نن ورځ تاسو دپاره ستاسو دین لره ما[په هرشان] کامل کړو [په قوت کښې هم چه دهغې په وجه کافر نااميده شو اوپه احکامواو قواعدو کښې هم] او [ددې کاملولوپه وجه] ﴿ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ ﴾ ماپه تاسو خپل انعام پوره کړو [دینی انعام هم چه احکام مکمل شو اودنیوی انعام هم چه قوت درته حاصل شو اوپه دین کاملولو کښې دواړه راغلل] ﴿ وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا ﴾ اوما اسلام لره ستاسو دین جوړولودپاره [همیشه ترقیامته پورې] خوښ کړو [چه قیامته پورې به ستاسو هم دا دین وی ددې په منسوخ کولو سره به بل لره ستاسو دین نشی ګرځولے نوتاسو لره زما دنعمت شکر په داسے شان ادا کول پکاردی چه په دې دین باندې پوره ټینګ پاتې شئ] بیا [ددغسې بیان شوؤ څیزونو د حراموالی معلومولونه پس دا هم معلوم کړئ چه] ﴿ فَمَنِ اضْطُرَّ فِيْ مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ ﴾ څوك په سخته لوږه کښې بےدمه شی [اوپه دغه وجه بیان شوی حرام څیزونه اوخوری] په شرط ددې چه دڅه ګناه طرف ته دهغه میلان نه وی [یعنی دضرورت نه زیات اندازه کښې اونه خوری اونه یې خوند اخستل مقصد وی دے نه یې په سورت بقره کښې ﴿غیرباغ ولا عاد﴾ سره تعبیر کړېدې] ﴿ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴾ نویقینًا الله ﷻ معاف کوونکې دے [که د ضرورت په پوره اندازه باندې پوهه نه شوئ اوڅه نمرئ[ګوله] نیمه موترې زیاته هم اوخوره او] د رحمت خاوند دې [چه په داسې حالت کښې یې اجازت درکړو].

## معارف اومسائل

دا د سورت مائده دریم آیت دې چه پکښې ډیرڅه اصول اوفروعی احکام اومسئلې بیان شویدی، ړومبئ مسئله دحلالو اوحراموځاروُوده، دکوموځاروُوغوښه چه انسان ته ضرر رسوونکې ده، خواه دبدن دپاره ئې مضره وی چه دانسان په بدن کښې ترِبیماری پیدا کیدې شی یاروح دپاره ئې مضره وی چه دې سره دانسان اخلاقی اودزړه کیفیات خرابیدې شی هغې لره قرآن کریم خبائث [ناکاره] اوګرځول اوحرام ئې کړل اوپه کوموځاروُوسره چه روحانی یاجسمانی ضررنشوپیدا کیدې هغه ئې طیب [پاکیزه] اوحلال اوګرځول،

په دې آیت کښې فرمائی چه [حرام کړې شوپه تاسو مردارځاروی] مردارنه مطلب داسې ځاروې دې چه دذبح کولونه بغیردڅه بیمارئ په وجه یاپه طبعی [خپل] مرګ مړشی، دداسې ځاروی غوښه په طبی لحاظ سره هم، انسان دپاره سخته مضره ده اوپه روحانی لحاظ سره هم،

البته په حديث شريف كښې رسول الله ﷺ دوه څيزونه ددې نه ويستي دي يو كب[ماهي]، او بل ملخ، داحديث، مسند احمد رحمه الله ابن ماجه رحمه الله دارقطني رحمه الله بيهقي رحمه الله وغيره روايت كړيدي(¹)،

بل هغه څيز چه په آيت كښې حرام ګرځولې شويدې هغه وينه ده او دقرآن كريم په بل آيت كښې ﴿أَوْدَمًا مَّسْفُوحًا﴾ فرمائيلو سره دااوښودلې شو چه دوينې نه مراد بهيدونكې وينه ده، په دې وجه كليجې او تورې دې حكم لاندې نه راځي اګرچه هغه وينه ده [خو بهيدونكې نه ده] چرته چه په حديث شريف كښې په [ميته] كښې كب[ماهي] او ملخ داخل نكړې شو دغه شان كليجې [اينه] او تورې په وينه كښې داخل نكړې شو. دريم څيز[لحم الخنزير] دې چه حرام ګرځولې شويدې، د[لحم] نه ئې مراد ټول بدن دې چه وازده، پلې وغيره ټول پكښې داخل دى،

څلورم هغه څاروى دى چه دغير الله په نوم كړې شوى وى، بيا كه دذبح په وخت هم په هغې، دغير الله نوم واغستې شى نو دا په ښكاره كفر دې، دغه څناور په اتفاق دعلماؤ ﷺ سره دمردارې په حكم كښې دې، لكه دعربو مشركانو به چه دبتانو په نوم څاروى ذبح كول، يا څنې جاهلان ئې دپير، فقير په نوم باندې ذبح كوى، دغير الله په نوم منلى شوى څاروى لره هم جمهور و[فقهاء ﴿وَمَآ أُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ﴾ لاندې راولى او حرام ئې بولى اګرچه دذبح په وخت په هغې دالله تعالى نوم واغستې شى،

پنځم ﴿وَالْمُنْخَنِقَةُ﴾ څاروې حرام دې، داهغه څاروې دې چه په مرئ خپه كولو ترساه اوښكلې شوى وى، يا پخپله په څه جال وغيره كښې دګيريدو په وجه ئې ساه بنده شى او مړ شى، اګرچه منخنقه او موقوذه هم په ميته كښې داخل دى مګر دجاهليت دزمانې خلقو به چه هركله دې لره روا او حلال ګڼړل څكه ئې خصوصى ذكر اوكړې شو،

شپږم موقوذه څاروې دې چه دسخت ګوذار خوړلو له كبله هلاک شوې وى لكه په كوتک [ډانګ] وهلې شوې وى يا په كاڼړى ويشتلې شوې وى يا ورلاندې چخڼړى كړې شوې وى، كوم ښكار چه دغشى دڅوكې [تيرو] په څاى دهغې په بل څائ [په ډنډى وغيره] لګيدلو سره مړ شوې وى هغه هم دموقوذه په حكم كښې داخل، حرام دې، حضرت عدى بن حاتم ﷺ درسول الله ﷺ په خدمت كښې عرض اوكړو چه زه كله كله په معراض [غشى] سره ښكار كوم كه په هغې سره ښكار مړشى نو خورې شم. هغوئ ﷺ ورته اوفرمائيل چه، كه هغه دغشى په ګوذار مړشوې وى نو موقوذه شو، مه ئې خوره او كه په څوكه [په تيرو] لګيدلې وى هغې زخمى كړې وى نو خوړلې ئې شې. دا روايت جصاص رحمه الله په [احكام القرآن](²) كښې خپل اسناد سره نقل كړيدې خو شرط دادې چه دغشى ويشتو په وخت ئې بسم الله وئيلى وى،

دټوپک په ګولئ لګيدلې څاروې [مارغه] چه هم دهغې نه مړشى، داهم په موقوذه كښې داخل حرام دې، امام جصاص رحمه الله دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه نقل كړيدى چه هغوئ ﷺ به

---

¹) مسند أحمد، مسند عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما رقم الحديث: ۵۸۵۶ وسنن ابن ماجة، أبواب الأطعمة، باب الكبد والطحال: ص ۲۳۸، وسنن دارقطني، كتاب الأشربة وغيرها رقم الحديث: ۴۷۴۳، وسنن البيهقي، كتاب الصيد والذبائح، باب ما جاء في أكل الجراد، رقم الحديث: ۱۹۷۶۹

²) أحكام القرآن للجصاص، سورة المائدة: ج ۵، ص ۲۱۳

فرمائیل، المقتولة بالبندقة تلك الموقوذة(۱) [دټوپک په ګولۍ لګيدلی ښکار چه هم دهغې نه مړشی داموقوذه [حرام] دی، دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله امام شافعی رحمه الله امام مالک رحمه الله وغیره دټولو په دې اتفاق دې [قرطبی]

اووم مترديه ځاروې دې چه دڅه غر، غونډۍ یالوړ ځائ عمارت وغیره نه په راپریوتو یاپه کوهی کښې دپریوتوله کبله مړ شی، هغه هم حرام دې، په دې وجه [دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت دې هغوئ رضی الله عنه فرمائيلی دی چه پورته په غر کښې یوښکار باندې چه غشې ورااووېشتې شی بسم الله پرِدويشتو په وخت اووئیلې شی، دغشی نه بچ شی اوبیاهم دهغه ځائ نه په پریوتو مړشی نوهغه مه خورئ، ځکه چه داهم کیدې شی چه دغشی په لګیدو، نه، بلکه دپورته نه دراپریوتو په وجه دویرې نه مړشوې وی نوداپه مترديه کښې داخل شو، داشان په څه مارغه چه غشې ورااووېشتې شی، هغه په اوبو کښې پریوځی نود هغې خوراک ئې هم په دې وجه منع کړیدې چه کیدې شی دډوبیدوله کبله هغه مړشوې وی [جصاص](۲)،

اتم ﴿وَالنَّطِيحَةُ﴾ ځاروې دې چه دڅه ډغرې یادڅه ځیزسره دجنګیدوپه وجه مړشوې وی، لکه ریل، موټرپه دپه وهلې وی دهغې نه مړشی یادبل یوځاروی دډغرې وهلوپه وجه مړشوې وی، نهم هغه ځاروې دې چه دیوبل ځناورپه ځیری کولوسره مړشوې وی.

ددې نهوقسمونودحراموالی بیانولونه پس ئې یوه استثناءداسې ذکرکړه [﴿إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ﴾(۳)] مطلب ئې دادې چه که ددغه ذکرشوځاروڅخه څه ځاروې ژوندې پیدا کړو او ذبح مو کړو نوهغه حلال شو خوراک ئې روادې.

دااستثناءدشروع څلوروقسمونوسره تړون نه لری، ولې چه په میته اودم کښې خودا امکان دسره کیدې نشی، اوخنزیراو[﴿مَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ﴾] دذات په لحاظ سره حرام دی، ددې ذبح کولواونه ذبح کولوسره هیڅ فرق نه پریوځی، چنانچه دحضرت علی رضی الله عنه ابن عباس رضی الله عنه، حسن بصری رضی الله عنه قتاده رحمه الله وغیره پخوانی بزرګان په دې اتفاق لری چه دااستثناء دروستو څلورونه پس منخنقه پسې ذکرشوځاروو سره تعلق لری، مطلب ئې داشوچه په دې ټولوصورتونو کښې که ځناورژوندې پیدا شو، یاد ژوند نخښې پکښې محسوسې کړې شوې اوپه دغه حالت کښې دالله تعالی په نوم سره ذبح کړې شو نو هغه به حلال وی، خواه هغه منخنقه وی، یا موقوذه، مترديه، نطیحه وی یاهغه وی چه درنده ځیری کړې وی په دې کښې هریوچه دژوندد نخښو نښانو محسوس کولوپه وخت ذبح کړې شونوهغه حلال شو،

لسم ځاروې هغه حرام دې چه په نُصب ذبح کړې شوې وی، نُصب هغه کاڼړی ووچه دخانه کعبې نه ګیرچاپیره اودرولې شوی وو اودجاهلیت دزمانې خلقوبه دهغې عبادت په دې شان هم کولوچه ځاروی به ئې هم ددې په خاطرذبح کول، دجاهلیت دزمانې دخلقوبه داعادت ووچه دغه قسم ځاروی به ئې خوړل چه په [خبائثو] کښې داخل دی، قرآن کریم دې ټولولره حرام اوګرځول،

یولسم حرام ځیزدآیت له مخې [استقسام بالازلام] دې، ازلام دزلم جمع ده داهغه غشې دې چه دعربودجاهلیت په زمانه کښې به دقسمت معلومولودپاره استعمالولې شو، دابه اوه

(۱) أحكام القرآن للجصاص، سورة المائدة: ج ۵، ص ۲۱۳

(۲) أحكام القرآن للجصاص، سورة المائدة: ج ۵، ص ۲۱۶

غشي وو، په يو به [لا] په بل به [نعم] او په نورو به داسې قسم نور الفاظ ليکلي شوي وو، دا غشي به دبيت الله شريف خادم سره پراته ؤو، چا به چه خپل قسمت معلومول غوښتل يا به ئي دا غوښتل چه آئنده کښې ديو کار مفيد يا مضر کيدل معلوم کړي، نو دکعبې شريفې خادم ته به ئي سل روپۍ په نذرانه کښې ورکړې، هغه به دَ شخلی نه دغه يو يو غشي راويستو که د[نعم] والا غشي به را اووتو نو دا به ئي ګڼړل چه دغه کار به ورد پاره مفيد وی او که [لا] به را اوختو نو دا به ئي ګڼړل چه دغه کار کول نه دی پکار، د حرامو څاروو په لړ کښې ددې دذکر کولو وجه داده چه د عربو يو عادت دا هم وو چه څو کسانو به په شريکه يو اوښ ذبح کړو او دهغې غوښه به ئي په دې ډول خپل مينځ کښې بياويشله چه دجوارئ [خمار] دغه غشو کښې به دچا په برخه کوم غشي را اووتو د هغې په جوړ به دغه غوښه ويشلې شوه، چاته به لږه، چاته ډيره، او چاته به بيخی نشوه ورکولې. يعنې داصلی حصې اوبرخې په جوړ به نشوه ويشلې. په دې وجه د څارؤو د حراموالی په لړ کښې ددې طريقې حراموالې هم بيان کړې شو،

علماؤ رحمهم الله فرمائيلی دی چه د راتلونکو حالاتو او دغيب دڅيزونو معلومولو چه څومره رواجي طريقې دی هغه ټولې په [استسقام بالازلام] کښې راځی چه حرام دی، که دا دعلم جفر په ذريعه وی، يا دلاس دکرښو په کتو سره وی يا دفال راؤښکلو په ذريعه وی،

[استقسام بالازلام] که دجوارئ دپاره هم استعمالولې شي په کومه کښې چه دلاټرئ، خسنړی راؤښکلو په ذريعه حقوق ويشلې او ټاکلې شی، دا هم دقرآن کريم په نص سره حرام دی، چه قرآن کريم د[ميسر] په نوم سره منع ګرځولی دی، په دې وجه حضرت سعيدبن جبير رضي الله عنه مجاهد رضي الله عنه اوشعبی رحمه الله فرمائيلی دی چه څنګه به عربو د[ازلام] په ذريعه برخې ټاکلې، دغه شان په فارس اوروم کښې دشطرنج اوچوسره ددانو [ګيټو] نه دا کار اغستې شی، څکه دا د [ازلام] په حکم کښې دی [مظهری] (۱)

د[استقسام بالازلام] حراموالی سره ئې دا اوفرمائيل: [ذٰلِكُمْ فِسْقٌ] [دقسمت معلومولو يا دبرخو ټاکلو دا طريقه فسق اوګمراهی ده] ددې څخه روستو يې دا ارشاد اوفرمائيلو چې:

[اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ] [نن ورځ کفار ستاسو په دين باندې دغالب راتلو نه نا اميده شويدی] په دې وجه تاسو دهغوئ نه څه ويره مه کوئ، البته دالله تعالی نه په مخه ويريږئ] دا آيت دهجرت په لسم کال دحجة الوداع په موقعه دعرفې په ورځ نازل شو، کله چه مکه مکرمه اوتقريباً ټول عرب فتح شوی وو، په پوره جزيرة العرب باندې اسلامی قانون جاری وو، په دې بنائې اوفرمائيل چه دنن نه وړاندې به کفارو د مسلمانانو دختمولو منصوبې جوړولې اوو‌ئيل به ئې چه مسلمانان زمونږ په مقابله کښې کم هم دی او کمزوری هم دی. خو اوس ددوئ دغه همت اوحوصله پاتې نشوه، نه ئې هغه طاقت پاتې شو، څکه د مسلمانان ددغه اړخه تسلی لری او دخپل رب په فرمانبردارئ او په عبادت کښې دمشغول پاتې ګيږی،

[اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا] ددې آيت نازليدل يو خاص شان لری، ددې دنازليدو ورځ عرفه ده، چه په ټولو ورځو کښې سرداره ده او دغه دجمعې ورځ هم وه چه فضيلتونه ئې ښه معلوم دی دنازليدو ځائ ئې دعرفات دميدان جبل رحمت سره نزدې دې

(۱) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۲۳

چه دعرفې په ورځ دالله تعالى دا رخه درحمت دنازلیدو یوخاص مقام دی، وخت ئې دما زیګر د ماښځه نه پس دی چه په عامو ورځو کښې هم مبارک وخت دی، خصوصاً دجمعې په ورځ خو دا داسې یو وخت دی چه دګنړو روایتونو په جوړپه دې کښې ددعا د قبلیدو یو ګړئ راځي، او د عرفې په ورځ په زیات خصوصیت سره ددعاګانو دقبلیدو یو خاص وخت دی،

حج دپاره دمسلمانانو دټولونه لویه اجماع [ټولنه] وه چه پکښې تقریباً یونیم لک صحابه کرام شریک وو، رحمة للعلمین ﷺ صحابه کرام ﷺ سره دجبل رحمت لاندې په خپلې اوښې عضباء سوروو او دحج په یولوئ رکن [وقوف دعرفات] کښې مشغول وو،

دداسې فضیلتونو، برکتونو او رحمتونو په سورې کښې دا آیت کریمه په رسول الله ﷺ باندې نازل شوې وو، دصحابه کرامو ﷺ دبیان مطابق چه کله دا آیت دوحی په ذریعه نازلیدو، نو دوړاندې پشان دوحی دومره زیات دروند والې محسوس شو چه په اوښه باندې ددې دومره زور وو چه په کښیناستو مجبوره شوه،

حضرت عبد الله بن عباس ﷺ فرمائیلی دی چه دا آیت تقریباً دقرآن کریم آخری آیت دې، دې نه پس داحکامو په باره کښې بل آیت نه دې نازل شوې، صرف دمینه پیدا کولو یا ویرولو دپاره دیو څو آیتونو نازلیدل ددې نه پس ښودلې شویدی، ددې آیت دنازلیدو نه پس رسول الله ﷺ په دې دنیا کښې صرف یو اتیا ورځې حیات وو، ځکه چه دا آیت دلسم کال دهجرت دذی الحجې د میاشتې په نهمه نیټه نازل شو او دیولسم کال دهجرت، دربیع الاول دمیاشتې په دولسمه [١] نیټه درسول الله ﷺ وصال اوشو.

په یوخاص شان او اهتمام سره چه دا آیت نازل شو، ددې مفهوم او مطلب هم اسلامی ملت او مسلمانانو دپاره یو ډیرلوئې زیرې، لوئ انعام او داسلام یوه ځانګړې خاص نښانی ده، خلاصه ئې داده چه کوم حق دین او دالله تعالى نعمت په لویه پیمانه په دې دنیاکښې انسان ته ورکیدونکې وو، نن هغه مکمل شو اګرچه دادین حق او نعمت الهی دحضرت آدم ﷺ دزمانې نه نازلیدل او جاری کیدل شروع شوی وو، په هره زمانه کښې دهرې علاقې خلقوته ددې نعمت نه مناسب برخه ورکیدل جاری وو، خو نن هغه دین او نعمت په مکمل صورت کښې خاتم الانبیاء ﷺ او دهغوئ ﷺ امت ته ورکړې شو،

ځنګه چه په دې سره دسید الانبیاء ﷺ خوش قسمتی او ځانګړې خصوصی شان ښکاره کول دی دغه شان ددې امت مرحومه یوخاص ځانګړې شان ښکاره کول هم دی،

هم دا وجه وه چه یو ځل دیهودو علماء دحضرت عمر فاروق ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه ستاسو په قرآن کښې دیو نازل شوی آیت پشان که یو آیت په یهودو نازل شوې وې نو هغوئ به ددې دنازلیدو په خوشحالئ کښې لکه داختر پشان جشن او میله جوړه کړې وه دفاروق اعظم ﷺ په تپوس کولو هغوئ ورته دا آیت [اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ] په ګوته کړو.

---

[١]) دا د مشهور قول په وجه لیکلې شوی دی ګنې حضرت مؤلف سره پخپله رساله سیرت خاتم الانبیاء ص:١٤٤ باندې د حافظ ابن حجر عسقلانی ﷺ او حافظ مغلطائی ﷺ حوالې سره د نبی کریم د پیدائش تاریخ دویم ربیع الاول صحیح ګرځولې دې او یو اتیا ورځې هم دې حساب سره جوړیږی ، محمد تقی عثمانی.

حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه ورته په جواب کښې اوفرمائيل چه ددې آيت دنازليدومقام او ورځ مونږښه پيژنو(١)، اشاره ئې دې خبرې ته وه چه په دغه ورځ زمونږ غبرگ اخترو، چې يو دعرفې اوبل دجمعې اخترو و،

**داخترونواودبوشپوورځو تپرولو اسلامی اصول:** دفاروق اعظم رضی الله عنه په دې جواب کښې يواسلامی اصول ته هم اشاره ده چه دټولې دنياپه قومونواومذهبونوکښې صرف داسلام يو ځانگړې خاص شان داسې ښکاره کوی چه په دنياکښې دهرقوم اوملت خلق دخپلوخپلو حالاتو او خصوصياتو دلاندې دخپلوخاص تاريخی واقعاتوپه ورځوکښې ديادگيرنې ميلې اوجشنونه جوړوی گويا چې هغوئ ته دااختريابله بزرگه ورځ ښکاری.

چرته دخپل يولوئ بنده دپيدا کيدو، مړکيدويادهغه په تخت دکښيناستووغيره ورځ نمانځی چرته ديوخاص ملک يابښاردفتح، يادبلې يوتاريخی واقعې ورځ نمانځی چه مطلب ئې دخاص خاص انسانانودعزت زياتولونه سوابل هيڅ نه وی، اسلام داشخاص پرستئ قائل نه دې ځکه ئې دجاهليت اوشخصی يادگارونه پرېښول اوداصولو اومقصدونو د يادگارونو قائمولو اصول ئې جوړکړل،

چنانچه حضرت ابراهيم عليه السلام ته د [خليل الله] دخطاب ورکولو اوقرآن کريم کښې ددوئ عليه السلام دامتحانونواوپه دغې ټولوکښې ددوئ عليه السلام دستائنې مطلب هم دادې څنگه چه قرآن کريم فرمائی: ﴿وَإِذِ ابْتَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ فَأَتَمَّهُنَّ﴾ ليکن نه خوددوئ عليه السلام داپيدائش يا د مرگ ورځ ونمانځل شوه او نه د هغوئ دځوئ حضرت اسماعيل عليه السلام اونه ئې دمور بی بی حضرت هاجرې عليها السلام دپيداکيدواودوفات کيدويادنوروحالاتوڅه يادگارقائم کړو.

البته ددوئ [ټولو] په عملونوکښې دکوموڅيزونوتړون چه ددين مقصدونو سره ؤودهغې يادگارونه يواځې محفوظ نه، بلکه دراتلونکونسلونو ددين اومذهب برخه، اوفرض واجب اوگرځولې شو، قربانی، هلکان سنتول، دصفااومروه ترمنځه زغلـ کول يعنی منډه وهل، د منی په دريو سلوباندې دکانړوگيتکئ [اشکې] ورويشتل [ټول] هم ددې بزرگانو داسې کارونو يادگارونه دی چه هغوئ خپل نفسانی جذبات اودانسانی طبيعت غوښتنې ئې دالله تعالی درضاپه مقابله کښې شاته اوغورځول بلکه دپښولاندې ئې راوستل اودغه کارونه ئې ترسره کړل، اودې ته دهرې صدئ اوهرې زمانې خلقوته داسبق حاصليږی چه انسان لره دالله تعالی درضالټولو په غرض خپل طبيعت ته دېرنږدې اوزيات خواږه څيزونه قربانول پکاردی،

دغه شان په اسلام کښې ديولوئ نه لوئ کس دمرگ، ژوند يادشخصئ [ذاتی] حالاتو دڅه ورځو نمانځلوپه ځائ دهغوئ دداسې بهترينوعملونوورځې نمانځلې شی چه خاص خاص عبادتونو سره تړون لری، لکه شب براءت، [دشبقدرشپه] ، رمضان المبارک، [دمعراج شپه]، دعرفې اوعاشورې ورځ وغيره، په کال کښې دوه اخترونه هم خالص په دينی لحاظ سره مقررکړې شوروميې [وړوکې] اختر درمضان المبارک دمياشتې په ختميدواودحج دمياشتو په شروع کيدوباندې مقررکړې شواوبل [لوئ] اختردحج دعبادت په ختميدوباندې مقررکړې شو،

---

١) صحيح البخاری، کتاب الإيمان، باب زيادة الإيمان: ج ١، ص ١١

خلاصه دا چې دحضرت فاروق اعظم رضي الله عنه د دې جواب مطلب دا نبو دل وو چه دیهودو او نصاراؤ پشان زمونږ اخترونه په تاریخي واقعاتو باندې اډانړه نه دی څنګه چه دجاهلیت اولی رسم وو او اوسنی نوی جاهلیت خو دا رسم ډیر زیات خورپه دې شان کړو چه مسلمانان دنورو [غیر مسلم] قومونو په پل روان شو،

هر کله چه عیسایانو دحضرت عیسی علیه السلام د پیدائیش ورځ، داختر ورځ جوړه کړه نو ددوئ په پل باندې مسلمانان هم داسې روان شو چه درسول الله صلی الله علیه وسلم د پیدائیش ورځ ئې د [عید میلاد النبی صلی الله علیه وسلم په نوم د اختر په ډول اونمانځله، په دغه ورځ په بازارونو کښې جلوسونه اوشکل، نورګډوډ کارونه کول او په دغه شپه چراغان اورڼاګانې کول ئې دعبادت په نیت سره شروع کړل، چه هیڅ بنیادئې دصحابه کرامو رضي الله عنهم تابعینو رحمهم الله اودامت دنورو بزرګانو په عمل کښې ثبوت نه لری.

اوحقیقت دادې چه دداسې ورځونمانځل په هغه قومونو کښې خو رواج جوړشویدې چه د باکماله خلقو او دهغوئ دحیرانونکو کارنامو په لحاظ سره خواروی، صرف دوه څلورکسان په ټول قوم کښې دغه قسم موندې شی چه څه مخصوص یو کاردوه ئې کړی وی اودهغې یادګار نمانځل قومی فخر ګڼړی،

په اسلام کښې که دغسې رواجونه چلیدې نو یولاک څلیریشت زره پیغمبرانو علیهم السلام نه خوزیات پیغمبران علیهم السلام دی، چه یو اځې د پیدائیش ورځ ئې نه بلکه دهغوئ علیهم السلام د بیمشیره، حیرانونکو کارنامو ورځې نمانځل به راځی، بیاخو دټولونه زیاتې دنمانځلوورځې دخاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم کیدې شی چه دشمیرنه څکه بهردی چه دهغوئ صلی الله علیه وسلم دژوند مبارک یو ورځ څه چه یو ساعت یو ګړئ هم دلوړې پیمانې یادګاری کارنامو ترسره کولونه خالی نه دهٔ، د وړوکتوب نه ترخوانئ پورې ئې داسې کمالات څه پټه خبره نه ده د کومو په وجه چه په عربو کښې ورته د [امین] لقب ورکړې شو، آیا داددې جوګه نه دی چه دیادګارونو په ډول اونمانځلې شی، بیا دقرآن کریم نازلیدل، هجرت، دبدرغزا، داحد، خندق غزاګانې، دمکې مکرمې فتح، حنین تبوک اونورې غزاګانې درسول الله صلی الله علیه وسلم هریو داشان لری چه دهغې یادګار اونمانځلې شی، دغه شان په زرګونو معجزات دهغوئ صلی الله علیه وسلم دیادګارونو نمانځلو هم جوګه دی، دهغوئ صلی الله علیه وسلم نه پس تقریبا یونیم لاک صحابه کرام رضي الله عنهم هغه دی چه هریو دهغوئ رضي الله عنهم څنې په حقیقت کښې درسول الله صلی الله علیه وسلم دژوندئ معجزې شان لری، آیا دابه بې انصافی نه وی چه دهغوئ رضي الله عنهم یادګارونه اونه نمانځلې شی، که دارسم روان شی اودصحابه کرامو رضي الله عنهم د کروړونو په شمیر کښې داولیاء الله علماؤ رحمهم الله مشانخو رحمهم الله یادګاری ورځې اونه نمانځلې شی نودوئ سره به بې انصافی کول نه وی؟ اوکه بیادټولو یادګاری ورځونمانځل راشی نوپه کال کښې به یوه ورځ هم دیادګار نمانځلو نه خالی نه وی، بلکه هرورځ څه چه هره ګینټه اوهرساعت اوګړئ به څوڅواخترونه نمانځل راځی.

هم دغه وجه ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوصحابه کرامو رضي الله عنهم دې رسم لره دجاهلیت رسم اوګرځولو او شاته ئې اوغورځولو. اوحضرت عمرفاروق رضي الله عنه په دغه فرمان کښې هم دې خبرې ته اشاره ده.

اوس ددې آیت دمعنې اومطلبونو تفصیل اوګورئ، په دې کښې الله تعالی رسول الله صلی الله علیه وسلم او ددوئ صلی الله علیه وسلم امت مرحومه ته د ډیرو خصوصی انعاماتو ورکولو زیرې ورکړیدې،

① يو ددين دكاملولو ② دويم دنعمت دپوره كولو، ③ دريم داسلامي شريعت دانتخاب كولو د
دې امت دپاره.

ترجمان القرآن حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وغيره ددين دكاملولو معنى داسې بيان كړيده، چه
نن دحق دين، ټول حدود، فرائض، احكام اوآداب مكمل كړې شوه، اوپه دې كښې د څه اضافي
كولو اوزياتي راوستو ضرورت پاتې نشو اونه پكښې دكمئ څه احتمال شته، [روح] (١) همدغه
وجه ده چه دې نه پس په اسلام كښې څه بل نوې حكم نازل نه شو، څه قدرې آيتونه چه ددې نه
پس نازل شويدى په هغې كښې ياخو دشوق پيدا كولو اووېرولو مضامين دى يادهغې احكامو
تاكيددې چه بيان ئې وړاندې شوې وو.

داخبره دې سره بې ربطه نه ده چه داصولو داجتهادلاندې مجتهدين امامان، دنوؤ نوؤ
راپيښيدونكو واقعاتو اوحالاتو په باره كښې دخپل اجتهاد په بناشرعى حكمونه بيان كړى ولې
چه څنگه قرآن كريم دشرعى احكامو حدود او فرائض وغيره بيان كړى دى، دغه شان داجتهاد
اصول ئې هم ټاكلي دى، دهغې په ذريعه كوم احكام چه ترقيامته پورې راوښكلې شى هغه په
يو حيثيت سره دقرآن كريم دبيان كړې شوؤ احكامو شان لرى ځكه چه دقرآن كريم دبيان كړې
شوؤ اصولو لاندې راځى.

خلاصه داشوه چه دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما د تفسير مطابق ددين دكاملولو مطلب
دادې چه ددين ټول احكام مكمل كړې شو، اوس په دې كښې دڅه زياتي راوستو ضرورت
نشته اونه په څه منسوخ كيدو سره پكښې دكمئ احتمال پاتې شو، ولې چه دې پسې سمدستي
دوحى سلسله، درسول الله صلی الله علیه وسلم په وفات سره ختميدونكې وه، اودوحى الهى نه بغير دقرآن كريم
هيڅ يو حكم منسوخ كيدې نشى او دفقهاؤ اود مجتهدينو دا ړخه، داصولي اجتهادلاندې په
احكامو كښې زياتوالې ښكاريدل په حقيقت كښې زياتوالې نه ده بلكه دقرآني احكامو وضاحت
اوبيان كول دى،

او د [اتمام نعمت] نه مراد دمسلمانانو غلبه او ترقى كول اوددښمنانو اومخالفينو ئې
مغلوب كيدل او ماتې خوړل دى چه دمكې مكرمې دفتح كيدو په صورت كښې ښكاره شوا و
دغه شان دجاهليت درسمونو په ختميدلو اوددغه كال په حج كښې دچامشرك دنه شريكيدو په
ذريعه سره هم ښكاره شو،

دلته دقرآن كريم په الفاظو باندې ژورنظراچول پكار دى ولې چه دين سره اكمال
اونعمت سره اتمام استعمال شو حالانكه دادواړه لفظونه په ظاهره ديوې معنى يوشان آلفاظ
گڼرلې شى، ليكن په حقيقت كښې ددواړو په مطلب كښې فرق شته چه امام راغب اصفهانى
رحمه الله په [مفردات القرآن] كښې داشان بيان كړيدې چه ديو څيز اكمال اوتكميل دې ته وائى چه
ددغه غرض اومقصود پوره كړې شى (٢) اواتمام دې ته وائى چه اوس دبل څيز څه ضرورت
اوحاجت پاتې نشو (٣) نو دا كمال دين حاصل داشو چه په دنيا كښې دقانون الهى اواحكام دين
ليږلو مقصد نن پوره كړې شو، اودا تمام نعمت مطلب داشو چه اوس مسلمانان په دې كښې

---

١) روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٢٤٨

٢) مفردات القرآن للأصفهاني: ج ١، ص ٢٢١

٣) مفردات القرآن للأصفهاني: ج ١، ص ٧٥

دهیڅ چا محتاج پاتې نشو ، دوئ ته پخپله الله تعالی غلبه، قوت او اقتدار ورکړو چه دهغې په ذریعه دوئ ددې حق دین احکام جاري کولې شی،
دلته دې خبرې ته هم ژوره کتنه پکار ده چه ددین نسبت مسلمانانو ته او دنعمت نسبت الله تعالی ته کړې شویدې، وجه ئې داده چه ددین ښکاره کیدل دامت دخلقو دعملونو او کارونو په ذریعه کیږی او دنعمت کاملول، نیغ په نیغه دالله تعالی دا ړخه دی، [ابن قیم تفسیر القیم] ([1])
ددې تقریر نه داخبره هم په ډاګه شوه، چه [ننن ددین دکاملیدو] مطلب دانه دې چه دنورو پیغمبرانو ﷺ دینونه ناقص او نیمګړی وو بلکه په تفسیر بحرِ محیط کښې دقفال مروزی رحمه الله دنقل شوی حوالې مطابق په هر پیغمبر دالله تعالی له اړخه نازل شوې شریعت او دین دهغه زمانې او قوم په لحاظ سره کامل او مکمل وو لیکن الله تعالی ته دوړاندې نه په تفصیل سره معلوم وو چه هغه مکمل شوې د ین به دآئنده زمانې دقومونو دپاره مکمل نه وی، بلکه دغه به منسوخ کولې شی او بل دین او شریعت به نافذ [جاری] کولې شی په خلاف دشریعت اسلامی نه چه دټولونه په آخر کښې نازل کړې شو او دهر اړخ او هر لحاظ نه کامل او مکمل دې، نه څه زمانې پورې خاص دې او نه یو قوم، ملک او علاقې پورې خاص دې بلکه تر قیامته پورې دهرې زمانې، هرې علاقې او هر قوم دپاره داشریعت کامل او مکمل دې([2])،
په دې آیت کښې دد ې امت مرحومه دپاره دریم انعام دابیان کړې شویدې چه دې دپاره الله تعالی دخپل تکوینی او انتخاب په ذریعه داسلام دین منتخب او غوره کړو چه په هر حیثیت سره کامل او مکمل دې نجات [خلاصې] خاص دې پورې اړه لری،
خلاصه دخبرې داشوه چه دې آیت کښې دا اوښودلې شو چه امت مرحومه دپاره داسلام دین دالله تعالی له اړخه وربخښلې یولوئ نعمت دې، په هر حیثیت سره دهره اړخه کامل او مکمل دې، نه به دې نه پس نوې دین راځی او نه به په دې کښې څه کمې بیشې کیږی،
او هم دا وجه ده چې کله د آیت نازل شو نو ددې آیت شریف په نازلیدو مسلمانان خوشحاله شوه او نیکی او حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه ژړل، چه رسول الله ﷺ تر ددې وجه اوپوښتله نو عرض ئې او کړو چه دې نه ماته دا اشاره رامعلومه شوه چه ستاسو ﷺ ایساریدل په دې دنیا کښې اوس ډیر کم پاتې شو ، ولې چه ددین کاملیدو سره اوس درسول الله ﷺ په دې دنیا پاتې کیدو ضرورت هم پاتې نشو ، رسول الله ﷺ ددې تصدیق او کړو [تفسیر ابن کثیر و بحرِ محیط وغیره] ([3]) چنانچه راتلونکې وخت دااوښودل چه ددې نه صرف یو اتیا ورځې پس رسول الله ﷺ ددې دنیانه رخصت شو ،
په آخر دآیت کښې د [فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ] تعلق هم هغه څاروو سره دې چه په شروع دآیت کښې دکومو حراموالې چه بیان شویدې، اوس ددې جملې مطلب، یو خاص حالت دعامې قاعدې نه مستثنی کول دی هغه داسې چه که څوک دسختې لوږې له کبله بې تابه شی او دمرګ ویره ئې پیداشی که په داسې حالت کښې دغه حرام څاروونه څه قدرې او خوری نو څه ګناه پرې نشته،

[1] ) تفسیر القیم، تحت هٰذه الآیة: ج ۱، ص ۲۲۲
[2] ) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۲۵۷
[3] ) تفسیر البحر المحیط بحواله بالا۔

خوشرط دادي چه خیته ډکول اومزې اغستل ئې مطلب اومقصودنه وي بلکه دومره قدرې اوخوري چه صرف ساه پکښې اوغریږي،

په آیت کښې د [غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّإِثْمٍ] هم دغه مطلب دې چه ددغه خوړلونه ئې مطلب ګناه ارخ ته میلان کول نه وي بلکه صرف دغه بې وسئ باندې قابوموندل وي،

په آخر کښې [فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ] نه دې طرفته اشاره کوي چه دغه حرام شوي څیزونه اوس هم، هغه شان حرام اوناروادی، صرف ددغه قسم بنده دبې وسئ په وجه معاف کړې شویدی.

| |
|---|
| يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ ۖ قُلْ |
| تپوس کوي خلق ستانه \| چې کوم کوم څیز \| حلال کړې شوې دې \| دپاره دهغوئ \| ورته اووایه |
| دوی ستانه تپوس کوي چې دوی دپاره کوم کوم څاروی حلال شوی دی \| ............ ورته اووایه |
| أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَٰتُ ۙ وَمَا عَلَّمْتُم |
| حلال کړې شوي دي \| ستاسو دپاره \| ټول پاك څیزونه \| اوهغه \| چې تاسو خودلي دي |
| ستاسو دپاره ټول پاکیزه څیزونه حلال دي \| وکوم ښکاري ځناور چې تاسوعادت کړې وي |
| مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا |
| ښکاري ځناورو ته \| ښکار باندې ورپریښودو د پاره \| چې تعلیم ورکوئ تاسو دوی ته \| دهغه علم نه |
| اوبیا تاسوئې په ښکار پسې پریږدئ \| اود هغه تعلیم [د ښکار طریقه] مو ورته خودلي وي \| کومه چه |
| عَلَّمَكُمُ اللَّهُ ۖ فَكُلُوا مِمَّآ أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ |
| چې ښودلي دې تاسو ته \| الله \| نوخورئ \| دهغه ښکارنه \| چې اونیسي هغوئ \| دپاره ستاسو |
| الله ﷻ تاسوته خودلي ده \| نو کوم ښکار چې هغوئ ستاسو دپاره راونیسي هغه خورئ شئ |
| وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ |
| اویاد وئ تاسو \| نوم د الله \| په هغه باندې \| اویره کوئ دالله نه \| بیشکه الله \| ازراخستونکي دي |
| [او د ورپریښودلو په وخت] کښې پرې دالله ﷻ نوم اخلئ \| اود الله ﷻ نه ویریږئ \| ......الله ﷻ |
| الْحِسَابِ ۝ |
| دحساب |
| زرحساب اخستونکې دي |

خلق تا نه تپوس کوي چه هغوی د پاره کوم څیزونه حلال دي؟ ته ووایه چه "تاسو د پاره پاك څیزونه حلال شوي دي او کوم ښکاری ځناورو لره چه تاسو دالله ښودلې شوي طریقې مطابق تعلیم ورکولوسره (د ښکار د پاره) بډل کړی وي، هغه چه کوم ځناور (د ښکار کولونه وروستو) تاسو ته ایسار کړي، هغې نه تاسو خوړلې شئ او په هغې باندې د الله نوم اخلئ، اودالله نه ویریږئ، الله زر حساب اخستونکې دي،

**د آیتونو ترون:** رومبی آیت مبارك کښې د حلال او حرام ذکر وو. دې آیت مبارك کښې هم ددې معاملې متعلق د سوال جواب دي. څینې صحابه کرامو ﷺ رسول کریم ﷺ نه د ښکاری سپی او د باز د ښکار باره کښې تپوس کړې وو. دې آیت مبارك کښې ددې جواب ذکر دې.

## خلاصه تفسیر

﴿يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ﴾ خلق تاسو نه تپوس کوی چه [دسپی اوباز دښکار کړو ځناورو په باره کښې] څه څه [ځناور] دوی لره حلال کړې شویدی [یعنی کوم ځناور چه په ذبح سره حلالیږی آیا دسپی اوباز په ښکار کولو سره هم دغه ټول حلال پاتې کیږی یا هغې نه بعضې څه خاص ځناور حلالیږی یا مطلقًا یوهم نه حلالیږی اوچه کوم حلالیږی نوآیا دهغې دپاره څه شرط هم شته] تاسو [جواب کښې] ﴿قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَٰتُ﴾ اوفرمائی چه تاسو لره ټول حلال ځناور [دښکار نه چه رومبے حلال دی هغه ټول دسپی اوباز په ذریعه په ښکار کولو سره هم] حلال کړې شویدی [دادسوال د رومبی جز جواب دے وریسے د دویم جز جواب دادې چه ﴿وَمَا عَلَّمْتُم مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ﴾ دسپی اوباز د ښکار حلالیدو دپاره څه شرطونه دی هغه داچه] کومو ښکاری ځناورو [لکه سپے باز وغیره] ته چه تاسو [په خاص ډول چه بیان ئے راروان دے] تعلیم ورکړئی [دا یوشرط دې] اوتاسو هغه [په ښکار] ورخوشی هم کړئی [دا دویم شرط دې] اوهغې ته [چه کوم تعلیم ورکول اوس بیان شو] داسې طریقه تعلیم ورکړئی چه څنګه تاسو ته الله ﷻ [په شریعت کښې] تعلیم درکړې دې [هغه طریقه داده چه سپی ته دے زده کړه ورکړې شی چه ښکار راونیسی نوخوری ئے نه اوباز ته دے زدکړه ورکړې شی چه څه وخت ئے راوبلې نو سمدستی واپس په هغه وخت کښې هم تاسو له راځی چه ښکار پسے روان وی داد اول شرط بیان دې] ﴿فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ﴾ نوداسې ښکاری ځناور کوم ښکار چه ستاسو دپاره راونیسی هغه خورئ [دا دریم شرط دې چه نخښه ئے د ازدکړې په طریقه کښې بیان شوې ده نوکه سپے دغه ښکار خوړل شروع کړی یاباز په رابللو واپس رانشی نو دا به ګڼلے شی چه هرکله دغه ځناور دده په حکم نه چلیږی نوښکار یئ هم ده دپاره نه بلکه دځپل ځان دپاره یئ نیولے دے] او [کله چه په ښکار باندې دغه ښکاری ځناور ورخوشے کړئ نو] په دغه [ځناور دهغه د ورخوشی کولو په وخت] دالله ﷻ نوم هم اخلئ [یعنی بسم الله پرې وائې او ورخوشی کوئے یئ؛ دا څلورم شرط دې] او [په ټولو خبرو کښې] ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ دالله ﷻ نه په مخه ویریږئی [لکه په ښکار کښې داسې وربوختیږئی مه چه مونځ وغیره ته موخیال نه وی یا دومره لالچ مه کوئی چه دحلالوالی دشرطونو نه بغیر هم دغه ځناور تاسو اوخورئ] ﴿إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾ بیشکه الله ﷻ زر حساب اخستونکې دې.

## معارف اومسائل

داول سرپه ذکرشوی سوال اوجواب کښې، دښکاری سپی اوبازوغیره په ذریعه دښکار حلالیدو دپاره، څلورشرطونه ذکرکړې شویدی،

اول داچه سپې یابازدِ داسې وی چه ازدکړه اوآموخت هپ داسې شان ورکړې شوې وی چه هرکله سپې ښکاراونیسی نوتاسوله راوړی اوپخپله ئې خوړل نه کوی اوهرکله چه باز راوبلئ نو سمدستی تاسولره راځی، اګرچه هغه ښکارپسې روان وی، هرکله چه ښکاری ځناور ته دا آموخت ورکړې شی نوثابته به شی چه هغه ستاسو دپاره ښکارکوی ځان دپاره ئې نه کوی، په دې حالت کښې به ددغه ښکاری ځناوروښکار، هم ستاسوښکارګڼلې شی اوکه څه وخت هغه

ستاسو دازده کړې ورکولو په خلاف څه حرکت اوکړي، مثلاً سپې، خپل کړې ښکار پخپله خوړل شروع کړي، یاباز ستاسو په رابللو، تاسو ته رانشي، نودغه ښکار ستاسو نشو څکه ئې خوړل ناروا دي.

دویم شرط دادې چه تاسو سمدستی په خپلې ارادې سره سپې، یاباز، ښکار پسې خوشې کړئ داسې نه وي چه هغه په خپله خوښه ښکار پسې ورمنډه کړي او هغه ښکار کړي، په تیرآیت کښې ددې شرط بیان په لفظ د [مُكَلِّبِينَ] سره کړې شویدې، ددې مصدر [تکلیب] دې چه اصلی معنی ئې سپی ته ازده کړه ورکول دی، بیا عامو څناورو ته، دازده کړې ورکولو په معنی کښې هم استعمالیږي چه ښکار پسې ورخوشې کړي، صاحب د [جلالین] دلته د [مُكَلِّبِينَ] معنی مرسلین [الیږونکی] کړیده، چه معنې ئې ښکار باندې ورخوشی کول دی(١)، په تفسیر قرطبی رحمه الله کښې دغه ټول نقل کړې شویدي(٢)،

دریم شرط دادې چه ښکاری څناور پخپله، دخپل ښکار خوړل شروع نکړي بلکه تاسو له ئې راوړي، داشرط په [مِمَّآ أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ] سره بیان شویدې،

څلورم شرط دادې چه دښکاری څناور په ښکار باندې دورخوشی کولو په وخت بسم الله وائي، چه داڅلورواړه شرطونه پوره شي نو که دغه څناور ستاسو ورسیدونه وراندې مړ شي نو بیاهم حلال دې، دهغې دذبح کولو ضرورت نشته، ورنه بې دذبح کولونه به تاسو دپاره حلال نه وي،

دامام اعظم ابی حنیفه رحمه الله په نزد پنځم شرط داهم دې چه دغه ښکاری څناور ښکار له زخمی هم کړي(٣)، دې شرط ته په [جَوَارِحِ] کښې اشاره موجوده ده،

**مسئله**: داحکم، دهغه وحشی څناوردې چه دچا په قبضه کښې نه وي، او که وحشی څناور په خپل قابو کښې راوستې شوې وي، نو هغه به دباقاعده ذبح کولونه بغیرنه حلالیږي،

په آخر دآیت کښې داهدایت هم کړې شویدې چه دیو څناور په ذریعه کړې شوې ښکار، خو، الله تعالی حلال کړې دې، خو په دې شان ښکار کښې بوښتیدل چه دمونځ او دشریعت د ضروری احکامو پرواه نه لري، داسې کول ناروا دي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلْيَوْمَ | أُحِلَّ | لَكُمُ | الطَّيِّبٰتُ ط | وَطَعَامُ |
| نن ورځ | حلال کړې شوی دی | دپاره ستاسو | ټول پاك څیزونه | اوخوراك |
| نن ورځ تاسو دپاره ټول پاکیزه څیزونه حلال کړې شوا ......او د | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الَّذِينَ | أُوتُوا الْكِتٰبَ | حِلٌّ | لَّكُمْ ص | وَطَعَامُكُمْ |
| دهغه کسانو | چې ورکړې شوې دې کتاب | حلال دې | ستاسو دپاره | اوخوراك ستاسو |
| اهل کتابو خوراک ستاسو دپاره حلال دې او ستاسو خوراک د هغوئ دپاره جائز دې | | | | |

---

(١) تفسیر الجلالین تحت هذه الآية: ج ٢، ص ١٤٢
(٢) تفسیر القرطبی تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٦٦
(٣) الشامیة، کتاب الصید: ج ٦، ص ٣٤٣

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حِلٌّ | لَّهُمْ | وَالْمُحْصَنٰتُ | مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ | وَالْمُحْصَنٰتُ |
| حلال دي | د دوی دپاره دهغوی | او پاکدامنې ښځې | د مومنانو نه | او پاکدامنې ښځې |
| اوپاکدامنې مسلمانانې ښځې ستاسو دپاره حلالې دی ا .............او پاکدامنې ښځې د | | | | |
| مِنَ الَّذِيْنَ | اُوْتُوا الْكِتٰبَ | مِنْ قَبْلِكُمْ | اِذَآ | |
| دهغه کسانونه | چې ورکړې شوې دې ورته کتاب | مخکښې ستاسو نه | هرکله چې | |
| هغه کسانو نه چې ستاسو نه وړاندې ورته کتاب ورکړې شوې دې ا هله | | | | |
| اٰتَيْتُمُوْهُنَّ | اُجُوْرَهُنَّ | مُحْصِنِيْنَ | | |
| ورکړئ تاسو هغوئ ته | مهرونه دهغوئ | چې نکاح کونکی یئ | | |
| چې تاسوورته مهرونه ورکړئ ا اودنکاح په بند کښې ئې راګیرې کړئ ا ستاسودپاره په نکاح کولوسره حلالې دی ا | | | | |
| غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ | وَلَا مُتَّخِذِيْٓ اَخْدَانٍ ؕ | وَمَنْ يَّكْفُرْ | | |
| نه چې شهوت پوره کونکی یئ په زنانه سره | او نه نیونکی یئ دپټې یارانې | اوچا چې انکار اوکړو | | |
| دانه چې ښکاره زنا ورسره کوئ ا یا ورسره پټې پټې یارانې ساتئ ا .................اوچا چې د | | | | |
| بِالْاِيْمَانِ | فَقَدْ حَبِطَ | عَمَلُهٗ | وَهُوَ | فِي الْاٰخِرَةِ |
| د ایمان ا | نو ضائع شو | عمل د هغه | او هغه به | په آخرت کښې وی |
| ایمان راوړلو نه پس کفر اوکړو ا نو یقینا دهغه عملونه ضائع شو ا اوهغه به په آخرت کښې | | | | |
| مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۟ | | | | |
| د تاوانیانو نه ا | | | | |
| د تاوانیانو نه وی ا | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** نن تاسو ته پاک څیزونه حلال شوي دي او کومو خلقو ته چه (ستاسو نه مخکښې) کتاب ورکړې شوې دې، دهغوی خوراک هم تاسو دپاره حلال دې او ستاسو خوراک هغوی دپاره حلال دې دا رنګ د مؤمنانو نه پاک لمنه ښځې هم او د هغه خلقو نه هم پاک لمنې ښځې تاسو دپاره حلالې دي چه هغوی ته ستاسو نه مخکښې کتاب ورکړې شوې دې چه تاسو هغوی لره په نکاح کښې راوستو نه وروستو مهر ورکړې وي، نه خو (بې د نکاح نه) صرف خواهش پوره کول مقصود وي، او نه پټه آشنائي پيدا کول، او څوک چه د ايمان نه انکار کوي دهغه ټول عمل به تباه شي، اوپه آخرت کښې به هغه د تاوانيانو نه وي،

### خلاصه تفسير

﴿ اَلْيَوْمَ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ؕ ﴾ نن [په تاسو څنګه چه ديني انعام هيشمه دپاره داسې اوشو چه ددين په کاملولو سره تاسو مشرف کړې شوئ دغه شان يولوئې دنيوی نعمت دهميشه دپاره په تاسو هم اوشو چه] تاسو دپاره حلال څيزونه [چه ددې نه مخکښې حلال کړې شوې وو هميشه دپاره] حلال اولرلے شو [چه چرې منسوخ کيږي به نه] ﴿ وَطَعَامُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ ۪ ﴾ او کوم خلق چه [تاسو نه مخکښې] ورته [آسمانی کتاب ورکړې شويدے [يعنی يهود او

نصرانيان] دهغوی ذبيحه [هم] تاسو لره حلاله ده او [ددې حلاليدل هم په دغه شان يقيني دی
ځنګه چه] ﴿ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ وَالْمُحْصَنَٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنَٰتِ ﴾ ستاسو ذبيحه هغوی ته حلاله ده
اوپرهيزګارے ښځې هم چه مسلمانانے وی [تاسو لره حلالے دی] ﴿وَالْمُحْصَنَٰتُ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَٰبَ
مِن قَبْلِكُمْ﴾ او [ځنګه چه دمسلمانانو ښځو حلاليدل يقيني دی دغه شان] پرهيزګارے ښځې
دهغې خلقو نه چه تاسو نه مخکښې ورته [آسمانی] کتاب ورکړې شوې دے [تاسولره حلالے
دی] ﴿ إِذَآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ مُحْصِنِينَ غَيْرَ مُسَٰفِحِينَ وَلَا مُتَّخِذِىٓ أَخْدَانٍ ﴾ کله چه تاسو هغوی ته
دهغوی معاوضه ورکړنی [يعنی مهر ورکول اګر چه شرط نه دی مګر واجب دی اوذکر شوي
ښځې چه حلالے کړې شوې دی نو] په داسې شان چه تاسو [هغوی لره] بيبيانے جوړے کړې
[يعنی نکاح ورسره اوکړئی چه شرطونه يې په شريعت کښې معلوم دی] مه خوپه سرګنده
بدکاری کوی او مه خوپه پټه آشنائی کوئی [داټول شرعي حکمونه دی چه ايمان راوړل پرې
فرض دی] ﴿ وَمَن يَكْفُرْ بِٱلْإِيمَٰنِ ﴾ اوڅوك چه [د] ايمان [د راوړلوڅيزونو] سره کفر کوی [لکه
دبيخی حلالوڅيزونو د حلالوالی اود بيخی حرامو څيزونو حراموالی نه انکار کوی] ﴿ فَقَدْ حَبِطَ
عَمَلُهُۥ ﴾ نو ددغه کس [هرنيك] عمل به لوټ[او برباد] لاړشی ﴿وَهُوَ فِى ٱلْءَاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ﴾او دغه
کس به آخرت کښې بيخی خساره کښې به وی [بس حلال لره حلال او حرام لره حرام اوګڼرئ].

## معارف اومسائل

دسورت مائده په رومبی آيت کښې د[بهيمة الانعام] [د کورنو ساتلو څاروؤ] غوا، ميښې،
ګډې[ميږې]، چيلئ[بزې] وغيره دحلالوالی بيان شويدې اوپه دريم آيت کښې دنهو قسمو
حرامو څاروؤ تفصيل راغلې دې، مګرددغې تفصيل نه ددې په ابتدائی جمله کښې ددې پوره
باب خلاصه ئې داشان بيان کړې ده چه پکښې دخناورودحلالوالی اوحراموالی خاصيت هم
معلومه شوه اوددې يوه پيمانه اواصول هم،

ارشاد دې ﴿ٱلْيَوْمَ أُحِلَّ لَكُمُ ٱلطَّيِّبَٰتُ﴾ [نن تاسودپاره حلال شو ټول صفاستهرا څيزونه] دنن نه مراد
هغه ورځ ده چه پکښې دا آيت اودې نه وړاندې آيتونه نازل شويدی، يعنی دحجة الوداع [١٠هـ]
دعرفې ورځ، مطلب دادې چه ځنګه نن تاسودپاره دين کامل مکمل کړې شواودالله تعالی نعمت
په تاسو مکمل شودغه شان دالله تعالی پاکيزه څيزونه چه وړاندې هم تاسودپاره حلال
وو، هميشه دپاره حلال اولرلې شواودهغې دمنسوخ کيدواحتمال ختم شو، ولې چه د وحی
سلسله ختميدونکې ده،

په دې جمله کښې دطيباتودحلاليدوبيان دې اوپه يوبل آيت کښې ارشاددې:
﴿وَيُحِلُّ لَهُمُ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ ٱلْخَبَٰٓئِثَ﴾ [يعنی حلالوې دوئ دپاره طيبات اوحراموی پرخبائث] دلته
دطيباتوپه مقابله کښې خبائثوراوړلوسره د دواړولفظونوحقيقت واضح کړې شو،
په لغت کښې طيبات، صفاستهره اوزړه پورې څيزونوته وئيلې شی اوددې په مقابله کښې
خبائث، ګنده، دکرکې وړڅيزونوته وئيلې شی، لهذاآيت دې جملې دااوښودل چه ټول صفا،
ستهره مفيد اوپاکيزه څيزونه انسان دپاره حلال اوګرځولې شو، اوګنده، دکرکې وړاو
مضرڅيزونه وردپاره حرام اوګرځولې شو، وجه ئې داده چه انسان دنوروخناوروپشان داسې نه
دې چه دژوند مقصدئې په دنيا کښې ده لره يواځې خوراک، څښاک، اوده کيدل، ويښيدل،

ژوندې پاتې کیدل او مړه کیدل وي، یو خاص مقصد دپاره، ده لره قدرت دکائناتو مخدوم جوړ کړیدې چه دغه اعلی مقصد، بغیر دپاکیزه اخلاقو نه نشي حاصلیدې، په دې وجه بدخویه انسان په حقیقت کښې ددې ورنه دې چه انسان ورته اوئیلې شي،

هم په دې بناء دغسې خلقولره قرآن کریم په ﴿بَلۡ هُمۡ أَضَلُّ﴾ سره یاد کړل چه دوئ دخاروو او خناورونه هم زیات بد دي، او هر کله چه انسانیت په ښو اخلاقو او انره لري نو داخبره ضروري شوه چه هغه څیزونه انسان په مکمل پرهیز کښې اولرلې شي په کومو سره چه دده اخلاق ګنده کیږي او خرابیږي، په دې باندې هر څوک بې تکلیفه پوهیږي، چه انسان په اخلاقو باندې دهغه وړاندې روستو او ګیرچاپیره څیزونه دهغه دناستې پاستې اوچم [کلې] ، ګواند خلق اثر غورځوي، هر کله چه دابهرنی څیزونه دانسان په اخلاقو باندې اثر غورځوي نو هغه څیزونه به پرولې اثر نه غورځوي چه هغې نه ئې دبدن اجزاء او وینه غوښه جوړیږي، په دې وجه ورد پاره دخوراک څکاک په ټولو څیزونو کښې احتیاط لرل لازمي شو، دغلا، ډاکې، رشوت، سود، جوارئ وغیره حرامې آمدنئ نه دکوم بدن اجزاء چه جوړیږي، لازمه خبره ده چه انسانیت نه به ئې لرې کوي او شیطانیت ته به ئې ورنزدې کوي، ځکه خود قرآن کریم ارشاد دې: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلرُّسُلُ كُلُواْ مِنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَٱعۡمَلُواْ صَٰلِحًا﴾ [عملِ صالح] سره دحلال خوراک څکاک حکم ورکړې شویدې ځکه چه دحلال خوراک نه بغیر [عملِ صالح] په تصور کښې نشي راتلې،

خصوصاً غوښه چه دانساني بدن یو جزو جوړیږي، په دې کښې دټولو نه زیات احتیاط کول ضروري دي، هسې نه چه داسې غوښه دده په غذا کښې داخله شي چه اخلاق ئې خراب کړي، دغه شان کومه غوښه چه انساني بدن دپاره [په جسماني ډول] مضره ده، هغه داسې چه پکښې درنځورتیا او هلاکت جراثیم موجود وي، هغې نه دپرهیز کولو ضروري کیدل خو ټول خلق پیژني، څو مره څیزونه چه شریعت [خبائث] ګرځولی دي، هغه یقینا انساني جسم، یا روح، یا داوړولره خرابوونکي اود انسان ځان او اخلاقو لره ئې تباه کوونکي دي، ځکه داحرام اوګرځولې شو، ددې په مقابله کښې چه طیباتو سره د انسان دجسم او روح پالنه او دښکلي اخلاقو ترقي د ه هغه حلال اوګرځولې شو، غرض داچه دقرآن پاک جملې ﴿أُحِلَّ لَكُمُ ٱلطَّيِّبَٰتُ﴾ دحلالو والي او حرامو والي فلسفه هم اوښودله او اصول ئې هم اوښودل،

اوس داخبره چه کوم څیزونه [طیبات] یعنی صفا، ستهره، مفید او زړه پورې دي او کوم څیزونه [خبائث] یعني ګنده، مضر اودکرکې کولو جوګه دي، ددې فیصله دسلیم طبیعتونو په مینه او کرکه اړه لري، هم دغه وجه ده چه کوم څیزونه اسلام حرام ګرځولي دي دهرې زماني سلیم طبیعته انسانانو، هغه ګنده اود کرکې جوګه ګڼلي دي، لکه مردار څاروی، وینه، البته، کله چې جاهلانه رسمونه په طبیعت باندې غالب راغي نو دغه وخت دښه او خراب دفرق کولو خیال د سره ذهن کښې نه راځي، یا دځنې څیزونو [خبیث څیزونو] خبیث کیدل، ورته نه ښکاره کیږي په داسې معاملاتو کښې دانبیاء ﷺ فیصله، ټولو دپاره حجت دې، ولې چه په انسانانو کښې دټولو نه زیات سلیم الطبع انسانان انبیاء ﷺ ځکه دي چه الله تعالی ورته په مخصوص ډول فطرت سلیمه وربخښلې دې او دهغوئ دتربیت ذمه واري ئې پخپله اغستې ده، دوئ نه ګیر چاپیره به یې دفرشتو پهره لګولې وه چه دهغې په برکت، دهغوئ ﷺ په زړونو او خلاقو باندې غلط ماحول وغیره څه اثر نه شو غورځولې، هغوئ ﷺ چه کوم څیزونه [خبائث] اوګرځول هغه په

حقیقت کښې [خبائث دی او کوم ئې چه [طیبات] او ګڼړل هغه په حقیقت کښې [طیبات] دی،

چنانچه دحضرت نوح ﷷ دزمانې نه دخاتم الانبیاء ﷺ ترمبارکې زمانې پورې، هر پیغمبر ﷷ مردار ځناور او خنزیر وغیره په خپل خپل وخت کښې حرام ګرځولی دی او ددې په ډاګه اعلان ئې کړیدې، دې نه معلومه شوه چه دا څیزونه داسې خبائث دی چه دهرې زمانې سلیم طبیعته حضراتو دغې له ګنده او مضر څیزونه ګڼړلی دی،

حضرت شاه ولی الله دهلوی قدس سره، په حجة الله البالغة کښې داسې بیان کړیدې چه کوم ځناورو له چه اسلامی شریعت حرام ګرځولی دی په هغې تولو چه غور او کړې شی او ټول راغونډ کړې شی نو د دوه اصولو لاندې راځی، ① یو دا چه څه ځناور دخپل فطرت او طبیعت په اعتبار سره خبیث وی، ② بله دا چه دهغې دذبح کولو طریقه غلطه وی، چې د هغه نتیجه دا راوځی چه هغه به دذبیحې په ځائ مرداره او ګرځولې شی(١)،

دسورت مائده په دریم آیت کښې نهه څیزونه حرام ښودلی شویدی، په هغې کښې خنزیر په اول قسم کښې داخل دې او پاتې نور[٨] اته په دویم قسم کښې داخل دی، قرآن کریم: ﴿وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبٰٓئِثَ﴾ فرمائیلو سره په اجمالی ډول دټولو خبیثو ځناورو دحراموالی حکم ورکړو او ددې دتفصیل څخه څو څیزونه قرآن کریم په سرګنده بیان کړل لکه: ﴿لَحْمُ الْخِنْزِيْرِ﴾ او ﴿دَمًا مَّسْفُوْحًا﴾ وغیره اود پاتې نورو څیزونو بیان ئې رسول الله ﷺ ته اوسپارلو، رسول الله ﷺ دیو ځناور دخبیث والی یوه نخښه دا هم اوښودله چه یو قوم له دعذاب ورکولو په غرض دکوم ځناور په شکل ګرځولې شوې وی او خپل انسانی شکلونه ئې ورله بدل کړی وی نو دا ددغې ځناورو دطبیعت دخبیثوالی نخښه ده او دا اوښودلې شو چه الله تعالی په دغې قوم باندې خپل غضب په دې صورت کښې نازل کړو چه هغوئ ئې ددغې ځناورو په شکل کښې اوګرځول، مثلاً په قرآن کریم کښې راغلی دی: ﴿وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيْرَ﴾ یعنی څنې قومونه دخنزیرانو او بیزوګانو [شادوګانو] په شکل کښې دعذاب په ډول مسخ کړې شوی دی، ثابته شوه چه دغه قسمه ځناور هغه دی چه طبیعتونه ئې خبیث دی، په باقاعده ذبح کولو سره هم دغه ځناور حلال نشی ګرځیدې، ډیر ځناور داسې هم شته چه دکارونو او علاماتو له مخې دهغې خبیثوالې، عام طبیعتونه پخپله هم محسوس کوی، مثلاً څیروونکی ځناور چه دهغې کار نورو ځناورو له زخمی کول، څیری کول، خوړل ئې او سنګدلی ده چنانچه یوځل رسول الله ﷺ نه دشرمخ [لیوه] په باره کښې چاتپوس او کړو نو وې فرمائیل چه څوک انسان هم دې له خورې شی؟(٢) دا شان نور ډیر داسې ځناور دی چه دهغې خوئې ضرر رسول، څیزونه تښتول دی لکه مار، لړم، چرمخکئ، مچ، تپوس او بازو غیره شو، څکه دیوې ضابطې په ډول رسول الله ﷺ او فرمائیل(٣) چه هر هغه ځناور چه په داړو سره څیری کولو سره خوراک کوی لکه زمرې، لیوه وغیره او په مارغانو کښې هغه مارغان شو چه خپلو پنجو سره ښکار کوی لکه بازشکرې [بانبا] وغیره شو، دا ټول حرام دی، یا داسې ځناور چه په طبیعت کښې ئې خسیسوالې، ذلیلوالې یا په پلیتو کښې ئې ځان لړل دی لکه مړه مردار خواره ځناور یا خر وغیره شو، دا ټول داسې څیزونه دی

١) حجة الله البالغة: ج ٢، ص ٢٨٩

٢) السنن الکبرىٰ للبیهقی رقم الحدیث: ١٩٨٦٩

٣) صحیح مسلم، کتاب الصید والذبائح، باب تحریم أکل کل ذی ناب الخ: ج ٢، ص ١٣٧

چه ددې ښناورو طبعي خاصيتونه دهغې مضر کېدل هرهغه انسان محسوسوي چه د سالم او سليم طبعيت خاوندوي،

خلاصه دا شوه چه کوم ښناور، اسلامي شريعت حرام ګرځولي دي، په هغې کښې يو قسم خو هغه دي چه پکښې ذاتي خبيثوالي بيامونديږ شي، اوبل قسم هغه دي چه په ذات کښې ئې هيڅ خبيثوالي نشته، مګرد ښناورودذبح کولوکومه طريقه چه الله تعالى مقرره کړې ده هغه په دغه طريقه ذبح نکړې شي، خواه دسره ذبح نکړې شي، مثلاً په جټکې ورکولوئې تر ساه اوښکلى [ايستلې] وي، يا دګوذارورکولو په ذريعه ئې ترساه اوښکلى [ايستلې] وي، يا په څه ښاروي ئې دذبح کولو په وخت دغيرالله نوم اغستې وي، يادهيڅانوم ئې پرې وانغستوخودذبح په وخت ئې په قصد دالله تعالى نوم مبارک پرې وانغستو، نو دې ذبح لره شريعت هم څه اعتبارنه ورکوي بلکه دادا سې شولکه چه بغيرد ذبح مړکړې شوې وي.

دلته يوه خبره په خاص ډول دژورې کتنې جوګه ده چه دانسان دخوراک څکاک ټول څيزونه دالله تعالى ورکړې نعمتونه دي مګردښناورونه سوا، دبل هيڅ څيزپه خوراک يا پخولو داپابندي نه ده لګولې شوې چه د [الله اکبر] يا [بسم الله] وئيلونه بغيردهغې خوړلويا پخولو سره هغه حراميږي، زيات نه زيات دا چه دخوراک څکاک په وخت [بسم الله] وئيل مستحب ګرځولى شي، ليکن دښناورودذبح کولو په وخت دالله تعالى نوم اغستل واجب ګرځولى شويدى اوپه قصده سره چه دغه وخت پرې دالله تعالى نوم اغستل پرېښودې شي نودغه ښناورمرداراوحرام بللې شي، په دې کښې حکمت څه دې؟

په ژورې کتنې سره ددې فرق داشان واضحه کيږي چه دساداړتولو څيزونوساه يوشان اوبرابره ده، په دې وجه ديوساداړ څيزلره فناکول، ختمول اوذبح کولونه پس ئې خوړل په ظاهره جائزکيدل نه ووپکار، خوهرکله چه دانسان دپاره روا اوګرځولې شونودالله تعالى پرديرلوئ انعام اواحسان شوپه دې وجه ديوښناوردذبح کولوپه وخت دغه نعمت الهي خپلې مخې ته راوستل اودهغې شکرادا کول ضروري اوګرځولې شوچه دذبح په وخت ددالله تعالى دنوم مبارک يادولوپه صورت کښې وي، البته غله، دانه اونوربې ساه څيزونه هرکله چه پيدا شوي دې دپاره د دې چه انسان هغې لره په خپل استعمال کښې راوستودپاره فنا، مات ګډ يابدل رابدل کړې خکه پرې بسم الله وئيل دمستحب په درجه کښې اولرلې شو، واجب او ضروري اونه ګرځولې شو،

دې نه علاوه يوه وجه ئې داهم کيدې شي چه دجاهليت دزمانې راسې په مشرکانو کښې دا دستور جاري ووچه په يوښناوربه ئې دهغه دذبح کولوپه وخت دخپلوبتانونومونه اغستل، اسلامي شريعت دغه کافرانه رسم په يوبهترين عبادت کښې داسې تبديل کړوچه دغه وخت ئې د الله تعالى نوم اغستل ضروري اوګرځول اوددغې غلط دستورختمولودپاره مناسب صورت هم داؤوچه دغلط اوناکاره نوم په ځائې باندې يوصحيح اودبرکت نه ډک نوم واغستې شي، که داسې نه وې شوې نودغه غلط دستورپرېښودل به ډيرګران پرېوتې وو. تر دې پورې، دآيت د رومبئ جملې تشريح وه، دويمه جمله داده: ﴿وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ﴾ [يعنى داهل کتابودخوراک څيزتاسولره حلال دې اوستاسودخوراک څيزاهل کتابودپاره حلال دې، دلته دجمهوروصحابه کراموﷺ اوتابعينوپه نزد د [خوراک دڅيز] نه مرادذبح کړې شوې

خناوردي، دحضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما ابي الدرداء، ابراهيم، قتاده، سدي ضحاک رحمهم الله او مجاهد رحمه الله نه هم دامنقول دی، [روح المعاني دجصاص نه][1] ولې چه دخوراک په نورو څيزونو کښې، اهلِ کتاب، بت پرست او مشرکان ټول سره برابر دي، لکه روټۍ [ډوډۍ]، اوره، دال، وريژې، ميوه دانه وغيره شو، د کومو د ذبح کولو ضرورت چه نه وي، داچه په هرې جائزې طريقې سره دهغوئ نه دمسلمانانو لاس ته راشي نو خوړل او استعمالول ئې روا دي، که هغوئ ته دمسلمانانو نه لاس ته ورشي نو هغوئ دپاره حلال دي، لهذا ددې جملې دمضمون خلاصه دا شوه چه داهلِ کتاب ذبيحه مسلمانانو لره او د مسلمانانو ذبيحه اهلِ کتابو لره حلاله ده،

اوس دلته يو څو مسئلې دژورې کتنې جوګه دي، [۱] اول داچه دقرآن او سنت په اصطلاح کښې داهلِ کتابونه څوک مراد دي، او دکتاب نه څه مراد دي؟ آيا اهلِ کتاب به يواځې هغه خلق وي چه په خپل کتاب باندې په صحيح شان ايمان لري او عمل پرکوي؟ داخو ښکاره خبره ده چه دا دکتاب نه دلغوی معنی په لحاظ هره ليکلې ورق مرادنشي اغستې، دې نه هغه کتاب مراد دې چه دالله تعالى دا ړخه راغلې وي، په دې وجه په اتفاق دامت سره کتاب نه مراد هغه آسماني کتاب دې چه قرآن کريم ئې تصديق کړې وي، لکه تورات، انجيل، زبور، او دحضرت ابراهيم عليه السلام او حضرت موسى عليه السلام وغيرهما صحيفې شوې. په دې بنا هغه قومونه چه په يو داسې کتاب ايمان لري او هغې لره دالله تعالى وحی منې چې د دقرآن او سنت په يقيني ذريعو سره هغه دالله تعالى کتاب نه وی ثابت شوې، نو هغه قومونه په اهلِ کتابو کښې داخل نه دی، لکه دمکې مشرکان، مجوس، بت پرست هندوان، دبُده مذهب خلق، آريه سکهان وغيره شو،

دې نه معلومه شوه چه په تورات او انجيل باندې ايمان لرونکي يهوديان او نصارى په اصطلاح دقرآن کريم سره په اهلِ کتابو کښې داخل دی. کوم قوم ته چه [صائبين] وئيلې شي، دهغوئ پوره حالات معلومه نه دی، د هغه حضراتو دتحقيق مطابق چه دا خلق په زبور باندې ايمان راوړونکي دی نو دهغوئ په نزد، داخلق اهلِ کتاب دی او د هغه حضراتو دتحقيق په جوړ چه ددوئ تعلق زبور سره نشته او دوئ دستور و عبادت کوي، نو هغوئ ئې په بت پرستو او مجوسو کښې شامل ګڼړی على هذا القياس د نن زماني شيعه ګان، بريليان، قاديانان، پرويزيان او نور ملحدي ن هم په اهلِ کتابو کښې داخل نه دی بلکه د دوئ حکم د مشرکانو مجوسيانو او زنديقانو دې؟ بهرحال په يقيني او اتفاقي ډول يواځې يهود او نصارى [اهلِ کتاب] دی. په دې بنا د قرآن کريم حکم ددې حاصل دا راؤوتو چه ديهودو، نصاراؤ ذبيحه، مسلمانانو لره او دمسلمانانو ذبيحه دوئ لره حلاله ده،

اوس دامعامله صفا کول پکار دی چه يهود، نصارا به اهلِ کتاب په دې شرط بللې او ګڼړلې شي چه په صحيح شان سره په اصلی تورات او انجيل باندې عمل لری يا د دوئ هغه خلق به هم په اهلِ کتابو کښې شامل ګڼړلې شی کوم چه دبدل کړی تورات، انجيل، تابعداری کوی، او حضرت عيسى عليه السلام او مريم لره دالله تعالى شريکان ګرځئ؟ نو دقرآن کريم د ښکاره خبرونه دا واضحه کيږی چه ددوئ اهلِ کتاب ګڼړلو دپاره دا خبره هم کافی ده چه دوئ ديو آسمانی کتاب منونکی وی او دعوی ئې د تابعداری کوی اګرچه ددې په تابعدارئ کښې ډيرې ګمراهئ هم کوی،

---

[1] أحكام القرآن للجصاص، سورة المائدة، فصل التسمية عند الذبح: ج:٥، ص:٢٦٨، وروح المعاني تحت هذه الآية: ج:٦، ص:٦١

قرآن کریم چه کوم خلقوته داهل کتابو لقب ورکړې دې، دهغوئ په باره کښې ئې ځائ په ځائ داهم فرمائیلی دی چه داخلق په آسمانی کتابونو کښې بدلون راولی ﴿يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِ﴾ اودائې هم فرمائیلی دی چه دوئ حضرت عزیر ﷺ اوحضرت عیسی ﷺ لره دالله تعالی ځامن منی، ﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ عُزَيْرٌ ابْنُ اللَّهِ وَقَالَتِ النَّصَارَى الْمَسِيحُ ابْنُ اللَّهِ﴾ ددې حالاتو او کردار باوجود چه قرآن کریم دوئ لره اهل کتاب اوبلل نو معلومه شوه چه ترڅو دوئ، یهودیت او نصرانیت بیخی نه وی پریښې نو په اَهلِ کتابو کښې به داخل وی، اګرچه په ډیرو خرابو عقیدو او خرابو عملونو کښې اخته وی،

امام جصاص رحمه الله په [احکام القرآن] کښې نقل کړیدی چه دحضرت عمر رضی الله عنه دخلافت په زمانه کښې د هغوئ رضی الله عنه نه خپل یو ګورنر دخط په ذریعه داتپوس اوکړو چه دلته ځنې داسې خلق شته چه تورات وائی اود [یوم السبت] [دخالی دورځې] تعظیم دیهودو پشان کوی، لیکن په قیامت ایمان نه لری، نودې خلقو سره ځنګه معامله کول پکاردی؟ حضرت عمر رضی الله عنه لیکلې جواب داسې وراولیږلو چه، دوئ د داهلِ کتابو یوه فرقه ګڼړلې شی(۱)،

**نن په نوم یهودیان اونصرانیان چه په حقیقت کښې دهریان دی، هغه په دې کښې داخل نه دی:** نن صبا په یورپ کښې ګڼړ شمیر یهودیان اوعیسایان په حقیقت کښې دالله تعالی وجود اوخه مذهب نه منی، تورات، انجیل دالله تعالی کتاب نه منی، حضرت موسی ﷺ اوحضرت عیسی ﷺ لره دالله تعالی نبیان نه منی دملک په مردم شمارئ کښې یهودیان یانصرانیان حسابولې شی. داسې خلق په اهلِ کتابو کښې هیچرې نشی حسابولې،

دنصاراؤ په باره کښې چې حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل چه ددوئ ذبیحه حلاله نه ده، د هغې وجه ئې دا اوښودله چه داخلق دنصرانیت په دین کښې سوا دشرابو څکلو نه دبل هیڅ څیز منونکی نه دی.

روی ابن الجوزی بسنده عن علی قال لاتاکلوا من ذبائح نصاری بنی تغلب فانهم لم یتمسکوا من النصرانیة بشیء الا شربهم الخمر ورواه الشافعی بسند صحیح عنه، ابن الجوزی په صحیح سند سره، دحضرت علی رضی الله عنه داقول نقل کړیدې چه د [بنی تغلب] دنصاراؤ ذبیحه څکه مه خورئ چه دوئ دنصرانیت په مذهب کښې سوا دشرابو څکلو نه بل څه نه دی اغستی، امام شافعی رحمه الله هم په صحیح سند سره داروایت نقل کړیدې [تفسیر مظهری ص ۳۴ ج ۳ مائده]

حضرت علی رضی الله عنه د [بنی تغلب] دنصاراؤ په باره کښې دامعلومات لرل چه هغوئ بې دینه خلق دی، تش په نوم دوئ نصرانیان نشی کیدې، اوهم په دې وجه ئې ددوئ دذبیحې نه منع اوفرمائیله، لیکن دجمهور وصحابه کرامو رضی الله عنهم اوتابعینو رحمهم الله تحقیق داووچه داهم دعامو نصرانیانو پشان دی، بیخی ددین نه منکر نه دی څکه ئې ددوئ ذبیحه حلاله اوبلله:

وقال جمهور الامة ان ذبیحة کل نصرانی حلال سواء کان من بنی تغلب اوغیرهم وکذلك الیهود، اودامت جمهور وائی چه دنصرانی ذبیحه حلاله ده، خواه [بنو تغلب] وی یادبلې قبیلې وی دغه شان دهر یهودی ذبیحه هم حلاله ده، [تفسیر قرطبی ص ۷۸ جلد ۶]،

---

(۱) أحکام القرآن للجصاص، سورة المائدة، فصل التسمیة عند الذبائح: ج ۵، ص ۲۸۰

خلاصه دا شوه چه د کومو نصرانیانو په باره کښې هر کله چه دا معلومات اوشي چه هغوئ د الله تعالى د وجود نه منکر دي یا حضرت موسی ؑ او عیسی ؑ لره د الله تعالى پیغمبران نه ګڼړي، هغوئ د اهلِ کتابو په حکم کښې نه دي،

**داهلِ کتابو د طعام نه څه مراد دی:** [طعام] په لغت کښې د خوراک څیزته وائی، چه د عربی ژبې تر مخه هر قسم د خوراک څیزونه پکښې داخل دی، لیکن د دلته د جمهور امت په نزدیوالې د اهلِ کتابو په لاس د ذبح کړوشو ځناورو غوښه مراد ده، ځکه چه د غوښې نه سوا د خوراک په نورو څیزونو کښې په اهلِ کتابو او نورو کفارو کښې څه فرق او بیلتون نشته، د خوراک، څکاک او چ څیزونه لکه غنم، چنړه، وریژې او میوه دانه وغیره د هر کافر د لاسه [په روا طریقه] حلاله او رواده، په دې کښې دهیچا هیڅ اختلاف نشته، او د کومو خوراکونو په تیارولو کښې چه د انسان د عمل، دخل وی، نو په هغې کښې احتیاط ځکه پکار دې چه د کفارو د لوښو او په لاسونو وغیره څه اعتبار نشته چه ګڼی دا به پاک وی او بغیر د سخت ضرورت نه ئې استعمالول پکار نه دی، په دې کښې چې کوم حال د مشرکانو او بت پرستو دې هغه د اهل کتابو هم دې ځکه چې د ناپاکئ احتمال په دواړو کښې برابر دې.

خلاصه دا شوه چه د اهلِ کتابو او کفارو ترمنځه د خوراک په څیزونو کښې شرعی فرق یوازې د هغوئ په ذبیحو کښې کیدې شی، لهذا په مذکوره آیت کښې د [طعام] نه مراد په اتفاق سره د دوئ ذبیحې دی لکه د تفسیر امام قرطبی لیکی:

والطعام اسم لما يوكل والذبائح منه وهو هنا خاص بالذبائح عند كثير من اهل العلم بالتاويل واما ما حرم من طعامهم فليس بداخل فى عموم الخطاب، د [طعام] لفظ د خوراک هر یو څیز د پاره استعمالیږی چه پکښې ذبیحې هم داخلې دی او په دې آیت کښې د طعام لفظ خاص، ذبیحو د پاره استعمال کړې شویدې، [د اکثرو علماؤ د تفسیر په نزد] او د اهل کتابو د طعام څخه چه کوم څیزونه مسلمانانو د پاره حرام دی هغه د دې خطاب په عموم کښې داخل نه دی، [قرطبی ص ۷۷ جلد ۲]

د دې نه پس امام قرطبی رحمه الله زیات تفصیل داسې بیان کړیدې:

﴿لاخلاف بين العلماء ان مالا يحتاج الى ذبح كالطعام الذى لامحاولة فيه كالفاكهة والبر، جائز اكله اذ لايضر فيه تملك احد، والطعام الذى تقع فيه المحاولة على ضربين احدهما مافيه محاولة صنعة لاتعلق لها بالدين كخبزة الدقيق وعصرة الزيت ونحوه فهذا ان تجنب من الذمى فعلى وجه التقذر، والضرب الثانى التذكية التى ذكرنا انها هى التى تحتاج الى الدين والنية فلما كان القياس ان لاتجوز ذبائحهم كما نقول انهم لاصلوة لهم ولاعبادة مقبولة لهم رخص الله تعالى فى ذبائحهم على هذه الامة واخرجها النص عن القياس على ماذكرنا من قول ابن عباس﴾

د علماؤ ترمنځه په دې کښې هیڅ اختلاف نشته، چه په کومو څیزونو کښې د ذبح کولو ضرورت نه وی مثلا هغه طعام چه پکښې د تصرف کولو ضرورت نه وی لکه میوه، غنم وغیره شو نو د هغې خوړل روا دی ولې چه په دې کښې د چا ملک جوړیدل د و مره مضر نه دی، البته هغه خوراک چه پکښې د انسان عمل دخل کیدې شی نو د هغې دوه قسمه وی یو هغه عمل دې چه د دین سره ئې څه تعلق نه وی مثلا اوړونه روټئ [د ودئ] جوړول د زیتون نه تیل ایستل وغیره نو د کافر ذمی د داسې څیزونونه که څوک ځان ساتل غواړی نو هغه به صرف د طبعی کرکې په وجې سره وی او بل قسم هغه دې چه پکښې عمل د ذبح کولو راځی او دې د پاره د دین او نیت ضرورت وی نو اګر چه د قیاس تقاضا داوه چه د کافر د مونځونو او عبادتونو پشان د هغوئ د ذبحې عمل هم

قبلول نـه وو پکـار لیکن الله تعـالی ددې امـت دپـاره پـه خـاص ډول دهغـوئ ذبيحـې حلالـې اوګرځولې اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه نص دامسئله خلاف القياس ثابته کړيده. [قرطبی سورة مائده ص۷۷ جلد ۶]،

خلاصه داده چه دلته په دې آيت کښې په اتفـاق دعلماؤ دتفسير سره داهـلِ کتابو هغه طعام مراد دې چه دهغې حلالوالې په مذهب اوعقيده بناء لری [يعنی دهغوئ ذبيحه] اهلِ کتابو سره دا امتيازی معامله په دې وجه اوکړې شوه چه هغوئ هم دالله تعالی په ليږلو شوؤ کتـابونو بانـدې دايمـان لرلـو دعويدار دی، اګرچـه دهغـوئ تحريفـاتو [بدلونو نوراوستو] لـره دهغوئ دعوی مجروحه اونقصانی کوی تردې پورې چه په شرک اوکفر کښې اخته شو، په خلاف دبت پرستو مشرکينو نه چه هغوئ په يو آسمانی کتاب يانبی يارسول ﷺ باندې دايمان راوړلو دعويدار هم نه دی، په کومو کتابونو ياکسانو چه هغوئ ايمان لری هغه دالله تعالی کتابونه او دهغه رسولان کيدل دالله تعالی په څه کلام سره ثابت نه دی،

**داهلِ کتابو ذبيحې دحلالوالی حکمت او وجه:** ددې زير بحث مسئلې دادريم سوال دې چه جواب ئې د اکثرو صحابه کرامو رضي الله عنهم تابعينو او دتفسير د اماما نو له اړخه دادې چه دټولو کفارو څخه د اهلِ کتابو [يهودو او نصاراؤ] دذبحې اوددوئ زنانوُ سره دنکاح دحلالوالی وجه داده چه ددوئ په دين کښې اګرچه په سوؤنو بدلونونه راغلی دی، بیاهم په دې دؤو مسئلو کښې دهغوئ مذهب هم، د اسلام سره بيخی سمون خوری، مطلب داچه په ذبيحه باندې دالله تعالی نوم اخستل د عقيدې په لحاظ هغوئ هم ضروری ګڼړی، اود دې نه بغير، ځاروی لره مردار، ناپاک اوحرام ګڼړی. دغه شان دنکاح مسئله هم واخله، هغه داسې چه کومو زنانوُ سره په اسلام کښې نکاح کول حرام دی، د هغوئ په مذهب کښې هم ورسره حرام دی، اوڅنګه چه اسلام کښې دنکاح اعلان کول اودګواهانو په وړاندې ئې کول ضروری دی، دغه شان دهغوئ په موجوده مذهب کښې هم دغه احکام دی،

دتفسير امام ابن کثير رحمه الله داکثرو صحابه کرامو رضي الله عنهم اوتابعينو رحمهم الله نه هم داقول نقل کړيدې لکه چه ليکی:

[وطعام اهل الكتاب] قال ابن عباس وابو امامة ومجاهد وسعيد بن جبير وعكرمة وعطاء والحسن ومكحول وابرهيم النخعي والسدى ومقاتل بن حيان يعنى ذبائحهم حلال للمسلمين لانهم يعتقدون تحريم الذبح لغير الله ولا يذكرون على ذبائحهم الا إسم الله وان اعتقدوا فيه تعالى ماهو منزه عنه تعالى وتقدس، ابن عباس، ابو امامه رضي الله عنه، مجاهد رضي الله عنه، سعيد بن جبير رضي الله عنه، عکرمه رضي الله عنه، عطاء رضي الله عنه، حسن رضي الله عنه، مکحول رضي الله عنه، ابراهيم نخعی رضي الله عنه، سدی رضي الله عنه، اومقاتـل بـن حيان، داهـل کتـابو د طعـام، تفسير دهغـوئ په ذبيحو سره کړيدې او دامسئله دمسلمانانو دپاره دلته اجماعی ده چه دهغوئ ذبيحې مسلمانانو لره حلالې دی ولې چه هغوئ دغير الله په نوم ذبح کول حرام ګڼړی اوپه خپلو ذ بيحو باندې دالله تعالی دنوم نه سوا دبل چانوم نه اخلی، اګرچه هغوئ دالله تعالی په باره کښې دداسې خبرو اعتقاد لری چه د الله تعالی دهغې نه پاک او بيخی اوچت دې، [ابن کثير مائده ص۱۹ جلد ۳].

دابن کثير رحمه الله په دې بيان کښې يو خو داخبره معلومه شوه چه د دغه ذکر شوی صحابه کرامو رضي الله عنهم اوتـابعينو رحمهم الله پـه نزد داهـلِ کتابو د طعام نـه مراد دهغوئ ذبيحې دی او ددې پـه حلالوالی کښې دامت اجماع او اتفاق دې، بله خبره ترِ دا معلومـه شوه چه ددې ټولو حضراتو په

نزد داهلِ کتابو د ذبیحو د حلالوالی وجه داده چه دیهودو اونصاراؤ په مذهب کښې سره دډیرو بدلونو نور اوستو، د ذبیحې مسئله داسلامی شریعت په جوړداسې باقي پاتې ده چه هغه څناورلره هغوئ هم حرام بولی چه دغیرالله په نوم ذبح کړی شوې وی اوپه ذبیحه باندې دالله تعالی نوم اغستل ضروری ګڼړی دابله خبره ده چه دالله تعالی په شان کښې هغوئ د[تثلیث ، دریوالی] دمشرکانه عقیدې منونکی شو، اوالله تعالی اومسیح بن مریم ﷺ لره هم یوبولی لکه قرآن کریم د هغې ذکر په دې الفاظو کړې دې چې:

﴿لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ﴾ بیشکه کافران شوهغه خلق چه وې وئیل چه: الله تعالی خوهم څوئ د مریم ﷺ دې.

ددې حاصل داشوچه دذبیحې په باره کښې دقرآن کریم ټول آیتونه که په سورت بقره کښې دی اوکه په سورت انعام کښې دی، چې په هغې ټولو کښې هغه څاروې حرام ګرځولې شوي دي چه دالله تعالی نه بغیردبل چاپه نوم ذبح کړې شوې وی، اوهغه هم چه پردذبح په وخت دالله تعالی نوم نه وی اغستې شوې. دغه ټول آیتونه پخپل ځائې محکم دی اوعمل پرکیږی، دسورت مائده په کوم یوآیت کښې چه داهلِ کتابو دطعام حلالوالي ښودلې شویدې هغه هم ددغې آیتونودحکم نه مختلف څکه نه دې چه داهلِ کتابو دطعام دحلالوالی وجه هم داده چه هغوئ په موجوده مذهب کښې هم دغیرالله په نوم باندې ذبح شوې څناورا وهغه څناورپه کوم چه دذبح په وخت دالله تعالی نوم نه وی اغستې شوې، حرام دې، په موجوده زمانه کښې دتورات اوانجیل په اوسنونسخوکښې هم دذبیحې اونکاح احکام تقریبا هغه دی کوم چې په قرآن کریم اسلام کښې دی اوتفصیل به ئې اوس دې پسې ذکرکولې شی،

البته داکیدې شی چه څنې جاهلان عوام دخپل مذهب ددې حکم خلاف څه عمل کوی، څنګه چه پخپله دمسلمانانوپه جاهلوعوامو کښې ډیرجاهلانه رسمونه شامل شویدی، خوهغې ته داسلام مذهب نشی وئیلې، دنصاراؤ دجاهلوعوامو، طرزعمل ته په کتلوبعضو تابعینو ﷺ حضراتو دا اوفرمائیل چه کله الله تعالی، داهلِ کتابو طعام حلال اوګرځولو اوالله تعالی پوهیږی چه هغوئ د خپلو ذبیحو سره څه معامله کوی څوک پردحضرت مسیح ﷺ یاد حضرت عزیر ﷺ نوم اخلی، څوک ئې بغیر د بسم الله نه ذبح کوی نومعلومه شوه چه دسورت مائده په دې آیت کښې چه طعام داهلِ کتابوحلال ګرځولې شویدې دسورت بقره اوسورت انعام په هغه آیتونو کښې تخصیص راوستې دې یائې هغې لره منسوخ کړیدی، په کومو کښې چه دغیرالله په نوم باندې ذبح کول یابغیردالله تعالی دنوم اغستلونه ئې ذبح کول حرام ګرځولې دی.

دځنولویوعلماؤدکلام نه معلومیږی چه کومو تابعینو حضراتو ﷺ چه د اهل کتابو هغه ذبیحه هم حلاله بللې ده دکومې دذبح په وخت چه پردالله تعالی نه بغیردبل چانوم اغستې شوې وی یاپردسره دالله تعالی نوم نه وی اغستې شوې، دهغوئ په نزدهم داهلِ کتابو اصل مذهب خود اسلامی احکامونه مختلف نه دې مګردهغوئ جاهل عوام دغه غلطئ کوی ددې باوجود دغه حضراتوجاهل اهل کتاب عوام هم دعام اهلِ کتابودحکم نه بیل نه کړل، دذبیحې اودنکاح په معامله کښې ئې دهغوئ حکم هم هغه کیښو، کوم چه دهغوئ دپلارونو نیکونواوداصل مذهب د تابعدارانو دې هغه داچه دهغوئ ذبیحه حلاله اودهغوئ زنانؤسره نکاح کول روادی،

ابن عربی په [احکام القرآن] کښې ليکلی دی چه ما د خپل استاذ ابو الفتح مقدسی نه تپوس اوکړو چه اوسنی نصارای خو د غیر الله په نوم ذبح کوی، مثلاً حضرت مسیح علیه السلام او حضرت عزیر علیه السلام نوم د ذبح په وخت کښې اخلی نو د هغوئ ذبیحه بیا څنګه حلالیدې شی، د دې په جواب کښې ابو الفتح مقدسی داسې اوفرمائیل:

[هم من آبائهم وقد جعلهم الله تعالىٰ تبعا لمن كان قبلهم مع علمه بحالهم] د دوئ حکم د دوئ د پلرونو نیکونو پشان دې [د نن ورځې د اهل کتابو] دا حال الله تعالیٰ ته معلوم وو لیکن دوئ لره الله تعالیٰ د خپلو پلارانو نیکونو تابع جوړ کړی دی، [احکام القرآن ابن عربی ص ۲۲۹ جلد اول]

د دې حاصل دا شو چه د امت پخوانو بزرګانو علماؤ کښې چه چا د اهل کتابو د داسې ذبیحو د حلالو الی اجازت ورکړیدې په کوم چه د ذبح په وخت د الله تعالیٰ نوم نه وی اغستې شوی بلکه د الله نه بغیر د بل چا نوم پرې اغستې شوې وی، هغوئ وائی چه د اهل کتابو اصل مذهب کښې هم د غسې ذبیحې حرامې دی ځکه ئې دا هم د اصل مذهب اهل کتابو په حکم کښې شامل اولرل او د هغوئ ذبیحه ئې هم حلاله اوبلله، او جمهور صحابه کرامو رضي الله عنهم تابعینو رحمهم الله او مجتهدینو امامانو رحمهم الله په دې نظر او لرلو چه د اهل کتابو جاهل عوام چه د غیر الله نوم باندې یا بغیر د الله تعالیٰ د نوم اغستو نه ذبح کوی، دا د اسلام د حکم نه خو خلاف ده، پخپله د نصارا او موجوده مذهب نه هم خلاف ده، هم په دې وجه په احکامو باندې د دوئ د عمل هیڅ اثر نه دی کیدل پکار. هغوئ دا فیصله ورکړه چه د دغه خلقو ذبیحه د اهل کتابو په [طعام] کښې د سره داخله نه ده ځکه د دې د حلالو الی هیڅ وجه نشی کیدې او نه د دوئ د غلط عمل په وجه سره په قرآنی آیتونو کښې د نسخ یا تخصیص قول غوره کول په څه شان سره صحیح کیدې شی.

په دې وجه د تفسیر ټول امامان رحمهم الله ابن جریر رحمه الله ابن کثیر رحمه الله ابو حیان رحمه الله وغیره په دې اتفاق لری چه د سورت بقره او سورت انعام په آیتونو کښې هیڅ نسخ نه ده راغلې، هم دغه د جمهور صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو رحمهم الله مذهب دې لکه چه د ابن کثیر په حواله د دې نه وړاندې رانقل کړې شویدې او په تفسیر [بحر محیط] کښې په دې الفاظو سره ذکر شویدې،

﴿وذهب الى ان الكتابى اذا لم يذكر الله على الذبيحة وذكر غير الله لم توكل وبه قال ابو الدرداء وعبادة بن الصامت وجماعة من الصحابة وبه قال ابو حنيفة وابو يوسف ومحمد وزفر ومالك وكره النخعى والثورى اكل ما ذبح واهل به لغير الله﴾ د دوئ مذهب دا دې چه که چرې کتابی په ذبیحه باندې د الله تعالیٰ نوم وانخلی او د الله تعالیٰ نه سوا څه بل نوم پرواخلی نو د دې خوراک جائز نه دې دا قول د ابی الدرداء رضي الله عنه، عباده بن صامت رضي الله عنه او د صحابه کرامو رضي الله عنهم د یو جماعت دې، او هم دا، د امام ابی حنیفه رحمه الله ابی یوسف رحمه الله، امام محمد رحمه الله، د زفر رحمه الله او امام مالک رحمه الله مذهب دې، امام نخعی رحمه الله او ثوری رحمه الله د دې خوړل مکروهه بولی، [بحر محیط ص ۴۳۱ جلد ۴]

حاصل د کلام دا دې چه صحابه کرام رضي الله عنهم، تابعین رحمهم الله او د امت پخوانی بزرګان په دې خبره کښې هیڅ اختلاف نه لری چه د قرآن کریم د نازلیدو په زمانه کښې د اهل کتابو اصل مذهب هم دا ؤ چه په کوم څناور د ذبح په وخت د غیر الله نوم واغستې شی یا په قصد سره د الله تعالیٰ نوم پرو انخلی نو هغه ذبیحه حرامه ده، د غه شان د نکاح په حلالو الی او حرامو الی کښې هم د اهل کتابو اصل مذهب، موجوده زمانه پورې، په اکثرو څیزونو کښې د اسلامی شریعت په شان دې، د دې خلاف چې څه په اهل کتابو کښې بیاموندې شی هغه د جاهلو عوامو غلطئ ده، د هغوئ

مذهب نه دي،
موجوده تورات او انجيل چه په مختلفو ژبو کښې چاپ کړې شوې پيدا کيږي، ددې خبرې تائيد د هغې نه کيږي، وې ګورئ دبائيبل په عهدنامه قديم کښې د هغوئ اقوال چه دموجوده زمانې يهودا او نصارى دواړه ئې مني. دذبيحې باره کښې احکام داسې دي،

① پخپله چه يو ځناور مړ شي، کوم چه شيرو ونکو ځناورو شيرلې وي، دهغې وازده که په بل څه کښې پکار وئ نو پکارئې کړئ خو په هيڅ حال کښې ئې خورئ مه [احبارې ۲۴]

② غوښه خود خپلو ټولو پهاټکونو دننه دخپل زړه په مينه او دخداوند دخپل ورکړې برکت په جوړ په ذبح کولو سره خوړې شي. ليکن تاسو وينه بيخي مه خورئ [استثناء ۱۲-۱۵].

③ تاسو، دبتانو دقربانو غوښې، وينې او دمرئ خپه کړې ځناورو او حرامکارئ نه پرهيز کوئ [عهدنامه جديد کتاب اعمال ۱۵-۲۹]،

④ دعيسايانو دټولو نه لوئ پيشوا دپولس کرنتهيون په نوم، رومبى خط کښې ليکى چه غير قومونه کومې قربانئ کوى هغه دشيطانانو دپاره کوى، دخدائ دپاره ئې نه کوى او زه نه غواړم چه تاسو شيطانانو سره شريک شئ، تاسو دخداوند دپيالئ او دشيطانانو دپيالئ [دواړو] نه نشئ څکلې [کرنتهيون ۱۰-۲۰-۲۰]

⑤ د حوارييونو په کتاب اعمال کښې دي، مونږه دافيصله کړې وه او ليکلى مووو چه هغوئ دصرف دبتانو دپاره دقربانئ دغوښې، وينې او دمرئ خپه کړې شوى ځناور او رحرام کارئ نه ځانونه ساتلي لرى، [اعمال -۲۱-۲۵]

دادتورات او انجيل هغه ډاګيزې خبرې دي چه نن صبا، دبائيبل سوسائټيانو چاپ کړې دي چه پکښې دسؤنو بدلونونو او ترميمونو نه پس هم بعينه، دقرآن کريم داحکامو په جوړ دا ځيزونه لاتراوسه پورې پاتې دي، دقرآن کريم آيت دادي:

﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوذَةُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ﴾ په تاسو حرامه کړې شوه مرداره او وينه او دخنزير غوښه او په کوم چه دالله تعالى نه سوا دبل چانوم اغستې شوې وى، او مرئ خپه کړې شوې او په ګوذار مړ شوې، په رارغړيدلو چه مړ شوې وى، په ښکرو هلو مړ شوې وى، چه درنده خوړلې وى، مګر داچه تاسو هغې لره پاک کړې او ذبح کړې وى او هغه ځناور چه دبتانو په نوم باندې ذبح کړې شي.

په دې آيت کښې [ميته] يعنى په خپل مرګ مړ شوې ځناور، وينه او دخنزير غوښه، او د غير الله نوم چه پرې اغستې شوې وى، هغه ځناور چه په مرئ خپه کولو، په ګوذار وهلو، دلوړ ځائ نه په راپريوتو، يادښکر په وهلو سره مړ شوې وى، شيرو ونکو ځناورو شيرې کړې وى داټول حرام ګرځولي شويدى. دتورات او انجيل په ذکر شوؤ تصريحاتو کښې هم د، [الحم خنزير] نه علاوه تقريباټول حرام ګرځولي شويدى، صرف په ګوذار سره، يادلوړ ځائ نه په راپريوتو، يا په ښکر سره دلګيدونه دمړ شوى ځناور تفصيل اګرچه ذکر شوې نه دې، مګر تقريبا داټول پخپله د مړ شوى يا په مرئ خپه کولو سره دمړ شوى په حکم کښې داخل دي،

دغه شان قرآن کريم په ذبيحه باندې دالله تعالى دنوم اغستو تاکيد فرمائيلې دې لکه فرمائى:
﴿فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ﴾ او په کوم ځناور چه دالله تعالى نوم نه وى اغستې شوې هغه ئې حرام بللى دى لکه فرمائى: ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ﴾ په بائيبل کښې د کتاب استثناء د تير شوى

عبارت [نمبر ٢] نه هم ددې تاکيد معلوميږي چه څناورد دالله تعالى په نوم اغستو سره ذبح کړې شي، دغه شان دنکاح معاملات هم د اهلِ کتابو دمذهب په اکثروځيزونو کښې داسلامی شريعت مطابق دی،

او کورئ احبار-١٨-٧تا١٩ چه پکښې اوږده لړئ دحراموشو وځيزونو ورکړې شوې ده اوچه پکښې زيات هم هغه ځيزونه دی کوم لره چه قرآن کريم حرام ګرځولی دی تردې پورې چه د[جمع بين الاختين] دوه خويندې ديوسړى په نکاح کښې ديوځائ کولو] حراموالې اودحيض په حالت کښې دکوروالی حراموالې هم پکښې په ډاګه بيان کړې شويدې داشان، بائيبل کښې دا خبره هم په ډاګه کړې شويده چې بت پرستواومشرکانوقومونو سره نکاح کول جائزنه دی، د موجوده تورات الفاظ دادی.

ته دوئ سره واده، ښادی هم مه کوه، مه د دوئ ځامنوته خپلې لوڼړه ورکوه، اومه خپلو ځامنو دپاره د دوئ لوڼړه [واده] کوه، ځکه چه دوئ به زماځامن دې دپاره زمادتابعدارئ نه واړوی چه هغوئ دنورومعبودانو عبادت اوکړی [استثناء٧-٣-٤]

**دکلام خلاصه**: داده چه په قرآن کريم کښې داهلِ کتابوذبيحې اود دوئ زنانوسره نکاح کول حلال ګرځولې شوی دی اودنوروکفاروذبيحې اوزنانه ئې حرامې ګرځولې دی، ددې وجه هم داده چه په دې دواړومسئلوکښې داهلِ کتابواصل مذهب، ترننه پورې هم داسلامی قانون مطابق دې، اوهغه څه چه ددې خلاف ددوئ په عواموکښې پيدا کيږی هغه دجاهلانوغلطئ دی، د دوئ مذهب نه دې، په دې وجه د جمهوروصحابه کرامو رضي الله عنهم تابعينو اودمجتهدينو امامانوپه نزد، دسورت بقره، سورت انعام اومائده په ټولو آيتونوکښې هيڅ ټکر، نسخ يا تخصيص نشته اوکوموعلماؤ [ رحمهم الله اوتابعينو رحمهم الله چه ئې دغلط کار وعمل لره هم داهلِ کتابو داصل حکم تابع اوکړو اود سورت بقره اوسورت انعام په آيتونوکښې ئې دنسخ ياتخصيص قول غوره اوګرځولو دهغې بنيادهم دادې چه که نصاری دالله تعالى نوم هم واخلی نو مطلب به ئې ترنه عيسى عليه السلام بن مريم وی ولې چه د دوئ عقيده قرآن کريم داسې بيان کړيده ﴿إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ﴾ [الله خوهم، عيسى عليه السلام ځوئ دمريم دې، په دې وجه که دوئ د ذبح په وخت دالله تعالى نوم واخلی، يا دحضرت مسيح عليه السلام نوم واخلی نوداواړه برابردی، په دې بنابانديې تابعينو حضراتو رحمهم الله په ذبيحود اهلِ کتابوکښې ددې اجازت ورکړيدې، ابن عربی په [احکام القرآن] کښې ددې بنيادوضاحت کړيدې [احکام القرآن] ابن عربی ص٢٢٩ جلد ١] مګرجمهورامت، دې لره قبول نکړولکه چه دتفسيرابن کثيراوتفسيربحرمحيط په حواله اوس اوس تيرشويدی، اوپه تفسيرمظهری کښې دمختلفوقولونونقل کولونه پس ئې ليکلی دی:

والصيح المختارعندناهوالقول الاول يعنى ذبائح اهل الكتاب تاركاللتسمية عامدااوعلى غيراسم الله تعالى لايوكل ان علم ذلك يقينااوكان غالب حالهم ذلك وهومحمل النهى عن اكل ذبائح نصارى العرب ومحمل قول على لا تاكلوامن ذبائح نصارى بنى تغلب فانهم لم يتمسكوامن النصرانية بشئ الابشربهم الخمر فلعل علياعلم من حالهم انهم لايسمون الله عند الذبح اويذبحون على غيراسم الله هكذا حكم نصارى العجم ان كان عادتهم الذبح على غيراسم الله تعالى غالبالايوكل ذبيحتهم ولاشك ان النصارى فى هذا الزمان لايذبحون بل يقتلون بالوقذ غالبافلايحل طعامهم؛

اوصحيح اوغوره قول زمونږ په نزدهغه رومبې دې يعنی داچه داهلِ کتابو هغه ذبيحې چه پرقصداً دالله تعالى نوم اغستل پريښودل شوې وی يادغير الله په نوم ذبح کړې شوې وی هغه

حلالې نه دی که په یقین سره دهغې علم اوشی چه په دې د الله تعالی نوم نه دې اغستلې شوې یا د غیر الله نوم پرې اغستلې شوې دې یا د اهلِ کتابو عام عادت داشی، کوم وبزرګانو چه د عربو دنصاراؤ ذبیحې منع کړیدی دهغوئ دقول مقصد هم دادې، داشان د حضرت علی رضی الله عنه دا فرمان چه دبنې تغلب د نصاری ذبیحې خوړل ناروادی ولې چه هغوئ دنصرانیت په مذهب کښې سوا د شرابو څکلو نه بل هیڅ نه دی اغستی دهغې دحملولو ځائ هم دغه دې حضرت علی رضی الله عنه ته به داثابته شوی وی چه بنی تغلب په خپلو ذبیحوباندې د الله تعالی نوم نه اخلی یا بیا دغیر الله نوم پرې واخلی، بیا داحکم د عجمی نصاراؤ هم دې چه که دهغوئ عادت دااوګرځی چې په عامه توګه دغیر الله په نوم ذبح کوی نو د هغوئ ذبیحه خوړل جائز نه دی او په دې کښې شک نشته چه او سنی نصاراؤ خو ذبح کول نه کوی بلکه ځناور په ګوذار ورکولو [او چټکې سره] وژنی، په دې وجه دهغوئ ذبیحه حلاله نه ده، [تفسیر مظهری ۳۹۱۳].

داتفصیلی بحث ددې وجې نه دلته نقل کړې شو چه په دې مقام کښې دمصریو مشهور عالم مفتی عبده نه یو سخت لغزش داسې شویدې چه دهغې په غلطوالی، کتاب او سنت او دجمهور امت نه په خلاف کیدو کښې هیڅ شک او شبه نشته، دموصوف نه په تفسیر المنار کښې دلته دوچنده غلطی شویده:

اول داچه داهلِ کتابو په مفهوم کښې ئې ددنیا ټول کفار، مجوس، هندوان، سکهان، ټول داخل کړی دی او دومره ئې عام کړی دی چه په ټول قرآن کښې چرته چه دکفارو اهلِ کتابو او غیر اهلِ کتابو تقسیم او بیلتون کړې شویدې هغه ورسره بیخی بې معنی او بې حقیقته ګرځی،

اوبله غلطی ددې نه غټه تر داا وشوه چه داهلِ کتابو دطعام په مفهوم کښې ئې دهغوئ هر قسم خوراکه، بې دڅه شرط نه حلال ګرځولې ده، خواه هغوئ ځناور ذبح کړی، یائې ذبح نه کړی، په هغې د الله تعالی نوم واخلی یا وانخلی، او په هر حال کښې چه په څه شان سره هغوئ څه ځناور خوری هغه ئې دمسلمانانو دپاره هم حلال اوګرځول،

کله چه د هغوئ دافتوی په مصر کښې خوره شوه هم هغه وخت پخپله د مصر او دټولې دنیا لویو لویو علماؤ رحمهم الله دې ته غلطه اووئیله په دې باندې ډیرې مقالې اورسالې اولیکلې شوې د هر طرفنه دا غوښتنه اوشوه چه مفتی عبده د دمفتی توب دمنصب نه لرې کړې شی، بل خوا دمفتی صاحب شاګردانو اودمغربی خیال دیورپ په معاشرې مئینو خلقو بحثونه او چلول، ولې چه دافتوی دهغوئ د لارې دټولو مشکلاتو حل وو چه دیورپ دیهودو، نصاراؤ بلکه دهریانو هره خوراکه هغوئ دپاره حلاله شوه.

لیکن د اسلام یوه معجزه داهم ده چه دشریعت خلاف کار که هر څومره لوئ عالم نه هم اوشی، د عامو مسلمانانو زړونه دهغې سره کله هم تسلی نشی پیدا کولې، په دې معامله کښې هم دغسې اوشو او د ټولې دنیا مسلمانانو دې ته ګمراهی اووئیله، دغه وخت اګرچه دغه معامله پوره خاموشه اوسړه شوه مګر اوسنو هغه ملحدانو [بیدینو] خلقو دغه بحث بیا په دې شان را برسیره کړو ګویا کښې دوئ خپل تحقیق پیش کوی، دې نه دملحدانو اصل مقصد دانبکاری چه د اسلام یوه نوې نمونه تیاره کړې شی او په هغې کښې دیورپ هر قسم لغویت ځائ کړې شی، او دنوی نسل ځوانانو نفسانی خواهشات پوره کړې شی، حالانکه هغه داټول دمفتی

عبده دهغه ذکرشوې مقالې نقل دې، په دې وجه ددې بحث دپوره تفصيل بيانولو ضرورت رامخې ته شو،

الحمدلله، اوس دضرورت په اندازه ددې بيان اوشو، اوزيات تفصيل ئې که څوک کتل غواړي هغوئ د زما په رساله [اسلامی ذبيحه] کښې اوګوري،

بله مسئله دلته داده چه قرآن کريم مسلمانانوته دا اشاره اوکړه چه [داهل کتابو طعام تاسولره حلال دې]، نوداخو ښکاره خبره ده مګر بيادې مقصد څه دې چه دمسلمانانو طعام هغوئ لره حلال دې، ولې چه کله هغوئ خود قرآنی ارشاداتو پرواداراومنونکی نه دی نو هغوئ دپاره دحلال اوحرامو د حکم بيانولو فائده څه ده؟

په تفسيربحرمحيط کښې ددې بيان داسې شويدې چه په اصل کښې داحکم مسلمانانو ته په دې شان بيانول دی چه په غيرمسلم اهلِ کتابوباندې خپله ذبيحه [مثلاد قربانئ غوښه] خوړل تاسولره حلال دی ولې چه زمونږ [دمسلمانانو] ذبيحه هغوئ لره حرامه وې نو په هغوئ باندې به خپله ذبيحه خوړول مونږلره حرام وو، معلومه شوه چه داحکم هم په اصل کښې مسلمانانوته دې اګرچه په سرسری نظر، دغه حکم اهلِ کتابوته ښکاری([1])،

تفسيرروح المعانی کښې، دسدی رحمه الله په حواله ددې جملې يوه بله منشا، دابيان کړې شويده چه داهلِ کتابو [يهودو، نصاراؤ] په مذهب کښې څنې څاروی يادهغې څه برخې، دسزا په ډول حرامې کړې شوې وې، نوداَيت دې جملې اوښودل چه دغه حرام کړې شوی څاروی يادهغې برخې داهلِ کتابو دلاسه دذبيحې په شکل کښې تاسوته حاصلې شی نوهغه هم تاسو دپاره حلالې دی [اګرچه هغوئ لره حرامې دی] چنانچه په ﴿وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ﴾ کښې دې اړخ ته اشاره شويده، په دې بناددې جملې تعلق مسلمانانوسره شو([2])،

تفسيرمظهری کښې ئې ددې جملې مطلب داهلِ کتابو اودمسلمانانوترمنځه دطعام اونکاح په منځ کښې فرق داسې ښکاره کول دی چه طعام خوڅ دواړوارخونه يوبل دپاره حلال دې مګرنکاح دکتابئې [زنانه] خومسلمان سړی سره حلال کيدې شی اود مسلمانې [زنانه] نکاح دکتابی سړی سره حلال نشی کيدې([3])،

دريمه مسئله داده چه داسلام نه يهوديت يانصرانيت ته اَوړيدلې کس به اهلِ کتاب نه وی بلکه مرتددې دهغه ذبيحه دامت په اجماع سره حرامه ده،

دغه شان که يومسلمان دخپل دين دضروريات اويقينياتونه منکرشی نومرتدشو، اګر چه هغه قرآن کريم اورسول الله ﷺ لره دمنلودعوی کوی، صرف په قرآن لوستلوياپه دې باندې دعمل کولودپه عوې سره هغه اهلِ کتاب نشی ګرځيدې، دهغه ذبيحه حلاله نه ده البته که د بل کفری مذهب نه يهوديت يا نصرانيت ته څوک راواوړی نوهغه به اهلِ کتاب شميرلې شی، ذبيحه به ئې حلاله وی. داَيت دريمه جمله داده:

---

[1]) تفسير البحر المحيط: ج ٣، ص ٣٦٢
[2]) روح المعانی تحت هٰذه الآية: ج ٦، ص ٦٥
[3]) التفسير المظهری تحت هٰذه لاية: ج ٣، ص ٣٠

﴿وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ مُحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ وَلَا مُتَّخِذِيْٓ اَخْدَانٍ﴾ [تاسو لره د مسلمانانو پاک لمنوزنانوسره نکاح حلال دي، دغه شان د اهلِ کتابو پاک لمنو زنانو سره هم نکاح حلال دي] ،

دلته دوه خبره د [المحصنت] لفظ راغلي دي دعربي لغت او محاورې په لحاظ سره ددې دوه معنې کيدې شي ① يوه معنى ئې آزادې [اصيلې] زنانه چه وينځې نه وي ② بله معنى ئې پاک لمنې زنانه دي، اوس دلته دلغت په اعتبارسره دواړه معنې مراد کيدې شي،

هم دغه وجه ده چه دتفسير دعلماؤ ﷺ څخه مجاهد دلته د﴿مُحْصَنٰتُ﴾ تفسير په [حرائر] [اصيلو] سره کړيدې، حاصل ئې دا شو چه داهلِ کتابو آزادې [اصيلې] زنانه په مسلمانانو حلالې دي وينځې ئې حلالې نه دي [مظهری] [1]

ليکن دجمهورو علماؤ ﷺ او تابعينو ﷺ په نزد دلته د [المحصنت] معنى [پاک لمنې زنانه] دي، په دې بنا به دآيت مطلب دا شي چه څنګه پاک لمنو مسلمانانو بيبيانو سره نکاح کول حلال دي دغه شان د ناپاك اهلِ کتابو پاک لمنوزنانوسره هم نکاح کول حلال دي، [احکام القرآن جصاص رحمه الله، مظهری] [2]

ليکن دجمهورو په اتفاق سره، دلته، د [پاک لمنو] دقيدلګولو مطلب دانه دي چه که پاک لمنې زنانه نه وي، بلکه ناپاک لمنې زنانه وي نوهغوئ سره نکاح حرام دي، بلکه مطلب ئې ددې خبرې شوق پيدا کول دي چه پاک لمنوزنانوسره دنکاح کولو کوشش دې کوي خواه هغه مسلمانه زنانه وي او که اهلِ کتابي زنانه وي. ځکه چه دا غوره دي او بدلمنوزنانوسره نکاح کول ديو شريف مسلمان کارنه دي [مظهری وغيره] [3]

لهذا، ددې جملې دمضمون خلاصه دا شوه چه مسلمان لره، مسلمانې ياکتابئې زنانه سره نکاح کول حلال دي، البته په دواړو صورتونو کښې دالحاظ ساتل پکاردی چه پاک لمنې زنانه سره د نکاح کوي، بدلمنې [بدکارې] اوبې اعتباره ښځې سره نکاح کول ددين دنيا دواړو تباهي ده، ددې نه ځان ساتل پکاردي، په دې آيت کښې د [اهلِ کتابو] دقيدنه، په اجماع دامت سره دا ثابته شوه چه کوم غيرمسلم [په اهلِ کتابو] کښې داخل نه دي دهغوئ ښځوسره نکاح حلال نه دي،

په تيرشوي بيان کښې دا واضح کړې شوچه دموجوده زمانې دغيرمسلم فرقو، ډلو او جماتونو څخه يو اخې يهود او نصارى په [اهلِ کتابو] کښې حسابيږي، آتش پرست، بت پرست، هندوان، سکهان، آريه، بده، شيعه، بريلوى، قاديانى پرويزى وغيره هيڅ يو فرقه په دې کښې داخل نه دي ولې چه دا خبره وړاندې صفا کړې شويده چه اهل کتاب به هغه خلق وي چه د داسې کتاب منونکي او په هغې دعمل کولو دعويدار وي چه دقرآن او سنت دنصوصونه دهغې آسماني کتاب کيدل او وحى الٰهى کيدل ثابت شوي وي او هغه په دې زمانه کښې يو اخې تورات او انجيل ځکه کيدې شي چه ددې منونکي څه قومونه دنيا کښې موجود دي [زبور] او دحضرت ابراهيم عليه السلام صحيفې، نه چرته په دنيا کښې موندې شي او نه ئې څه قوم دتابعدارئ کولو دعوى لري، ويد، ګرنتهـ، يا زردشت وغيره چه په دنيا کښې ئې ځنې قومونه مقدس ګڼرې، په څه شرعي

[1] ) التفسير المظهرى: ج ٣، ص ٢١

[2] ) أحكام القرآن للجصاص، سورة المائدة، باب نكاح الاماء: ج ٢، ص ٣١٠، والتفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ٣، ص ٢١

[3] ) التفسير المظهرى، بحواله بالا۔

دلیل سره ددې خبرې هیڅ ثبوت نه لري چه دا ګنې [آسماني کتابونه] یا [وحي الهي دي]. دا امکان او احتمال ددې ثبوت نشي جوړیدې چه د [بدهـ مت کتاب] وید، یا ګرنتهه وغیره د [زبور] او [صحف ابراهیم] بدل شوې صورت کیدې شي، په دې بنا، په اجماع دامت سره ثابته شوه چه مسلمانانو له یوازې دیهود او نصاراؤ زنانو سره نکاح کول حلال دي، دبل هیڅ کافر قوم زنانو سره ئې نکاح ترهغه وخته حلال نه دې چه هغوئ مسلمانانې شوې نه وي، چنانچه د ﴿وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ﴾ هم دغه مطلب دې. او ددې معنى داده چې مشركو زنانو سره تر هغه وخته پورې نكاح مه كوئى تر كومې چې اسلام كښې داخلې نشي. او د اهل كتابو نه علاوه نور ټول قومونه په مشركات كښې داخل دي.

غرض دا چه په قرآن كريم كښې دوه آيتونه په دې مسئله كښې راغلي دي، په ① يو كښې دادي چه مشركو زنانو سره دمسلمان سړي ترهغې نكاح كول حلال نه دي چه مسلمانانې شوې نه وي، او ② دسورتِ مائده ددې آيت نه معلومه شوه چه اهلِ كتابو زنانو سره دمسلمان سړي نكاح كول حلال دي،

ددې وجې نه جمهورو علماؤ رحمهم الله صحابه كرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله د دواړو آيتونو مدلول او مفهوم دا اوټاكلو چه په اصولي ډول غير مسلمه زنانه سره دمسلمان نكاح كول پكار نه دي، ليكن دسورتِ مائده په دې آيت سره اهلِ كتاب زنانه ددې عموم نه اوويستلې شوې، لهذا د يهود او نصارى زنانو نه سوا دبل كافر قوم زنانو سره ترهغې دمسلمان سړي نكاح نشي كيدې چه دغې زنانو اسلام نه وي راوړې،

اوس پاتې دا مسئله شوه چه دځنې صحابه كرامو رضي الله عنهم په نزد دا هم نه رواكيږي چه يو مسلمان سړې يهودي يا نصراني زنانه سره نكاح اوكړي، چنانچه د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما هم دا مذهب دې دليل ئې دادې چه هر كله الله تعالى په قرآنِ كريم كښې دا ﴿وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ﴾ اوفرمائيل نو ددې نه به زيات شرك بل كوم يووى چه عيسى عليه السلام ابن مريم يا بل دخدائ بنده خپل پروردګار او خدائې اوبولي؟ [احكام القرآن جصاص]،

يو ځل ميمون بن مهران، دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه سوال اوكړو چه چونكه مونږه په داسې يو ملک كښې اوسيږو چرته چه اهلِ كتاب زيات اوسيږي، نو آيا، مونږه د دوئ زنانو سره نكاح كولې شو او د دوئ ذبح كړې ښاروې وغيره خوړې شو؟ حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ورته په جواب كښې دغه دوه آيتونه اولوستل، ① يو هغه چه پكښې مشركانو زنانو سره نكاح كول حرام ګرځولې شويدي او ② بل دا آيت دسورتِ مائده چه پكښې اهلِ كتابو زنانو سره دنكاح حلالوالې بيان شويدې[1]. ميمون بن مهران اووئيل چه دا دواړه آيتونه خوزه هم په قرآن كريم كښې لولم او پرې پوهيږم، خو سوال مې دادې چه ددې دواړو دمخې، مالره شرعي حكم څه دې؟ ددې په جواب كښې بيا هم حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دغه دواړه آيتونه اولوستل او دخپل اړخ نه ئې ورته بل هيڅ اونه فرمائيل، چه مطلب ترِ دامت علماؤ رحمهم الله دا واغستو چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په دې

[1]) أحكام القرآن للجصاص تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۲۶

تسلي نه لرله چه يو مسلمان لره كتابي زنانه سره نكاح كول حلال شي(۱)،

جمهورو صحابه كرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله به اګرچه د قرآن كريم له مخې اهلِ كتاب زنانوسره في نفسه نكاح كول حلال بلل ليكن مكروهه به ئې ګڼړل ولې چه په تجربې سره ثابته شويده، چه پخپله دغه مسلمان ته، بال بچ ته ئې، بلكه ټول مسلمان امت ته ددې نه سختې خرابئ، نقصانونه او زيانونه راولاړيږي،

جصاص رحمه الله په [احكام القرآن] كښې د شفيق بن سلمه رضي الله عنه په روايت نقل كړيدي چه هر كله حذيفه بن يمان رضي الله عنه مدائن ته اورسيدو، نو هلته ئې د يوې يهودي زنانه سره نكاح اوكړو، چه حضرت عمر رضي الله عنه پرخبرشو ورته ئې د طلاق وركولو د پاره خط وراوليږلو، حضرت حذيفه رضي الله عنه په جواب كښې اوليكل، آيا، ما د پاره دا حرامه ده؟ حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه ورته په جواب كښې اوليكل چه [زه خو ورته حرام نه وايم ليكن د دغې خلقو په زنانو كښې عموماً پاک لمنې زنانه نه وي، خطره مې ده چه په دغې ذريعه ستاسو كورنئ كښې هم بيحيائي او بدكاري داخله نشي] (۲)،

امام محمد بن حسن رحمه الله په [كتاب الاثار] كښې دا واقعه، په روايت دامام ابي حنيفه رحمه الله داشان نقل كړيده چه په دويم ځل د حضرت عمر رضي الله عنه دخط الفاظ، چې حضرت حذيفه رضي الله عنه ته ئې اوليكلو: ﴿اعزم عليك ان لا تضع كتابي حتى تخلي سبيلها فاني اخاف ان يقتديك المسلمون فيختاروا نساء اهل الذمة لجمالهن وكفى بذلك فتنة للنساء المسلمين﴾،

زه قسم دركوم چه زما دا خط چه خپل لاس نه اږدې نو دهغې نه وړاندې دې له طلاق وركړه ولې چه خطره مې ده چه نور مسلمانان به ستاسو په پل دروانيدو په وجه كتابي ښځولره د هغوئ د ښائيست او ښكلا له كبله د مسلمانانو ښځو نه غوره اوګڼړي چه مسلمانانو ښځو د پاره به د ډيرلوئې مصيبت جوړ شي.

د دې واقعې په نقل كولوسره، حضرت محمد بن حسن رحمه الله اوفرمائيل چه حنفي فقهاؤ رحمهم الله دا غوره ګڼړي چه كتابي زنانوسره نكاح كول حرام او نه بولي ليكن د نورو خرابو راپيدا كيدو له كبله ورته مكروهه اووائي، علامه ابن الهمام رحمه الله په [فتح القدير] كښې نقل كړيدي چه د حذيفه رضي الله عنه نه علاوه طلحه رحمه الله او كعب بن مالک رضي الله عنه ته هم دغسې واقعه راپيښه شوې وه، هغوئ هم د سورت مائده د آيت له مخې كتابي زنانو سره نكاح كړې وه چه حضرت عمر رضي الله عنه پرخبر شو نو سخت خفه شو او د طلاق وركولو حكم ئې وركړو [مظهري] (۳)

د حضرت فاروق اعظم زمانه د [خير القرون] زمانه وه، په دغه وخت كښې دا احتمال نشو كيدې چه څوک يهودي يا نصراني زنانه د چا مسلمان په نكاح كښې راشي نو د اسلام او د مسلمانانو په خلاف به څه سازش اوكړي، په دغه وخت كښې صرف دومره قدرې خطره كيدې شوه چه هسې نه په دوئ كښې څه بدكاري وي او د مسلمانانو كورنئ پرخرابې اوګنده شي، ياد دوئ د ښكلا په وجه مسلمانانې ښځې په ځائ پاتې شي او مسلمانان هم دغه كتابي زنانه په نكاح سره اخلي چه مسلمانانو زنانو ته د ډيرزيان راولاړيدو باعث جوړيدې شي، بيا هم فاروقي

۱) أحكام القرآن للجصاص تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۲۶
۲) أحكام القرآن للجصاص تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۲۷، ۳۲۸
۳) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۳۱، وفتح القدير: ج ۶، ص ۲۴۳، فصل في بيان المحرمات.

ﷺ نظر ډیر لږې پورې تلو، دومره قدرې خرابی ئې هم مخې ته راوستې اودغه حضرات ئې په طلاق ورکولو مجبوره کړل، که اوسنۍ نقشه دهغوئ ﷺ مخې ته وې نو اندازه اوکړئ چه په دې باره کښې به دهغوئ ﷺ څه عمل وو؟ دغه خلق څوک چه ځان ته یهودیانصاری وائی په اوسنۍ زمانه کښې دخپلونومونوسره په رجسټرونو کښې لیکلوسره دیهودی یانصرانی لیکلو فرمایش کوی، په هغوئ کښې ډیرخلق داسې دی چه دخپلې عقیدې له مخې، یهودیت او نصرانیت لره یولعنت ګڼری، نه ئې په تورات، انجیل عقیده شته اونه په حضرت موسی ﷺ اوعیسی ﷺ باندې، هغوئ دعقیدې په لحاظ سره بې مذهبه اودهریان دی، صرف په رسمی یاقومی ډول، ځان ته یهودیان یانصرانیان وائی،

ښکاره خبره ده چه ددې خلقوزنانه، په هیڅ شان، مسلمانانولره حلالې نه دی، بالفرض که هغوئ دخپل مذهب پابندې هم وی نوپه دې مسلمانې کورنۍ د دوئ ورننویستل، ددین دنیا په لحاظ، ددغې کورنۍ تباه کول دی، په دې لارچه په آخری دورکښې دمسلمانانواواسلام په خلاف سازشونه اوشول اولیګادې کیږی ئې، هغې نه عبرتونه، روزانه زمونږمخې ته راځی چه یوې جینۍ، ټول مسلمان قوم اوحکومت تباه کړو، داداسې څیزونه دی چه یوعقلمندانسان د دې خواته هم نه ورځی اګرچه حلال اوحرام دهغه په وړاندې هم نه وی،

غرض داچه دقرآن اوسنت اودصحابه کرامو ﷺ دکړو وړوله مخه، مسلمانانولره سخت ضروری دی چه ددې زمانې کتابی زنانۍسره دنکاح کولونه بیخی ځان اوساتی په آخرد آیت کښې داهدایت هم کړې شویدې چه کتابی زنانۍلره که ځان سره ساتل ضروری وی، نو باقاعده نکاح ورسره کوئ، اودخپلې ښځې حیثیت سره ئې ساتئ، د دوئ دمهروغیره حقوق اداکوئ، هسې ئې ځان سره دیاراتې په ډول ساتل اوپه ښکاره ډول بدکاری کول، داټول څیزونه حرام دی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | اِذَا | قُمْتُمْ |
| | ائې هغه کسانو | چې ایمان موراوړې دې | کله چې | اودریږې تاسو |
| ائې دایمان خاوندانو! کله چې تاسو مونځ ته اودریږئ یعنی د مانځه اراده اوکړئ! | | | | |
| اِلَى الصَّلٰوةِ | فَاغْسِلُوْا | وُجُوْهَكُمْ | وَاَيْدِيَكُمْ | اِلَى الْمَرَافِقِ |
| مانځه ته | نواووینځی | مخونه خپل | اولاسونه خپل | دڅنګلوپورې |
| نو خپل مخونه اووینځئ ......... او خپل لاسونه ترڅنګلو پورې اووینځئ | | | | |
| وَامْسَحُوْا | بِرُءُوْسِكُمْ | وَاَرْجُلَكُمْ | اِلَى الْكَعْبَيْنِ ط | |
| اومسح اوکړئ | په سرونو خپلو | اواووینځی تاسوخپلې پښې | دپړکو پورې | |
| اوپه خپلو سرونوباندې مسح اوکړئ اوترګیټوپورې خپې اووینځئ | | | | |
| وَاِنْ | كُنْتُمْ | جُنُبًا | فَاطَّهَّرُوْا ط | وَاِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى |
| او که چرې | وئ تاسو | په جنابت کښې | نو پاکی حاصله کړئ | اوکه چرې وئ تاسو بیماران |
| اوکه په حالت د جنابت کښې یئ نو خپل ځانونه په ښه شان پاکوئ ........ او که مریضان یئ | | | | |

أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ | أَوْ جَآءَ | أَحَدٌ مِّنكُم | مِّنَ الْغَآئِطِ | أَوْ لَٰمَسْتُمُ

یاوئ په سفر کښې | یاراغي | یو له تاسو نه | دبولو نه | یا جماع اوکړئ تاسو

اویاپه سفر کښې یئ | یا په تاسو کښې یو کس لوني اودس ماتي اغتې بولوا ته لاړ شي | یا ښځو سره جماع

النِّسَآءَ | فَلَمْ تَجِدُوا | مَآءً | فَتَيَمَّمُوا | صَعِيدًا طَيِّبًا | فَامْسَحُوا

دښځوسره | اوانه مومئ | اوبه | نو قصد اوکړئ | دخاورې پاکې | نو مسحه اوکړئ

اوکړئ | اوتاسو اوبه بیانهٔ مومئ | نو دپاکې خاورې نه کار واخلئ | ..................اود هغې نه په

بِوُجُوهِكُمْ | وَأَيْدِيكُم | مِّنْهُ | مَا يُرِيدُ اللَّهُ | لِيَجْعَلَ

په مخونو خپلو | او په لاسونو خپلو | دهغې نه | نهٔ غواړي الله | چې مقرر کړي

خپلو مخونواولاسونوباندې مسح اوکړئ | ..................الله ﷻ نه غواړئ چې تاسو په

عَلَيْكُم | مِّنْ حَرَجٍ | وَلَٰكِن | يُرِيدُ | لِيُطَهِّرَكُمْ | وَلِيُتِمَّ

په تاسو | څه تنګی | لیکن | غواړي | چې پاك کړي تاسو | او چې تمام کړي

مشقت کښې واچوی | هغه خودا غواړي چې تاسوپاك کړي | اوچه خپل نعمتونه په تاسو باندې

نِعْمَتَهُ | عَلَيْكُمْ | لَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُونَ ۝ | وَاذْكُرُوا

نعمت خپل | په تاسو باندې | دپاره ددې چې تاسو | شکر ګزار جوړشئ | او یاد کړئ

پوره کړي | ..................دې دپاره چې تاسو شکر اوباسئ | ..................اود الله تعالى هغه

نِعْمَةَ اللَّهِ | عَلَيْكُمْ | وَمِيثَاقَهُ | الَّذِي | وَاثَقَكُم

نعمت دالله | په تاسو باندې | او وعده د هغه | هغه | چې محکموالې کړې دې الله ستاسوسره

نعمتونه یادکړئ | اکوم چې ئې په تاسو کړې دي | اوستاسو نه یئ چې کومه پخه وعده اخستې ده | هغه مه هیروئ |

بِهِ | إِذْ قُلْتُمْ | سَمِعْنَا | وَأَطَعْنَا | وَاتَّقُوا اللَّهَ | إِنَّ اللَّهَ

په هغې | یعنی کله چې اوونیل تاسو | اوریده مونږ | اوومنله مونږ | اوویریږئ دالله نه | بیشکه الله

څه وخت چې تاسواوونیل چې مونږ واوریدل او مونږ اومنل | اوالله ﷻ نه ویره کوئ | او الله ﷻ

عَلِيمٌ | بِذَاتِ الصُّدُورِ ۝

ښهٔ عالم دې | په رازونو د زړونو |

دزړونو په پټوخبروهم خبر دې |

**آسان ترجمه قرآن:** اې د ایمان خاوندانو ! چه کله تاسو مونځ د پاره پاڅئ نو خپل مخونه، او لاسونه ترڅنګلو پورې ووینځئ او مسح وکړئ دخپلو سرونو، اوخپلې پښې (هم) ګیټو پورې (ووینځئ) اوکه تاسوپه حالت دجنابت کښې یئ نو خپل ټول بدن ( د غسل په ذریعه) ښه پاك کړئ. او که تاسو ناجوړه (بیمار) یئ یا په سفر یئ یا تاسو نه څوك د اودس ماتې نه راشي ، یا تاسو د ښځو سره یوځایوالې کړې وي او تاسو ته اوبه ملاؤ نه شي نو پاکې خاورې سره تیمم وکړئ ، او د خپلو مخونو او لاسونو دې (خاورې سره) مسح وکړئ. الله په تاسو څه تنګوالې نه غواړي لیکن دا غواړي چه تاسو پاك کړي ، او دا چه تاسو باندې

خپل نعمت پوره کړي، دې د پاره چه تاسو شکر گذار جوړ شئ الله چه په تاسو کوم نعمت کړې دې هغه او هغه وعده یاده کړئ چه تاسو نه ئې اخستې ده. کله چه تاسو وئیلي وو چه "مونږ (دالله احکام) آوریدلي دي او د هغه تابعداري مو قبوله کړې ده" دالله نه ویرېږئ یقیناً الله د سینو په رازونو ښه پوهیږي.

**د آیتونو ربط:** مخکښې آیتونو کښې څه هغه احکام ذکر شوي وو چې دهغې تعلق د انسان دنیاوي ژوند اودخوراك څښاك سره دې. دې آیت مبارك کښې د عبادت متعلق څه شرعي احکام ذکر کولې شي.

## خلاصه تفسیر

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ﴾ائې دایمان خاوندانو کله چه تاسو مونځ ته پاسئ [یعنی دمونځ کولو اراده اوکړئ اودغه وخت مو اودس نه وی] ﴿فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ﴾ نو [اودس اوکړئ یعنی]خپل مخونه اووینځئ اوخپل لاسونه څنګلو سره [اووینځئ]﴿ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ﴾ اوپه خپلو سرونوباندې [لوند] لاس اوګرځوئ اوخپلې پښې هم ګیټو سره [وینځئ] ﴿ وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا ﴾ اوکه تاسو دجنابت په حالت کښې يئ نو [دمونځ نه مخکښې ] ټول بدن پاك کړئ ﴿ وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَى ﴾ اوکه تاسو رنځوران يئ [او د اوبو استعمال تاسو دپاره نقصاني وی] ﴿ أَوْ عَلَى سَفَرٍ﴾ یا په حالت دَ سفرکښې يئ [اواوبه نه مومئ لکه چه اوس راروان دی دا دعذر حالت شو] ﴿ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ﴾ یا [که دمرض اوسفر عذر هم نه وی بلکه همداسې غسل یا اودس مومات شی په داسې شان لکه] په تاسو کښې څوك [د تشو یا ډکو متیازو د] استنجانه [د فارغیدو نه پس] راغلې وی [په کومې سره چه اودس ماتیږی] ﴿أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ﴾ یا [تاسو ببیبیانوسره] نزدیکت کړې وی [په کومې سره چه غسل مات شوې وی او] ﴿ فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً ﴾ او [بیا په دې ټولو صورتونوکښې] تاسوته داوبو [دغسل موقع] حاصله نشی [که هغه دضرر په وجه وی اوکه داوبو نه ملاویدو په وجه وی] ﴿فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ مِنْهُ ﴾ نو[په دې حالتونوکښې] تاسو په زمکه باندې تیمم کوئی یعنی په خپلو مخونو اولاسونو ئې ګرځوئی په دغه زمکه [په جنس ئې لاس اووهئ] ﴿مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ﴾ الله ﷻ ته[ددې احکامو په مقررولو سره] دا منظور نه دی چه په تاسو څه تنګی راولی [یعنی داورته منظور دی چه په تاسو څه تنګی پاتې نشی چنانچه په بیان شوو احکامو کښې خاص کر اوبه ټولو شرعی احکامو کښې عام طور دآسانتیا او ښیګړې ښکاره لحاظ کول سرګند دی]﴿ وَلَكِنْ يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ﴾ لیکن الله ﷻ ته دا منظور دی چه تاسو لره پاك او صفا اولری [په دې وجه ئې دطهارت قواعد او طریقې جاری کړی اوپه څه یوه طریقه باندې بس والئ اونه کړې شو چه که هغه نه وی نوطهارت یعنی پاکی به نه وی لکه که یواځې اوبه يئ پاکوونکې مقرر کړې وې نوداوبو د نشتوالی په وجه به پاکی نشوه حاصلیدې، دبدنونو پاکی خوخاص دطهارت [پاکې] په احکامو کښې ده اود زړونو پاکی په ټولو عبادتونوکښې عامه ده نودا پاکی راوستل دواړو لره شامل دې اوکه دا احکام نه وې نو هیڅ پاکی به نه حاصلېدله] ﴿ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ﴾ اودا [ورته منظور دی] چه په تاسو باندې خپل پوره انعام اوکړی [په دې وجه ئې احکام مکمل کړل چه په هر حال کښې بدنی اوقلبی طهارت

پاکی حاصله شی چه نتیجه ئے رضا او نزدیکت دې او دټولو نه لوئې نعمت دې[﴿ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ۝ ﴾ دپاره ددې چه تاسو [ددغې مهربانئ] شکر ادا کړئ [په شکر کښې فرمانبرداری کول هم داخل دی][﴿ وَاذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ ﴾ اوتاسوخلق د الله ﷻ انعام لره چه په تاسو شوې دے یاد کړئ [چه په کښې لوئې انعام دادې چه ستاسو دکامیابئ طریقے ئے ستاسو دپاره جاری کړې][﴿ وَمِيْثَاقَهُ الَّذِيْ وَاثَقَكُمْ بِهٖٓ ﴾ اودهغه هغه لوظ هم [یاد کړئ] چه د هغې ئے تاسو سره غوټه کول کړی دی ﴿ اِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ۡ ﴾ولې چه تاسو [دا په ځان لازم کړی هم وو چه د لوظ اخستلو په وخت تاسو] ونیلی وو چه مونږ [دغه احکام] واوریدل او اومومنل [ځکه چه داسلام راوړلو په وخت هر څوک ددې مضمون لوظ کوی] ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ۝﴾اوداللہ ﷻ [دمخالفت] نه ویریږئ بیشکه الله ﷻ د زړونو دخبروپوره خبر لری [په دې وجه چه څه کار کوئ په هغې کښې اخلاص اواعتقاد لرل هم پکار دی، صرف د منافقانو پشان منل کافی نه دی مطلب دا چه په دې احکامو کښې اول خوهم ستاسو نفع ده،بیا تاسو خپل سر اینبے دې بیا په مخالفت کښې ئې ضرر دے ددې وجوهاتو په وجه فرمانبرداری کول ضروری شو او هغه هم د زړه نه کول پکاردی ورنه دنافرنانئی پشان به وی].

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | | اٰمَنُوْا | | كُوْنُوْا | |
| ائې هغه کسانو | | چې ایمان مو راوړې دې | | اوسیږئ | |
| ائې دایمان خاوندانو ! دالله دپاره ................ | | | | | |
| قَوّٰمِيْنَ | لِلّٰهِ | شُهَدَاۗءَ | بِالْقِسْطِ ۡ | وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ | شَنَاٰنُ |
| محکم ولاړ | دپاره دالله | گواهی کونکی | په انصاف سره | اونهٔ دی کړی باعث تاسو | دشمنی |
| په سمه لاړ قائم اوسئ | او په انصاف سره گواهی ورکوئ | اودیوې ډلې دشمنی دې تاسو | | | |
| قَوْمٍ | عَلٰٓي | اَلَّا تَعْدِلُوْا ۭ | اِعْدِلُوْا ۣ | هُوَ | اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ۡ |
| دیو قوم | په دې خبره | چې اونهٔ کړئ انصاف تاسو | انصاف کوئ | دا انصاف | زیات نزدې دې تقوی ته |
| په ظلم کولو باندې آماده نکړی | همیشه انصاف کوئ | ...........داکار پرهیزگاری ته ډیرنزدې دې | | | |
| وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ | اِنَّ اللّٰهَ | خَبِيْرٌۢ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ۝ | وَعَدَ اللّٰهُ |
| اواوویریږئ دالله نه | بیشکه الله | خبردار دې | په هغو عملونو | چې کوئ ئې تاسو | وعده کړې ده الله |
| اوالله ﷻ نه ویریږئ | بیشکه الله ﷻ ستاسو دټولو اعمالونه خبر دې | ...............الله هغه خلقو سره | | | |
| الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ | لَهُمْ | مَّغْفِرَةٌ | |
| دهغه کسانو سره | چې ایمان راوړی | او عمل اوکړی نیک | دې دهغوئ دپاره | مغفرت | |
| چې ایمان ئې راوړې دې | او نیک عملونه کوی دبخښنې.......................او دلوئې بدلې | | | | |
| وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ۝ | وَالَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | وَكَذَّبُوْا | بِاٰيٰتِنَآ | اُولٰۗىِٕكَ |
| اوبدله لویه | اوهغه کسان | چې کفر ئې اوکړوا | اودروغ ئې اوگنړل | آیتونه زمونږ | دغه کسان |
| وعده کړې ده ....... | اوچا چې انکار کړې دې | اوزمونږ آیتونه ئې دروغ گنړلی دی | دغه کسان | | |

| |
|---|
| أَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ۝ |
| ملګري د دوزخ دي ا |
| جهنميان دي ا |

**آسان ترجمه قرآن:** اې دايمان خاوندانو ! داسې جوړ شئ چه (دالله داحكامو پابندئ ته ) هر وخت تيار يئ، (او) دانصاف ګواهي وركونكي يئ اود يوقوم دښمنۍ دِ تاسو لره په دې خبره آماده نه كړي چه تاسو ناانصافي وكړئ دانصاف نه كار واخلئ هم دا طريقه ډيره نزدې ده پرهيزګارئ ته او الله نه ويرېږئ الله يقيناً ستاسو د ټولو كارونو نه خبر داردې، كومو خلقو چه ايمان راوړې دې او نيك عمل ئې كړې دې الله د هغوى سره وعده كړې ده چه (آخرت كښې) هغوى ته به بخښنه او لوئې ثواب وركړي او كومو خلقو چه كفر كړې دې اوځمونږه نخښې ئې دروغژن كړي دي ، هغوى دوزخ والا دي.

**خلاصه تفسير**

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ﴾ اې دايمان خاوندانو دالله ﷻ [دخوشحالولو] دپاره [داحكامو] پوره پابندي كوونكى [اودګواهئ وركولو موقعه چه راپيښه شي نو] دانصاف ګواهي وركوونكى اوسيږئ ﴿وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰٓى اَلَّا تَعْدِلُوْا﴾ او ديوې خاصې ډلې دښمني دې په تاسو ددې باعث جوړ نشي چه تاسو [دهغوى په معاملاتو كښې] عدل اونكړئ [ضرور په هره معامله كښې] ﴿اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى﴾ عدل كوئى هغه [يعنى عدل كول] تقوى ته زيات نزدې دى [يعنى په دې سره به تقوى دار بللې شى] ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ او [تقوى كول په تاسو فرض دى ځكه حكم شويدے چه] دالله ﷻ [دمخالفت] نه ويريږئ [دا حقيقت دے دتقوى نو عدل چه دا فرض تقوى پرې اړانږه ده هغه به هم فرض وى] ﴿اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ۝﴾ بيشكه الله ﷻ ته ستاسو دټولو عملونو پوره اطلاع ده [پس مخالفينو ته د احكامو سزا وركول څه لرے خبره نه ده] ﴿وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ۝﴾ الله ﷻ داسې خلقو سره چه ايمان ئے راوړو اوښه كارونه يې اوكړل وعده كړيده چه دوى لره بخښنه او زيات ثواب دې ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ۝﴾ اوكومو خلقو چه كفر اوكړو او زمونږ احكام ئے په دروغه اوبلل داسې خلق په دوزخ كښې اوسيدونكى دى.

**معارف او مسائل**

دبيان شوؤ دريؤ آيتو نو څخه د رومبى آيت مضمون تقريبا ،هم په دې الفاظو سره په سورت نسآء كښې تيرشويدې،فرق دومره دې چه هلته ﴿كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ﴾ وو او دلته ﴿كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ﴾ دې ددې دواړو آيتونو په الفاظو كښې دوړاندېوالى،روستوالى يوه باريكه وجه، ابوحيان رحمه الله په تفسير [بحر محيط] كښې ذكر كړيده ،دهغې خلاصه داده،

انسان لره دعدل او انصاف نه منع كولو او په زور ظلم كښې داختـه كولو ،دعـادت لـه لحاظ سره دوه سببونه كيږى ،① يو دخپل خان، يادخپلو دوستانو او عزيزانو طرفدارى، او② بل، چاسره دښمني او عداوت، دسورت نسآء دآيت رخ رومبى مضمون ته دې اودسورت مائده ددې آيت رخ بل مضمون ته دې،

لهذا په سورت نساء کښې دی نه پس ارشاد دي: ﴿وَلَوْ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمْ أَوِ ٱلْوَٰلِدَيْنِ وَٱلْأَقْرَبِينَ﴾ [په عدل او انصاف باندې ټینګ پاتې کیږئ]، که ددغه عدل او انصاف حکم، پخپله ستاسو د ځانونو، یا ستاسو د والدینو او دوستانو عزیزانو خلاف کیږي]، او د سورت مائده دې آیت کښې د ذکر شوې جملې نه پس دا ارشاد دي: ﴿وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَـَٔانُ قَوْمٍ عَلَىٰٓ أَلَّا تَعْدِلُوا۟ ۚ ٱعْدِلُوا۟﴾ [د یو قوم عداوت او دښمنی دې تاسو، دې ته تیار نکړي چه تاسو د انصاف خلاف کول شروع کړئ]،

په دې بنا، د سورت نسآء د آیت حاصل دا شو چه د عدل او انصاف په معامله کښې دخپل ځان، والدینو او عزیزانو هم پروامه کوئ، که د انصاف حکم د دوئ خلاف وی نو هم په دغه خلاف ئې ټینګ پاتې شئ، او د سورت مائده د آیت خلاصه دا شوه چه د عدل او انصاف په معامله کښې دیو دښمن د دښمنئ په وجه تاسو لره ښویدل پکار نه دی چه هغه ته د نقصان ورکولو په غرض، د انصاف نه په خلاف کولو پسې روان شئ.

هم دغه وجه ده چه د سورت نساء په آیت کښې ئې [قسط] وړاندې کړو او وې فرمائیل: ﴿كُونُوا۟ قَوَّٰمِينَ بِٱلْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلَّهِ﴾ او د سورت مائده په آیت کښې ئې [الله] وړاندې کړو او وې فرمائیل ﴿كُونُوا۟ قَوَّٰمِينَ لِلَّهِ شُهَدَآءَ بِٱلْقِسْطِ﴾ اګرچه د انجام او نتیجې په اعتبار سره، دا دواړه عنوانونه، هم یو مقصد لره ادا کوي، ولې چه څوک په انصاف ټینګ وی نو هغه به خاص د الله تعالی دپاره ټینګ وی هغه به ضرور هم انصاف کوی لیکن کله چه ددغه تعلقاتو لحاظ خو هم خالص د الله تعالی دپاره دي، ددې وجې نه ئې هغلته د [قسط] لفظ وړاندې کړو او دې اړخ ته ئې هدایت او کړو چه دغه لحاظ کول د الله تعالی دپاره نشي کیدې، ولې چه د اد عدل او انصاف خلاف کول دی او په سورت مائده کښې، دښمنانو سره د عدل او انصاف حکم ورکول وو نو دلته ئې د [الله] لفظ وړاندې راوړو چه انساني فطرت ئې دهغه ځائې نه اوویستو چرته چه هغه د جذباتو نه مغلوبه کیږي، چه هر کله تاسو د الله تعالی دپاره ټینګ یئ نو دهغې لازمی نتیجه دا ده چه دښمنانو سره هم انصاف کوئ.

خلاصه ئې دا شوه چه د سورت نساء او سورت مائده په دواړو آیتونو کښې، دوو څیزونو اړخ ته هدایات دي [۱] یو دا چه که معامله دوستانو سره وی او که دښمنانو سره نو د عدل او انصاف په حکم قائم پاتې کیږئ، نه د څه تړون په بنا په دې کښې څه کمزوری راتلل پکار دی او نه د څه دښمنئ او عداوت په بنا، په دې دواړو کښې بل هدایت د دې هم شوې دې چه د رشتینی ګواهئ ورکولو او د حقې خبرې د بیانولو نه ځکه ډډه مه کوئ چه فیصله کوونکو ته په حق او صحیح فیصله کولو کښې څه مشکلات را پیښ نشي،

د قرآن کریم په ډیرو آیتونو کښې، په دې مضمون باندې په مختلفو عنواناتو سره زور ورکړې شوې دې او ددې تاکید ئې کړیدې چه خلق دې په رشتینی ګواهی ورکولو کښې کوتاهی او سستی نه کوی او په یو آیت کښې خو، ښه په ډاګه د اسې صفا حکم ورکړې شوې دې: ﴿وَلَا تَكْتُمُوا۟ ٱلشَّهَٰدَةَ ۚ وَمَن يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُۥٓ ءَاثِمٌ قَلْبُهُۥ﴾ [ګواهی مه پټوئ او څوک ئې چه پټوی دهغه زړه به ګناهګار وی] په دې سره رشتینې ګواهی ورکول واجب او پټول ئې سخته ګناه ثابته شوه.

لیکن دې سره قرآن کریم په دې هم نظر لرلې دې چه خلق و لره د رشتیاؤ د ګواهئ نه بندونکې څیز په اصل کښې دا دې چه ګواهان بیا بیا عدالت ته په راتلو مجبوره کولې شی

اودوکیلانوعبث جرحي پرکولي شي، نتیجه ئي دا راوځي چه هر کله څوک ګواه جوړشي نوپه مصیبت کښې ښکیل شي، خپل کار روزګار نه پاتې شي اوپه مفتوجنجالونو کښې راګیر شي،

هم ددې کبله هر کله چه قرآن کریم رشتیا ګواهي کول لازمي او واجب اوګرځول نو دا ارشادئي هم اوفرمائیلو چه ﴿وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ﴾ [چه دیوې معاملې لیکونکی [منشیان] اوګواهان دې تزنولې او پاذابولې نشي]۔

په موجوده عدالتونو کښې اوپه دې کښې چلیدونکو مقدموباندې چه نظرواچولې شي که ددې صحیح تحقیق اوکړې شي نومعلومه به شي چه دموقعي اورشتیني ګواهان ډیر کم پیښیږي، هوښیار، شریف بنده چه داسې څه واقعه ویني نوهغه ځائ نه ځکه تښتي چه هسې نه، په ګواهئ کښې ئي نوم راشي، پولیس، اخوا، دې خوانه د دروغو ګواهان راپیدا کړي. ددې نتیجه هغه کیدې شي چه شپه، ورځ په دې شان، لیدلې کتلې شي چه سلوکښې دپنځو شپږومقدمو فیصله هم په حق او انصاف سره نشي کیدې، عدالتونه هم په دې ځکه مجبوره دي چه هغوئ خوپه ګواهئ باندې فیصلې کوي،

په دې باره کښې بنیادي غلطئ ته چاهم نه دی کتلی، که ګواهانوسره دشرافت سلوک اوکړې شي اوبیابیاپریشان نکړې شي چه ښه اونیکان خلق به دقرآني تعلیماتوپه جوړد رشتیاګواهي ورکولونه نه پشاکیږي، لیکن کیږي داسې چه دڅه معاملې دتحقیق په ړومبئ مرقعه کښې پولیس ګواهانولره دومره پریشانه کړي چه بیابیائي راغواړي اوهغوئ دې ته تیارکړي چه خپل اولادته هم داوصیت پریږدي چه ګورئ، چرته دڅه ګواهان جوړنشئ، بیاچه معامله عدالت ته ورشي، نوهلته بې شمیره تاریخونه بې هیسه ورکولې شي، هرتاریخ ته د حاضریدوسزابیګناه ګواه ته هم ورکولې شي، دا انګریزپر یښولي اوږده دعدالت کاروائي چې مونږ ته یې یادګار پریښې ده، زمونږه ټولې محکمې او عدالتونه ئې ګنده کړیدی، په پخواني ساده طرز اوکړې شي، نونه به مقدمې ډیرې ګنړې وي، نه به دومره اوږدوالی اونه به ګواهانو ته ګواهي ورکول څه مصیبت جوړیږي،

خلاصه داشوه چه که دعدالتي کاروایئ اودګواهانودګواهئ په باره کښې په قرآني تعلیماتوباندې عمل اوکړې شي نوددې برکات به نن هم په خپلوسترګواوکتلې شي ولې چه قرآن کریم خو[۱] یوخوا، داصل واقعې نه خبردارخلقولره رشتیاګواهي ورکول لازم او واجب ګرځولي دی اوبل اړخ ته ئي داسې هدایات ورکړیدی چه ګواهان دې هیڅ بې هیسه نشي پاذابولې، په کم ناکم وخت کښې دهغوئ بیان دې واغستې شي اوفارغ دې کړې شي،

**دامتحاناتونمبرونه، سندونه، سرټیفکیټونه، دانتخاباتو ووټونه، ټول دګواهئ ورکولوپه حکم کښې داخل دی:** په آخرکښې یوې بلې خبرې ته مخه کول ضروري دي هغه داسې چه نن صبا خوګواهي په عرف کښې صرف هغې ته وئیلې شي چه په مقدمواوجګړوکښې دیوحاکم او قاضي په وړاندې ورکولې شي، لیکن د قرآن اوسنت په اصطلاح کښې د[شهادت] [ګواهئ] لفظ ډیر فراخ مطلب لري، مثلاً داهم یو[شهادت] دې چه ډاکټرچاته داسرټیفیکیټ ورکوي چه فلانی دډیوټئ کولو یادنوکرئ کولوجوګه دې یانه دې؟ که داپه دروغه ورکړې شي نود دروغوګواهي اویوه لویه ګناه شوه، دغه شان په امتحاناتوکښې، دطالب علمانوپه پرچونمبرونه لګول هم ګواهي ده، په قصدیاپه بې پروایئ سره که دغه نمبرونوکښې کمې زیاتې راوستې شونوداهم د دروغوګواهي

شوه چه حرام دی او سخته گناه لري،

کوم طالب علمان چه د تعلیم حاصلولو نه اوز گارشي [فارغه شي] هغوئ ته سند یا سرټیفیکیټ ورکولې شي، دغه هم دديِ خبرې گواهي ورکول دی چه فلانې بنده دفلانی کارکولو د پاره قابل او جوگه دي، که هغه په واقع کښې داسې نه وي نو په دغه سرټیفیکیټ یاسند باندې ټول دستخط کوونکی په دروغه دگواهئ ورکولو مجرمان دی،

دغه شان داسمبلو او کونسلونو په انتخاباتو کښې چا امیدوارته ووټ ورکول هم یو قسم شهادت [گواهي] ده، په دې کښې چاته دووټ ورکولو مطلب داگواهي ورکول دی چه زمونږ په نزد دغه امیدوار د استعداد، قابلیت، او امانت په لحاظ سره هم دقومی نمائنده [ممبر] جوړیدو جوگه دې،

اوس په دې باندې ژور نظر واچوئ چه زمونږ دخومره نمائندگانو په باره کښې داسې قسم گواهي رشتیا او صحیح ثابتیدې شي؟ عوامو خودې نه د کامیابئ او ناکامئ یوه لوبه جوړه کړیده، په دې وجه کله خو دهغوئ ووټونه په پیسو واغستې شي، کله دځه دورې دباؤ په زورتر واغستې شي، کله د دوستئ، خیرخواهئ، خپلوئ او دبې سره او ناکاره وعدو په بنیادتر واغستې شي،

نور خو لاځه کوې، دلوست، نیک خاوندان دیندار ه مسلمانان هم چه نااهله خلقوته ووټ ورکوی نو دا نه محسوسوی چه د دروغو گواهئ ورکولو له کبله دلعنت او عذاب مستحق گرځی دنمائندگانو د پاره په انتخاباتو کښې دووټ ورکولو یو مطلب دقرآن کریم له مخې، شفاعت او سفارش هم کیدې شي، چه دقرآن کریم په الفاظو کښې رومبې بیان شویدې لکه فرمائی:

﴿مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا ۚ وَمَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا﴾ یو سفارش کوونکی ته به دهغه چادنیک عمل نه برخه ملاویږی چاد پاره ئې چه نیک او رشتیا سفارش کړې وي او څوک چه ناکاره داسې سفارش کوی چه دهغې په ذریعه نااهل او خراب بنده لره دکامیابولو کوشش کوی نو هغه ته به دهغه دخرابو عملونو برخه ملاویږی]،

ددې نتیجه داده چه دغه امیدوار دخپلې کارکردگئ په پنځه کلیزه دور کښې که غلط او ناروا کارکوی دهغې ټول وبال به ووټ ورکووونکی ته هم رسیږی،

دشریعت اسلامی له مخې دووټ دریم شان دوکالت دې، مطلب دا چه ووټ ورکوونکې چه چالره دخپلې نمائندگئ کولو د پاره وکیل جوړوی، نو دا یواځې خپل ځان د پاره نه بلکه دټول قوم دحقوقو د پاره ئې نمائنده جوړوی، په دې بناکه چانااهل لره ئې په ووټ کامیاب کړونو دټول قوم د حقوقو بربادولو گناه به هم دغه ووټ ورکوونکی په سروی،

خلاصه دا شوه چه زمونږ ووټ درې حیثیتونه لري، ① یو دشهادت [گواهي] ② دویم دشفاعت [سفارش] او ③ دریم په مشترکه حقوقو کښې دوکالت، په درې واړو حیثیتونو کښې څنگه چه نیک، صالح او قابل بنده ته ووټ ورکول دلوئ ثواب حاصلولو باعث جوړیږی دغه شان نااهله یا بید ینه بنده ته ووټ ورکول د دروغو گواهي هم ده، او ناکاره شفاعت [سفارش] او ناجائز وکالت هم دې چه ددې بربادوونکې نتیجې به هم دده په عملنامه کښې لیکلې شي،

په دې وجه دهر مسلمان ووټ ورکوونکی فرض دی چه چاته دووټ ورکولو نه وړاندې ددې خبرې پوره تحقیق او کړی چه دغه کس [چاته چه ووټ ورکوی] ددغې کارجوگه دې او که

نه دي، دیانتدار دي او که نه دي؟ خالص د غفلت او بې پروایئ له کبله دې بې هیسه لوئ لوئ
ګناهونه په ځان نه انباروی (نه کوره وی)

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | اذْكُرُوْا | نِعْمَةَ اللّٰهِ

| ائې هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | یادکړئ | احسان د الله

| ............ائې مومنانو ! د الله ﷻ هغه احسان یادکړئ | څه وخت چې

عَلَيْكُمْ | اِذْ هَمَّ | قَوْمٌ | اَنْ يَّبْسُطُوْٓا | اِلَيْكُمْ | اَيْدِيَهُمْ

په تاسو | چې کله اراده اوکړه | یو قوم | چې را اوږده کړي | تاسو ته | لاسونه خپل

یوې ډلې په تاسو باندې د لاس پورته کولو اراده اوکړه .............

فَكَفَّ | اَيْدِيَهُمْ | عَنْكُمْ ۚ | وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ | وَعَلَى اللّٰهِ

نو منع کړل الله | لاسونه دهغوئ | ستاسو نه | او اوویریږئ د الله نه | او خاص په الله باندې

نو الله دهغوئ لاسونه ستاسو نه بند کړل | او الله ﷻ نه ویره کوئ | او په خاص الله ﷻ باندې دې

فَلْيَتَوَكَّلِ | الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ | وَلَقَدْ | اَخَذَ اللّٰهُ | مِيْثَاقَ | بَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ ۚ

توکل پکار دې | مومنانو لره | او په تحقیق | اخستلې وه الله | پخه وعده | د بنی اسرائیلو نه

مومنان بهروسه اوکړي | ........ او الله ﷻ د بنی اسرائیلو نه پخه وعده اخستې وه

وَبَعَثْنَا | مِنْهُمُ | اثْنَيْ عَشَرَ | نَقِيْبًا ۭ | وَقَالَ اللّٰهُ | اِنِّىْ | مَعَكُمْ ۭ

او اولیږل مونږه | دهغوئ نه | دولس | مشران | او اوویل الله | بیشکه زهٔ | ستاسو سره یم

او مونږ په دوی دولس سرداران مقرر کړې وو | او الله ﷻ ورته ویلې وو | چې زهٔ تاسو سره مل یم

لَىِٕنْ | اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ | وَاٰتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ | وَاٰمَنْتُمْ | بِرُسُلِيْ

که چرې | قائم اوساتو تاسو مونځ | او ورکړو تاسو زکاة | او ایمان راوړو تاسو | په رسولانو زما

که تاسو مونځ کوئ | .............. او زکاة ورکوئ | او زما په پیغمبرانو ایمان راوړئ

وَعَزَّرْتُمُوْهُمْ | وَاَقْرَضْتُمُ | اللّٰهَ | قَرْضًا | حَسَنًا | لَّاُكَفِّرَنَّ

او مدد مو اوکړو دهغوئ | او قرض مو ورکړو | الله له | قرض | ښه | نو خامخا به زهٔ لرې کړم

او دهغوئ مدد کوئ | او الله تعالی ته مو قرض حسنه ورکړو | نو مونږ به ستاسونه

عَنْكُمْ | سَيِّاٰتِكُمْ | وَلَاُدْخِلَنَّكُمْ | جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ

ستاسو نه | ګناهونه ستاسو | او خامخا به زهٔ داخل کړم تاسو | داسې باغونو ته | چې بهیږي به

ستاسو ګناهونه اوړژوؤ | او تاسو به داسې باغونو ته داخل کړو | چې دهغې لاندې به

مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ ۚ | فَمَنْ | كَفَرَ | بَعْدَ ذٰلِكَ | مِنْكُمْ

لاندې د هغې نه | نهرونه | نو هغه څوک | چې انکار ئې اوکړو | روستو ددې نه | ستاسو نه

(څلور قسمه) ولې بهیږي | او چا چې ددې نه پس هم کفر اوکړو

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَدْ | ضَلَّ | سَوَآءَ السَّبِيْلِ ⑫ | |
| نو په تحقيق | او رکه يې کړه | نيغه | لار |

نو يقينا هغه د نيغې لارې نه بې لارې شو |

**آسان ترجمه قرآن:** اې دايمان خاوندانو ! الله چه په تاسو کوم نعمت کړې دې هغه ياد کړئ چه کله يو قوم اراده کړې وه چه په تاسو لاس اوچت کړي، نو الله تاسو ته دهغوی د نقصان رسولو نه دهغوی لاسونه بند کړل او (ددې نعمت شکريه داده چه) چه دالله وېره په زړه کښې ساتلو سره عمل کوئ ، او مؤمنانو ته صرف په الله باندې اعتماد پکار دې،او يقينًا الله د بني اسرائيلو نه وعده اخستې وه اود دوی نه ئې دولس سرداران مقرر کړي وو،او الله وئيلي وو چه ": څه تاسو سره يم که تاسو مونځ قايم کړو او زکوة مو اداء کړو ، او څما په پيغمبرانو مو ايمان راوړو ، او عزت سره مو دهغوی ملګرتيا اوکړه او الله ته مو ښه قرض ورکړو نو يقين وکړئ چه څه به ستاسو ګناهونه معاف کړم او تاسو به هغه باغونو ته داخل کړم چه د هغې د لاندې نهرونه بهيږي بيا که ددې نه وروستو هم په تاسو کښې څوک کفر وکړي نو په حقيقت کښې هغه به د سمې لارې نه واوړي".

### خلاصه تفسير

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ﴾ ائې دايمان خاوندانو دالله ﷻ انعام ياد کړئ چه په تاسو شوې دے ﴿اِذْ هَمَّ قَوْمٌ اَنْ يَّبْسُطُوْٓا اِلَيْكُمْ اَيْدِيَهُمْ﴾ کله چه يو قوم [يعنی دقريشو دکافرو داسلام په شروع کښې څه وخت چه مسلمانان کمزوری وو] په دې فکر کښې وو چه په تاسو [داشان لاسونه در اووږده کړی چه تاسو بيخی ختم کړی] ﴿فَكَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ﴾ نو الله ﷻ دهغوی قابو په تاسو باندې [دغه هومره] چلولو ته پرې نښودو [اوپه آخر کښې تاسو غالب کړئ پس نعمت رایاد کړئ] او [په احکامو باندې عمل کولو کښې] ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ الله ﷻ نه ويريږئ [چه ددغې نعمت دا شکريه ده] او [په آئنده کښې هم] ﴿وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ﴾ ايماندارو لره په الله ﷻ باندې تکيه لرل پکاردی [چا چه دوړاندې نه ستاسو ټول کارونه جوړ کړيدی اوپه آئنده کښې هم آخر پورې اميد لرئ په ﴿اتقوا الله﴾ سره ئې ويره ورکړه اود توکل په حکم کولو سره ئې اميد ورکړو چنانچه هم دغه دواړو عملونو په فرمانبرداریٔ کولو کښې مددګار دی] ﴿وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ اوالله ﷻ [دحضرت موسی ﷺ په واسطه] بنی اسرائيلو نه [هم] لوظ اخستے وو [چه بيان ئې اوس اوس راتلونکې دے] ﴿وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا﴾ او [ددغې لوظونو د تاکيد دپاره] مونږ دهغوی څخه [دهغوی دقبيلو د شمير په جوړ] دولس سرداران اوټاکل [چه دهرے يوې قبيلے خپل خپل سردار دې په خپلو لاندې خلقو دلوظونو په پوره کولو زور اچوی] ﴿وَقَالَ اللّٰهُ اِنِّيْ مَعَكُمْ﴾ او [په لوظ باندې دزيات زور اچولو په غرض هغوی ته] الله ﷻ داسې [هم] اوفرمائيل چه زه تاسو سره يم [ستاسوپه ټولو ښو او بدو به زه خبردار اوسيږم مطلب دا چه لوظ ئېواخستلو بيائې په هغې باندې زور دپاسه زور ورکړو ددغې لوظ دمضمون خلاصه داوه چه] ﴿لَئِنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ وَاٰتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ وَاٰمَنْتُمْ بِرُسُلِيْ﴾ که تاسو دمونځ پابندی کوله او زکات مو ادا کولو او زما په ټولو رسولانو [چه په آئنده کښې به هم نوی نوی راځی] ايمان راوړلو او

[ددښمنانو په مقابله کښې] ﴿ وَعَزَّرْتُمُوهُمْ وَأَقْرَضْتُمُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا ﴾ دهغوی مدد موکولو او [دزکات نه علاوه دخیر ښیگړے په نورو خایونوکښې دمال په لگولو مو] الله ﷻ ته په ښه شان [یعنی په اخلاص سره] قرض ورکولو ﴿ لَأُكَفِّرَنَّ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ﴾ نو زه به ضرور ستاسو گناهونه تاسو نه لرے کړم اوضرور به مو [دجنت] په داسې باغونوکښې داخل کړم چه دهغې [دمحلونو] لاندے به نهرونه جاري وی ﴿ فَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ ﴾ اوچا څوك چه ددې [لوظ قو اخستلو] نه پس هم كفراوكړو نوهغه بیشكه چه دسمے لارې نه لرے اووتلو.

## معارف اومسائل

دسورت مائده په تیرشوی [۷] اووم آیت کښې الله تعالی دمسلمانانونه دلوظ اوقول اغستلو او ددوئ دمنلو اوغاړه ایښودلو داسې ذکرفرمائیلی دې ﴿وَاذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمِيثَاقَهُ الَّذِي وَاثَقَكُم بِهِ إِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ [داپوخ لوظ، د الله تعالی اودرسول الله ﷺ دفرمانبرداریٔ اوپه شرعی احکاموباندې دعمل کولولوظ دې، چه اصطلاحی عنوان ئې د ﴿لااله الاالله محمد رسول الله﴾ [دی او] [اوهر کلمه گو] مسلمان ددې پوخ لوظ پابند دې، دې پسې آیت کښې ددغې پوخ لوظ څنې ډیرضروری دفعات، یعنی خاص خاص شرعی احکام بیان کړې شویدی، په هغې کښې دوست، دښمن ټولو دپاره دعدل اوانصاف دقائمولو اقتدار ترلاسه کولونه پس دښمنانونه دبدل اغستلو دجذبې لرلو په ځائ، دانصاف اورواداریٔ تعلیم ورکړې شویدې، دغه میثاق، [پخه وعده] پخپله هم، دالله تعالی لوئ انعام دې څکه د ﴿اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾ نه شروع کړې شوې وې.

اوس ددې آیت شروع کیدل هم په ﴿اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾ سره دا ښودل دی چه هرکله مسلمانانو ددغې پوخ لوظ [پخې وعدې]، قول پابندی اوکړه نو الله تعالی هغوئ ته په دنیااوآخرت کښې، قوت، پورته والې اولوړې درجې ورکړې اوددښمنانو په هره مقابله کښې ئې د دوئ امداد اوکړو، اود دښمن قابوراوستل ئې په دوئ پرنښودل،

په دې آیت کښې په خصوصی طورسره ددې ذکردې چه دښمنانو بیابیا درسول الله ﷺ اودمسلمانانو دختمولو، وژلو اوتهس اونهس کولو منصوبې جوړې کړې اوتیاریٔ ئې اوکړې، مگرالله تعالی ټول ناکام اوذلیله کړل لکه فرمائی، یوقوم په دې فکر کښې ووچه په تاسولاس دراوږدکړی مگرالله تعالی دهغوئ لاسونه تاسونه بند کړل،

په مجموعی حیثیت سره خوپه تاریخ اسلام کښې داسې واقعات بې شمیره دی چه د کفارو منصوبې، دالله تعالی په فضل سره خاوري ایرې شوې، لیکن څنې خاص خاص لوئ لوئ واقعې، مفسرینو حضراتو ﷭ ددې آیت مصداق گرځولې دی، مثلاً په مسند عبدالرزاق کښې دحضرت جابرنه روایت دې چه:

اپه یوجهاد کښې رسول الله ﷺ سره دصحابه کرامو ﷺ په یوپړاؤباندې پاتې شو، صحابه کرام ﷺ بیل بیل، خوارہ وارہ شو اوپه ځان له ځان له خایونو کښې آرام کولو، رسول الله ﷺ یواځې له یوې اونې [درختې] لاندې تیکاؤشو اوخپله وسله ئې په دغه اونه [درخته] کښې زوړنده کړه، یو کلی وال[صحرائی] دښمن دغه موقعه غنیمت اوگڼرله سمدستی

ئې چه او چلوله او راتلو سره ئې دهغوئ ﷺ په توره قبضه اوکړه، دغه توره ئې راوښکله او ورته ئې اووئيل [من يمنعك مني؟] اخوک به دې زمانه بچ کوی؟]
رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه [الله تعالى] هغه کلی وال دښمن بيادغسې اووئيل [من يمنعك منى ؟] هغوئ ﷺ بيا، بې فکرئ سره اوفرمائيل چه [الله تعالى] دوه، درې ځله دغسې خبرواترونه پس، دغيبى قدرت رعب هغه لره مجبوره کړو، هغه توره ئې کاتي[تيغ] کښې وراومنډله اوهلته ئې کېښوه، دغه وخت هغوئ ﷺ صحابه کرام ﷺ راوبلل اودغه واقعه ئې ورته واوروله هغه صحرائى تر څه وخته د نبى کريم ﷺ په خوا کښې ناست وو او رسول کريم ﷺ ورته هيڅ اونه فرمائيل، [ابن کثير] (١)،
دغه شان دځنې صحابه کراموﷺ نه ددې آيت په تفسير کښې منقول دى چه کعب بن اشرف يهودى يوځل رسول الله ﷺ لره خپل کورته راوبللو اودهغوئ ﷺ دشهيدکولو سازش ئې کړې وو، الله تعالى هغوئ ﷺ لره په دغې سازش خبر کړواوپه دې سره دغه سازش ناکامه شو [ابن کثير]
اوحضرت مجاهد ﷺ، عکرمه ﷺ وغيره نه منقول دئ چه يوځل رسوالله ﷺ ديوې معاملې دپاره ديهودوبن نضيرخواته تشريف يوړو هغوئ رسول الله ﷺ لره په خبروکښې مشغول کړواوبل اړخ ته ئې عمروبن جحش ته داکارحواله کړوچه دديوال په شا، ديوال ته راوخيژى اويوغټ کاڼئى په هغوئ ﷺ باندې دپورته نه راګوذارکړى، الله تعالى خپل رسول ﷺ په دې خبر کړو، هغوئ ﷺ سمدستى ددغه ځائ نه راپورته شو، [ابن کثير] (٢)
داټول واقعات، خپل منځ کښې څه ټکراونه لرى، ټول ددې آيت شريف مصداق جوړيدې شى، په ذکر شوى آيت کښې درسول الله ﷺ اودمسلمانانو دغيبى حفاظت دذکر کولونه پس اوفرمائيلې شو ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۚ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝﴾
په دې کښې يوارشادخودادې چه داخداوندى انعام يواځې رسول الله ﷺ سره خصوصيت نه لرى، بلکه ددې امداداوغيبى حفاظت اصلى سبب، تقوى اوتوکل دې، کوم قوم ياکس چه په کومه زمانه او په کوم مکان کښې دا، دوه صفتونه اختيارکړى، دالله تعالى داړخه به دهغوئ هم دغسې ساتنه او مرسته کيږى، چاڅه ښه، وئيلى دى:

فضائے بدر پیدا کر، فرشتے تیری نصرت کو
اتر سکتے ہیں گردوں سے قطار اندر قطار اب بھی

ادبدرپشان ماحول پيدا کړه نوفرښتې ستاادامداددپاره، اوس هم دآسمان نه ډلې ډلې راکوزيدې شى]،
اوداهم کيدې شى چه داجمله دړومبى آيتونومجموعې سره اولګولې شى په کومو کښې چه زيات ناکاره دښمنانوسره هم دښه سلوک کولواودعدل اوانصاف حکم ورکړې شويدى، نوبيابه په دې جمله کښې دې طرف ته اشاره وى چه داسې سختودښمنانوسره دښه سلوک اودرواداري تعليم ورکول، په ظاهره، يوه سياسى غلطى اودښمنان زروراوباهمته کول دى، په دې وجه په

---

١) صحيح البخارى، کتاب الجهاد، باب من علق سيفه الخ: ج:١، ص:٤٠٧، ٤٠٨، وتفسير ابن کثير: ج٢، ص٣
٢) تفسير ابن کثير تحت هٰذه الآية: ج:٢، ص٣

دي جمله کښې مسلمانان په دې خبردار کړې شو چه که ستاتقوی داری او په الله تعالی باندې تکیه کول خپل عادت جوړ کړل نو دا به تاسو لره هیڅ کله مضر ثابت نشي، او دښمنان به د مخالفت دجرات موندلو په ځاني ددې په سبب ستاسو د اثرلاندې راشي او اسلام ته به نزدې شي، هم داشان تقوی او د الله تعالی ویره داسې یوڅیزدې چه انسان لره دلوظ اوقول په پابندئ باندې، په ظاهره او په باطنه مجبورولې شي، چرته چه دا تقوی، یعنې دالله تعالی ویره نه وی هلته دلوظ اوقول به هغه انجام وی چه نن صبا په عامو خلقو کښې لیدې شي، په دې وجه په تیرشوی کوم آیت کښې چه دمیثاق [الوظ] ذکر دې هلته دآیت په آخر کښې ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ فرمائیلې شویدی او دلته بیادوباره اوفرمائیلې شو، داشان په دې پوره آیت کښې دې اړخ ته هم اشاره کړې شویده چه دمسلمانانو فتح او امداد صرف دظاهری سامان دوجې نه نه وی بلکه ددې اصل طاقت رازپه تقوی، اوتوکل کښې پټ دې،

په دې آیت کښې، مسلمانانو نه دلوظ اوقول اغستو، او ددې په پوره کولو باندې د دنیا اوآخرت دبیش قیمته نتیجو ذکر کولو نه پس، دمعاملې د دویم اړخ مخې ته راوړلو دپاره په دویم آیت کښې دا ښودلې شویدی چه داعهد ومیثاق اغستل یواځې مسلمانانو سره مخصوص نه دی بلکه ددې نه وړاندې دنورو امتونو نه هم داقسم پاخه لوظونه اغستې شوی وو، خوهغوئ په دې پوره اونه ختل، لهذا په هغوئ باندې قسما قسم عذابونه راوستې شو، الله فرمائی چه دبنی اسرآئیلو نه هم یو عهد [الوظ] اغستې شوې وو، اودهغوئ نه دلوظ اغستو دا صورت اختیار کړې شوې وو چه دبنی اسرآئیلو دټول قوم نه کوم کښې چه دولس خاندانونه وو، دهر خاندان په سریو یو سردار، ددې ذمه دار داسې اوګرځولې شو چه دې اودده ټول خاندان به ددغې میثاق الهی پابندی کوی او په داسې شان دغه دولسو سردارانو دپوره قوم بنی اسرآئیلو ذمه واری واغسته، د دوئ ذمه داوه چه پخپله به هم ددغې میثاق [الوظ] پابندی کوی او په خپل خاندان به ئې هم پابندی کوی، دلته داخبره هم دیادلرلو جوګه ده چه دعزت او فضیلت په معامله کښې داسلام اصل اصول خودادی چه:

بنده عِشق شدی، ترکِ نسب کُن جامی ... که درین راه فلان بن فلان چیزے نیست

[اې جامی: چه عاشق شوې نو نسب پسې مه ګرځه، ځکه چه په دې لاره کښې فلانې خوئ دفلانی هیڅ حیثیت نه لری]،

رسو الله ﷺ دحجة الوداع په تاریخی خطبه کښې په پوره وضاحت سره ددې اعلان کړیدې چه په اسلام کښې دعربو، دعجمو، دتورپوستو اوسپین پوستو داونچ، نیچ ذات هیڅ اعتبار نشته، ځوک چه په اسلام کښې داخل شو هغه دټولو مسلمانانو رور شو، دحسب، نسب، درنګ، وطن اود ژبو بیلتونو نه چه دجاهلیت بتان وو. داټول اسلام مات کړل، لیکن ددې معنی دانه ده چه په انتظامی معاملاتو کښې دنظم قائم لرلو دپاره هم دخاندانی خصوصیاتو لحاظ د نشي کولې

دا فطری خبره ده چه دیو خاندان خلق دنورو خلقو نه زیات دخپل خاندان په پیژند ګلو باندې اعتبار کولې شي، اودغه کس هم ځکه دخپلو خلقو دجذباتو او خیالاتو لحاظ ساتلې شي چه دهغوئ دنفسیاتو نه واقف وی، دبنی اسرآئیلو دولسو خاندانونو ذمه داران چه دولس سرداران اوګرځولې شو نو ددې بناهم په دغې حکمت عملی وه،

ددي انتظامي ښيګړې او دپوره تسلئ اوزړه ساتنې لحاظ هغه وخت هم اوکړې شو کله چه بني اسرائيل داوبو دنيشت والي په وجه سخت پريشانه وو، حضرت موسى عليه السلام دعا اوکړه دالله تعالى په حکم هغوئ عليه السلام خپله همساپه يو کاڼړې اووهله، الله تعالى دغه کاڼړى نه دولس چيني، دولسو خاندانونو دپاره بيلې بيلې جاري کړې،

په سورت اعراف کښې قرآن کريم ددې لوئ احسان ذکرداسې فرمائيلې دى:

﴿وَقَطَّعْنٰهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ اَسْبَاطًا اُمَمًا﴾ مونږ اوويشل دهغوئ دولس خاندانونه په دولسو ډلو کښې،

﴿فَانْۢبَجَسَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا﴾ بيا راؤخته‌کيدې دکاڼړى نه دولس چينې،

د [۱۲] دولسو شمير هم څه عجيبه خصوصيت او مقبوليت لرى،

کله چه دمدينې منورې انصار رسول الله ﷺ ته دې بلنې ورکولو دپاره راغلل چه هغوئ ﷺ دې مدينې منورې ته تشريف راوړى، هغوئ ﷺ چه دې باره کښې تردبيعت په ذريعه لوظ اغستلو نو دغه وخت هم دانصارو دولسو سردارانو درسول الله ﷺ په لاس مبارک باندې ددې بيعت اوکړو، درې سرداران پکښې د[اَوس] قبيلې او نهه سرداران پکښې د[خزرج] قبيلې وو، [تفسير ابن كثير](1)

دصحيحينو رحمهما الله په حواله دحضرت جابربن سمره رضي الله عنه په روايت رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د خلقو کار او انتظام به ترهغه وخته پورې چليږى ترڅو چه دولس خليفه ګان به د دوئ مشرى کوى(2)، امام ابن كثير رحمه الله ددې روايت په نقل کولو سره اوفرمائيل چه ددې حديث د هيڅ لفظ نه دانه ثابتيږى چه دا دولس امامان به پرله پسې يوبل پسې وى بلکه د دوئ ترمينځه فاصله هم کيدې شي چنانچه څلور خليفګان حضرت ابوبكر رضي الله عنه، حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت عثمان رضي الله عنه، حضرت علي رضي الله عنه يوبل پسې خليفه فګان شوى وو او ورپسې څه موده پس بيا، حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله دامت په اجماع سره پنځم خليفه برحق او منلې شو(3)،

خلاصه دکلام داشوه چه دبنى اسرائيلو نه دلوظ، قول اغستو دپاره، الله تعالى دهغوئ د دولسو خاندانونو دولس سرداران ذمه داران اوګرځول، او هغوئ ته ئې اوفرمائيل: ﴿اِنِّيْ مَعَكُمْ﴾ [زه تاسو سره يم] مطلب دادې که تاسو دلوظ، قول پابندى اوکړه، او په نورو باندې دې د دپابندئ کولو قصد موا وکړو نو زما لاس امداد به تاسو سره وى، په دغه آيت کښې ورپسې، ددغه، لوظ، قول څو ديرې ضرورى دفعې، دبنى اسرائيلو دلوظ ماتولو او په هغوئ باندې دعذاب الهى راتلو ذکردې،

دميثاق دد فعود ذکر کولو نه وړاندې ئې يوه جمله داارشاد اوفرمائيله ﴿اِنِّيْ مَعَكُمْ﴾ دې کښې دوه خبرې ښودلې شويدى، يوداچه که تاسو په ميثاق باندې ولاړ [ټينګ] پاتې شوئ نو زما امداد به تاسو سره وى او تاسو به په هرقدم باندې دهغې نظاره کوئ، بله داچه الله تعالى په هروخت او هرځائ کښې تاسو سره دې او ددغې ميثاق سازنه کوى، ستاسو هيڅ قصد، اراده فکر، خيال، يا حرکت او عمل دهغه دعلم نه بهرنه دى، هغه ستاسو دخلوتونو رازونه هم وينى آورى، هغه ستاسو دزړونو دنيتونو او ارادونه هم واقف دې، دميثاق [لوظ، قول] نه په خلاف کولو سره تاسو په هيڅ

---

(1) تفسير ابن كثير: ج ۲، ص ۳۵

(2) صحيح مسلم، كتاب الامارة، باب الناس تبع لقريش الخ: ج ۲، ص ۱۱۹، وصحيح البخاري، كتاب الأحكام، باب ج ۲، ص ۱۰۷۲

(3) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۳۵

شان هم دهغه دګرفت نه نشئ خلاصیدې، دې نه پس دمیثاق ددفعاتو څخه دټولونه اول د [اقامت صلوة] ذکردې، بیاد [زکوة اداکولو] دې نه معلومه شوه چه دمونځ اوزکوة فرض، داسلام نه وړاندې دحضرت موسی ﷺ په قوم باندې هم مقرر وو، اودنورو قرآنی اشاراتو اوروایاتونه ثابتیږی چه دافرائض یواځې بنی اسرائیلو په پورې خاص نه دی بلکه هر پیغمبراوپه هرشریعت کښې همیشه مقررپاتې شویدی، دمیثاق دریمه دفعه داده چه دالله تعالی په ټولو رسولانو دې ایمان راوړی اودهغوئ په مقصد درشداوهدایت کښې دې د هغوئ امداد کوی،

په بنی اسرائیلو کښې هرکله چه ډیررسولان راتلونکی ووځکه په خصوصیت سره ورته ددې تاکید اوکړې شودعملیاتو [مونځ زکوة وغیره] نه دایمانیاتو درجه په رتبه کښې اګرچه وړاندې ده، مګر په میثاق کښې عملیات [مونځ زکوة] ځکه وړاندې ذکرکړې شوچه په دې باندې بالفعل عمل کول وو، راتلونکی رسولان خوبه بیاراځی، په هغوئ باندې ایمان راوړل اودهغوئ دامداد کولوخبره روستو کیدونکې وه ځکه داروستوبیان کړې شوه،

دمیثاق څلورمه دفعه داده ﴿وَأَقْرَضْتُمُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ [تاسو الله تعالی ته په ښه شان قرض ورکوئ] دښه شان مطلب اخلاص دې، چه دنیوی غرض په کښې شامل نه وی، اودالله تعالی په لار کښې زړه پورې څیزخرچ کړی، ردی اوبیکاره څیزخرچ کولوسره ځان نه خلاصوی، دالله تعالی په لارکښې خرچ کولوته دقرض وئیلومطلب دادې چه څنګه قرض اداکول د بنده په ذمه واجب وی دغسې ددې اجر ورکول هم الله تعالی په خپله ذمه واجب کړیدی،

دفرض زکوة ذکرپه مستقل ډول سره دکولونه پس دلته د [قرضِ حسن] ذکرکول، دابنائی چه دې نه مراد دزکوة نه علاوه نورخیراتونه دی، دې نه داهم معلومیږی چه مسلمان صرف په زکوة اداکولوسره دټولوذمه دارونه نشی خلاصیدې، ولې چه دزکوة نه علاوه نور مالی حقوق هم دمسلمان په ذمه لازم دی، چرته دمسلمانانوآبادئ کښې جومات نه وی هلته جومات آبادول اوچرته چه ددینی تعلیم ذمه داری حکومت نه اخلی هلته دهغې دپاره انتظام کول په مسلمانانو باندې لازم دی فرق صرف دومره دې چه زکوة [فرضِ عین] اودا [فرضِ کفایه] دی،

دفرض کفایه مطلب دادې چه څه مسلمانانودغه فرض اداکړل نودنوروَمسلمانانو غاړه خلاصه شوه اوکه هیچاهم دا اونه کړل نوټول مسلمانان ګناهګارشو، نن صبادینی تعلیم اودهغې دپاره دارالعلوم او مدرسې ډیرزیات بې آسرې دی، په دې هغه څوک پوهیږی چه ددین د ضروری خدمت کولو په غرض ئې دغه کارته لاس اچولې وی، اکثرمسلمانان صرف دومره پوهیږی چه یواځې زکوة اداکول ددوئ په ذمه فرض دی اوسره ددې ډیرکم مسلمانان زکوة اداکوی، اداکول ئې په حساب نه وی یعنی پوره زکوة نه اداکوی، او کم کم پوره زکوة ادا کوونکی هم داګنړی چه ددوئ په ذمه هیڅ نه پاتې کیږی، که دجوماتجوړولوضرورت شی نودوئ ورته دزکوة مال پیش کوی، دغه شان که ددینی مدرسوضرورت راشی نوهم ورته زکوة وروړاندې کوی حالانکه دافرض دزکوة نه علاوه دی چه دقرآن کریم دې آیت اونورو آیتونوهم داخبره په ښه شان ښکاره کړیده،

هرکله چه دمیثاق دفعات ئې بیان کړل، هغې نه پس ئې دااوښودل چه دمیثاق دپابندئ کولو جزا به داوی چه ستاسو کړی ګناهونه به معاف کړې شی اوجنتونو کښې به ساتلې شئ چرته چه به بې مثاله مزې اوراحتونه وی، په آخر کښې ئې داهم اوښودل چه ددې ټولو ډاګیز

بیانونو او ارشاداتو نه پس هم که چاکفر او سرکشي اختیار کړه نو هغه صفانیغه لار پرېښوه او دخپله لاسه دتباهئ په کنده کښې ورګوذار شوۀ.

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ

| نو په سبب | دماتولو دهغوئ | دپخې وعدې دهغوئ

| .........بیا فقط دوعدې دماتولو په وجه مونږ په دوئ

لَعَنّٰهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ قٰسِيَةً ۚ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ

لعنت اوکړو مونږ په هغوئ | او اوګرځول مونږه | زړونه دهغوئ | سخت | بدلوی هغوئ | خبره

لعنت اوکړو | او د دوی زړونه مو سخت کړل | (نو اوس په توراة کښې تحریف کوی) کلمې دخاني نه

عَنْ مَّوَاضِعِهٖ ۙ وَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا

دځایونو خپلو نه | او هېره کړې ده هغوئ | یوه حصه | دهغې نه | چې نصیحت شوې وۀ هغوئ ته

بې ځایه کوی | او چې کوم نصیحت ورته شوې وۀ | دهغې لویه حصه ئې هېره کړې ده

بِهٖ ۚ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰى خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ اِلَّا قَلِيْلًا

په هغې سره | او همیشه به ئې ته | چې خبرېږې به ته | په یو خیانت سره | دهغوئ نه | سوا د | لږو کسانو

او همیشه به ته د دوی په خیانتونو خبرېږې | ........مګر لږ کسان په کښې داسې دی چې (ددې عیب نه) بچ دی

مِّنْهُمْ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ۝

دهغوئ نه | نو معاف کړه | هغوئ | او مخ اوګرځوه | بیشکه الله | خوښوی | احسان کونکی

نو دوئ معاف کړه | او سترګې پرې پټې کړه | بیشکه الله تعالی نیکان خلق خوښوی

وَمِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰٓى اَخَذْنَا مِيْثَاقَهُمْ

او دهغه کسانو نه | چې ونیلی وۀ هغوئ | چې بیشکه مونږه | نصاری یو | اخستلې وه مونږه | پخه وعده دهغوئ

(دغه شان) مونږ دهغې کسانو نه هم وعده اخستې وه | چې ونیل یې: مونږ عیسایان یو

فَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ۪ فَاَغْرَيْنَا

نو هېره کړه هغوئ | ډېره حصه | دهغه سبق نه | چې نصیحت شوې وو هغوئ ته | په هغې سره | نو او کړله مونږه

نو هغوئ د هغه تعلیم لویه حصه هېره کړه په کوم چې ورته نصیحت کولې شو | ...............نو مونږ

بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ؕ وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ

په مینځ دهغوئ کښې | دشمنی | او بغض وکینه | د ورځې دقیامت پورې | او زر به | خبر ورکړی هغوئ ته

د دوئ په مینځ کښې ترقیامته پورې دشمنی او کینه واچوله | ...............او ډېر زر به ورته

اللّٰهُ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ۝

الله | په هغه کارونو | چې وۀ هغوئ | چې کول به ئې

الله ﷻ د دوئ د عملونو خبر ورکړی |

**آسان ترجمه قرآن:** بیا ددوی د وعدې ماتولو د وجې نه مونږ دوی د خپل رحمت نه لرې کړل، او ددوی زړونه مو سخت کړل دوی خبرو لره دخپلو ځایونو نه لرې کوي او د کومې خبرې چه دوی ته نصیحت شوې وو دهغې یو لویه حصه ئې هیره کړې دلا دوی کښې د لږو خلقو نه علاوه د نورو روزانه د څه نه څه خیانت پته به تاته لګي. دې وجې نه (فی الحال) دوی معاف کړه اوچشم پوشۍ نه کار واخله، بې شکه الله احسان کوونکو لره خوښوی، اوکومو خلقو چه وئیلي وو چه مونږ عیسایان یُو هغوی نه (هم) مونږ وعده اخستې وه بیا د کوم څیز چه هغوی ته نصیحت شوې وو، دهغې یوه لویه حصه هغوی هیره کړه لو مونږ دهغوی مینځ کښې تر قیامته پورې دښمني او بغض واچولو، اوالله به ډیر زر هغوی لره خبر کړی چه هغوی څه کوی،

### خلاصه تفسیر

[لیکن بنی اسرائیلو دغه عهد مات کړو اود ماتولو نه پس ئے په قسماقسم سزا ګانو کښې ګرفتار شول لکه شکلونه یئ وران شو او ذلیله شول.پس دا چه دالله دمهربانو او بخښیشونو نه پس اوشول] ﴿ فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ لَعَنّٰهُمْ ﴾ نوصرف ددوی د وعدې دماتولو په وجه مونږ دوی دخپل رحمت [یعنی دهغې نشاناتو] نه لرے کړل [او هم دا حقیقت دے دلعنت] او [ددغې نشاناتو دلعنت ځنې دادی چه] ﴿ وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ قٰسِيَةً ۚ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ ﴾مونږ د هغوئ زړونه سخت کړل [چې دحق خبرې په هغه څه اثر نه کیږی او ددې سخت والی د آثارو نه دادی چې دغه خلق [یعنی ددوی ځنے علماء] کلام [دالله ﷻ یعنی تورات] لره دهغې [دالفاظو یا مطلبونو] دموقعو [ځایونو] نه بدلوی [یعنی لفظی یامعنوی بدلون په کښې راولی] او ددې اثر دا شو چې هغه خلق چې څه ورته په تورات کښې نصیحت کړې شوې وو ﴿وَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ﴾ دهغې ځنے ئے خپله یوه لویه برخه [دفائدې چه پرې دعمل کولو په وجه به ورته نصیب کیدله] دلاسه اوویستله [ولې چه دوی به زیات مشق ددې کولو چه په هغه مضمونونو کښې به یئ بدلون راوستو دکومو نه به چه د رسالت محمدیه ﷺ تصدیق کیدلو اوظاهره ده چه د ایمان نه به زیاته لویه برخه بله څه وی؟. غرض دا چه دلوظ په ماتولو سره پرې لعنت اوشو اود لعنت دکبله ئے زړونه سخت شو چه ددې له کبله بدلون راوستل او د بدلون راوستلو دکبله لویه برخه دلاسه ورکول ښکاره خبره ده] ﴿ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰى خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ ﴾ او [داسې هم نده چه په خپلو کړونے صبر کړې وے بلکه حالت دادې چه] تاسو ته هره ورځ [یعنی همیشه ددین په باره کښې] دڅه ناڅه [نوی] خیانت خبره په مخه کیږی کوم چه ددوی نه په مخه لګیا دے کیږی ﴿اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ﴾ سوا ددوی د شمیر د څو کسانو نه [چه مسلمانان شوی وو] ﴿ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ ﴾ نو تاسو دوی لره معاف کړئ اوپه دوی پښه راکاږئی [یعنی ترڅو چه شرعی ضرورت نه وی نو ددوی دغه ټګئ تورئ ښکاره کولو سره دوی لره مه شرموئ] ﴿اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴾ بیشکه الله ﷻ دښه معاملې خاوندانو سره محبت کوی [او بې ضرورت ئے نه شرمول ښه معامله کول دی]

﴿ وَمِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰٓى اَخَذْنَا مِيْثَاقَهُمْ ﴾اوکوم خلق چه [ددین د امداد کولو په دعوے سره وائی چه مونږ نصرانیان یو مونږه د هغوی نه دهغوی عهد [دیهودو دعهد اولوظ پشان] اخستلې وو﴿فَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ﴾ نوهغوی هم هغه څه چه ورته یئ [په انجیل وغیره کښې] نصیحت کړې شوې وو دهغې ځنے خپله یوه لویه برخه [دنفعے چه دعمل کولو په وجه به ورته

نصیب کیده] دلاسه ورکړه [ولې کوم شے چه هغوی دلاسه ورکړو هغه توحید دې او ایمان راوړل دی په رسول الله ﷺ باندې چه حکم ئے هغوی ته هم شوې وو او ددې یوه برخه کیدل ښکاره خبره ده کله چه ئے توحید پریښو] ﴿ فَأَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ﴾ نوموږ ددوی ترمینځه [په خپلو کښې] تر قیامته پورې بغض او عداوت واچولو [دا خودنیوی سزا شوه] ﴿ وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللَّهُ بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ ﴾ او زر دې چې [په آخرت کښې کوم چه نزدے دے] په هغوی به الله ﷻ دهغوی کړه ضباط کړی [بیا به ورته سزا ورکړی].

## معارف او مسائل

په آیت کښې داخبره ښودلې شویده چه بنی اسرائیلو، دخپلې بدبختئ په وجه، په دغه ډاگېزو هدایاتو غوږ اونه گرولو او دمیثاق مخالفت ئې اوکړونو الله تعالی دوئ لره په قسماقسم عذابونو کښې راگیر کړل.

په بنی اسرائیلو باندې د دوئ دبدعملئ او سرکشئ په سزا کښې دوه قسمه عذابونه راغلل، یو قسم ظاهری او محسوس وو لکه [1] کانړی پرې اووریدل، یا زمکه پرې بل مخ واړولې شوه، چه بیان ئې دقرآن کریم په ډیرو آیتونو کښې په مختلفو مقاماتو کښې راغلې دې، بل قسم عذاب معنوی او روحانی دې، هغه دادې چه دسرکشئ په سزا کښې د دوئ زړونه او دماغونه بیکاره شول، دخیال، فکر کولو اود پوهیدلو جوگه پاتې نشو، اودخپلو گناهونو په وبال کښې په نورو زیاتو گناهونو کښې په مخه ښکیل کیدل، لکه فرمائی:

﴿فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَاقَهُمْ لَعَنَّاهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَاسِيَةً﴾ [امونږه، د دوئ دبدعهدئ اودلوظ، قول دخلاف کولو په سزا کښې دوئ لره دخپل رحمت نه لرې کړل اود دوئ زړونه موسخت کړل چه اوس پکښې دهیڅ خیرخائ پاتې نشو] درحمت نه دلرې والی اودزړونو سختوالی نه قرآن کریم په سورت مطففین کښې د [رَانَ] په لفظ سره تعبیر داسې کړیدې: ﴿كَلَّا ۖ بَلْ ۜ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ [دقرآن د واضحو آیتونو او ښکاره نښانیانو نه دانکاروجه داده چه د دوئ په زړونو باندې، د دوئ دگناهونو په وجه زنگ پریوتې دې].

رسول الله ﷺ په یو حدیث کښې داسې فرمائیلې دی:

[انسان په اول کښې چه گناه اوکړی نو په زړه ئې یو تور داغ اولگی، دهغې خرابوالې ورته داسې محسوسیږی لکه چه په تکه سپینه جامه یو تور داغ اولگی او ورته ډیر بدښکاری که دده ورته مخه شوه او توبه ئې اوښکله، په آئنده کښې دگناه نه منع شونو دغه داغ وران کړې شی، او که ده پروانه کوله بلکه نور گناهونه ئې ورپسې په مخه کول نو دهرې گناه په وجه په هغې کښې یو یو تور داغ زیاتیږی تردې چه دهغه دزړه تختئ ددغه داغونو په وجه بیخی تکه توره

---

[1]) رومبی ایډیشن کښې دې ځائې کښې عبارت داسې وو چې: لکه په دوئ باندې د وینې او چیندخانو وغیره باران اوشو یا پرې کانړی اووروللې شو الخ. ځینې اهل علم حضراتو دې طرفته توجه راگرځولې ده چې د وینې او چیندخانو عذاب په بنی اسرائیلو باندې نه وو راغلې ځکه ددې ځائې نه د وینې او چیندخانو ذکر حذف کړې شو. حضرت مصنف د طرفه احقر ته دداسې تصرفاتو اجازت وو. احقر محمد تقی عثمانی ۸-۷-۱۴۰۹ هجری

شي، دغه وخت دده زړه داسې شي لکه چه لوښې اړولې پروت وي هغې کښې چه څه واچولې شي سمدستي پرې راوځي پکښې نه تينګيږي، دغه شان د خير ښيګړې او نيکئ خبره دغه په زړه کښې نه ټيکاويږي، دغه وخت دده زړه داشان شي چه ﴿لايعرف معروفا ولاينكر منكرا﴾(۱) [نه څه نيکي، نيکي ګڼړي او نه څه بدي، بدي ګڼړي بلکه معامله برعکس وي چه عيب ورته هنرښکاري، بدئ لره نيکي او ګناه لره ثواب ګڼل شروع کړي، په خپلې سرتيزئ او سرکشئ کښې په مخه زياتيږي، دا، دده د ګناه نغده سزاده چه ورته هم، په دې دنيا کښې ملاويږي.

ځنې لويو بزرګانو فرمائيلي دي چه: ﴿ان من جزاء الحسنة الحسنة بعدها وان من جزاء السيئة السيئة بعدها﴾ [د نيکئ يوه نغده جزاء داده چه ورپسې ورته دبلې نيکئ توفيق ملاويږي او د ګناه يوه نغده سزاداده چه ديوې ګناه نه پس، دهغه زړه نورو ګناهونو اړخ ته مائله کيدل شروع شي] معلومه شوه چه په نيکو او بدو دواړو کښې ځان ته راښکل شته،

[زر زر کشد درجهان گنج، گنج] زرو لره زر او خزانې لره خزانه ځان ته راکاږي] يوه نيکي بلې نيکئ ته بلنه ورکوي، او يو بدي، بلې بدئ ته بلنه ورکوي او ګناه لره ځان سره راولي،

بني اسرائيلو ته دلوظ، قول ماتولو سزا، دضابطې په جوړ، داورکړې شوه چه هغوئ د الله تعالى رحمت نه لرې وتل کوم [رحمت] چه دخلاصي موندلو د ټولونه لويه ذريعه ده، زړونه ئې دې حده پورې سخت شو چه: ﴿يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ﴾ [کلام الهي لره دهغې دخپل ځائ نه برته کوي] يعني د الله تعالى په کلام کښې بدلون کله په معنى کښې راولې، کله په الفاظو کښې او کله ئې په تلاوت کښې راولي، دبدلون راوستو دا ټول قسمونه په قرآن کريم او داحاديثو په کتابونو کښې بيان کړې شويدي چه داوسنئ زمانې ديورپ عيسايانو لره ددې څه قدرې اقرار کول هم راپيښ شو، [تفسير عثماني]

ددې معنوي سزانتيجه دا راوځته چه: ﴿وَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ﴾ دوئ ته دشوې نصيحت نه فائده اغستل دوئ هير کړل] ورپسې ئې اوفرمائيل چه دغه سزا په دې شان د دوئ دغاړې هارجوړ شو چه: ﴿وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰى خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ﴾ [تاسو ﷺ به تل دپاره د دوئ دټګئ توړئ نه په مخه خبريږئ]، ﴿اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ﴾ [سوا دلږو خلقونه] لکه حضرت عبدالله بن سلام چه وړاندې داهلِ کتابو په دين وواو بيا په رشتيا مسلمان شو،

تردې پورې دبني اسرائيلو دبدو عملونو او بدو اخلاقو چې کوم بيان اوشو په ظاهره ددې داتقاضا وه چه رسول الله ﷺ د دوئ نه سخت نفرت او سپکوالي اوکړي، دوئ هډو خپلې خواته پرينږنه دي، په دې وجه دآيت په آخرى جمله کښې هغوئ ﷺ ته داهدايت ورکړې شو: ﴿فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ ۚ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ﴾ [تاسو ﷺ دوئ لره معاف کړئ، د دوئ په بدعملئ خپه راکاږئ، دوئ نه کرکه څکه مه کوئ چه الله تعالى احسان کوونکو لره خوښوي] مطلب دادې چه د دوئ دخرابو عملونو او حالاتو باوجود دخپل طبيعت په غوښتنه عمل مه کوئ، دوئ سره د کرکې سلوک مه کوئ، د دوئ زړونه اګرچه دومره سخت او بې حسه دي چه دوعظ ونصيحت هيڅ اثرپرنه کيږي، ليکن رواداري او ښه خوئې او خصلت کول داسې يو کيمياده چه د دوئ په زړونوئې هم اثرکيدې شي، او په دوئ کښې حس پيدا شي يا نه، بهر حال خپلو اخلاقو او

۱) مشكوٰة، كتاب الفتن: ج ۲، ص ۴۶۱

معاملاتو لره درست لرل خوضروري دي، ولې چه داحسان کولو معامله دالله تعالی خکه خوښه ده چه په دې سره مسلمانان الله تعالی ته نزدې کیږي،

﴿وَمِنَ الَّذِينَ قَالُوٓا۟ إِنَّا نَصَٰرَىٰٓ﴾ د دې آیت نه په رومبي آیت کښې دیهودودلوظ ماتولو اوعذاب ذکروو، په دې آیت کښې د نصاراؤ پاتې څه حال بیان کړې شویدې.

**دعیسائي فرقو خپل منځ کښې بوبل سره دښمنۍ:** په دې آیت کښې الله تعالی دعیسایانود لوظ ماتولو دا سزا بیان کړیده چه د دوئ په خپل منځ کښې بیلتون اودښمنی راوستې شوه چه ترقیامته پورې به جاري وي،

د اوسنۍ زمانې دعیسایانو دحالاتو نه داشبه پیدا کیدې شي چه هغوئ خوخپل منځ کښې روغ جوړ ښکاري هیڅ اختلاف پکښې نه ښکاري. جواب ئې دادې چه په آیت کښې دواقعې او اصلي عیسایانو حال بیان شویدې چه خپل منځ کښې دهغوئ اختلاف اوبیلتون معلوم او مشهور دې دکومو عیسایانو ترمنځه چه اختلاف اوبیلتون نه ښکاري داهغه خلق دي چه عیسائیت ئې پریښې دی اودهریان جوړ شوی دي نوهغه په حقیقت کښې عیسایان خکه نه دي چه عیسائي مذهب ئې پریښې دې مطلب داچه دغه خپل منځ کښې اختلاف اوبیلتون د عیسائي مذهب په بنیادباندې پیدا کیږي هرکله چه مذهب ئې عیسائیت پاتې نشونودغه سوال دهغوئ په باره کښې صحیح نه دې، دبیضاوي شریف په حاشیه کښې د [تیسیر] نه نقل شویدي چه نصارئ، په اصل کښې درې فرقې وې ① یوه [نسطوریه] چه عیسی ﷺ لره ئې دخدائې خوئ منلو، ② بله یعقوبیه ده چه پخپله عیسی ﷺ یې الله تعالی سره یو ځائې خدائې منلو ① دریمه ملکائیه ده چه حضرت عیسی ﷺ لره به ئې د درې خدایانو څخه یو خدائې منلو،

ښکاره خبره ده چه دورمره اختلاف دعقیدوترمنځه وي نوخپل منځ کښې دښمنی پیدا کیدل خوبه خامخااوضروروي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَٰٓأَهْلَ الْكِتَٰبِ | قَدْ | | | | | | |
| اې اهل کتابو | په تحقیق سره | | | | | | |
| اې اهل کتابو! یقینا ........................ | | | | | | | |
| جَآءَكُمْ | رَسُولُنَا | يُبَيِّنُ | لَكُمْ | كَثِيرًا | مِّمَّا | كُنتُمْ | تُخْفُونَ |
| درغلې دې تاسو ته | رسول زمونږه | چې بیانوي | تاسو ته | ډیرې | اهغه خبرې | چې تاسو به پټولې | |
| تاسوته زمونږ رسول راغلې دې \| اودکتاب هغه ډیرې خبرې ئې درته ښکاره کړې دی | | | | | | | |
| مِنَ الْكِتَٰبِ | وَيَعْفُوا۟ | عَن كَثِيرٍ | قَدْ جَآءَكُم | مِّنَ اللَّهِ | نُورٌ | | |
| د کتاب نه | اومعافي کوي | اد ډیرو [خبرو] نه | راغلې ده تاسو ته | دطرفه دالله نه | رڼړا | | |
| کومې چې به تاسوپټولې اوډیرې داسې دی چې هغه ئې نه بیانوي \| تاسوته دالله ﷻ دطرفه یو رڼړا راغلې ده | | | | | | | |
| وَكِتَٰبٌ | مُّبِينٌ | يَهْدِى | بِهِ | اللَّهُ | مَنِ | | |
| اوراغلې دې داسې کتاب | چې واضحه دې | چې ښایئ | په هغې سره | الله | اهغه چا ته | | |
| اویوروښانه کتاب راغلې دی \| ........................ ددې په ذریعه الله ﷻ هغه چا ته | | | | | | | |

اتَّبَعَ رِضْوَانَهٗ سُبُلَ السَّلٰمِ وَيُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ

چې پیروي کوي | د رضا د هغه | لارې د سلامتیا | او راوباسي هغوئ لره | د تیارو نه

د سلامتیا لارې ښائي | چې چاته ني خوښه شي | .............. اوهغوئ د [کفر] د تیرونه

إِلَى النُّوْرِ بِإِذْنِهٖ وَيَهْدِيْهِمْ إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝ لَقَدْ كَفَرَ

رڼړا ته | په حکم خپل سره | او هدایت کوي د هغوئ | لارې انیغې ته | یقیناً چې | کفر اوکړو

د [هدایت] رڼړا ته راوباسي | اوپه نیغه لار ني قائم ساتي | بیشکه هغه کسان چې کافران دي

الَّذِيْنَ قَالُوْا إِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ط قُلْ فَمَنْ

هغه کسانو | چې وابی | چې بیشکه الله | هم دا | مسیح | خوئي دمریم دی | اووایه اني نبی | نو څوک به

واني چې الله ﷻ هم دغه مسیح دمریم خوئي دي | .............. ورته اووایه چې څوک داسي شته دي

يَّمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ أَنْ يُّهْلِكَ الْمَسِيْحَ

طاقت اولري | د الله د مقابلي | څه قدرله | که اوغواړي | چې هلاك کړي | مسیح

چې د الله ﷻ په مقابله کښې اختیار اولري | که الله ﷻ اوغواړي چې مسیح

ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهٗ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيْعًا ط وَلِلّٰهِ مُلْكُ

خوئي د مریم | او مورد هغه | اوهغه څوك | چې په زمکه کښې دی | ټول | اوالله لره ده | بادشاهي

دمریم خوئي اودهغه مور اود زمکي ټول خلق هلاک کړي | .............. د آسمانونو اود

السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ط يَخْلُقُ مَا

د آسمانونو | او د زمکي | اودهغه څیزونو | چې په منځ ددواړ کښې دی | پیداکوي | هغه څه

زمکي تر مینځه دټولو څیزونو اختیار د الله سره دي | .............. څه چې اوغواړي پیدا کوي ني

يَشَآءُ ط وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰى

چې اوغواړي | او الله | په هر څیز باندې | قادر دي | او واني یهودیان | اوعیسایان

اوالله ﷻ په هرڅه کامل قدرت لري | .............. اویهود [خانله] اونصاری [خانله] دا دعوی کوي

نَحْنُ أَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَأَحِبَّآؤُهٗ ط قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ

چې مونږ | خامن یو | د الله | اودوستان یو د هغه | ورته اووایه | نو ولې | عذاب درکوي تاسو له

چې مونږ د الله ﷻ خامن او نزدې خلق یو اورته اووایه چې تاسوته بیا ولې په ګناهونوسزا ګاني درکوي

بِذُنُوْبِكُمْ ط بَلْ أَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ط يَغْفِرُ

په ګناهونو ستاسو | بلکه | تاسو | انسانان یئ | د هغه مخلوقاتو نه | چې الله پیدا کړي دی | بخښنه کوي

[داسي نه ده] بلکه تاسوهم هغه شان عام انسانان ني څنګه چې د الله ﷻ نور مخلوق دي | چاته چه الله

لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ط وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ

هغه چاته | چې اوغواړي | اوسزا ورکوي | هغه چاته | چې اوغواړي | اوالله لره دي | ملکیت | د آسمانونو

اوغواړي نو بښنه اوکړي | او چاته چې اوغواړي نوعذاب ورکړي | اوپه آسمانونو او زمکه او د دې په مینځ

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالْأَرْضِ | وَمَا بَيْنَهُمَا | وَإِلَيْهِ | الْمَصِيرُ ﴿١٨﴾ |
| او د زمکې | او هغه چې په منځ د دې دواړو کښې دی | او خاص هغه ته | ورتلل دی |
| کښې چې څه دی ټول د الله ملکيت دې | | او الله ﷻ ته واپس تګ دې | |

**آسان ترجمه قرآن:** اې اهل کتابو! تاسو ته څمونږ (دا) پيغمبر راغلې دې چه د کتاب (يعني د تورات او د انجيل) ډيرې هغه خبرې صفا صفا بيانوي چه کومې به تاسو پټولې، او ډيرې خبرې پريږدي تاسو ته د الله د طرف نه رڼړا راغلې ده، او يو داسې کتاب چه حق واضح کونکې دې. چه دهغې په ذريعه الله هغه خلقو ته دَسلامتيا لاره ښائي چه دده د رضا طلب کاروي او دوی په خپل حکم سره د تيارو نه او باسي او رڼړا ته ئې راولي او دوی ته د نيغې لارې هدايت کوي. کومو خلقو چه وئيلي دي چه الله هم مسيح ابن مريم دې هغوی يقينًا کافران شوي دي (اې پيغمبره! دوی ته) ووايه که الله مسيح ابن مريم او د هغه مور او په زمکه کښې چه څومره خلق دي دوی ټول هلاکول وغواړي نو څوك دې چه دالله په مقابله کښې دڅه کولو هم طاقت لري؟ د ټولو آسمانونو او زمکو او ددې په مينځ کښې چه څه دي په هغې يواځې ملکيت هم د الله دې. هغه چه څه څيز وغواړي نو پيدا کوي ئې او هغه په هر څه قدرت لري "يهوديان او عيسايان وائي چه مونږ د الله ځامن يو او محبوبان يُو" (دوی ته) ووايه چه بيا الله تاسو ته ستاسو د ګناهونو د وجې نه سزا ولې درکوي؟ نه! بلکه تاسو هم د هغه انسانانو غوندې انسانان يئ چه هغه پيدا کړي دي، هغه چه چا ته وغواړي نو بخي ئې او چا ته چه وغواړي نو عذاب ورکوي په آسمانونو او زمکو کښې او ددې په مينځ کښې چه څه دي هغه ټول دالله په اختيار کښې دي. او دهغه طرف ته د ټولو واپس کيدل دي.

## خلاصه تفسير

﴿ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا ﴾ اې اهل کتابو [يعنی يهودو اونصرانيانو] تاسو ته زمونږ دا رسول [محمد ﷺ] راغلې دې چه [دهغه دعلمی کمال دا حال دې چې د] ﴿ يُبَيِّنُ لَكُمۡ كَثِيرٗا مِّمَّا كُنتُمۡ تُخۡفُونَ مِنَ ٱلۡكِتَٰبِ وَيَعۡفُواْ عَن كَثِيرٖۚ ﴾ کتاب د [مضمونونو] نه کوم څيزونه چه تاسو پټوئ دهغې څخه ډيرو خبرو لره [چه په ښکاره کولو کښې يئ څه شرعی ښيګړه وی په ښکاره علوم نه دی حاصل کړی خو سره دهغې نه خالص د وحی په ذريعه دخبريدو نه پس] ستاسو په وړاندې صفا صفا ښکاره کوی او [دعلمی اواخلاقی کمال ئے دا حال دې چې کوم څيزونه تاسو پټ کړی وو دهغې ځنې] د ډيرو څه نه [دپوهيدلو اوخبريدو باوجود هم په اخلاقی ډول دهغې ښکاره کولونه] ډډه کوی [هرکله چه دهغې په ښکاره کولو څه شرعی ښيګړه نه وی يواځې ستاسو شرميدل په کښې راځی. دا علمی کمال دنبوت دليل دې. او اخلاقی کمال ددې تائيد او مضبوالئ کوی. دے نه معلوموه شوه چه درسول الله دنورو معجزو نه علاوه پخپله تاسو سره دهغوی داسلوك کول دهغوی دنبوت ثابتولو دپاره کافی دی اوهم ددې رسول ﷺ په ذريعه] ﴿ قَدۡ جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٞ وَكِتَٰبٞ مُّبِينٞ ۝ يَهۡدِي بِهِ ٱللَّهُ مَنِ ٱتَّبَعَ رِضۡوَٰنَهُۥ سُبُلَ ٱلسَّلَٰمِ ﴾ تاسو ته د الله ﷻ د طرفنه يو روښانه څيز راغلې دې او [هغه] يو کتاب واضح دی چې د هغه په ذريعه دالله ﷻ داسې خلقو ته چه دهغه درضا طلبګار وی دسلامتئ لارې ښائی [يعنی جنت ته دتللو طريقې چه خاص عقيدې اوعملونه دی ښائی ولې چه کامله سلامتی خو هم په جنت کښې کيديشی

چه نه په کښې څه کمے رازی اونه دلرے کیدلو اوختمیدو خطره وی] ﴿ وَيُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ بِاِذْنِهٖ ﴾ او هغوی لره په خپل توفيق سره [دکفر او ګناهونو] دتيرو نه راوباسی [د ايمان اود فرمانبرداری د] نور ارخ ته يئ راولی ﴿وَيَهْدِيْهِمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ اوهغوی لره [هميشه] په سمه لاره باندې کلك لری. ﴿ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ﴾ بيشکه دغه خلق کافران دی چه داسې وائی چه الله ﷻ [عيسی ؑ] مسيح خوئے د مريم دے ﴿ قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ﴾ ته دهغوی نه داسې تپوس اوکړه چه که داسې وی نو اوښائی ﴿ اِنْ اَرَادَ اَنْ يُّهْلِكَ الْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَاُمَّهٗ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا ﴾ چه که الله ﷻ مسيح [عيسی ؑ] خوئې د مريم لره [چه بعينه الله يئ ګنړئ] او دهغوی مور بی بی [مريم] لره اوڅومره چه په زمکه کښې آباد دیهغې ټولو لره [په مرګ سره] هلاکول اوغواړی [نو] څوك داسې شته چه دالله ﷻ نه به يئ يوه ذره هم هغوی لره بچ کړې شی [يعنی دومره خبره خوتاسو هم منئی چه هغوی لره د هلاکولو الله ﷻ قدرت لری نو دکوم ذات هلاکول چه دبل چا په قبضه کښې وی هغه خدائې څنګه کيدیشی؟. دې نه د حضرت مسيح ؑ دخدائې کيدو عقيده باطله شوه] او [دحقيقی خدائې او دټولو د معبود] ﴿وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ﴾ الله ﷻ [شان دادې چه] خاص الله ﷻ لره دے حکومت په آسمانونو او په زمکه او څومره څيزونه چه ددې دواړو په مينځ کښې دی هغې اوهغه چه کوم څيز لره [په څه شان سره] اوغواړی پيداکوی ئے ﴿وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ اوالله ﷻ په هرڅيز باندې پوره قدرت لری.

﴿ وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰى نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ ﴾ اويهوديان او نصرانيان [دواړه ډلے] وائی چه مونږ د الله ﷻ خامن اوهغه ته خوښ يو [مطلب دادې چه معلوميږی چه هرکله مونږ دپيغمبرانو اولاديو په دې وجه دالله ﷻ په نزد زمونږ خصوصيت دادې چه زمونږ په ګناهونو کولو سره هم الله ﷻ زمونږ نه هومره نه ناراضه کيږی څومره چه دنورو نه ناراضه کيږی لکه پلار چې دزوئ په نافرمانئ دومره نه ناراضه کيږی څومره چې د يو بل کس په نافرمانئ باندې ناراضه کيږی، لهذادوی ددې باطل خيال باطل ګرځولو دپاره رسول الله ﷺ ته خطاب دې چې[تاسو[ددوی نه] ﴿ قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ ﴾ تپوس اوکړئی چه ښه ده بيا به درته ستاسو دګناهونو په بدل کښې [دآخرت] عذاب ولې درکوی ؟ [چه هغه خو تاسو هم منئ لکه يهودو به وئيل ﴿لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدَةً﴾ يعنی که مونږ ته دجهنم عذاب راکولې شی نوهغه به هم څو ورځې وی حالانکه دحضرت مسيح ؑ قول پخپله په قران پاك کښې داسې بيان شوې دا ﴿ اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ ﴾ يعنی په هغه چا جنت حراموی څوك چه الله ﷻ لر ه شريك ګرځوی چه دا په وجه د التزام لکه د نصاری د اقرار پښان دې.

خلاصه دا شوه چه هرکله تاسو پخپله اقرار کوئی چه د آخرت عذاب تاسو دپاره هم دې نو راته اووائې چه آيا يو پلار خپل خوئے يا خپل زړه پورې بنده ته هم عذاب ورکوی ؟.په دې وجه خپل ځان ته داالله ﷻ اولاد وئيل باطل دی. څوك دے دا سوال نه لا پورته کوی چه کله خو پلار هم دخپل اولاد د اصلاح او تربيت دپاره اولاد ته سزا ورکوی نو اولاد ته سزا ورکول بيخی رد کولې نشی.ولے چه پلار خو اولاد ته سزا دے دپاره ورکوی چه بيا دپاره دغسې کار اونکړی اوپه آخرت کښې داسې خکه نشی‌کيدلې چه ورپسے دعمل وخت نشته بلکه دا دتير شوی

دنيوي عمل د بدلے وخت دي. چه سزا به هم سزا وي. ادب يا تربيت وركول به نه وي داسې قسم سزا خپل اولاد يا خپل زړه پورې بنده ته څوك نه وركوي په دې وجه معلومه شوه چه دالله ﷻ خاصان نه يئ] ﴿ بَلْ أَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ۗ يَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ ۚ ﴾ بلكه تاسو هم دنورو مخلوقاتو نه يو معمولي او عام خلق يئ الله ﷻ چه چا لره اوغواړي اوبه يئ بخښي او چا لره چه اوغواړي سزابه وركړي ﴿ وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ ﴾ او خاص دالله ﷻ دے ټول حكومت په آسمانونو كښې هم اوپه زمكه كښې هم او څه چه ددې دواړو په مينځ كښې دي په هغې كښې هم اوخاص دالله ﷻ طرف ته دټولو واپس تلل دي [دده نه سوا بل څوك پناه وركونكې نشته]

## معارف اومسائل

په دې آيت كښې دنصاراؤيواځې ديوقول ترديدشويدې چه په دوئ كښې ديوې خاصې فرقې او ډلې عقيده ده، يعنی ددې خبرې ترديد دې چه حضرت مسيح ﷺ [معاذالله] بعينه الله تعالى دې مگرترديد دپاره دليل داسې راوړې شويدې چه دټولوفرقوهغه باطل عقائد ورسره ردكولې شي كومې چه دتوحيد خلاف دی، يعنی دې سره دهغې ډلې عقيده هم ردكيدې شي چه حضرت مسيح ﷺ لره دالله تعالى ځوئ گڼړی ، يا هغوئ لره د درې خدايانوځنې يوخدائې گڼړی، دلته حضرت مسيح ﷺ سره دهغوئ ﷺ دوالدې په ذكركولوكښې دوه حكمتونه كيدې شي، [١] دحضرت مسيح ﷺ بې وسی دالله تعالى په وړاندې داسې ثابتولې شي چه هغوئ نه خپل ځان دالله تعالى نه بچ كولې شی اونه خپلې موربی بی لره، حالانكه يوشريف ځوئ دخپلې والدې په عزت ساتلوكښې او په خدمت كښې په خپل ځان هم صرفه نه كوی، بل پرې دا خيال هم رد كولې شي چه گڼی حضرت مريم [معاذالله] د درې خدايانوځنې يوخداې ده.

دلته دحضرت مسيح ﷺ اوحضرت مريم مرگ دفرض كولوپه ډول ذكر شويدې حالانكه د نزول قرآن په وخت كښې د بی بی مريم مرگ محض فرضی نه وو بلكه واقع شوې وو ، نو ددې وجه يا خود تغليب دې چه ① په اصل كښې دحضرت مسيح ﷺ مرگ فرضی گرځول وواودحضرت مريم مرگ ورسره تغليبافرض اوگرځولې شو، ولې چه قرآن كريم دنازليدوپه وخت كښې خود حضرت مريم مرگ يقينا واقع شوې وو، ② بلكه داخبره ښكاره كول ترهم مرادكيدې شی چه الله تعالى فرمائی ځنگه چه مونږ په حضرت مريم باندې مرگ راوستودغه شان په حضرت عيسى ﷺ اوپه ټول مخلوق باندې مرگ راوستل هم زمونږپه قبضه كښې دی، په ﴿ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ ۚ ﴾ سره دعيسايانودې باطلې عقيدې بنياد ورانول دی چه حضرت عيسى ﷺ يواځې دمورنه، بغير پلاره پيداشو، كه انسان وې نودموروپلاردواړو نه به دعامې قاعدې په جوړپيداشووې وې [معلومه شوه چه [معاذالله] ① خدائې يادخدائې ځوئ دې [مترجم]

په دې جمله كښې ددې خبرې جواب داسې اوشوچه الله تعالى په هرشان كښې دكامل قدرت خاونددې هغه چه څه غواړي، په څه شان سره ئې چه غواړی پيداكوی ئې، ځنگه چه په آيت:

﴿ إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ ۖ ﴾ سره دغه باطل بنيادپه دې شان رنگ كړې شويدې چه يواځې بې پلاره پيداكيدل [دحضرت عيسى ﷺ] څه چه دحضرت آدم ﷺ ابې موره اوبې پلاره پيداكيدل هم] دهغه دخدائيې دليل نشي جوړيدې بلكه داټول دهغه واحدلاشريک دكامل قدرت دليل

دې چه په هرشان سره دپيدا كولو قدرت لرى، هم هغه خالق، مالك او دعبادت لائق دې بل هيڅوك نه ددوئ شريک كيدې نشى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يٰٓاَهۡلَ الۡكِتٰبِ | | | | | |
| انې اهل كتابو | | | | | |
| انې اهل كتابو! | | | | | |
| قَدۡ جَآءَكُمۡ | رَسُوۡلُنَا | يُبَيِّنُ | لَكُمۡ | عَلٰى فَتۡرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ | |
| په تحقيق راغلى دې تاسو ته | رسول زمونږه | چې بيانوى | تاسو ته | روستو د ډيرې مودې د بنديز د رسولانو نه | |
| تاسوته زمونږ پيغمبر راغلى دې | ددين حكمونه درته بيانوى | په داسې وخت كښې چې د مودې راسې دپيغمبرانو راتلل بند وو | | | |
| اَنۡ تَقُوۡلُوۡا | مَا جَآءَنَا | مِنۡۢ بَشِيۡرٍ | وَّلَا نَذِيۡرٍ | فَقَدۡ | |
| چې بياچرته اونه وايئ تاسو | چې نه وو راغلى مونږ ته | څوك زيرې وركونكې | اونه څوك ويرونكې | نو په تحقيق سره | |
| چې تاسودا اونه وائې | چې مونږ ته څوک زيرې راكونكې يا ويرونكې نه وو راغلى | نو بيشكه | | | |
| جَآءَكُمۡ | بَشِيۡرٌ | وَّنَذِيۡرٌ ؕ | وَاللّٰهُ | عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ | قَدِيۡرٌ ۝١٩ |
| راغى تاسوته | زيرې وركونكې | او ويرونكې | او الله | په هر څيز باندې | قادر دې |
| تاسوته زيرې وركونكې او ويرونكې راغلى دې | او الله ﷻ په هر څه قادر دې | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** اې اهل كتابو! تاسو ته څمونږ پيغمبر په داسې وخت كښې ددين د وضاحت د پاره راغلى دې چه د پيغمبرانو راتلل بند شوي وو دي د پاره چه تاسو دا ونه وايئ چه مونږ ته نه څوك (دجنت) خوږي وركولو والا راغلى وو او نه څوك (جهنم نه) د ويرولو والا نو اوس تاسو ته د خوږي وركولو والا او ويرې وركولو والا راغى، او الله په هر څه قادر دې.

## خلاصه تفسير

﴿ يٰٓاَهۡلَ الۡكِتٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُوۡلُنَا ﴾ انې اهل كتابو تاسو ته دا زمونږ رسول [محمد ﷺ] راورسيدو ﴿يُبَيِّنُ لَكُمۡ عَلٰى فَتۡرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ ﴾ چه تاسو ته [دشريعت خبرې] صفا صفا ښائى په داسې وخت كښې چه درسولانو [راتلو] لړئ [د مودو راهسې] بنده وه [رومبنى شريعتونه بيخى ختم شوى وو هركله چه د پيغمبرانو د راتلو سلسله ډيره موده بنده وه په دې وجه ددغې شريعتونو د موندلو هيڅ درك نه لګيدلو په داسې وخت درسول راتلل ضرورى وو د دوى ﷺ تشريف راوړل په داسې وخت كښې لوئې غنيمت او نعمت ګڼړل پكار دى] ﴿اَنۡ تَقُوۡلُوۡا مَا جَآءَنَا مِنۡۢ بَشِيۡرٍ وَّلَا نَذِيۡرٍ﴾ دپاره ددې چه تاسو [په قيامت كښې] داسې اونه وائې [چه ددين په باره كښې په غلطئ او كوتاهئ كولو خكه معذوره وو چه] مونږ ته [څوك رسول چه] بشير او نذير [وى چه دهغه په وجه په مونږ كښې ددين صحيح علم او دعمل جذبه راپورته شوې وې] نه وو راغلى [نو اوس دعذر كولو څه ځائې خكه پاتې نشو چه] ﴿ فَقَدۡ جَآءَكُمۡ بَشِيۡرٌ وَّنَذِيۡرٌ ؕ ﴾ تاسو ته بشير او نذير [محمد ﷺ] راغلو [اوس ئې كه نه منئى نو به خپل انجام پخپله پوهه شئ] ﴿وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ۝١٩﴾ او الله ﷻ په هر څيز پوره قدرت لرى [چه كله اوغواړى په خپل رحمت سره خپل پغمبران اوليږى كله چه اوغواړى په حكمت سره ئې بند كړى خكه د چا دا حق نشته دې چه داسې اووائى چه هر كله

د ډيرے مودے راسے د پغمبرانو سلسله بنده وه نو اوس څوك رسول نشي راتلے خكه چه دے سلسلے لره ترڅه مودے پورې بندلرلو کښې دالله ﷻ حکمت وو.تر هغه وخته پورې د پغمبرئ دسلسلے د بندولو او ختمولو هيڅ اعلان نه وو کړې بلکه دتيرو شوو ټولو پغمبرانو په ذريعه ئے دا خبرونه هم ورکړی وو چه په آخره زمانه کښې به يو خاص پغمبر په خاص شان او خاص صفتونو سره راځي پغمبری به په هغه ختميږی او هم ددغې اعلان په جوړ خاتم الانبياء ﷺ تشريف راوړو|.

## معارف اومسائل

﴿عَلٰی فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ﴾ د[فترت] لفظي معنی سستيدل،په تپه اودريدل،څه کار ايساروول او بندول دی،چنانچه دتفسير امامانو ﷺ په دې آيت کښې د[فترت] هم دامعنی بيان کړيده چه مرادترنه دڅه مودې پورې دپيغمبرئ اوپيغمبرانو ﷺ دراتلو سلسله بنديدل دی،دا موده دحضرت عيسی ﷺ نه پس دخاتم النبيين ﷺ دپيغمبرکيدوتروخته پورې ده،

**دفترت دزمانې تحقيق:!** دحضرت ابن عباس ﷺ دروايت مطابق،دحضرت موسی ﷺ او حضرت عيسی ﷺ په مينځ کښې زمانه يو زر اوه سوه[۱۷۰۰] کاله وه،په دې ټوله موده کښې دپيغمبرئ سلسله په مخه جاري وه،په دغه زمانه کښې [فترت] نه ووچرته راغلي اوصرف په دغه زمانه کښې دبني اسرائيلو يو زرپيغمبران ﷺ راغلی وو،هغه پيغمبران ددې نه علاوه دی کوم چه دبنی اسرائيلوڅخه نه وو، بيا د حضرت عيسی ﷺ دپيداکيدو اودرسول الله ﷺ دپيغمبرکيدوترمنځه پنځه سوه کاله تيرشوی ووچه پکښې هيڅ پيغمبرنه وو راغلي اوهم دا زمانه د[فترت] ده،ددې نه وړاندې هيڅ يوزمانه داسې نه ده تيره شوې چه هغه به دپيغمبرد راتلونه خالي وه،[قرطبی مع ايضاح][1]

دحضرت موسی ﷺ اودحضرت عيسی ﷺ ترمنځه اودحضرت عيسی ﷺ او خاتم النبيين ﷺ ترمنځه په دواړوزمانوکښې نورمختلف روايات هم شته،چه دهغې دمخه هم دغه موده کښې کمې زياتې بيان شويدې،خوبياهم په اصل مقصدباندې هيڅ اثرنه پرېوځی،

امام بخاری ﷺ دحضرت سلمان فارسی ﷺ نه روايت کړيدې چه دحضرت عيسی ﷺ اوخاتم النبيين ﷺ ترمنځه زمانه شپږسوه کاله وه چه پکښې هيڅ يوپيغمبرنه وو راغلې لکه دصحيح مسلم اوصحيح بخاری په حواله چه په مشکوة کښې يوحديث راغلې دې په هغې کښې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی: [اَنَا اَوْلَی النَّاسِ بِعِيْسٰی] [زه دنورو خلقونه زيات عيسی ﷺ ته نزدې يم] ددې مطلب ئې په آخرحديث کښې داسې بيان کړيدې[لَيْسَ بَيْنَنَا نَبِيٌّ][2] [زمونږ دواړو ترمنځه بل څوک پيغمبرنه دې راغلې]

په سورت يسين کښې دذکرشوؤدرې رسولانونه مرادپه حقيقت کښې دلغوی معنی په اعتبار سره دهغوئ ﷺ استاذی اوربياران دی،

ځنې علماؤچه دخالدبن سنان عربی راتلل په زمانه د[فترت] کښې بيان کړيدی دهغې په باره کښې تفسيرروح المعانی په حواله دشهاب بيان کړيدی چه دوئ ﷺ نبی کيدل اگرچه

---

[1]) تفسير القرطبی تحت هٰذه الآية: ج۶، ص ۱۲۱، ۱۲۲

[2]) مشكوٰة، باب بدء الخلق وذكر الأنبياء عليهم الصلاة والسلام: ج ۲، ص ۵۰۹

صحیح دی خو زمانه ئې دحضرت عیسی ﷺ نه وراندې وه دهغوئ ﷺ نه روستونه وه.[1]

**دفترت دزمانې احکام:** دذکرشوې آیت نه په ظاهره دامعلومیږي چه که بالفرض یوقوم په داسې زمانه کښې وی چه ورته څوک رسول یاپیغمبرنه وی راغلې اونه ورته دهغوئ څوک نائبان رارسیدلی وی،نه ورسره دتیروشوؤپیغمبرانو ﷺ شریعت محفوظ وی،نوداخلق به په څه غلطوکارونواوګمراهیؤکښې اخته وی نودمعذورګڼرلوپه وجه به دعذاب حقدارنه وو،البته که په شرک کښې اخته وونومعذوره به نشوګڼرلې،هم ددې کبله فقها،حضرات،د اهلِ فترت په معامله کښې اختلاف لری چه آیا،دوئ ته به بخښنه کیږی اوکه نه؟

جمهورفقهاء ﷺ د دوئ دبخښنې کیدواړخ ته مائله دی خوشرط دادې چه هغوئ دفترت په زمانه کښې دهغه احکاموپابندپاتې شوی وی چه حضرت موسی ﷺ اوحضرت عیسی ﷺ ته منسوب وی،اګرچه دغه غلط هم وی، په شرط ددې چې دتوحیدمخالف او په شرک کښې اخته نه وی نودابه ورته ځکه نشی بخښلې چه دتوحیدمسئله درانقل کولوحاجت نه لری،بلکه په لږشان غورفکرکولوسره ئې انسان دخپل عقل نه هم معلوموليې شی،

**یوسوال اوجواب:** دلته داسوال راپورته کیدې شی چه کوموا اهل کتابو یهودونصاری ته په دې آیت مبارك کښې خطاب دې. دفترت په زمانه کښې اګرچه دوئ ته څوک پیغمبرنه ووراغلې مګرتورات، انجیل اوددې علماء ورسره هم موجودوونودقیامت په ورځ به داعذرڅنګه اوکړې شی چه مونږته څه هدایت نه وو رارسیدلې. جواب ئې دادې چه درسول الله ﷺ ترزمانې مبارکې پورې اصلی تورات او انجیل نه ووپاتې شوی،دې کښې بدلون راوستې شوې وواود دروغوقیصې پکښې شاملې کړې شوې وې لهذاددې موجودګی اوعدم موجودګی برابره وه،که چرته اصلی نسخې په یوګمنام ځائ کښې محفوظ وې نوهم هغه په دې کښې اړنه جوړیږی لکه چه ځنې علماؤ ﷺ ابن تیمیه ﷺ وغیره لیکلی دی چه دتورات اوانجیل اصلی نسخې یوځائې یوځائې موجودې وې.

**دخاتم الانبیاء ﷺ مخصوصوکمالاتوارخ ته اشاره:** اهل کتابوته په دې خطاب کولوکښې چه زمونږ رسول محمد ﷺ دفترت داوږدې زمانې نه پس تشریف راوړې دې،دې خبرې ته هم اشاره ده چه ترډیرې مودې پورې ددې خبرې بندپاتې شوی نعمت بیاآزادیدل لوئې غنیمت او لوئې نعمت اوګنړی،

اودې خبرې ته هم اشاره ده چه په داسې زمانه کښې اوپه داسې مقام کښې درسول الله ﷺ تشریف راؤړل چه خلق په بت پرستئ کښې اخته وو،دجاهلیت په دغه زمانه کښې د دوئ کړه وړه بې روده،بې ګودره خراب اوناکاره شوی وو،اوبیاداسې خلقواصلاح کول څه آسان کارنه وو.هرکله چه داسې خلق هغوئ ﷺ ته حواله شونوهغوئ ئې دخپل کردار اودنبوت په نورسره په لږه موده کښې ددې جوګه کړل چه په علم،عمل،اخلاقو،معاملاتو، معاشرت اود ژوند په ټولو ډګرونوکښې استاذان اوپیشوایان جوړشو،په دې لحاظ سره دهغوئ ﷺ پیغمبری، رسالت اوپیغمبرانه تعلیم دتیروشوؤ ټولو پیغمبرانو ﷺ په نسبت په لیدلو،کتلوډیرغوره اوډیراعلی ثابت شو،ددې مثال داسې اوګنړئ لکه چه یو ډاکټرديو رنځورعلاج په داسې

---

[1] روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۲۸

کامیابۍ سره اوکړي چه یواځې روغ موټ نشي بلکه په خپله یو ماهر ډاکټرهم جوړشي نود
داسې ډاکټرپه کمال کښې چاته څه شک نشي پاتې کیدې،

مطلب داچه د[فترت] د دومره اوږدې مودې نه پس هرکله چه په هغې کښې د کفراو
ګناهونو توږې تیرې خورې وې،دهغوئ ﷺ دتعلیم اوتربیت په برکت داسې رڼا شوه چه مثال
ئې په تیرشوی دورونو کښې نشي پیدا کولې،ددې په بنا تولې معجزې خوئې لاڅه کوې یواځې
دامعجزه ئې خلق دې ته مجبوره کولې شي چه په هغوئ ﷺ باندې ایمان راوړي.

| |
|---|
| وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى |
| اوکله چې اووئیل موسی |
| اوهغه وخت یادکړئ چې موسی ؑ |
| لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ جَعَلَ |
| قوم خپل ته اې زماقومه یادکړئ نعمت د الله په تاسو هرکله چې پیداکړل هغه |
| خپل قوم ته اووئیل ا چې تاسوته الله ﷻ کوم نعمتونه درکړي دی هغه یادکړئ ا هرکله چې هغه |
| فِيْكُمْ اَنْۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا ۖ وَّاٰتٰىكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ |
| په تاسوکښې پیغمبران اوجوړئې کړئ تاسو بادشاهان اوورئې کړل تاسوته هغه هرڅه چې نۀ وو ورکړي |
| تاسو کښې ئې پیغمبران راالیږلي دی ا اوتاسو ئې بادشاهان کړئ ا اوتاسوته ئې هغه څه درکړي دی |
| اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ۝ يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ |
| هیچاته دمخلوقاتو نه ا اې زماقومه ننوځئ ا زمکې ا پاکې ته |
| چې نورمخلوق ته ئې نه دی ورکړي ا اې زماقومه دې پاکې زمکې [شام] ته داخل شئ |
| الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ وَلَا تَرْتَدُّوْا عَلٰٓى اَدْبَارِكُمْ |
| هغه زمکه چې لیکلې ده الله ستاسو دپاره اومه ځئ واپس تاسو په شاګانو خپلو باندې |
| چې الله ﷻ ستاسوحصه کښې لیکلې ده ا ............او په خپلو شاګانو باندې مه ګرځئ |
| فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ ۝ قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّ فِيْهَا |
| ګنی نو اوبه ګرځئ تاسو زیان کاران اووئیل هغوئ اې موسی بیشکه په هغې کښې |
| ګنی نامراده به شئ ا ..............هغوئ اوؤئیل چې اې موسی ؑ په دې زمکه کښې |
| قَوْمًا جَبَّارِيْنَ ۖ وَاِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى يَخْرُجُوْا مِنْهَا ۚ |
| خلق دی زوررور اومونږ هرګزنۀ ننوځوهغې ته ترهغې پورې چې اوځئ هغوئ دهغې نه |
| یو ډیرمضبوط قوم اوسیږي ا اومونږ دې ته هیڅکله نۀ داخلیږو ا ترڅو چې هغوئ ددې نه بهرشوی نه وی |
| فَاِنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا فَاِنَّا دٰخِلُوْنَ ۝ قَالَ رَجُلٰنِ |
| نوکه چرې اووتل هغوئ دهغې نه نوبیشکه بیامونږه ننوتونکی یو اووئیل دوؤ سړو |
| که هغوئ ددې نه بهرشي ا نوبیا مونږ د دې داخلیدو ته تیار یو ا په هغوئ کښې دوؤ کسانو اووئیل |

مِنَ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمَا ادْخُلُوْا

دهغه کسانونه | چې ويريدل | چې انعام کړې وو الله | په هغوئ دواړو باندې | ورننوځئ

چې دالله ﷻ نه ويريدل | او الله ﷻ پرې انعام کړې وو | چه د دغه خلقو په مقابله کښې د دې

عَلَيْهِمُ الْبَابَ ۚ فَاِذَا دَخَلْتُمُوْهُ فَاِنَّكُمْ غٰلِبُوْنَ ۚ۬

په دې جبارينو | په دروازه | نوکله چې اورننوځئ تاسو په دروازه | نو بيشکه هم تاسو | به غالبان يئ

ښار دروازې ته داخل شئ | نوکله چې داخل شئ غالب به شئ ..........................

وَعَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝ قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّا

او خاص په الله باندې | بهروسه ساتئ | که چرې يئ تاسو | مومنان | اووئيل هغوئ | اې موسى | بيشکه مونږه

او په الله ﷻ بهروسه کوئ | که تاسو مومنان يئ | هغوئ اووئيل چې اې موسى بيشکه مونږ

لَنْ نَّدْخُلَهَآ اَبَدًا مَّا دَامُوْا فِيْهَا فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ

هرگز نه ننوځو دغه ښار ته | هيڅکله | ترڅو چې وى هغوئ | په هغې کښې | پس لاړ شه | ته | او رب ستا

دې ښار ته نه داخليږو | ترڅو چې په کښې هغوئ اوسيږي | نو ته او ستا رب دواړه ورشئ

فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ ۝ قَالَ رَبِّ اِنِّيْ لَآ اَمْلِكُ

او جنگ اوکړئ دواړه | بيشکه مونږ به | دلته | ناست يو | اووئيل موسى | اې ربه زما | بيشکه زه | نه لرم اختيار

او جنگ ورسره اوکړئ | مونږ به دلته ناست يو | (موسى) اووئيل چې اې زماربه! زه خو صرف د خپل خان او د خپل

اِلَّا نَفْسِيْ وَاَخِيْ فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ۝ قَالَ

مگر د خان خپل | او د رور خپل | نو جدائي اوکړه | په منيځ زمونږه | او په مينځ | د قوم | فاسق کښې | او وئيل الله

ورور واکمند يم | ..........نو زمونږ او د دې نافرمانه قوم ترمينځه فيصله اوکړې | ........الله ﷻ اووئيل

فَاِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً ۚ يَتِيْهُوْنَ

نو بيشکه دغه زمکه | حرامه کړې شوې ده | په هغوئ باندې | څلويښت | کاله | سرگردان به گرځي

چې دا ملک تر څلويښتو کالو پورې په دوئ حرام دې | ............................او په زمکه به

فِي الْاَرْضِ ۭ فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ۝

هم په زمکه کښې | نو مه خفه کيږه ته | په قوم | فاسق باندې |

سرگردان گرځي | ........نو ته د دې نافرمانه قوم په حال مه خفه کيږه |

**آسان ترجمه قرآن:** او هغه وخت ياد کړئ کله چه موسىٰ عليه السلام خپل قوم ته وئيلي وو چه "اې خما قومه د الله هغه نعمت ياد کړئ چه هغه په تاسو باندې کړې دې چه هغه په تاسو کښې انبياء پيدا کړل او تاسو ئې بادشاهان جوړ کړئ او تاسو ته ئې هغه څه درکړل چه ستاسو نه مخکښې ئې دنيا کښې بل چا ته نه وو ورکړي، اې خما قومه هغه پاکې زمکې ته دننه شئ چه هغه الله تاسو دپاره ليکلې ده او په پوندو باندې واپس مه آورئ گنې نامراده به شئ 'هغوى ووئيل" چه اې موسىٰ دې (ملک) کښې خو ډير طاقت ور خلق دي او ترڅو چه دوى د دې ځائ نه نه وې وتلي مونږ به چرې هم دې ته داخل نه شو، که چرې دوى

دي ځائ نه ووتل نو بې شکه مونږ به دي ته داخل شو کومو خلقو (چه دالله) ویره لرله په هغوی کښې دوه کسانوچه الله ورباندې خپل فضل کړې وو هغوی ووئیل چه دوی باندې حمله کولو سره (د ښار) دروازې کښې داخل خو شئ که تاسو داخل شوئ نو تاسو به غالب شئ او په الله باندې اعتماد وکړئ که چرې تاسو مؤمنان یئ "هغوی ووئیل چه اې موسیٰ! ترڅو چه دوی په دې (ملك) کښې وي مونږ به دې ته چرې هم داخل نه شو — او(که دوی سره جنګ کول وي) نو ته او ستا رب لاړ شئ، دوی سره جنګ وکړئ مونږ به هم دلته ناست یو موسیٰ علیه السلام ووئیل چه اې ځما پروردګاره! سوا ځما دخپل ځان نه او د خپل ورور نه څوك هم ځما په اختیار کښې نشته اوس ځما او د دې نافرمانه خلقو په مینځ کښې جدا جدا فیصله وکړه — الله ووئیل چه دا زمکه په دوئ باندې څلویښت کالو پورې حرامه ده، دوی به (دې دوران کښې) دغه زمکه کښې پریشانه ګرځی نو ته (اې موسیٰ) دې نافرمانه خلقو باندې زړه مه سیزه.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ ﴾ او هغه وخت هم د یادولو جوګه دے کله چه موسی ﷺ خپل قوم [یعنی بنی اسرائیلو] ته [د جهاد د شوق پیدا کولو په غرض په اول کښې دا] اوفرمائیل چه ائې زما قومه تاسو دالله ﷻ انعام لره چه په تاسو شوې دے یاد کړئی ﴿اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْۢبِيَآءَ﴾ کله چه الله ﷻ په تاسو کښې ډیر پغمبران جوړ کړل [لکه حضرت یعقوب ﷺ، حضرت یوسف ﷺ او پخپله حضرت موسی ﷺ او حضرت هارون ﷺ اود نور انبیاء ﷺ ډیروالې په یو قوم کښې پغمبران جوړیدل ددغې قوم ددین او د دنیا عزت دې. دا خوئے معنوی نعمت درکړو] ﴿ وَّجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا ۖ ﴾ او [حسی نعمت ئے دا درکړو چه تاسو ئے دملك خاوندان جوړ کړئی چناچه دفرعون په ملك باندې اوس قابض شوی یئ] ﴿وَّاٰتٰىكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ۝﴾ او تاسو ته یئ [بعضې بعضې] هغه څیزونه درکړی دی چه ددنیا [جهان] په خلقو کښې ئے چاته نه دی ورکړی [لکه په دریاب کښې درته لار درکول ستاسو د دښمن په عجیبه طریقې سره غرقول چه بیا ددې نه پس ناڅاپه د ډیر ذلت او زحمت نه ډیر لوړ والی او آرام ته ور اورسیدئ یعنی په دې کښې یئ تاسو ته خاص شان درکړو بیا ئې ددې تمهید نه پس د اصلی مقصود په باره کښې خطاب اوفرمائیلو چه] ﴿ يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ ﴾ ائې قومه زما [ددغې نعمتونو او احسانونو اقتضاء او غوښتنه داده چه تاسو هغې جهاد ته تیار شئ دکوم دپاره چه تاسو ته الله ﷻ حکم درکړې دې او] په دې برکتی ملك [یعنی دشام په دارالخلافه] کښې [چرته چه د عمالقو حکومت دے د جهاد په اراده] ورننوځئ چه الله ﷻ ستاسو په برخه کښې لیکلے دے [ځکه به یئ په قصد کولو سره سمدستی فتح کړئی] ﴿وَلَا تَرْتَدُّوْا عَلٰٓى اَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ۝﴾ او روستو [وطن اړخ ته] واپس مه راځئ چه بیا به بیخی په زیان کښې شئ [پدنیا کښې هم د ملك د زیاتیدو نه به بےنصیبه پاتې شئ او په آخرت کښې هم چه د فرض جهاد په پریښودو به ګناهګار پاتې شئ] ﴿قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّ فِيْهَا قَوْمًا جَبَّارِيْنَ ۖ﴾ وے وئیل ائې موسی ﷺ هلته خولوئې لوئې زورور خلق [اوسیږی] ﴿ وَاِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى يَخْرُجُوْا مِنْهَا ۚ﴾ او مونږ خو به هلته هیچرې پښه نږدو ترڅو چه هغوی [په څه شان سره] هلته نه او نه څی ﴿فَاِنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا فَاِنَّا دٰخِلُوْنَ۝﴾ البته که هغوی هلته نه بل ځائې ته لاړ شی نو مونږ بیشکه تلو ته تیار

یو [دحضرت موسی ﷺ د وینا د پخولو دپاره] ﴿ قَالَ رَجُلَانِ مِنَ الَّذِينَ يَخَافُونَ أَنْعَمَ اللَّهُ ﴾ هغه دوو سړو [هم] چه [دالله ﷻ نه په] وریدونکو خلقو [یعنی متقیانو] کښې شامل وو [او] ﴿عَلَيْهِمَا ادْخُلُوا عَلَيْهِمُ الْبَابَ ﴾ دغه کم همتو خلقو [ته دپوهولو په غرض] اوونیل چه تاسو په دوی باندې[دحمله کولو په غرض ددغې ښار] دروازې پورې خو ورشئ ﴿ فَإِذَا دَخَلْتُمُوهُ فَإِنَّكُمْ غَالِبُونَ ﴾ نوچه څه وخت په دروازه کښې ننه کیږدئ دغه وخت به غالب راشئ [مطلب دا چه زر تر زره به فتح شي یا خو به ستاسو د ویرې نه اوتښتي یا به لږه شان مقابله درسره اوکړي ﴿ وَعَلَى اللَّهِ فَتَوَكَّلُوا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ اوپه الله ﷻ باندې نظر لرئ که تاسو ایمان لرئ [یعنی تاسو دهغوی غټوغټو تنوته مه ګورئ خو پدغې خلقوددې پوهلو هیڅ اثر اونشو بلکه دغه دوه بزرګان خوئې دسره دخبرو کولو جوګه اونه ګڼړل او حضرت موسی ﷺ ته یئ بې پروائی او په بې ادبئ] ﴿ قَالُوا يَا مُوسَىٰ إِنَّا لَن نَّدْخُلَهَا أَبَدًا مَّا دَامُوا فِيهَا ﴾ ورته یئ اوونیل چه ائې موسی ﷺ [مونږ خویوه خبره کړیده چه مونږ به] هیچرې کله هم هلته کښې قدم نږدو تر څو چه دغه خلق هلته [موجود] وی [اوکه هسې جنګیدل کول ضروری وی] ﴿ فَاذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا ﴾ نو بیا تاسو او ستاسو پروردګار لاړ شئ او دواړه [ورسره] جنګ جګړه اوکړئ ﴿ إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ ﴾ مونږ خو ددې ځائې نه خځ [هم] هیڅ ښودنه نه خورو [حضرت موسی ﷺ ډیر زیات بې طبیعته او پریشانه شو او چه تنګ شو نو] ﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّي لَا أَمْلِكُ إِلَّا نَفْسِي وَأَخِي ﴾ دعا ئې اوکړه ائې زما پروردګاره [زه څه اوکړم پدوی مې هیڅ وس نه رسی] یواځې پخپل ځان او پخپل رور باندې البته [پوره] اختیار لرم ﴿ فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ ﴾ نوتاسو زمونږ د دواړو [رونړو] او ددې نافرمانه قوم ترمینځه [مناسبه] فیصله اوکړئ [یعنی دچا حالت سره چه څه سمون خوری هم هغسې اوکړئ ارشاد اوشو [ښه ده] ﴿ قَالَ فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ أَرْبَعِينَ سَنَةً ﴾ نو [مونږ دا فیصله کوو چه] دغه وطن به ددوی لاس ته څلویښت کاله نه ورځی [او ترڅلویښتو کالو پورې به] ﴿ يَتِيهُونَ فِي الْأَرْضِ ﴾ په زمکه کښې سروهلی ګرځی [حضرت موسی ﷺ ددغې فیصلې په آوریدو بې طبیعته شو ولې چه دهغوی خیال دا وو چه معمولی زورنه به ورکړې شی نوارشاد اوشو چه ائې موسی هرکله چه ددې سرکشانو دپاره مودا سزا تجویز کړه هم دا ورسره مناسبه ده] ﴿ فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ ﴾ نوتاسو ددې نافرمانه قوم [په دې خراب حال لږ هم] غم مه کوئی.

## معارف او مسائل

ددې ذکرشوؤ آیتونو نه په وړاندې تیرشوی آیت کښې دهغې پوخ لوظ، قول ذکروؤچه دالله تعالی اودهغه درسولانو دفرمانبردارئ په باره کښې دبنی اسرآئیلونه اغستې شوې وؤ، ورسره د دوئ عام لوظ، ماتول اوپوخ لوظ، قول نه دخلاف کولو اوپه هغې باندې دسزاګانو بیان وو، اوس په دې آیتونو کښې د دوئ دلوظ ماتولو یوه خاص واقعه ذکرشویده،

هغه داده چه هرکله فرعون سره دلښکرپه سیند [دریاب] کښې غرق شو اوموسی ﷺ سره دخپل قومه دهغوئ دپنجې اوغلامئ نه آزاد شو اودمصر دحکومت مالکان شونو الله تعالی پردزیات انعام کولوپه غرض دشام په ملک هم دقبضې ورکولو دپاره دموسی ﷺ په ذریعه داحکم ورکړو چه دجهاد په نیت دې دوئ پاکې زمکې یعنی دشام په ملک ورننوځی اوورسره ئې

دازيرې هم ورکړو چه په دې جهاد کښې به کاميابي هم د دوئ وي، الله تعالى دغه برکتي زمکه د دوئ په برخه ليکلې ده، هغه به ضرورد دوئ ته په لاس ورځي، مګربني اسرائيل دلته هم دخپلو طبعي ناکاره خصوصياتو په وجه دلوظ پوره کولو نه پاتې راغلل حالانکه دوئ په خپلو سترګو دالله تعالى انعامات، دفرعون غرقيدل اود مصروغيره فتح کيدل ليدلي وو، ضديان وو، دشام دجهاد په باره کښې ئې دالله تعالى دحکم نه خلاف اوکړو، دقدرت له اړخه ورته ددې داسزا په برخه شوه چه ترڅلويښتو کالو پورې په يوه محدوده علاقه کښې ګيرپاتې شول، په ښکاره خوتريو خوابل خوا څه بنديزونه چاپيره شوى نه وو، خپې لاسونه ئې هم تړلې شوى نه وو بلکه په ډاګ ميدان کښې وو، واپس مصرته تلو دپاره به ئې دصبانه تربيګاه پورې سفرکولو خودخدائ په قدرت مابښام به بياهم هلته وژچرته نه به چه روان شوى وو، اوهم په دې دوران کښې حضرت موسى ﷺ اوحضرت هارون ﷺ دواړه وفات شو، په مخه بنى اسرائيل په دغه ميدان تيه کښې سروهلى بروهلى ګرځيدل اوالله تعالى ورته دغلته نورپيغمبران دهدايت دپاره راؤليږل،

په داسې ډول چه څلويښت کاله په دوئ تيرشول بياد دوئ کشرئ ذيلئ [اولاد] د پيغمبرپه مشرئ کښې د شام اوبيت المقدس دجهادقصداوکړو، په دې شان دالله تعالى دا وعده پوره شوه چه، دغه پاکه زمکه ستاسو په برخه ليکلې شويده.

دادهغه واقعې اجمال دې کومه چه په دې آيتونوکښې ذکرشويده، اوس ئې تفصيل په قرآنى الفاظوکښې اوګورئ،

هرکله چه حضرت موسى ﷺ ته دالله تعالى له اړخه دااجازت ملاؤشوچه خپل قوم ته دې دبيت المقدس اوشام ملک فتح کولو دپاره دجهادحکم ورکړئ، نوهغوئ ﷺ ددې حکم داؤرولونه وړاندې د پيغمبرئ دشان مناسب حکمت اونصيحت نه کاروا غستو، بنى اسرائيلوته ئې دالله تعالى هغه انعامات ورياد کړل کوم چه اوسه پورې وربانديې شوى وو، وې فرمائيل:

﴿اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَعَلَ فِيكُمْ أَنْبِيَاءَ وَجَعَلَكُمْ مُلُوكًا وَآتَاكُمْ مَا لَمْ يُؤْتِ أَحَدًا مِنَ الْعَالَمِينَ﴾ [دالله تعالى هغه فضل اوانعام رايادکړئ کوم چه په تاسوشوې دې چه ستاسو په قوم کښې ئې ډيرانبياء ﷺ اوليږل اوتاسوئې دوطن اوملک خاوندان جوړکړئ اوتاسوته ئې هغه نعمتونه دراوبخښل چه ددنياپه جهان کښې ئې چاته نه وو ورکړي]،

په دې کښې د دريؤنعمتونوبيان دې، رومبې نعمت پکښې روحانى اومعنوى دې يعنى په دغه قوم کښې انبياء ﷺ په ګڼرشمير کښې په مخه ليږلې شوى وو، چه دې نه بل زيات اخروى اومعنوى عزت نشى کيدې،

په تفسيرمظهرى کښې ئې نقل کړيدى چه په ګڼرشمير کښې د پيغمبرانوراتلل سوا د بنى اسرائيلونه په بل قوم کښې نه دى شوى([1])،

دحديث امام ابن ابى حاتم په روايت داعمش نقل کړيدى چه دبنى اسرائيلو په آخرى دور کښې، دحضرت موسى ﷺ نه ترحضرت عيسى ﷺ پورې يو [۱۰۰۰] پيغمبران ليږلې شوى وو([2])، په دې آيت کښې بل [دنيوى اوظاهرى] نعمت داذکرشويدې چه دوئ کښې ئې بادشاهان جوړکړل يعنى دملک اوبادشاهئ خاوندان ئې جوړکړل، په دې خبره کښې دا اشاره ده، چه هغه

---

[1]) تفسير مظهرى تحت هذه الآية: ج۳، ص۷۱

[2]) تفسير ابن ابى حاتم رقم الحديث: ۳۱۲۸ سورة الفرقان۔

بنی اسرائیل چه دموډ دوراسې دفرعون اوفرعونیانوغلامان او وینځې جوړ شوی وو، شپه اوورځ پرهغوئ ظلمونه کول، نن الله تعالی دهغوئ دښمن تباه و برباد کړواودوئ ئې دهغوئ دملک اوبادشاهئ خاوندان اوګرځول دلته په دې خبره کښې ژورفکرکول پکار دی چه دانبیاؤ ﷺ په باره کښې ئې داسې اوفرمائیل ﴿جَعَلَ فِيكُمْ أَنْبِيَآءَ﴾ [په تاسو کښې ئې ډیرخلق پیغمبران جوړ کړل] چنانچه دحقیقت مطابق دوئ کښې هریوکس پیغمبرنه وو بلکه څنې په کښې پیغمبران وو چه ټول قوم به دهغوئ ﷺ تابع وو ولیکن دملک اوسلطنت [حکومت] په باره کښې ئې اوفرمائیل: ﴿وَجَعَلَكُم مُّلُوكًا﴾ [تاسوئې بادشاهان جوړ کړئ] ددې ظاهری مطلب دا راوځی چه تاسوټول ئې بادشاهان جوړ کړئ لفظ ملوك د ملك جمع ده او ددې معنی په عرف عام کښې د بادشاه ده. حالانکه څنګه چه پیغمبرپه قوم کښې یوکس دوه وی دغه شان بادشاه هم پکښې یوکس نیم وی چه دغه قوم ئې تابع وی، یعنی نه هریوکس پیغمبروی اونه هریوکس بادشاه وی، لیکن قرآنی الفاظو دوئ لره بادشاهان اوبلل.

ددې یوه وجه داده چه بیان القرآن کښې دځنولویوعلماؤ ﷺ په حواله داسې بیان کړې شویده چه په عرف عام کښې دیوکس دبادشاه کیدوپه وجه دهغه ټول قوم ته ددغې بادشاهئ نسبت کیږی لکه داسلام په منځنوصدو [پیړیو] کښې چه دبنی امیه اوبنی عباس حکومت به چه بللې شو، دغه شان په هندوستان کښې به غزنوی اوغوری حکومت بللې شو، بیابه دمغلو حکومت بیا انګریزانوحکومت هم ټول قوم ته منسوب کیدو، په دې بنا، دیوکس دبادشاه کیدوپه وجه ددغې بادشاهئ اوحکومت نسبت ټول قوم ته کیږی،

ددغې محاورې په جوړ، دبنی اسرائیلوټول قوم ته قرآن کریم ملوک [بادشاهان] اوفرمائیل، په دې کښې اشاره دې خبرې ته هم کیدې شی چه اسلامی حکومت په حقیقت کښې عوامی حکومت وی، هم عوام داحق لری چه خپل امیراوامام [بادشاه] هم دوئ پخپله اوټاکی اوهم دغه عوام ئې په خپلې اجتماعی رائې سره معزوله کولې هم شی، لهذا اګرچه دشکل اوظاهرپه لحاظ یوکس حکمران اوبادشاه وی مګرپه حقیقت کښې حکومت دعوامو وی،

ددې بله وجه په تفسیرمظهری اوابن کثیرکښې دځنې پخوانوبزرګانونه نقل شویده چه د[ملک] [لفظ] د[بادشاه] په نسبت زیات عام دې داسې کس ته ملك وائی چې هغه ښه آسوده حال وی، مکان، جائیداد، نوکران اوخادمان وغیره لری، په دې بناهرکله چه د بنی اسرائیلوهم هر فرد دملك کیدلو مصداق وؤ او ودان آبادووځکه ئې ټولوته [ملوک] اوفرمائیل[1]،

په دې آیت کښې دریم نعمت داسې ذکرشویدې چه معنوی اوظاهری دواړوقسمونو لره شامل دې لکه فرمائی:

﴿وَآتَاكُم مَّا لَمْ يُؤْتِ أَحَدًا مِّنَ الْعَالَمِينَ﴾ [تاسو ته ئې هغه نعمتونه دراوبخښل چه ددنیاپه جهان کښې یې چاته نه دی ورکړې، په دې نعمتونو کښې معنوی شرافت، نبوت اوپیغمبری هم داخله ده، اوظاهری حکومت، سلطنت اومال دولت هم، البته دلته داسوال کیدې شی چه دقرآن کریم د نص له مخې امت محمدیه په ټولو امتونو کښې زیات غوره دې ولې چه دقرآن کریم دا ارشاد ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾ او ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا﴾ ددې ګواه دې اود پیغمبر د احادیثو

[1]) تفسیر مظهری تحت هٰذه الآیة: ج ٣، ص ٧١، تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ٢، ص ٥٣

ډیرو روایتونه ددې تائید کوی جواب دادې چې په دې آیت کښې ددنیا د هغه خلقو ذکر دی چې د بنی اسرائیلو نه د موسی ﷺ په زمانه کښې موجود وو. ردغه وخته پورې په ټوله دنیا کښې بل چاته دغه نعمتونه نه وو ورکړې شوی کوم چه دغه بنی اسرائیلوته ورکړې شوی وو په آئنده [راتلونکی] وخت کښې که یو امت [مثلاً امتِ محمدیه] ته دې نه زیات نعمتونه ورکړې شونو داورسره بې سمونه کیږی نه،

ددې آیتونو څنې په رومبی آیت کښې دحضرت موسی ﷺ ذکرشوي قول ددې حکم د بیانولو تمهید وو کوم چه په ورپسې آیت کښې داشان دې: ﴿يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ﴾ [اې زما قومه تاسو په دې مقدسه زمکه ورننوځئ چه الله تعالی ستاسو په برخه لیکلې ده]،

**ارضِ مقدسه نه شومه زمکه مراد ده:** د [ارضِ مقدسه] په باره کښې دمفسرینو ﷺ مختلف اقوال دی چه په ظاهره یو بل سره سمون نه خوری، څنوتر [بیت المقدس] څنوتر [قدس ښار او ایلیا] مراداغستی دی، څنوتر [اریحاښار] مراداغستې دې چه داردن دسیند او بیت المقدس ترمنځه ددنیا یو ډیر پخوانې ښار وو او تراوسه پورې موجوددې، دحضرت موسی ﷺ په زمانه کښې ددې دلویئ اوفراخئ ډیرزیات عجیبه حالات نقل کړې شویدی،

په څنوروایتونوکښې ددې ښارزربرخې [واړه ونه] بیان شویدی چه په هره یوه برخه کښې زر زرباغونه وو، په څنې روایتونوکښې راغلی دی چه [ارضِ مقدسه] نه مراددمشق اوفلسطین اودځنوپه نزد[اردن] مراد دې. حضرت قتاده ﷺ فرمائیلی دی چه دشام ټول ملک [ارضِ مقدسه] دې، [کعب احبار] فرمائیلی دی چه مادالله تعالی په کتاب [غالباتورات] کښې لیدلی دی چه دشام ملک په پوره زمکه کښې دالله تعالی خزانه ده اوپه دې کښې دالله تعالی مخصوص اومقبول بندګان دی، دې زمکې ته [مقدسه] ځکه وئیله شویده چه دادانبیاء ﷺ وطن اوډیری ځائې پاتې شویدې، په څنې روایتونو کښې راغلی دی چه، یوورځ حضرت ابراهیم ﷺ د [لبنان] په غرختلې وو، الله تعالی ورته ارشاد اوفرمائیلو چه اې ابراهیم ﷺ، دې ځائې نه ته نظرواچوه، ستادنظررسیدوپورې موټوله [زمکه مقدسه] اوګرځوله. داټول روایتونه د تفسیرابن کثیراوتفسیرمظهری نه نقل کړې شویدی[1]، صفااوښکاره خبره داده چه په دې ټولو روایتونو کښې یوتربله تعارض اوټکرنشته، دآخری روایتونو مطابق، دشام ټول ملک [ارضِ مقدسه] ده، چوچادِ [شام] ټول ملک ته [ارضِ مقدسه] اووئیل اوچا، ددې یوې برخې ته،

﴿قَالُوْا يٰمُوْسٰى﴾ ددې نه په وړاندې آیت کښې الله تعالی، بنی اسرائیلوته دحضرت موسی ﷺ په ذریعه، عمالقه، قوم سره دجهادکولو او د شام ملک دفتح کولوحکم ئې ورکړې وواو ورسره ئې ورته دازیرې هم ورکړې ووچه دشام ملک زمکه، الله تعالی ددوئ دپاره لیکلې ده، ځکه ئې فتح کیدل یقینی دی. اوس په دې آیت کښې دابیان دې چه بنی اسرائیلوسره ددې خپلې مشهورې سرکشئ اوکوږ طبیعتئ له کبله داحکم هم اونه منلو، بلکه موسی ﷺ ته ئې داسې اووئیل چه، په دې ملک خود ډیرو مضبوطو خلقو قبضه ده، مونږ خوبه دغې زمکې ته ترهغې ورنشو، ترڅو چه دغه خلق هلته پاتې کیږی البته که هغوئ تربل چرته لاړل نوهله به دغلته ورتلې شو،

---

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ٢، ص ٥٥، تفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ٣، ص ٧١

د واقعه د تفسير د امامانو حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما، عكرمه رحمه الله، او علي ابن ابی طلحه رحمه الله وغيرنه داسې نقل كړې شويده چه دغه د شام او بيت المقدس علاقه، د [عمالقه] قوم په قبضه كښې وه چه د قوم عاد د نسل نه وو، ډير غټ غټ او مضبوط جسمونه ئې لرل، ډير رعبدار او لوړ لوړ خلق وو، د دوئ سره د جهاد كولو حكم حضرت موسى عليه السلام او قوم ته ئې وركړې شوې وو، د دغې حكم سرته رسولو د پاره حضرت موسى عليه السلام، سره د خپل قوم، بني اسرائيلو، د شام ملك اړخ ته روان شو، او تلل ئې بيت المقدس ته وو، د اردن سيند نه چه پورې وتل او د دنيا د ټولو نه زيات پخوانى ښار ته اورسيدل نو هلته تيكاؤ شوا و د بني اسرائيلو د انتظام د پاره د دولسو سردارانو ټاكل د قرآن كريم په تيرو شوؤ آيتونو كښې بيان شويدى، دغه سرداران يو اځې د دغې قوم او د محاذ جنګ د حالاتو معلومولو د پاره حضرت موسى عليه السلام راوليږل، دغه سرداران بيت المقدس ته په رسيدو د دغه ښار نه بهر د عمالقه قوم يو سړي سره ملاؤ شو، هغه ټول بنديان كړل او ځان سره ئې خپل بادشاه ته پيش كولو د پاره بوتلل، بادشاه ته ئې او وئيل چه دا خلق مونږ سره جنګ كولو د پاره راغلى دى، په شاهى دربار كښې د دوئ په وژلو يا په بلې سزا وركولو مشوره اوشوه خو فيصله د دوئ په خوشى كولو په دې غرض اوشوه چه خپل قوم له د عمالقؤ د رعب او مضبوطوالى نه خبر كړى او دوئ داسې قسم ګواهان ثابت شى چه دغه خلق بيادې اړخ ته د راتللو قدرې جوګه هم پاتې نشى. په دې موقعه د تفاسيرو په اكثرو كتابونو كښې د اسرائيلى روايتونو اوږدې اوږدې قيصې بيان كړې شويدى، په دغې روايتونو كښې يو روايت دا هم دې چه دغه بهر ملاو يدنكې سړې عوج بن عنق وو، د هغه لوړوالي طاقت او قوت د ومره بې انتهاء بيان كړې شويدې چه يو هوښيار بنده د هغې نقل كولو ته هم نه تياريږي.

د تفسير امام ابن كثير رحمه الله فرمائيلى دى چه په دغه اسرائيلى روايتونو كښې كومې قيصې چه د [عوج بن عنق] په باره كښې بيان كړې شويدى، هغې لره نه عقل قبلولې شى او نه په شريعت كښې د هغې څه جواز شته، بلكه دا ټول دروغ او د ځانه جوړې كړې خبرې دى[1]، البته دومره قدرې خبره ده چه عمالقه قوم چونكه د قوم عاد د نسل نه وو د هغوئ هيبتناک لوړوالى او جوثې پخپله قرآن كريم هم بيان كړيدى، د دغې قوم د مهلت ډول، د قوت او طاقت مثال به وركولې شو، چنانچه د دوئ څخه يو كس يو اځې، د بني اسرائيلو د دولسو سردارانو په ګرفتارولو او خپل بادشاه ته ئې په پيش كولو قادر شو. خير دغه دولس سرداران چه راخوشى كړې شو نو خپل قوم ته د [اريحا] په مقام راؤرسيدل، حضرت موسى عليه السلام ته ئې د دغه قوم د حد نه زيات مضبوطوالي او عجيبه عجيبه حالات بيان كړل، د حضرت موسى عليه السلام په زړه باندې خو د دغه خبرو پوټې قدرې اثر هم څكه او نه شو چه الله تعالى ورته د وحى په ذريعه د فتح او كاميابۍ زيرې آؤرولې وو، لكه اكبر آبادي وئيلى دى؟

مجھ کو بیدل کردے ایسا کون ہے؟ — یاد مجھ کو اَنۡتُمُ الۡاَعۡلَوۡنَ ہے

داسې څوک دې چه ما لره به بې زړه كړې شى، ولې چه ما ته [د الله تعالى] وعده د [وَاَنۡتُمُ الۡاَعۡلَوۡنَ اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ] ياد ده].

حضرت موسى عليه السلام د دوئ د قوت، مضبوطوالى او رعب، د اب د حالاتو په آؤريدو هم په خپل ځائ

---

[1]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٣، ص ٤٦

لکه دغرتینګ ولاړوو، اوجهاد په فکر کښې لګیاوو، خوداویره ورته ضروروه، چه که بنی اسرائیلوته دعمالقه قوم دغه حالات خپلو دغه سردارانو بیان کړل نوبنی اسرآئیل به زړه اوبیلی، په دې وجه ئې دغه سردارانو ته اوفرمائیل چه دغه حالات دې خپل قوم بنی اسرآئیلوته نه بیانوی اوپټ دې ئې ساتی، خوداسې اوشوچه دغه سردارانو کښې هریوخپل خپل دوستان په پټه ددغه حالاتونه خبرکړل، په دوئ کښې صرف دوه کسان [سرداران] داسې ووچه هغوئ دحضرت موسی ﷺ په هدایت عمل اوکړو، او دغه رازئې چاته ښکاره نکړو په دوئ کښې دیونوم [یوشع بن نون] اودبل نوم [کالب بن یوقنا] وو.

هر کله چه لسو سردارانو دغه رازښکاره کړې وونو دهغې خوریدل یقینی اوقدرتی خبره وه، بنی اسرآئیل په دې خبرو ډیر غمژن شو، په ژړا، انګولا سرشو، اووئیل ئې چه دې نه دا ښه وو چه دفرعونیانو په شان مونږه هم په دریاب لاهوشوې وې، هلته نه ئې راخلاص کړو، اوس مو دلته وژنی، اوداسې ئې هم اووئیل [﴿یٰمُوْسٰۤى اِنَّ فِیْهَا قَوْمًا جَبَّارِیْنَ ۖ وَاِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى یَخْرُجُوْا مِنْهَا﴾] [اې موسی ﷺ، دغلته خو ډیر زورور قوم آباد دې چه مقابله ئې مونږه نشوکولې]، ددې کبله ترڅو پورې چه هغوئ دغلته موجوداوآباد وی نوهلته به مونږدتلونوم نه اخلو، وروسته آیت کښې دافرمائیلې شویدی چه په کومو دوؤکسانو، الله تعالی انعام کړې ووهغوئ دبنی اسرآئیلو په دې خبروآؤریدووورته دنصیحت په ډول اووئیل چه [اول نه ولې دویرې مرئ] لږ شان خوروان شئ د [بیت القدس] دروازې پورې وراورسئ، زمونږیقین دې چه ستاسو دومره کول به هم ستاسو دفتح اوبری سبب جوړشی، دبیت المقدس په دروازه ورننوتو سره به سمدستی غالب شئ اودښمن به په ماتې خوړوسره تیښته اوکړی،

داکثرومفسرینو ﷺ په نزددغه دوه کسان نصیحت کوؤنکی هغه سرداران ووچه د حضرت موسی ﷺ په خبره ئې عمل کړې وواودعمالقوؤ حالاتورازئې خپل قوم ته نه وو ښکاره کړې، یعنی دغه دواړه حضرات [یوشمع بن نون]، او، کالب بن یوقنا] وو،

دلته قرآن کریم ددغې دواړوبزرګانو، دوه صفتونه په خاص شان سره بیان کړیدی یو داچه ﴿اَلَّذِیْنَ یَخَافُوْنَ﴾ [داسې خلق چه ویریږی] اګرچه دلته دانه دی بیان شوی چه چانه ویریږی؟ اشاره دې اړخ ته ده چه په ټول جهان کښې یواځې یوذات داسې دې چه دهغه نه دې ویره اوکړې شی، دې ذات نه مراد الله تعالی دې چه ټول کائنات اومخلوقات دهغه په قدرت کښې دی، دهغه د خوښې اواجازت نه بغیر څوک چاته یو ذره فائده یا یو ذره نقصان نشی رسولې، هرکله چه دا ذات صرف یوذات کیدې شی چه بیخی ښکاره دې نودهغه دښکاره کولو اوټاکلو څه ضرورت پاتې نشو،

ددغې بزرګانوبل صفت قرآن کریم داښودلې دې: ﴿اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَیْهِمَا﴾ [الله تعالی په دغې دواړو انعام کړې وو] دې خبره کښې دې ته اشاره ده چه په هرچاکښې چه خیرښیګړه موندې شی داټول دالله تعالی انعام او ورکړه ده، ورنه ددغې دولسو سردارانو ظاهری قوتونه، لاسونه، خپې، سترګې، غوږونه او باطنی قوتونه، عقل، هوش وغیره اوبیادحضرت موسی ﷺ صحبت او ملګرتیا ټولوته حاصله وه، خو سره ددې نورټول اوښوئیدل یواځې دغه دوه کسان په خپل ځائې ټینګ پاتې شول. دې نه معلومه شوه چه اصلی هدایت دانسان په ظاهری اوباطنی قوتونو باندې اډانړه نه دې بلکه دالله تعالی انعام دې، البته دې انعام دپاره کوشش اوعمل

کول ضروری شرط دي. دي نه داهم معلومه شوه چه انسان دي د الله تعالی په ورکړي عقل، هوش دانايئ اوهوښيارتيا او په نورو طاقتونو فخراو ناز نه کوی، بلکه يو اخې دالله تعالی نه دي نيکی او هدايت طلب کوی، لکه عارف رومی فرمائی،

فهم وخاطر تيزکردن نيست راه　　جز شکسته می نگيرد فضل شاه

اپوهه اوزړه تيزول لار امونډل] نه ده، سوا ددي نه دبادشاه فضل مونډل نشی کيدي چه خان ورته او نه سپاري].

خلاصه دخبري دا شوه چه دغه دوؤ بزرګانو خپلو خلقوته دا نصيحت اوکړو چه دعمالقۇ دظاهري قوت اورعب نه مه ويريږئ، که په الله تعالی موتوکل اوکړونو دبيت المقدس دروازې ته په رسيدو به فتح او غلبه هم ستاسو وی، ددې خبرې دوه وجې کيدې شی ① يو دا چه قوم غټې او مضبوطې جوثې لری، دډير قوت اورعب خاوندان دی مګر په زړونو کمزوری دی چه دچپاؤ اود حملې دخبر په آوريدو به هغوئ تينګ نشی، ② او دا وجه ئې هم کيدې شی چه په هغې وحی ئې پوره يقين وؤ چه حضرت موسی ؑ ته دالله تعالی له اړخه دزيری په ډول رااليږلې شوې وه،
هرکله چه بنی اسرآئيلو دخپل پيغمبر حضرت موسی ؑ خبره واؤنه ريده نو ددغه دواړو بزرګانو خبره به ئې څه آوريدلې وه، بيائې دا جواب په ډيرې ضد سره ورکړو چه: ﴿فَاذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ﴾ [تاسو ؑ او ستاسو ؑ خدائې دي لاړشی هغوئ سره دې جنګ اوکړی، مونږ خو به هم دلته ناست يو] ، که دبنی اسرآئيلو دا کلمه دټوقو مسخرو په ډول وې نو ښکاره دکفر کلمه وه، خودې نه پس هرکله چه حضرت موسی ؑ دوئ سره يو ځائ استوګنه کوله، دوئ دپاره ئې په ميدان تيه کښې دعاګانې کولې، څنګه چه په راتلونکی آيت کښې بيان شويدی، نو دا خبرې ددې دليل دې چه د ټوقو مسخرو په غرض ئې داسې نه وو وئيلی بلکه مطلب ئې دا وو چه [تاسو ؑ حضرت موسی ؑ هغوئ [عمالقۇ] سره جنګ کولو دپاره لاړشئ، ستاسو ؑ پروردګار به ستاسو مدد کوی، مونږ خود رسره د مدد کولو نه پاتې راغلو، په دې اعتبار سره د دوئ دا خبره دکفر دحد نه اووتله اګرچه جواب ئې ډيربې کاره او زړه آزاروونکې دې، همدغه وجه ده چه دبنی اسرآئيلو دا کلمه ديو مثال ورکولو په ډول مشهوره شوه،

دبدر په غزا کښې دتش لاسواو اوږو مسلمانانو په مقابله کښې هرکله چه ديو [۱۰۰۰] زرو وسله دارو خلمولښکرا اودريدو او رسول الله ﷺ دهغې په ليدو دخپل رب نه دعاغوښتل شروع کړل نو حضرت مقداد بن اسود ؓ صحابی، راوړاندې شو او غرض ئې اوکړو، اې رسول الله ﷺ، په خدائې مې دې قسم وی، مونږ به هيچرې هغه خبره اونکړو کومه چه دحضرت موسی ؑ قوم هغوئ ؑ ته داسې کړې وه،
﴿فَاذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ﴾ بلکه مونږ به ستاسو ﷺ ښی، ګس [چپه] ، وړاندې [مخ ته] ، روستو [هر اړخ ته] دهغوئ په بيرته تمبول کوؤ، لهذا تاسو ددې فکرمه کوئ اودمقابلې تياری اوکړئ،

رسول الله ﷺ ددې په آوريدو ډيرزيات خوشحاله شو او په صحابه کرامو ؓ کښې هم د جهاد يو نوې جوش راپيدا شو، حضرت عبدالله بن مسعود ؓ به هميشه فرمائيل چه دحضرت مقداد بن اسود په دې کارنامه زه ډيررشک لرم، کاش، دا خوش قسمتی زما په برخه وې،

دخبرې خلاصه دا شوه چه دحضرت موسى ﷺ قوم هغوئ ﷺ ته په داسې نازکه موقعه بانديې په بيکاره جواب ورکولوسره خپل ټول لوظونه او قولونه مات کړل،

**دقوم ډېره زيانه بې وفائي اودحضرت موسى ﷺ بې ځجه مضبوطه اراده اوټلب پاتې کيدل:** ﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي لَآ أَمْلِكُ إِلَّا نَفْسِي﴾ دبنی اسرآئیلوتیرشوی حالات او واقعات او دوئ سره دالله تعالى او دحضرت موسى ﷺ د معاملاتوخبر اغستونکې که په سرسری نظرسره هم داخبره مخې ته راولې چه کوم قوم [بنی اسرآئيل] چه دصدوراسې دفرعون په غلامئ کښې قسماقسم ذلتونه اوعذابونه برداشت کول،دحضرت موسى ﷺ په تعليم اودهغې په برکت الله تعالى دوئ لره دکوم ځائې نه،کوم ځائې ته وراورسول،دهغوئ دسترګومخې ته دالله تعالى دکامل قدرت ځنګه ځنګه نندارې اوکړې شوې،فرعون او فرعونيانو دحضرت موسى ﷺ اوهارون ﷺ دلاسه په خپل قائم کړی دربارکښې ځنګه ښې ماتونکې ماتې اوخوړه؟په کوموساحرانو ، جادوګرانوچه فرعون اوفرعونيانوملاتړله،هغوئ په حضرت موسى ﷺ ايمان راؤړواودزړه داخلاصه دهغوئ ﷺ تابعدارشو ،بيادخدائيي ددعويدار، فرعون نه اوپه شاهى محل کښې داوسيدونکو فرعونيانونه،دالله تعالى غالب قدرت،په څه شان ټول محلونه مکانونه اود هغوئ سازوسامان دهغوئ نه په يووخت خالى کړل،اوپه څه شان ئې دبنی اسرآئيلودسترګوپه وړاندې هغوئ په درياب کښې لاهوکړل اوپه څه شان ئې په معجزانه ډول،بنی اسرآئيل د درياب نه پورې ويستل،په څه شان ئې هغه دولت اوهغه پوره ملک بغيردڅه جنګ جګړې نه بنی اسرآئيلوته ورکړوپه کوموچه به فرعون په داسې شان فخرکولو ﴿أَلَيْسَ لِي مُلْكُ مِصْرَ وَهَٰذِهِ الْأَنْهَارُ تَجْرِي مِن تَحْتِي﴾ په دې ټولو واقعاتوکښې دالله تعالى دغالب قدرت نندارې ددغې قوم مخې ته راغلې،حضرت موسى ﷺ دغه قوم،اول دغفلت اوجهالت نه،بيادفرعون دغلامئ نه آزادولوکښې ډيرزيات تکليفونه په سر واغستل، سره ددې ټولونه هرکله چه دې قوم ته دالله تعالى دانعاماتو او امدادونودوعدوسره دشام په ملک باندې دجهادکولوحکم ملاؤشونودغه خلقوخپل رذيلتوب په داسې ويناکولوسره سرګند کړو،

﴿اذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ﴾ ددنيالوئ نه لوئ اصلاح کوونکې دې خپل زړه اولتوی او اودې ګوری چه ددغې حالاتو او ورپسې دقوم ددغې حرکتونو اوناکردوبه په هغه څه اثروی؟مګردلته خودالله تعالى اولوالعزم پيغمبردې چه داستقامت غرجوړشوې په خپل شغل کښې لګيادې،دقوم د وعدو ماتولو اوعدوهيرولودجارى عمل نه هرکله چه تنګ شونودخپل پروردګارپه وړاندې ئې صرف دومره عرض اوکړو: ﴿رَبِّ إِنِّي لَآ أَمْلِكُ إِلَّا نَفْسِي وَأَخِي﴾ [دخپل ځان او رور نه سواپه بل چااختيارنه لرم] ،عمالقؤ سره دجهادمهم ځنګه سرته اورسوم؟،

دلته دې خبرې باندې هم ژورنظراچول پکاردی چه په بنی اسرآئيلوکښې کم ناکم دوه کسان سرداران [يوشع بن نون] او[کالب بن يوقنا] داسې ووچه دحضرت موسى ﷺ په هدايت ئې دعمالقؤپه باره کښې رازنه وونښکاره کړې،دخپل قوم په پوهولواوپه سمه لار باندې راوستلوپه کوشش کښې حضرت موسى ﷺ سره په مخه شريک پاتې شوی وو ،خو دغه وخت ئې ددغه دوؤکسانوذکرهم په دې وجه اونکړوچه داهم دبنی اسرآئيلودقوم غړی وو دقوم د نافرمانئ او وعدې ماتولوپه وجه ئې چه الله تعالى ته عرض کړې وو ،يوااخې دحضرت هارون ﷺ ذکرئې ځکه اوکړوچه دپيغمبرئ په وجه هغه دګناه نه پاک وو ،په حق باندې ټينګ پاتې

کیدل دهغه یقینی وو اودغه دواړه دګناهونو نه پاک نه وو خکه ئې دغم اوغصې په حالت کښې د دوئ ذکرا ونکړو اوداسې ئې اوفرمائیل چه دخپل ځان او خپل رورنه سوا په بل هیڅاځه اختیارنه لرم اوداسې دعائې اوکړه،

﴿فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفٰسِقِينَ﴾ ازمونږ دواړو اوزمونږ دقوم ترمنځه هم ته فیصله اوکړې! د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دتفسیر مطابق ددې دعاحاصل دا وو چه دې خلقوته هغسې سزاورکړې د کومې چه دوئ حقداردی، اوموږ چه دکوم صورت حال مستحق یو مونږ ته هغه راکړې، الله تعالی دا دعا په دې شان قبوله کړه څنګه ئې چه فرمائیل ﴿قَالَ فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ أَرْبَعِينَ سَنَةً يَتِيهُونَ فِي الْأَرْضِ﴾ ادشام ملک زمکه په دوئ باندې څلویښتوکالودپاره حرامه کړې شوه اوس دوئ هلته نشي تلې اګرچه ورته تلل غواړي! اوبیائې یواځې دشام ملک ته نه، بلکه دمصر ملک ته به هم نشي تلې اودې میدان کښې به دوئ نظربند کړې شي،

دالله تعالی داسزاکانودپاره نه خوپولیس اونه خو هتکړئ شرط دی، نه ئې دجیلخانې مضبوط دیوالونو اوداوسپنې دروازوته ضرورت شته، بلکه کله چه الله تعالی چا لره نظربند کول اوګیرول اوغواړي نوپه ډاګ میدان ئې هم بندولې شي، سبب ئې ښکاره داسې دې چه ټول کائنات دهغه پیدا کړې شوی اومحکوم دی کله چه دغه کائناتوته دچاد بندی ساتلوحکم اوشي نوټوله هوا، فضا، زمکه اومکان هغه دپاره دجیل داروغګان جوړشي.

خاک بادوآب وآتش بنده اند بامن وتومرده، باحق زنده اند

اخاوړې باد، اوبه او اور دالله تعالی بندیګانان دی، مااوتاته بې ساه ښکاري، خود الله تعالی په نزد ژوندی دی!

دغه میدان تیه دمصراوبیت المقدس په منځ کښې واقع ووچه دحضرت مقاتل دتفسیر مطابق دیرش فرسخه اوږد اونهه فرسخه پلن دې، که یوفرسخ درې میله اوګڼلې شي نولس کم سل میله اوږدوالې او اوویشت میله پلن والې ئې جوړیږي اودځنې روایتونو مطابق صرف دیرش میله اوږد اواتلس میله پلن دې، الله تعالی په دې مختصراو خلاص میدان کښې، دحضرت مقاتل دبیان په جوړشپږ لکه خلق داسې بندیان اوساتل چه څلویښتوکالو پورې ئې پکښې دامنډې تررې وهلې چه په څه شان سره تربیت المقدس ته لاړشي یامصرته واپس لاړشي خونتیجه به ئې داوه چه دټولې ورځې دسفرنه روستوبه چه کله ماښام شونو ورته به معلومه شوه چه سره دګرځیدوراګرځیدودوئ هم هغه ځائې ته رارسیدلی دی چرته نه چه روان شوی وو.

دتفسیرعلماؤ رحمهم الله فرمائیلی دی چه الله تعالی قوم ته دهغوئ دبدعملئ مناسب سزاورکوی، هرکله چه دغې نافرمان قوم دغه کلمه وئیلې وه ﴿إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ﴾ امونږبه هم دلته ناست یو! الله تعالی هم ددغې په سزاکښې څلویښت کالوپورې هم دغلته قید اولرل، په دې باره کښې تاریخی روایتونه مختلف دی چه ددغې څلویښتوکالوپه موده کښې دبنی اسرآئیلوټول نافرمانه نسل فناشوې وواودوئ پسې نوې نسل ئې څلویښت کاله پس بیت المقدس ته داخل شوې وو، یا ددغه نافرمانه خلقونه هم ورسره څوک پاتې شوی خلق هلته ته تلی وو؟ به هرحال قرآن کریم خویوداوعده کړې وه چه ﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ﴾ یعنی دشام ملک الله تعالی دبنی اسرآئیلوپه برخه لیکلې

دي، او دا وعده په دې شان ضرور پوره کيدل وو، چه دبني سرآئيلو دقوم به په دغه ملک قبضه او تسلط وی، مگر دبني اسرآئيلو موجوده کسانو په نافرمانئ کولو سره دغې خداوندی انعام نه شاکره چه دغه سزائې ورکړې شوه: [مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ أَرْبَعِيْنَ سَنَةً] يعنی څلويښتو کالو پورې هغوئ دارضِ مقدسه دفتح کولو نه محرومه کړې شو، بيا چه ددوئ نه نوې نسل پيدا شو دهغوئ په لاس دغه ملک فتح شو او دالله تعالى وعده پوره شوه،

په دغه ميدانِ تيه کښې حضرت موسى ﷺ او حضرت هارون ﷺ هم خپل قوم سره وو، دقوم دپاره ئې دغه ميدان دقيد او سزا او وه او دوئ دواړو دپاره دالله تعالى دنعمتونو د شکاره کيدو ځائې وو. چنانچه په دغه څلويښت کليز دور کښې هم، الله تعالى دغې قوم لره ددغې دواړو پيغمبرانو په برکت سره، په قسما قسم نعمتونو سره او پالل، دډاګ ميدان دنمر [دتاؤ] نه چه تنګ شو، دموسى ﷺ په دعا سره پرالله تعالى دوريځو تمبو جوړ کړو، ځنګه به چه دوئ ګرځيدل راګرځيدل ورسره ورسره به ئې وريځ هم دسر دپاسه روانه وه دتندې او داوبو دکموالی له کبله چه تنګ شو، نو حضرت موسى ﷺ ته الله تعالى داسې يو کانړې ورا وښودلو چه هرچرته به ورسره وو، کله به چه ورته داوبو ضرورت وو نو حضرت موسى ﷺ به پرې خپله همسا او وهله او دولس چينې به دهغې نه جارى شوې، چه دلوږې نه تنګ شو نو آسمانى خوراکه [مَن] او [سَلوى] پرنازله کړې شوه، دشپې دتيرې شکايت چه ورته پيدا شو نو الله تعالى دوئ دپاره درنړا يو مينار اودرولو چه دهغې په رڼا کښې به ټولو کار روزګار کولو، غرض دا چه په دغه ميدانِ تيه کښې يو اخې دغه سزا موندونکی خلق نه وو بلکه دالله تعالى دوه شکلی پيغمبران او ورسره دوه مقبول بزرګان [يوشع بن نون] او [کالب بن يوقنا] هم وو، دهغوئ په برکت دسزا په دغه زمانه کښې هم پردغه انعامات په مخه کيدل، الله تعالى رحيم الرحماء دې ممکنه ده چه دبني اسرآئيلو دغه کسانو هم، ددغې حالاتو په ليدلو کتلو سره دخپلې ګناه او خپل جرم نه توبه کړی وی او دهغې په بدل کښې ورته دغه انعامات ورکړې شوی وی،

دصحيح رواياتو په جوړ په دغه څلويښت کليز دور کښې اول حضرت هارون ﷺ وفات شو د هغې نه شپږ مياشتې يا يو کال پس حضرت موسى ﷺ وفات شو، ورپسې الله تعالى حضرت [يوشع بن نون] لره پيغمبر جوړ کړو او دبني اسرآئيلو دهدايت دپاره ئې ورته حکم او کړو، چه دغه څلويښت کاله قيد ئې ختم شو، نو دبني اسرآئيلو پاتې نسل دحضرت يوشع بن نون په مشرئ کښې د [بيت المقدس] دجهاد دپاره روان شو، دالله تعالى دوعدې مطابق، د [شام] ملک دهغوئ په لاس فتحه شو او ددغې ملک بې کچه دولت دهغوئ لاس ته ورغلو،

په آخر دآيت کښې ئې او فرمائيل: ﴿فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ﴾ اې په دغسې نافرمان قوم باندې تاسو زړه مه سوځوئ! وجه ئې دا وه چه پيغمبران ﷺ دخپل امت تکليف او پريشانی ځکه نشی زغملې چه ډيرزړه سواندی او نرم طبيعتی وی، که امت ته ئې سزا ورکولې شی نو په هغې هم دلګير کيږی، په دې وجه حضرت موسى ﷺ ته دا تسلی ورکړې شوه چه زړه مه خفه کوئ.

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ

|او بیان کړه| په دوئ باندې

| .............او دوئ ته د

نَبَاَ ابْنَىْ اٰدَمَ بِالْحَقِّ ۘ اِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ

قیصه| ددوارو خامنو |دآدم عليه السلام| په حقه سره | کله چې | اوکړه دواړو| قربانی| نوقبوله کړې شوه

آدم عليه السلام د دوؤ خامنو رښتونې قصه واوروه | ...........کله چې دواړو قربانی اوکړه |نو د یو قربانی قبوله

مِنْ اَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْاٰخَرِ ؕ قَالَ لَاَقْتُلَنَّكَ ؕ

دیوددې دواړو نه اوقبوله نۀ کړې شوه | دبل نه |اوونیل هغه [قابیل]|چې خامخابه زۀ قتل کړم تا

شوه د بل قربانی قبوله نشوه| ......................... [قابیل] اوونیل چې زه به دې مړکړم

قَالَ اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ ۝ لَئِنْۢ بَسَطْتَّ اِلَيَّ

اوونیل[هابیل]|چې بیشکه| قبلوی الله| دپرهیزګارانو نه | که چرې| را اوږد کړو تا | ماته

نو[هابیل]اوونیل چې بیشکه الله ﷻ د پرهیزګارو قربانی قبلوی | که ته ماته د قتل په اراده لاس رااوږد

يَدَكَ لِتَقْتُلَنِيْ مَاۤ اَنَا بِبَاسِطٍ يَّدِيَ اِلَيْكَ لِاَقْتُلَكَ ۚ

لاس خپل | دپاره ددې چې مړکړې ما| خونۀ یم زۀ| غزونکې|دلاس خپل | تاته |چې مړکړم تا

کړې| خوزۀ به بیاهم تاپسې خپل لاس نه در اوږدوم| ............چه زه تا قتل کړم

اِنِّيْۤ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ اِنِّيْۤ اُرِيْدُ اَنْ تَبُوْٓاَ

بیشکه زۀ| ویرېږم |دالله نه | چې پالونکې دمخلوقاتو دې|بیشکه زۀ| غواړم | چې اخته شې ته

بیشکه زۀ دالله ﷻ نه ویرېږم|چې دمخلوق پروردګار دې | ...........زه داغواړم چې ته زما

بِاِثْمِيْ وَاِثْمِكَ فَتَكُوْنَ مِنْ اَصْحٰبِ النَّارِ ۚ وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا

په ګناه زما| اوپه ګناه خپلې سره| نوشې به تۀ| د ملګرو | د اور نه| او دا | جزا ده

اوخپله ګناه په سرباندې بار کړې | او دوزخی شې | ........................اودا بدله د

الظّٰلِمِيْنَ ۝ فَطَوَّعَتْ لَهٗ نَفْسُهٗ قَتْلَ اَخِيْهِ فَقَتَلَهٗ فَاَصْبَحَ

د ظالمانو| نو آسان کړل | دۀ ته |نفس خپل| وژل درورخپل |نومړې یې کړو هغه| نو اوګرځیدو

دظالمانو دهٔ| نوخپل نفس دې د خپل ورور د قتل دپاره تیار کړو| او هغه ئې قتل کړو| نوهغه په

مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝ فَبَعَثَ اللّٰهُ غُرَابًا يَّبْحَثُ فِي الْاَرْضِ

دزیانکارانو نه | نو راولیږو | الله | یوکارغه | چې کنده ئې کنستله | په زمکه کښې

زیانکارانو کښې شامل شو| بیا الله ﷻ یو کارغه راولیږلو| چې زمکه ئې اوکنیستله د دې دپاره

لِيُرِيَهٗ كَيْفَ يُوَارِيْ سَوْاَةَ اَخِيْهِ ؕ قَالَ يٰوَيْلَتٰٓى

چي اوښائی هغه ته | چي څرنګې | پټه کړي | امره جثه | د ورور خپل | اوونیل [قابیل] | اٸي افسوس دي ما لره

چي هغه ته طريقه اوښائي چي دخپل ورور لاش به څنګه پټوي | چي دا ئې اوليدل نو هغه اوونيل چي

اَعَجَزْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِثْلَ هٰذَا الْغُرَابِ فَاُوَارِيَ سَوْاَةَ اَخِيْ ۚ فَاَصْبَحَ

ايا عاجز شوم زۀ | چي شم زۀ | پشان | د دې كارغۀ | اچي پټه كړم | امره جثه | د ورور خپل | نو شو

اٸي كاش زه د دې كارغه پشان اهوښيار اوې | او دخپل ورور د لاش د ښښولو انتظام مې كړې وې | نو پخپلو كړو

مِنَ النّٰدِمِيْنَ ۛ مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ ۛ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اَنَّهٗ مَنْ قَتَلَ

دپښيمانو خلقو نه | په سبب د دې | اليكلي وۀ مونږه [تورات كښې] | په بني اسرائيلو باندې | چي بيشكه | چا چي مړ كړو

ډير پښيمانه شو | د دې وجې نه مونږ بني اسرائيلو ته دا حكم وركړې وۀ | چي چا يو نفس

نَفْسًاۢ بِغَيْرِ نَفْسٍ اَوْ فَسَادٍ فِى الْاَرْضِ فَكَاَنَّمَا قَتَلَ

يو نفس | بې د عوض | د بل نفس نه | يا بې د فساد خورولو نه | په زمكه كښې | نو لكه چي امړه كړل هغه

د بل نفس د بدلې نه بغير يا د زمكې په مخ د فساد كولو نه بغير قتل كړو | نو ګويا چي هغه

النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ وَمَنْ اَحْيَاهَا فَكَاَنَّمَآ اَحْيَا النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ

خلق | تول | او چا چي ژوندې كړو هغه | نو لكه چي | ژوندي كړل هغه | خلق | تول

تول خلق قتل كړل | او چا چي يو نفس ژوندې بچ كړو | نو ګويا هغه تول خلق ژوندي كړل

وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنٰتِ ؗ ثُمَّ اِنَّ

او په تحقيق سره | راغلي وۀ هغوئ ته | رسولان زمونږه | د واضحه نښو سره | بيا | بيشكه

او زمونږ پيغمبران دوئ ته څرګندې نښې راوړې وې | ........... خو د دې باوجود

كَثِيْرًا مِّنْهُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ فِى الْاَرْضِ لَمُسْرِفُوْنَ ۝

ډير خلق | د هغوئ نه | روستو د دې نه | په زمكه كښې | خامخا زياتى كونكى دى |

په دوئ كښې ډير خلق د زمكې په مخ زياتې كوي |

**آسان ترجمه قرآن:** او (اې پيغمبره !) ته په دوى باندې د آدم عليه السلام د دوو ځامنو واقعه صحيح صحيح ولوله چه كله دواړو يوه قرباني پيش كړې وه ، نو په دوى كښې د يو قرباني قبوله شوې وه او د بل هغه نه وه قبوله شوې (دې دويم اولي ته) ووئيل چه څه به تا وژنم اولي وو ئيل چه الله د هغه خلقو (قرباني) قبلوي چه هغه پرهيزګاروي. كه تا ماته وژلو د پاره خپل لاس اوكړ كړو نو بيا به هم څه تا ته د قتل د پاره خپل لاس اوګد نه كړم ځۀ خو د الله رب العلمين نه ويريږم. زۀ خو دا غواړم چه په آخر كښې ته ځما او خپلې دواړو ګناه كښې ونيولې شې او دوزخيانو كښې شامل شې او هم دا سزا د ظالمانو ده آخر دده نفس ده لره د ورور په وژلو باندې آماده كړو ، نو هغه خپل ورور ووژلو او دغه شان په نامراده خلقو كښې شامل شو. بيا الله يو كارغه راوليږلو دې د پاره چه دۀ ته وښائى چه څنګه د خپل ورور لاش پټ كړي (چه كله ئې دا وليدل) نو وې وئيل " هائې افسوس ! چه څه د دې كارغه پشان هم نه شوم چه دخپل ورور لاش

مي ښخ کړي وي "دغه شان وروستو هغه ډير پښيمانه شو دي وجې نه مونږ بني اسراءيلو ته ليکلي وو چه څوك قتل وکړی او دا قتل د چا نه بدل اخستو د پاره هم نه وي او نه د چا په زمکه کښې د فساد خورولو په وجه وي نو دا داسې ده چه لکه ده ټول انسانان اووژل او څوك چه د چا نفس بچ کړي نو دا داسې ده لکه چه هغه د ټولو انسانانو ځانونه بچ کړي او حقيقت دادې چه ځمونږ انبياء دوی ته په واضحو دلائيلو راغلي وو ،مګر دې نه روستو هم په دوی کښې ډيرو خلقو په زمکه کښې زياتې کولې.

## خلاصه تفسير

﴿ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ بِالْحَقِّ ﴾ او [اې محمد ﷺ] تاسو دے اهل کتابو ته د [حضرت] آدم ﷺ د ددو ځامنو [يعنی دهابيل اود قابيل] قصه په صحيح شان واوروئ [چه نيکانو خلقو سره د نسبت لرلو هغه غرور ددوی مات شی چه په ﴿نحن ابناء الله﴾ سره ئے ښکاره کوی اودغه قصه هغه وخت شوې وه] ﴿ إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ أَحَدِهِمَا ﴾ کله چه دواړو [د الله ﷻ په نوم يوه يوه پيرزونه] وړاندې کړه اوددوی نه ديو [يعنی دهابيل] خو قبول شوه ﴿ وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ ﴾ اود بل [يعنی دقابيل] قبوله نشوه [ولې چه دکومے معاملے دفيصلے دپاره دا پيرزونه وړاندې شوې وه په هغې کښې هابيل په حقه وو ځکه چه دهغه پيرزونه قبوله شوه او قابيل په حقه نه وو دهغه قبوله نه شوه ګنی بيا به فيصله نه کيده بلکه ګډوډ ی اوشکونه به په کښې راغلی وو کله چه] ﴿ قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ ﴾ هغه اوئيل [يعنی قابيل په دې کښې هم پاتې راغلو نو په تاؤ کښې راغلو] وے وئيل چه زه به تا ضرور وژنم دغه يو [يعنی هابيل] جواب ورکړو [چه ستا بيلات خو په دې وجه دي چې ته په حقه نه يې زما څه غلطی ده ولې چه] ﴿ قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ ﴾ الله ﷻ دپرهيزګارو عمل قبلوی [ماخو پرهيزګاری اختيار کړه او دالله ﷻ په حکم کلك پاتې شوم الله ﷻ زما پيرزونه قبوله کړه تا پرهيزګاری پريښوده دالله ﷻ د حکم نه دې مخ واوړلو، ستا پيرزونه يې قبوله نکړه نو په دې کښې غلطی ستاده اوکه زما؟.انصاف اوکړه ليکن که بيا هم ستا دغه اراده ده نو ته اوګڼره چه ماخو پوخ قصد کړې دې] ﴿ لَئِنْ بَسَطْتَ إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِي مَا أَنَا بِبَاسِطٍ يَدِيَ إِلَيْكَ لِأَقْتُلَكَ ﴾ که ته ماته زما د وژلو دپاره لاس راچوے بيا هم زه تاته ستادوژلو دپاره هيڅری لاس دراچونکې نه يم [ولې چه] ﴿ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ ﴾ زه خو دالله ﷻ دټول جهان دپروردګار نه ويريږم [چه په ښکاره خوستا د وژلو يو سبب موجود دے دې چې هغه زما د دوژلو اراده دے کول دی خوهر کله چه ددې روا والی تر اوسه پورې په څه جزئی خاص شرعی حکم سره ماته ثابت شوې نه دې ځکه دهغې کول د احتياط نه خلاف کار ګڼړم اوددغې شبهے په وجه دالله ﷻ نه ويريږم او دغه زړورتيا هم ستاده چه زما د وژلو هيڅ باعث نشته بلکه ددې نه مانع موجود دے ليکن بيا هم ته دالله ﷻ نه نه ويريږے] ﴿ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ تَبُوءَ بِإِثْمِي وَإِثْمِكَ فَتَكُونَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ ﴾ زه داسې غواړم چه [زمانه دې دڅه ګناه کار اونشی اګر چه راباندې ته ډير زيات ظلم هم اوکړې چه دهغې په وجه] ته زما ګناه اوخپله ګناه [ټوله] پخپل سر واخلے بيا ته په دوزخيانو کښې شامل شے ﴿ وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الظَّالِمِينَ ﴾ اوهم دغه سزا وی دظلم کوونکو. ﴿ فَطَوَّعَتْ لَهُ نَفْسُهُ قَتْلَ أَخِيهِ ﴾ نو [هسې خو ئے د د مخکښې څخه هم د وژلو اراده کړې وه دائې چه واوريدل چه د هغې دکولو لاربه راته هم نه بندوی پکار خو داوو چه زيات نرم شوې وے مګر په يے فکره

کیدو سره نو هم] دهغه زړه هغه لره دخپل رور وژلو ته تیار کړو[بیا] ﴿ فَقَتَلَهٗ فَاَصْبَحَ مِنَ الْخٰسِرِیْنَ۝ ﴾ آخرئے هغه اووژولو چه دهغې په وجه [کم بخت] په ډیر تاوانیانو کښې شامل شو [په دنیا کښې خو دا زیان چه دخپلو متبو طاقت اود روح آرام ئے دخپله لاسه اوبښکلو اوپه آخرت کښې دانقصان چه په سخت عذاب کښې به اخته وی اوس هرکله چه د وژولو نه اوزګار شو نو حیران وو چه کالبوت سره څه اوکړم چه دغه کار مې پټ په پرده کښې پاتې شی چه په فکر کښې یې هیڅ خبره رانغله نو] ﴿ فَبَعَثَ اللّٰهُ غُرَابًا ﴾ بیا [آخر] الله ﷻ یو کارغه [هلته] اولیږلو ﴿ یَّبْحَثُ فِی الْاَرْضِ ﴾ چه هغه [په مښوکه اوپنجو سره] زمکه اوکنستله [چه وې کنستله یو بل مړ کارغه ئے پدغه کنده کښې کیخودو او خاورې ئے پرې واچولې] ﴿ لِیُرِیَهٗ کَیْفَ یُوَارِیْ سَوْاَةَ اَخِیْهِ ﴾ پدې غرض چه هغه [کارغه] [قابیل] ته خودنه اوکړی چه دخپل رور [هابیل] کالبوت په څه طریقې سره پټ کړی [قابیل ددې واقعې په لیدلو په خپل زړه کښې ډیر کچه شو چه د کارغه هومره پوهه هم نه لرم اوپه ډیر افسوس سره] ﴿ قَالَ یٰوَیْلَتٰۤی اَعَجَزْتُ اَنْ اَکُوْنَ مِثْلَ هٰذَا الْغُرَابِ ﴾ وې وئیل چه افسوس دې زما په حالت باندې آیا زه دده نه هم کم کوز شوم چه ددې کارغه پشان خو وې ﴿ فَاُوَارِیَ سَوْاَةَ اَخِیْ فَاَصْبَحَ مِنَ النّٰدِمِیْنَ۝ ﴾ اود خپل رور کالبوت مې پټ کړې وې [نو پدغه حال باندې] ډیر اوشرمیدو. ﴿ مِنْ اَجْلِ ذٰلِکَ کَتَبْنَا عَلٰی بَنِیْۤ اِسْرَآءِیْلَ ﴾ ددې [واقعې] په وجه چه دناروا قتل [خرابئ ترې ثابتیږی] مونږ [په ټولو مکلفو خلقو باندې عموماً او]په بنی اسرائیلو باندې [خاص کړ دا [حکم] اولیکلو [یعنی مقرر مو کړو] ﴿ اَنَّهٗ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَیْرِ نَفْسٍ ﴾ چه [په ناروا قتل کول دومره لویه ګناه ده چه [څوك بل چالره] نه په بدل دبل کس کښې [چه په ناروا اوژولې شوې وی] یابغیر دڅه [شر او] ﴿ اَوْ فَسَادٍ فِی الْاَرْضِ ﴾ فساد نه چه په زمکه کښې ددې نه خور شوې وی [خامخا] اوژنی نو [هغه ته به په بعضې اعتبار سره داسې ګناه وی چه] ﴿ فَکَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِیْعًا ﴾ ګویا هغه ټول خلق اوژل [هغه بعضې اعتبار دادې چه پدغه ګناه زړور ورغلو دالله ﷻ نافرمانی ئے اوکړه الله ﷻ ترې ناراض شو پدنیا کښې دې ته اوتړلی شو چه قصاص ترې واخستلې شی په آخرت کښې د دوزخ حق دار شو یعنی یو کس وژل او زر کسان وژل په اعتبار د ګناه او د عذاب سره یو حکم لری.اګر چه دسخت او سخت ترین فرق په کښې شته او دا دواړه قیدونه یعنی شرطونه یې ځکه اولګول چه په قصاص کښې وژل روا دی.اودا شان په هغه صورتونو کښې هم چه دقتل د روا کیدو سبب جوړیږی لکه لاړ شوکول شو چه بیان یې راروان دې او کفر د حربی شو چه ذکرئے دجهاد په احکامو کښې راغلې دې .دا ټول په کښې دا خل دی په کومو صورتونو کښې چه وژل روا بلکه کله واجب هم وی] او [دا مو هم لیکلی وو چه څنګه په ناجائزه وژل لویه ګناه ده دغه شان چالره دغیر واجب وژلو نه د ساتلوهم دومره لوئې ثواب دې چې] ﴿ وَمَنْ اَحْیَاهَا ﴾ څوك بل چالره [دوژلو نه] اوساتی ورته به داسې [ثواب حاصلیږی چه] ﴿ فَکَاَنَّمَاۤ اَحْیَا النَّاسَ جَمِیْعًا ﴾ ګویا هغه ټول خلق اوساتل [د غیر واجب قید شرط ځکه اولګولې شو چه د چا وژل د شریعت له مخې واجب وی دهغه امداد یا سفارش کول حرام دی اود احیاء دې مضمون سره هم د وژولو سختوالئ داسې ښکاره شو چه هرکله د احیاء صفت بیان کړې شو نو وژل به خامخا ناکاره وی په دې وجه ددې مرتب کیدل اوسبب جوړیدل هم په واسطې د عطف سره په] ﴿ مِنْ اَجْلِ ذٰلِکَ ﴾ باندې صحیح شو] ﴿ وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَیِّنٰتِ ﴾

اوبنی اسرائیلو ته[ددې مضمون دليکلو نه پس] زمونږ ډير پغمبران هم واضحو دليلونو [دنبوت] راوړلو سره راغلل [اووخت په وخت به يې ددې مضمون تاکيد کولو] ﴿ثُمَّ إِنَّ كَثِيرًا مِنْهُمْ بَعْدَ ذَٰلِكَ فِي الْأَرْضِ لَمُسْرِفُونَ﴾ مگر بيا ددې [تاکيد اوبندوبست] نه پس هم زيات کسان ددوی نه پدنيا کښې خالص زياتی کوونکی پاتې شول [اوپدوی هيڅ اثر اونه شو تر دې چه بعضو پخپله هم دغه پغمبران اووژل].

## معارف اومسائل

**قصه دهابيل اوقابيل:** په دې آيتونو کښې الله تعالی، رسول الله ﷺ ته داهدايت ورکړې دې چه تاسو ﷺ اهل کتابو ته، ياخپل ټول امت ته دحضرت آدم ﷺ د دوؤځامنو قصه صحيح صحيح واوروئ.

په قرآن پاك کښې چاچه پوره خيال کړې وي نودابه ورته معلومه شوې وی چه قرآن کريم دقصو ياتاريخ څه کتاب نه دې چه مقصدئې څه واقعه، داول نه ترآخره پورې بيانول وی، ليکن تيرشوی واقعات اود پخوانوقومونوتاريخ ډيرعبرتونه اونصيحتونه ځان سره لری، کوم چه دتاريخ اصل روح دې اوپه دې کښې ډيرحالات اوواقعات داسې هم وی چه ډيرشرعی احکام په هغې باندې منحصر وی، هم ددغې فائدو له مخې دقرآن کريم طرزچرته دادې چه موقعه په موقعه، څه واقعه بيانوی اواکثرپوره واقعه هم يوځائې کښې نه بيانوی، بلکه ديومقصد په جوړدهغې هره برخه بيل بيل ځائې کښې بيانوی، دحضرت آدم ﷺ د دوؤځامنوداقيصه هم په دغه طرزباندې نقل کولې شی، په دې کښې موجوده اوراتلونکو نسلونودپاره ډيرعبرتونه اونصيحتونه دی اوپه دغه ضمن کښې ډيروشرعی احکاموته اشاره کړې شويده.

اوس رومبې دقرآن کريم دالفاظوتشريح اودهغې په جوړ کښې اصل قصه اوګورئ وربسې به دې سره ترلې حکمونه اومسئلې بيانولې شي..

دې نه په مخکښوآيتونو کښې، بنی اسرائيلوته دجهادحکم وو اوپه هغې کښې دهغوئ کم همتی او بزدلی ذکرکړې شوې ده، ددې قصې په مقابل کښې د ناحقه وژلو خرابی او ددې د تباهئ په بيانولو سره قوم لره دې سمون اوجوړښت ته راوستل مقصوددی چه څنګه دحق په مرسته اودباطل په ختمولو کښې قتل وقتال [يعنی جهاد کولو] نه مخ اړول غلطی ده، دغه شان ناروا قتل وقتال کول ددين دنياتباهی ده،

په رومبی آيت کښې د ﴿ابْنَيْ آدَمَ﴾ لفظ راغلې دې، هسې خوهرانسان دحضرت آدم ﷺ اولا د کښې دې خودلته دتفسيردجمهوروعلماؤ ﷺ په نزدترد حضرت آدم ﷺ دوه صلبی، اصلی، [نيغ په نيغه] ځامن مراد دی چه هابيل اوقابيل وو، چنانچه فرمائی:

**دتاريخی رواياتونوپه نقل کولوکښې احتياط کول اورشتياويل واجب دی:** ﴿وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ بِالْحَقِّ﴾ دې خلقوته دحضرت آدم ﷺ د دوؤځامنوقيصه په صحيح شان بيان کړه] چه دواقعې سره سمون لری، دلته په [بِالْحَقِّ] لفظ سره دتاريخی واقعاتوپه نقل کولو کښې يواهم اصول ته داسې مخ راګرځولې شويده چه دې کښې احتياط کول ضروری دی، چه پکښې دې څه دروغ، ګډون تګی نه وی، اونه دې په اصل واقعه کښې څه قسم بدلون راوستل ياکمې، يازياتې کول نه وی[ابن کثير][1]

[1]) تفسير ابن کثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۸۷

یو اخي دلته نه بلکه په نورو ځایونو کښې هم، قرآن کریم په دې اصولو باندې دټینګ پاتې کېدو هدایات ورکړیدی، یو ځای کښې ارشاد دې ﴿إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ﴾ بل ځائې کښې ارشاد دې ﴿نَّحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُم بِالْحَقِّ﴾ دریم ځائې کښې ارشاد دې ﴿ذَٰلِكَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ ۚ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِي فِيهِ يَمْتَرُونَ﴾ د دې ټولو موقعو په تاریخی واقعاتو کښې د (الحق) لفظ ذکر کولو سره د دې خبرې اهمیت واضح کړې شویدې چه د واقعاتو په نقل کولو کښې د حق او رشتیا لحاظ ساتل لازمی دی، چنانچه د روایتونو او قصو په بناچه په دنیا کښې څومره خرابئ راولاړې دی، د دغې ټولو بنیاد عموما دا وی چه د واقعاتو په نقل کولو کښې بې احتیاطی کولې شی، چه لفظ او عنوان لړشان بدل شی نو د واقعې حقیقت وران شی، د پخوانو قومونو مذهبونه او شریعتونه هم، د دې بې احتیاطئ له کبله تباه او ضائع شو او د وئ مذهبی کتابونه د یو څو بې سنده او بې تحقیقه قیصو مجموعه جوړ شو، چنانچه دلته د ﴿بِالْحَقِّ﴾ لفظ په زیاتولو سره دې دیر ضروری مقصد ته اشاره او کړې شوه.

دې نه علاوه په دغه لفظ کښې د قرآن کریم مخاطبینو لره دې اړخ ته راګرځول مقصود دی، چه هر کله رسول الله ﷺ [أمي محض] [خالص أمي] دې او د زرګونو کلونو زاړه واقعات بیخی، رشتیا او صحیح بیانوی نو دغې سبب د وحی الهی او نبوت نه سوا بل څه کیدې شی،

دې تمهید نه پس د حضرت آدم علیه السلام د دغې دوو ځامنو واقعه قرآن کریم داسې بیان کړه ﴿إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ﴾ [دغې دواړو الله تعالی د پاره خپله خپله قربانی پیش کړه، مګر د یو قربانی قبوله شوه او د بل قبوله نه شوه].

[قربان] په عربی لغت کښې هر هغه څیز ته وئیلې شی چه د چادنز د یکت ذریعه جوړه کړې شی او د شریعت په اصطلاح کښې هغه ذبح [حلال] کړی څاروی ته وئیلې شی چه د الله تعالی دنزد یکت حاصلولو په غرض ئې حلال کړې وی،

په صحیح او قوی سند ونو سره د دې قربانئ نقل کړې شوې واقعه داده کومې ته چه ابن کثیر رحمه الله د پخوانو او روستنو علماؤ متفقه قول وئیلې دې، وائی چه کله حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء دنیا ته راغلل او اولاد پیدا کیدل ئې شروع شو نو د بی بی حواء د هر امید نه به دوه ماشومان په یو خل پیدا کیدل، یو به هلک و او بل به جینئ وه، دغه وخت هر کله چه رونړه خویندونه سوا نو پردی یالړې خپلوان نه وو، او د رور، خور، خپل منځ کښې سره نکاح نشی کیدې، الله تعالی دغه وخت د ضرورت له کبله د حضرت آدم علیه السلام په شریعت کښې دا خصوصی حکم جاری کړې وو چه هر امید کښې یو ځائې پیدا کیدونکی دوه ماشومان [هلک او جینئ] به خپل منځ کښې رور، خور حسابیږی، د دغې دواړو نکاح په خپل منځ کښې سره نشی کیدې، او حرام به وی البته د دې بدلون به د دویم امید سره داسې کولې شی چه د رومبی امید جینئ به د دویم امید هلک ته په نکاح کولې شی او د دویم امید جینئ به د رومبی امید هلک ته په نکاح کولې شی،

او س واقعه داسې وه چه رومبی امید نه قابیل سره یو ځائې پیدا شوې جینئ ښکلې وه او د دویم نه هابیل سره یو ځائې پیدا شوې جینئ بدرنګه وه، هر کله چه د الله تعالی د ذکر شوی حکم مطابق هغه بدرنګه جینئ د قابیل بی بی جوړیدله نو هغه په دې راضی نه شو بلکه د هابیل دښمن جوړ شو او په دې ټینګ شو چه زه به هم هغه جینئ په نکاح اخلم کومه چه ما سره یو ځائې

درومبی امیدنه پیدا شویده، حضرت آدم ﷺ ورته دخپلې زمانې دشریعت په جوړ ددې اجازت نه ورکولو او داختلاف ختمولو دپاره ئې دواړوته دقربانۍ وړاندې کولو حکم اوکړو چې د چا قربانی قبوله شوه هغه به په حقه وی اودغه [ښکلې] جینۍ به هم هغه ته په نکاح کولې شی. حضرت آدم ﷺ دهابیل دقربانۍ قبلېدو یقین ځکه لرلو چه ددغه وخت دشریعت مطابق دغه ښکلې جینۍ دهغه بی بی جوړیدې شوه(۱).

په دغه زمانه کښې دقربانۍ قبلېدو یوه ښکاره اوواضحه نخښه داوه چه آسمان نه به اور راغلو او قربانی به ئې اوخوړله، کومه قربانی به ئې چه اونه خوړله هغه به قبوله شوې نه وه، په دې شان هابیل یواعلی ګډ قربانی کړو ځکه چه هغه دګډوچیلو [میږو بیزو] خاوندوو، قابیل کروندګروو هغه دځه غلې، غنمووغیره قربانی وړاندې کړه دآسمان نه راغلی اوردهابیل قربانی اوخوړه اودقابیل قربانی په خپل ځائې هم هغسې پاتې شوه، ددې ناکامۍ اورسوائۍ له کبله دقابیل تاؤنورهم زیات شو، په دغه تاؤ کښې ئې خپل رورته اووئیل: ﴿لَأَقْتُلَنَّكَ﴾ [زه به دې ضرور وژنم] هابیل په دې هیڅ غصه نه شو، بلکه په سړه سینه ئې ورته دااُصولی خبره اوکړه، چه همدردی اوخیرخواهی پکښې هم وه ﴿قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ﴾ [دالله تعالی دستوردادې چه دمتقیانو پرهیزګارانو عملونه قبلوی] که تاتقوی، اوپرهیزګاری اختیارکړې وې نوقربانی به دې قبوله شوې وه، که داسې نه کولو په وجه دې قربانی قبوله نه شوه نوپه دې کښې زماڅه قصوردې؟

په دې کلام کښې دحسد کوونکی دحسد علاج هم داسې ذکرکړې شویدې چه څوک بل چاسره دالله تعالی یوورکړې نعمت اوګوری نوهغه دې دااوګنړی چه دغه نعمت نه زه ځکه بې نصیبه یم چه قصوروار اوګناهګاریم، اودغې نه دې توبه اوباسی، داسې دې نه کوی چه هغه نه هم ددغه نعمت دلرې کیدو آرزولری یادې دپاره لاس خپې وهی، ولې چه دابه ورته د فائدې په ځائې تاوان ورکړی ځکه چه دالله تعالی په نزدمقبولیت [قبلیدل] په تقوی باندې اډانړه دې [مظهری](۲)

**دعمل دقبلیدواډانړه په اخلاص اوتقوی ده:** دلته دقابیل اوهابیل ترمنځه په خبرواترو کښې یوه جمله داسې هم راغله چه دیودیرضروری اصول حیثیت لری هغه داچه دعملونو او عبادتونوقبلیدل په تقوی اودالله تعالی نه په ویریدواړه لری، چاکښې چه تقوی نه وی دهغه عمل به قبول نه وی، په دې وجه پخوانو علماؤ ﷺ فرمائیلی دی چه په دې آیت کښې عبادت کوونکو اوعمل کوونکو دپاره لوئې عبرت دې، چنانچه حضرت عامربن عبدالله دخپل وفات په وخت کښې ژړل، خلقو عرض اوکړو چه تاسو خوټول عمرنیک عملونه اوعبادتونه کړی دی بیاولې ژاړې؟ هغوئ اوفرمائیل تاسو خودا وایئ اوزماپه غوږونو کښې دالله تعالی دا ارشاد کړنګیږی،

﴿إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ﴾ ماته معلومه نه ده چه زماڅه عبادت به قبول شوې هم وی اوکه نه؟،

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائیلی دی، که زماپه دې یقین راشی چه څه عمل مې الله تعالی قبول کړیدې نودغه داسې یونعمت دې چه که ټوله زمکه دسروزرونه ډکه شوې مې لاس ته راشی نوددې په مقابله کښې به ئې هیڅ اونه ګڼړم،

---

۱) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۸۲
۲) تفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۸۱

دغه شان حضرت ابو الدرداء ﷺ اوفرمائیل: که داخبره په یقینی ډول رامعلومه شی چه زمایو مونځ د الله تعالی په نزد قبول شویدې نو هغه به زما د پاره د ټولې دنیا او ددې د نعمتونو نه زیات وی،

حضرت عمر بن عبد العزیز ﷺ یو سړی ته په خط کښې دا نصیحتونه اولیکل: [زه درته د تقوی تاکید کوم چه دهغې نه بغیر هیڅ عمل نشی قبلیدې، او د تقوی دارو خلقونه سوا په بل هیچا رحم نشی کولې، ددې نه بغیر په هیڅ څیز ثواب نه ملاویږی، داخبره خو ډیر خلق په وعظونو کښې کوی خو عمل ډیرکم خلق کوی]،

حضرت علی مرتضی ﷺ فرمائیلی دی، چه تقوی سره ورکوټې عمل هم ورکوټې نه دې او کوم عمل چه مقبول شی، هغې ته ورکوټې څنګه وئیلې شی؟! [ابن کثیر] (1).

ددې نه روستو آیت کښې هم د دغه سلسلې خبره جاری ده، هابیل اووئیل چې: ﴿لَىِٕنْۢ بَسَطْتَّ اِلَیَّ یَدَكَ لِتَقْتُلَنِیْ مَاۤ اَنَا بِبَاسِطٍ یَّدِیَ اِلَیْكَ لِاَقْتُلَكَ ۚ اِنِّیْۤ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِیْنَ﴾ یعنی که تاسو زما د قتل د پاره ماته لاسونه راوړده کړئ بیا به هم زه ستا د قتلولو د پاره خپل لاسونه در اوږده نه کړم، زه خو د الله رب العالمین نه ویریږم.

په دې کښې هم هابیل خپل رور د الله تعالی نه د ویرې طرف ته متوجه کړو چې هغه ددې ظلم نه منع شی، او ورسره ئې دا هم اوښودل چې اګرچې زما د پاره د مدافت په صورت کښې ستا قتل کول جائز دی بیا هم زه د احتیاط په وجه اود الله تعالی نه د ویرې په وجه دې (قتل) ته نه ورمخکې کیږم، او دا اقدام نه کول ئې په ﴿مَاۤ اَنَا بِبَاسِطٍ﴾ لفظونو سره تعبیر کړو چې په دې کښې د عربی محاورې په لحاظ سره په دې مضمون کې لوئې تاکید موندلې کیږی چې ګویا زما لاس خو ستا د قتل د پاره اوچتیدلې هم نه شی.

حضرت عبد الله ابن عمر ﷺ فرمائی چې د هابیل دا عمل د څه کمزورئ یا بزدلئ په وجه نه وو بلکه هغه په قوت او طاقت کې د قابیل نه زیات وو که هغه غوښتل نو په آسانئ سره ئې هغه قتل کولې شو خو احتیاط او تقوی هغه لره د خپل رور په قتلولو باندې د لاس اوچتولو نه منع کړو.(ابن کثیر)(2)

په مسند عبد الرزاق او تفسیر ابن جریر کې یو حدیث د حضرت حسن بصری ﷫ نه منقول دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: (ان ابنی آدم ضربا مثلا لهذه الامة، فخذوا بالخیر منهما) (تفسیر مظهری)(3)

یعنی د آدم علیه السلام د دواړو ځامنو د راتلونکی نسلونو د پاره مثال قائم کړې دې. (چې په دې کښې د یو طرف نه د ظلم او ګناه او بل طرف نه د تقوی او احتیاط ظهور اوشو) نو تاسو له پکار دی چه په دې دواړو کښې کومه ښیګړه او خیر دې هغه اختیار کړئ.

ایوب سختیانی فرمائی چې په دې امت کښې په دې آیت باندې د ټولو نه مخکې حضرت عثمان غنی ﷺ عمل اوکړو. کوم وخت چې باغیانو دهغه کور ګیر کړو او دهغه د قتلولو

---

(1) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۸۵، وتفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۷۹، ۸۰

(2) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۸۵

(3) تفسیر المظهری: ج ۳، ص ۸۰، وکذا العمال رقم الحدیث: ۴۳۰۲۸

اراده ئې اوکړه دهغه سره د خپلو غلامانو لوئې تعداد او نور حضرات د مدافعت (بچ کولو) دپاره موجود وو خو عثمان غنی رضی الله عنه دا خوښه نه کړه چه هغه د يو مسلمان په قتل باندې لاسونه اوچت کړی يا دهغه په وجه څوک مسلمان مړ کړې شی. (ابن کثير بروايت ابن ابی حاتم)[1]

او ابن سعد دحضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت کوی چې کوم وخت حضرت عثمان رضی الله عنه محصور (ګير) کړې شو حضرت ابوهريره رضی الله عنه هغوی ته ورغلل او عرض ئې اوکړو چې زه ستاسو د امداد دپاره راغلې يم. حضرت عثمان رضی الله عنه اوفرمائيل: ابوهريره! چې ټول خلق قتل کړې او ما هم دهغوی سره قتل کړې؟ ابوهريره رضی الله عنه عرض اوکړو زه دا خوښ نه ګڼړم. حضرت عثمان رضی الله عنه اوفرمائيل چې که تا يو سړې هم قتل کړو نو دا داسې ده لکه چې ټول (خلق) دې قتل کړل. (مظهری)[2]

حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د عثمان رضی الله عنه ددغه فتنې په وخت دا حديث نقل کړو چې زه ګواهی ورکوم چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلی وو چه يوه داسې فتنه راتلونکې ده چې په هغې کښې به ناست سړې د ولاړ سړی نه غوره وی او ولاړ سړې به د روان سړی نه غوره وی او رو تلونکې سړې به په منډه د تلونکی سړی نه بهتر وی. عرض اوکړې شو چې يا رسول الله که په داسې فتنه کښې خلق زما په کور باندې راوخيجی او زما د قتل اراده اوکړی نو ما له څه کول پکار دی؟ نو (حضور صلی الله عليه وسلم) اوفرمائيل: كن كابن آدم. (ابن کثير بروايت ترمذی)[3] يعنی ته د ابن آدم هابيل په شان جوړشه چه د يو مسلمان رور په قتل باندې لاسونه مه اوچتوه اګرکه خپل ځان دې لاړشی (يعنی ته مړکړې شې). دغسې سعد بن مالک رحمه الله روايت کړې دې چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو چې د داسې فتنې په وخت که تاسو کولې شئ نو دا اوکړئ چې مظلوم او مقتول کيدل اختيار کړئ او هيڅ يو اهل قبله مه قتل کوئ. (جصاص)[4] ددې ټولو رواياتونه د مسئلې صرف يو رخ واضحه شو چې کله په مقابله کې يو مسلمان رور وی او بل طرف ته د بچ کيدلو څه لاره بغير ددې نه نه وی چې دې هغه قتل کړی نو په داسې حالت کې دا ښکاره خبره ده چې په دې دواړو کې به يو کس وژلې کيږی. په دې کښې مذکوره رواياتو دا اوښودل چه ته ځان مقتول کيدلو لره په قاتل جوړيدو باندې ترجيح ورکړه.

خو د اصل مسئلې حکم صرف دومره هم نه دې چې خپل ځان په آسانئ سره قتل کولو دپاره پيش کړه بلکه ددې تفصيل په بل روايت کې دې کوم چې امام ابوبکر جصاص رحمه الله د ابوالمخارق رحمه الله نه روايت کړې دې چې يو سړی رسول الله صلی الله عليه وسلم ته عرض اوکړو يا رسول الله! يو سړې ماته راځی او زما مال په زوره اخستل غواړی نو زه څه اوکړم؟ حضورپاک صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چې هغه ته نصيحت اوکړه د آخرت نه ئې اوويروه. عرض ئې اوکړو چې که هغه په نصيحت سره هم منع نه شی؟ نو وې فرمائيل په دې صورت کښې د خپل ګير چاپيره مسلمانانو رونړو نه مدد اوغواړه چې هغوی تا دهغه د ظلم نه بچ کړی. عرض ئې اوکړو چې که زما ګير چاپيره داسې

---

[1] تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٨٦

[2] المظهری: ج ٣، ص ٨٠

[3] تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٨٦، وجامع الترمذی، أبواب الفتن، باب ما جاء أنه تكون فتنة القاعد فيها خير من القائم، رقم الحديث: ٢١٢٠

[4] أحكام القرآن للجصاص: ج ٥، ص ٢٤٠

څوک نه وی چې هغوی زما مدد اوکړی؟ وې فرمائیل چې د دغه وخت د حکومت نه مدد اوغواړه. عرض ئې اوکړو چې که حاکم هم زما نه لرې وی یا هلته زما رسیدل نه شی کیدې؟ نو حضور ﷺ اوفرمائیل په دې صورت کې ته پخپله دخپل مدافعت اوکړه تردې چې یا خپل مال بچ کړې او یا مغلوب شې او شهید شې.

دغسې په بل یو روایت کښې د رسول کریم ﷺ دا ارشاد مشهور اومعروف دې چې که څوک دخپل ځان په مدافت کولو کې مړکړې شی هغه شهید دې، څوک چې دخپل عزت مدافعت کولو کې مړ کړې شی هغه شهید دې، څوک چې دخپل مال مدافعت کولو کې مړ شی هغه شهید دې.(ابن کثیر، جصاص) (۱)

ددې روایاتو نه معلومه شوه چې په کوم سړی باندې داسې ظلم کیږی هغه ته د مدافعت حق حاصل دې اوکه هغه په مدافعت کولو کې مړکړې شی نوشهید به ګڼړلې کیږی.

د جمهور امت په نزد په دې حالاتو کې مدافعت کول اوپه دې مدافعت کې بل لره قتلول یا خپله شهید کیدل دا ټول صورتونه جائز خو دی خوپه دې کلام دې چې افضل او غوره کوم یو دې؟ د آدم علیه السلام د څوی هابیل د واقعې نه، او دې سره متعلق مذکوره آیت نه، دغه رنګې په اُمت کښې دحضرت عثمان غنی رضي الله عنه د واقعې نه، او د پورته روایت شوی مذکوره احادیثو نه دا معلومه شوه چې افضل دادی چې د بل په قتلولو باندې لاسونه اوچت نه کړې شی دځان مقتول کیدوته دې ترجیح ورکړی.

**د ځان د طرفه د مدافعت کولو احکام**

لیکن امام ابوبکر جصاص رحمه الله ددې مسئلې هر اړخ واضحه کړې دې او ښودلې ئې دی چې دا هم څه عام قانون نه دې چې دځان مقتول کیدو یا مظلوم کیدو ته ترجیح ورکړې شی ځکه که داسې وی نو عالمی نظام او اسلامی قانون حدود اوقصاص په معطل پاتې شی په دنیا کښې به ظلم اوفساد خور شی چې ددې په اسلام کې قطعًا اجازت نشته. قرآنی ارشادات په دې باره کښې واضحه اوښکاره دی.

ارشاد دې: ﴿وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَوٰةٌ يَأُولِي الْأَلْبَابِ﴾ (البقرة: ۱۷۹) یعنی د وینې بدله په وینې سره اخستلو کې ستاسو ژوند دې. دویم ځائې کې په صیغې د امر اوحکم سره ارشاد دې: ﴿وَقَٰتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾ (البقرة: ۱۹۳) یعنی تاسو خلقو سره تردې حده پورې مقاتله اوکړئ چې فتنه باقی پاتې نه شی. دریم ځائې کې ارشاد دې: ﴿وَإِن طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا ۖ فَإِنۢ بَغَتْ إِحْدَىٰهُمَا عَلَى الْأُخْرَىٰ فَقَٰتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّىٰ تَفِيٓءَ إِلَىٰٓ أَمْرِ اللَّهِ ۚ﴾ (الحجرات: ۹) یعنی که د مسلمانانو دوه ډلې خپل مینځ کې په جنګ شی نو په نوروملسمانانو باندې لازم دی چه په دوی دواړو کې مصالحت (روغه) اوکړی. اوکه دا معلومه شی چه یوه ډله په ضد باندې اودریږی نوپه مسلمانانو باندې لازم دی چه دهغې (ډلې) خلاف جهاد اوکړی تردې چې هغوی د الله او د اسلام فیصلې ته راشی.

هم دا وجه ده چې حضرات فقهاؤ فرمائیلی دی چه که مسلمانان چرته دا اوګوری چې یو مسلمان دویم مسلمان قتلوی او هغه لره د قتلولو نه د منع کولو هیڅ یو صورت نه وی سوا ددې نه چې قاتل لره قتل کړې شی نو په مسلمانانو باندې واجب دی چه هغه لره قتل کړی او

---

(۱) أحکام القرآن للجصاص: ج۵، ص ۲۴۳، وصحیح البخاری، کتاب المظالم، باب من قاتل دون ماله، رقم الحدیث: ۲۳۰۰

مظلوم دهغه د لاسونو نه بچ کړي. (جصاص) (۱)

په دې وجه د مجموعه آياتونو او رواياتو ملاووولو نه د مسئلې پوره صورت دا شو چې چرته ظلم زياتي ښكاره كيږي او يقيني طور باندي معلومه وي يا دمسلمان په مقابله كې كفار وي اوپه مدافعت كولو كې اسلامي مصالحت او ضرورت وي هلته مدافعت كول او دځان په قتلولو باندې د اختيار حده پورې قدرت نه وركول واجب دى او ددې په خلاف كول گناه ده. البته چرته چې دمسلمان په مقابله كې مسلمان وي او معامله صرف د خپل ذات د نفع اونقصان وي يا صورت د فتنې وي چې هر طرف ته دخپل حقانيت څه دلائل وي. هلته چې كله مقتول كيدونكې خپل ځان په حق باندې او بل (مقابل) په ظلم باندې گڼري نوهغه دپاره جائز خو دادى چه دخپل ځان بچ كولو دپاره هغه قتل كړي ليكن احتياط او افضل دادى چه د مدافعت نور صورتونه ټول اختيار كړي خو دبل (مقابل) په قتلولو اقدام اونه كړي. اگرچې په دې كښې په خپله مركړې شي، دغسې دټولو آياتونو او رواياتو مضامين راجمع شو اوس كه د مذكوره آيت په الفاظو باندې غور اوكړئ نو معلومه به شي چه دې آيت هم دا هدايت نه دې كړې چه په آسانئ سره خپل ځان قتل كيدو دپاره پيش كړه هيڅ قسمه مدافعت مه كوه، بلكه د قرآن ددې هدايت حاصل هم ددې نه سوا بل څه نه دې چه ته دخپل مقابل په قتلولو باندې لاسونه مه پورته كوه، هسې دخپل ځان دبچ كولو پوره كوشش كول ددې منافي نه دى.

او كومو حضراتو چې ددې آيت مضمون په ترک مدافعت باندې محمول كړې دې دهغوى په نزد دا حكم د مخكينى شريعت وو چې دا په اسلام كې منسوخ شو. دحضرت حسن بصرى او مجاهد رحمهم الله نه هم دا منقول دى.

په مذكوره آياتونو كې دريم آيت چې دهغې مضمون دادې چې هابيل قابيل ته اووئيل چې زه دا غوارم چې ته زما گناه او خپله گناه ټوله په خپل سر كيږدې او بيا په دوزخيانو كې شامل شې په دې كښې يوه خبره د غور قابله دا ده چې قرآنى قانون خو دا دې چې: ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرَىٰ﴾ يعنى هيڅوک به د بل د گناه پيټې نه پورته كوى، بيا دا وئيل چې زما گناه ته په خپل سر كيږدې، ددې به څه مطلب وى. په دې وجه مفسرين صحابو او تابعينو حضرت عبدالله ابن عباس، عبدالله ابن مسعود، حسن بصرى، مجاهد، قتاده وغيره فرمائيلي دى چه د زما گناه نه مراد دلته زما د قتل گناه ده او مطلب دادې چه زه دا غوارم نو زه ستا په قتل باندې اقدام اونه كړم اگرچې ته ما قتل كړې او زما د قتل گناه په خپل سر كيږدې.

دويمه د غور قابله خبره داده چه معصيت اوگناه چې لكه څنگه په خپله كول جائز نه دى، دغسې ئې په بل باندې كول يا هغه ته د گناه كولو دپاره وئيل هم جائز نه دى، نو د هابيل قابيل ته دخپل قتل دپاره وئيل څنگه جائز شو؟

امام جصاص رحمه الله په احكام القرآن كې فرمائيلي دى چې لفظ "اثم" په معنى دگناه دې، دې خائې كې سزائې اثم مراد دې او مطلب دادې چه زه دلته خو ستا په خلاف څه اقدام كول نه خوښوم البته دا غوارم چه په آخرت كې ته دخپلو نورو گناهونو هم مزه اوڅكې او زما د قتل دگناه هم. (۲)

---

(۱) أحكام القرآن للجصاص: ج ۵، ص ۲۸۰، تفسير سورة المائدة، باب دفن الموتى۔
(۲) أحكام القرآن للجصاص: ج ۵، ص ۲۷۲

خلاصه دا ده چې دهابیل ددې قول دا معنی نه ده چه هغه قابیل دخپلې ګناه په قتل باندې آماده کوي یا دهغه په ګناه کې په مبتلا کیدو باندې خوشحاله دې، بلکه مطلب دادې چه د ظلم انتقام په خپله د اخستلو په ځائې هغه لره الله تعالی ته سپارې. قابیل ته د الله تعالی ویره وړاندې کول د قتل د اقدام نه د منع کولو یو صورت دې. خصوصاً د آیت آخری جمله ﴿وَذَٰلِكَ جَزَٰٓؤُاْ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ کې خو دا صورت ډیر واضح دې.

څلورم آیت کې ئې اوفرمائیل: ﴿فَطَوَّعَتۡ لَهُۥ نَفۡسُهُۥ قَتۡلَ أَخِيهِ فَقَتَلَهُۥ فَأَصۡبَحَ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ﴾ یعنی د هابیل صلح وړاندې کول او نصیحتونه کول کار اونه کړو بلکه قابیل لره دهغه شریر نفس دخپل رور په قتل باندې آماده کړو، تردې چې قتل ئې کړو. په لفظ طوّعت کې دې طرف ته اشاره ده چه تر یوې زمانې پورې قابیل په خپله کشمش کې (حیران) وو چې دهغه دحسد او دنفس شرارت هغه لره په قتل باندې آماده کولو خو انسانی فطرت او د رور د نصیحت خبرې هغه لره ددې جرم نه منع کولو خو آخر داچې نفس پرې غالب شو او په ټولو مصلحتونو ئې سترګې پټې کړې اوهغه ئې قتل ته تیار کړو.

د قتل دا واقعه څنګه او چرته او په کوم عمر کې پیښه شوه په دې کې تفسیری روایات مختلف دی او قرآن کریم دا نه دی متعین کړی، په دې وجه دا بحث پریښودل غوره دی.

د آیت په آخری جمله کې ارشاد دې: ﴿فَأَصۡبَحَ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ﴾ یعنی قتل کولو سره قابیل په سخت تاوان او نقصان اوچتونکو کې شامل شو. ابن کثیر فرمائی چه دټولو نه لویه خساره خو د آخرت ده چه په ناحقه د قتل مجرم شو او د آخرت د سزا حقدار شو.(۱) او ددې نه هم زیاته دا چې په حدیث کې د رسول کریم ﷺ ارشاد دې چې په دنیا کې چرته او کله هم څوک په ظلم قتل کړې شی دهغې وبال به د آدم علیه السلام په دغه ځوی باندې هم وی. ځکه چې هم هغه دټولو نه مخکې د ناحقه قتل بنیاد ایښودې دې.(دا حدیث صحاح او مسند احمد کې په صحیح اسناد سره مذکور دې.)(۲)

دا خو د آخرت تاوان شو او په دنیا کښې یو تاوان نغد دا شو چې مور پلار ئې ناراضه شو، د خپلو متو طاقت ئې خپل لاس سره مړ کړو. دویمه داچې الله تعالی په دنیا کې دهغه یوه خپه بې کاره کړه چې هغې سره ورته ګرځیدل ګران شو، او مخ ئې تور شو چې هغې سره دهغه رسوائی اوشوه.(مجاهد بروایت ابن جریر) تردې چې هغه په دې تکلیف او مصیبت کې مړ شو.

په پنځم آیت کې د مقتول د دفن کولو یوه عجیبه قصه ذکرده دهغې حاصل دادې چې دهابیل مقتول لاش په دنیا کې رومبې لاش وو چې مرګ پرې راغلې وو. او تر دغه وخت پورې دا معلومه نه وه چه څوک مړ شی نودهغه په لاش به څه کولې شی. په دې وجه الله تعالی د آدم ځوی ته د ښودنې دپاره یو کارغه راولیږلو چې هغه په خپلو پنجو او مخوکې سره یوه کنده اوکنستله. په تفسیری روایاتو کې دی چه کنده ئې اوکنستله او یو مړ کارغه ئې پکې دفن کړو.

(۱) تفسیر ابن کثیر: ج ۳، ص ۸۹

(۲) صحیح البخاری، کتاب الجنائز، باب قول النبی صلی الله علیه وسلم یعذب المیت ببعض، ومسند أحمد، رقم الحدیث: ۳۶۳۰

چې دهغې په ليدلو سره قابيل پوهه شو چه ما له هم دغسې كول پكار دی چې كنده اوكنم او دخپل رور لاش پكې دفن كړم.

الله تعالى چونكه انسان ته د عقل او پوهې او د كسب اوكار كولو قوت وركړې دې په دې وجه هغه په خپل هر كار كې تعليم اوتعلم ته محتاج دې بغير د ښودې ده ته هيڅ يو كار نه ورځي. په خلاف د نورو حيواناتو چه په هغوی كې دا عقل او پوهه او دكسب او كار كولو قوت نه دې ايښودې شوې نو د ډيرو حيواناتو حال دادې چې الله تعالى هغوی ته دهغوی ضروريات په خپله ورښائی هغوی دچا نه تعليم اوتعلم ته محتاج نه وی. د بطخې بچې دچا نه د لامبو وهلو دتعليم حاصلولو نه بغير اوبو كې لامبو وهی. او هر ځناور بغير ددې نه چې دچا نه تعليم حاصل كړی قدرتی طورباندې خپل ټول ضروريات پوره كوی. په دې موقع باندې هم د كارغه په زړه كې خو دا پخپله راغلل چه هغه دخپل رور لاش له كنده اوباسی او ښخ ئې كړی خو قابيل ته په خپله دا په پوهه كې رانغلل تردې چې كارغه ئې په داسې كولو باندې اوليدو نو زده ئې كړل.

خلاص دا ده چه په دې طريقه ئې اسلام كې د مړو د دفن كولو طريقه اوښودله چې دوی (مړو) لره په زمكه كې دفن كړې شی. د آدم عليه السلام نه واخله تر د خاتم الانبياء صلى الله عليه وسلم پورې په ټولو شريعتونو او ټولو اُمتونو كې د دفن كولو همدغه طريقه راروانه ده او روانه به وی.

د مُړو د دفن كولو كومه طريقه كومه چې د آسمانی هداياتو په ذريعه جاری كړې شوه همدغه يوه داسې معتدل اومناسب طريقه ده چې په دې كې د مړی احترام هم باقی پاتې كيږی او ددې د لاش د زړيدو او خرابيدو نه چې كوم نفرت او تكليف نورو خلقو ته رسيږی هغه هم ختميږی د قرآن په الفاظو (سَوْاَةَ اَخِيْهِ) كې دې طرف ته اشاره هم ده ځكه چه لفظ (سُوْءَةَ) په عربی ژبه كې هر يو داسې څيز ته وئيلې شی چې دهغې په كهلاويدو يا ښكاره كيدو سره انسان ته تكليف او اذيت وی.

نورو قومونو او مذاهبو چې كوم صورتونه د مُړو د دفن كولو دپاره اختيار كړی دی په هغې كښې د مړی احترام خو څه كيږی بلكه تذليل او توهين ئې كيږی. په هندوانو كې خو د ساه د وتلو نه مخكې دهغه توهين او تذليل شروع كيږی او د مرګ نه پس هغه په بدترين عذاب أوركې اچوی او سوزوی ئې، په بعضې مذاهبو كې مړې چرته رازوړندوی چې مردار خور مارغان، ټپوسان، كارغان دهغې غوښه اوشوكوی اوئې خوری، بيا ئې هډوكی وغيره هغه خائې كې راوغورځيږی. او بعضې قومونه كښې ئې په تابوت كې د بندولو اود لاش محفوظ كولو رواج دې، په دې كې اګرچې د مړی څه احترام خو به كيږی، ليكن د لاش په خرابيدو سره چې كومه بدبوئی او جراثيم خوريږی او ټولو ژوندو انسانانو دپاره چه كوم مصيبت جوړيږی دهغې هيڅ آسان علاج په دې كې نشته چې هغه هر ځائې كې هر وخت هر يو استعمال كړې شی. خاص طبی او ډاكټری تدبيرونه نه هر چرته كيدې شی نه پرې د هر سړی وَس رسيږی. په دې وجه قرآن كريم د مړی دفن كولو طريقه يو خاص قسم نعمت اوګرځولو. ارشاد دې: (ثُمَّ اَمَاتَهٗ فَاَقْبَرَهٗ) (عبس) (ترجمه) بيا ئې هغه ته مرګ وركړو بيا ئې په قبر كې دفن كړو. بل ځائې كې ئې د

الله د نعمتونو په شمیرلو کې اوفرمائیل: ﴿أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ كِفَاتًا ۝ أَحْيَاءً وَأَمْوَاتًا﴾ (المرسلات، (ترجمه) آیا مونږ زمکه د ژوندو انسانانو او د مړو ځائې کونکې نه ده جوړه کړې. ددې واقعې په ذریعه قابیل ته د مړی د دفن کولو په تلقین کولو کې دا حکمت هم دې چه هغه ته د خپلې عاجزئ او بې وقوفئ اعتراف پیدا شی. ځکه د کارغه ددې واقعې په کتلو باندې قابیل اووئیل: ﴿يَا وَيْلَتَىٰ أَعَجَزْتُ أَنْ أَكُونَ مِثْلَ هَٰذَا الْغُرَابِ﴾ یعنی ډیر افسوس دې چې زه ددې کارغه برابر هم نه شوم، دې خو دومره پوهه شو چه بل کارغه به څنګه دفن کوی او ماته دخپل رور د دفن کولو دپاره دا صورت هم پوهه کې رانغې.

**هر ندامت (پښیمانتیا) توبه نه وی**

په آخری آیت کې اوفرمائیل: ﴿فَأَصْبَحَ مِنَ النَّادِمِينَ﴾ یعنی ددې هرڅه دکولو نه پس قابیل په نادمینو (پښیمانتیا کونکو) کې داخل شو یعنی په خپلو کړو باندې پښیمانه شو. د قرآن د الفاظو نه ظاره دا ده چه دا ندامت صرف طبعی ندامت وو کوم چې هر مجرم ته په خپل جرم باندې طبعًا کیږی خو صرف دا ندامت توبه نه ده او د جرم معاف کولو دپاره کافی نه ده، ترڅو پورې چې د الله نه ویره ددې سبب نه وی او آئنده دپاره ددې ګناه د پریښودو پوره عزم (قصد) نه وی. د مسند احمد او حاکم او بیهقی په روایت سره چې په حدیث کې (الندم التوبة)[1] کوم الفاظ منقول دی ددې نه مراد هغه ندامت دې چې دهغې سبب د الله نه ویره او آخرت وی اوچې دهغې نه پس د ګناه د پریښودو مضبوط عزم وی لکه څنګه چه د حدیث د نورو روایاتو نه ددې تائید کیږی.

شپږم آیت: ﴿مِنْ أَجْلِ ذَٰلِكَ كَتَبْنَا عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ کې ئې دا ارشاد اوفرمائیلو چې هم په دې وجه مونږ په بنی اسرائیلو باندې دا حکم لازم کړو چې کوم کس چا لره بغیر د قصاص یا بغاوت او شوکې نه په ظلم سره قتل کړو نوهغه داسې دې لکه چه هغه ټول انسانان قتل کړل. او چا چې چالره د ناحق قتل نه بچ کړل هغه داسې دې لکه چې هغه ټول انسانان ژوندی کړل. بیا ئې اوفرمائیل چې بنی اسرائیل خصوصیت سره د ناحق قتل او نورو ګناهونو نه د منع کولو دپاره زمونږ ډیر پیغمبران په ښکاره معجزو او نښو سره راغلل چې دهغې تقاضا دا وه چه دا خلق ناحق قتل ته نه ورتللې خو اوشوه دا چې په دوی کې زیات خلق په ظلم او ستم کې مبتلا شو او نه صرف د خپلو عوامو بلکه دخپلو انبیاؤ علیهم السلام په قتل باندې زړه ور شو، تردې پورې چې په آخر کې ئې د خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم د قتل منصوبې جوړې کړې.

**د یو کس قتل د پوره قوم د قتلولو برابر ونیلو کې حکمت:**

په دې آیت کې ﴿بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ﴾ دا اوفرمائیلې شو چې که څوک چا لره په ظلم سره قتل کړی نو دهغه په قصاص کې هغه لره قتلول جرم نه دې بلکه فرض دی، دغسې چې څوک په زمکه کې فساد پیدا کړی دهغه قتل هم جائز بلکه فرض دی. په زمکه کې د فساد پیدا کولو د تفسیر امامانو نه دوه تفسیرونه منقول دی (۱) یو دا چې د اسلامی حکومت خلاف بغاوت اوکړی، (۲) دویم دا چې عوام لوټ کول او قتلول شروع کړی.

---

[1] مسند أحمد (بألفاظ مختلفة) رقم الحديث: ۳۳۲۹

په دې آيت کې درې خبرې خاص طور باندې د غور قابلې دی:
(١) اول دا چې د آيت په شروع کې (مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ) ويلو سره دا اوښودلې شو چې مونږ هم په دې وجه بنی اسرائيلو ته د ناحقه قتل نه د منع کولو دپاره دا حکم ورکړې دې. د دې وجې نه مراد څه دې؟
(٢) دويمه دا چې دا حکم خو د آدم عليه السلام د زمانې نه تر د خاتم الانبياء صلی الله عليه وسلم پورې په هر اُمت او هر شريعت کې عام رارون دې، بيا په دې آيت کې بنی اسرائيلو لره د خاص کولو څه مطلب دې؟
(٣) دريمه دا چې په دې آيت کې چې د يو انسان قتلول د ټولو انسانانو د قتل برابر فرمائيلی شوی دی د دې څه مطلب دې؟
د ړومبۍ خبرې جواب دا دې چې د آدم عليه السلام د دوؤ ځامنو د دې خطرناکې واقعې او د دې د بدو نتائجو په لحاظ سره مونږ د ناحق قتل نه د منع کولو دپاره خاص احکام نازل کړل. نو ګويا دا حادثه سبب شو د هغې احکامو کوم چې د ناحق قتل په باره کې نازل شو.
د دويمې خبرې جواب دادې چې دا حکم خو د ټولو مخکينو او روستنو امتونو د پاره بې شکه چې عام دې د بنی اسرائيلو خصوصيت نه دې، خو چونکه د الله تعالی په علم کې وو چې بنی اسرائيل به په دې جرم کې ډير په جرأت سره مبتلا کيږی چې خپل انبياء به هم قتل نه بغير نه پريږدی، په دې وجه بنی اسرائيل د دې حکم خصوصی مخاطب جوړ کړې شو. سليمان بن علی وائی چې ما د حسن بصری نه تپوس اوکړو چې آيا دا حکم صرف دبنی اسرائيلو دپاره دې زمونږ دپاره نه دې؟ نو وې فرمائيل ولې به نه وې، آيا د الله تعالی په نزد د بنی اسرائيلو بدنونه زمونږ د بدنونو نه زيات قيمتی وو، خو صرف دهغوی د شرارتونو په وجه هغوی په ذکر کې خاص کړې شوی دی.
دريمه خبره چې د يو کس قتل د ټول قوم د قتل برابر څنګه شو؟ د دې جواب دادې چه په دې کې الله تعالی د قومی او جماعتی ژوندون يو اهم اصول طرف ته هدايت فرمائيلې دې هغه دا چې پوره انسانی افراد د يو مور پلار اولاد او په اصل کې يو قوم دې، سوا دهغه خلقو نه چې هغوی کفر اختيارولو سره خپل ځان د دې قوم نه جدا کړې وی. او په قومی او اجتماعی ژوندون کې پوره قوم د يو جسد حکم لری په دې وجه د يو کس قتل د ټولو د قتل برابر دې، او يو کس لره د ناحق قتل نه بچ کول د ټول قوم دحفاظت برابر دی.
په دې کې دې خبرې طرف ته هم اشاره ده چې چا د يو انسان په قتل باندې جرأت اوکړو هغه د نورو انسانانو په معامله کې هم زړه ور کيدې شی. دغسې که يوه ناحق وينه باندې سترګې پټې کړې شی. دهغې قصاص وانه خستلې شی نو د دې نتيجه به په پوره عالم کې د ظلم او د قتل وقتال صورت اختيار کړی. ځکه په بل ځائې کې ارشاد فرمائيلې شوې دې چې (وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ يّٰاُولِي الْاَلْبَابِ) (البقرة: ١٧٩) يعنی اې عقل والو! د قصاص حکم په جاری کولو کې ستاسو د ټولو د ژوند راز پټ دې.
دغسې په دې کې دې خبرې طرف ته هم اشاره ده چې که يو ځائې کې څوک سړې بل کس لره په ناحقه قتلوی نو نور خلق دې تماشائی جوړيدو سره دا واقعه نه ګوری بلکه دا دې اوګنړی چې دا قاتل مونږ ټول قتلوی په دې وجه دهغه د بندولو دپاره هر کس لره دخپل وس مطابق پوره

کوشش کول پکار دی. او دده په مقابل کې چې څوک چالره د ناحق قتل نه منع کړی نود اجر او ثواب او د نتیجې په اعتبار سره هغه داسې دې لکه چې هغه پوره قوم ژوندې کړو.
د آدم علیه السلام د دوه ځامنو قصه کومه چې په شپږو آیاتونو کې ذکرکړې شوې ده پوره شوه، په دې کې څومره عظیم الشان اصولی او فروعی أحکام او هدآیات راتلونکو نسلونو ته ملاؤ شو ددې څه تفصیلات د مذکوره آیاتونو لاندې تاسو اوکتل، په قرآن کریم کې د یوې تاریخی واقعې د ذکرکولو نه اصل مقصد هم دا وی.

## د جرم او د سزا متعلق د قرآن پاک څو ضابطې

| |
|---|
| اِنَّمَا جَزٰٓؤُا |
| بیشکه \| سزا |
| بیشکه د هغه کسانو سزا کوم چې |
| الَّذِیْنَ یُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَیَسْعَوْنَ فِی الْاَرْضِ |
| دهغه کسانو \| چې جنګ کوی \| دالله سره \| اودرسول دهغه سره \| اوکوشش کوی \| په زمکه کښې |
| دالله او د رسول سره جنګ کوی \| او دزمکې په مخ دفساد کولو کوشش کوی |
| فَسَادًا اَنْ یُّقَتَّلُوْٓا اَوْ یُصَلَّبُوْٓا اَوْ تُقَطَّعَ اَیْدِیْهِمْ |
| د پاره دفساد \| چې قتل دې کړې شی هغوئ \| یادې په سولئ کړې شی \| یادې پریکړې شی \| لاسونه دهغوئ |
| نودهغوئ سزا دا ده \| چې هغوئ قتل کړې شی \| یا په سولئ کړې شی \| یاترې لاسونه اوپښې |
| وَاَرْجُلُهُمْ مِّنْ خِلَافٍ اَوْ یُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ ؕ ذٰلِكَ لَهُمْ |
| اوخپې دهغوئ \| مخالفې \| یا دې اوشړلې شی \| دزمکې نه \| دا [سزا] \| دپاره دهغوئ |
| ادل بدل کټ کړې شی \| اویا د وطن نه اوشړلې شی \| ..................... د دوی دپاره دا شرمندګی |
| خِزْیٌ فِی الدُّنْیَا وَلَهُمْ فِی الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِیْمٌ ۝ لا اِلَّا الَّذِیْنَ |
| رسوائی ده \| په دنیاکښې \| اوده دهغوئ دپاره \| په آخرت کښې \| سزا \| لویه \| مګر هغه کسان |
| په دنیا کښې ده \| او په آخرت کښې دوی دپاره لوئې عذاب تیار شوې دې \| البته څوک چې |
| تَابُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ تَقْدِرُوْا عَلَیْهِمْ ۚ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ |
| چې توبه اوباسی \| مخکښې ددې نه \| چې تاسوقادر شئ \| په هغوئ باندې \| نو پوهه شئ \| چې بیشکه الله |
| ددې نه ړومبې چې تاسو پرې قابوبیا مومئ توبه اوباسی \| ..................... نو پوهه شئ چې الله ﷻ |
| غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ۝ ع |
| بښونکې مهربان دې \| |
| بخښونکې او مهربان ذات دې \| |

**آسان ترجمه قرآن:** کوم خلق چه د الله او رسول سره جنګ کوي او په زمکه کښې فساد خوروی، د هغوی سزا دا ده چه دوی دې قتل کړې شي. یا دې پهانسي کړې شي. یا دې د هغوی لاس او پښې ادل بدل کټ

کړې شي. یا دې زمکې نه وشړلې شي - دا خو دنیا کښې د هغوی رسوائی ده او دوی لره په آخرت کښې لوئ عذاب دې خو هغه خلق ددې نه مستثنٰی دي چه ستاسو په هغوی باندې د لاس بر کیدو نه مخکښې هغوی توبه وباسي په داسې صورت کښې په دې پوهه شئ چه الله ډیر بخونکې، ډیر مهربان دې.

**خلاصه تفسیر**

﴿ إِنَّمَا جَزٰٓؤُا الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ﴾ کوم خلق چه الله ﷻ سره او دهغه رسول ﷺ سره جنګ کوی او [ددې جنګ کولو مطلب دادې چه] ﴿ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا ﴾ په ملك کښې فساد [بدامنی] په مخه خوروی [مراد ترې نه لاره شوکول یعنی ډاکے غورځول دی په هغه ځا چه ورته الله ﷻ د شرعی قانون د مخه امن ورکړې وی کوم چه رسول ﷺ ښکاره کړې دې .لکه مسلمانان او ذمیان شو.اوهم په دې وجه دې ته د الله ﷻ او رسول ﷺ سره جنګیدل ځکه اووئیلې شو چه هغوی دالله ﷻ ورکړې امن مات کړو او هر کله چه درسول الله ﷺ په ذریعه ښکاره شوې دې نوهغوی سره جنګ کول هم ورته اووئیلې شو.مطلب دا چه څوك دغسې حرکتونه کوی] ﴿ أَنْ يُّقَتَّلُوْٓا أَوْ يُصَلَّبُوْٓا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيْهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِّنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ ﴾ دهغوی همدغه سزا ده چه [په یو حالت کښې خودې] اووژلے شی [هغه حالت دادې چه دغه لار شوکوونکو صرف چالره وژلے وی اومال ئے ترې نه نه وی لوټ کړې] یا [که دویم حالت راپیښ شوې وی نو] په سولۍ دے کړې شی [داهغه حالت دې چې چا نه یې مال لوټ کړې وی او قتل کړې یې هم وی] یا [دریم حالت راپیښ شوې وی نو] دهغوی لاسونه اوپښے دے د مخالف جانب نه [یعنی ښے لاس ګسه پښه دې] پرې کړې شی [دا هغه حالت دې چې صرف مال ئے اخستے وی او قتل ئے نه وی کړې] یا [که څلورم حالت راپیښ شوې وی نو] دزمکې [د آزاد استوګنې] نه دې [جیل ته په لیږلو] اوښکلے شی [دا هغه حالت دې چې نه خوئے مال اخستے وی نه یې قتل کړې وی بلکه د قصد کولو نه پس ګرفتار شوې وی] ﴿ ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا ﴾ دا [ذکر شوې سزا خو] هغوی دپاره په دنیا کښې سخت شرمیدل [او ذلیله کیدل] دی ﴿ وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴾ ا و دوی لره به په آخرت کښې [چه کوم] لوئې عذاب وی [هغه به لا بیل وی] ﴿ إِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْ قَبْلِ أَنْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهِمْ ﴾ خو کوم خلق چه‌وړاندې ددې نه چه تاسو ئے ګرفتار کړئ توبه اوکړی نو [په دې حالت کښې] ﴿ فَاعْلَمُوْٓا أَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴾ اوګنړئ چه بیشکه الله ﷻ به [خپل حقوق] اوبخښی [اود توبے په قبلولو کښې] به مهربانی اوکړی [مطلب دا چه پورته ذکر شوې سزا دحد اودالله ﷻ دحق په ډول ده چه دبنده په معاف کولو سره نه معاف کیږی. دقصاص اود بندګانو دحق په ډول نه ده چه د بندګانو په معاف کولو سره معاف کیږی. نوهر کله چه دګرفتاره کیدونه مخکښې ددغه خلقو توبګار کیدل ثابت شی.حد به ترې ساقط شی یعنی حد به نشی جاری کولې ځکه چه دا دالله ﷻ حق دې البته دبندګانو حق به باقی وی نوکه مال ئے چا نه اخستے وی هغه به یې په ذمه وی که قتل کړې یې وی نو قصاص به ترې اخستلې شی لیکن دغه ذمه او قصاص معاف کول دمال دخاوند اود مقتول د ولی اختیار مند حق دې.

## معارف او مسائل

**دقرآني قوانينو عجيبه انقلابي طرز:** په رومبو آيتونو کښې دهابيل دقابيل واقعه اوددې دګناه د لوئيوالي ذکر وو، ورپسې آيتونو کښې اودهغې نه پس دقتل لوټ مارئ، ډاکې اچولو اود غلا کولو دشرعي سزاګانو بيان دې، دډاکې اودغلا دسزاګانو ترمنځه، دالله تعالى نه دويرې کولو او عبادتونو په ذريعه دهغه دنزديکت حاصلولو ښودنه ده، دقرآن کريم داطرز په ډيرې باريکې او نازکې طريقې سره په ذهنونو کښې انقلاب راولي، ددنيا دسزاګانو دکتابونو په شان يوائې جرم اودهغې سزانه بيانيږي، بلکه هرجرم اوسزا سره دالله تعالى اودآخرت ويره ورکوي اودانسان مخه داسې يوعالم ته اړوي چه دهغې په تصورسره هغه لره دهرعيب اوګناه نه پاکوي، که په حالاتو او واقعاتو ژور نظر واچولې شي نوثابت به شي چه دالله تعالى اودآخرت د ويرې نه بغير ددنيا هيڅ قانون، پوليس اوفوج، په دنيا کښې دجرمونو بندولو باعث نشي جوړيدې، دقرآن حکيم داطرز داسې حکيمانه دې چه په هغې سره دانسان تربيت کيږي، چې په دې بنا په دنيا کښې دې انقلاب اوبدلون راوستو اوداسې انسانانو يو معاشره ئې پيدا کړه چه په خپلې پاکيزګئ کښې دفرښتونه هم لوړ مقام لري،

**دشرعي سزاګانودرې قسمونه:؟** په ذکرشوؤ آيتونو کښې دډاکې اوغلا، دشرعي سزاګانود تفصيل او ددغه آيتونو دتفسيربيانولو نه وړاندې مناسب دى چه ددغه سزاګانو په باره کښې دشرعي سزاګانو څه وضاحت اوکړې شي، ځکه چه دناخبرئ په وجه ډيرو ليکلو اولوستلو والا خلق ته هم ددې نه اشکالونه اوکړکيچونه مخې ته راځي، ددنيا په عامو قوانينو کښې دجرمونو ټولو سزاګانو ته مطلقاتعزيرات وئيلې شي اګرچه دهغې تعلق هرقسم جرم سره وي، لکه تعزيرات هند او تعزيرات پاکستان وغيره واخله، ليکن په اسلامي شريعت کښې ددې طريقه بدله داسې ده چه دجرمونو سزاګانې درې قسمه ګرځولې شويدى، ① حدود، ② قصاص، ③ تعزيرات، ددې دريو اړو قسمونو دپيژندلو اوپه مطلب باندې ئې د پوهيدونه وړاندې په دې خبره ځان پوهول پکار دى چه کومو جرمونو سره دبل انسان زيان، تاوان هم ترلې وي، نو په هغې سره ① يو دالله تعالى نافرماني کيږي او ② بل دالله تعالى په مخلوق باندې ظلم کول هم دى لهذا داسې مجرم دالله تعالى اودبندګانو دواړو مجرم ګرځي. په دې بنا ځنې جرمونو کښې دالله تعالى حق غالب وي اوځنې کښې دبندګانو حقوق غالب اوپه ډاګه ښکاره وي، لهذا په دغې غالب حيثيت په احکام اډانړه لري،

بل په دې خبره هم ځان پوهول ضروري دى چه اسلامي شريعت، دخاصو خاصو جرمونو نه سوا د نورو جرمونو دسزاګانو دپاره څه پيمانه نه ده ټاکلې، بلکه دهغې په باره کښې ئې قاضئ له اختيار ورکړې دې چه کوم جرم بندولو دپاره کومه سزا په کومه زمانه کښې ياعلاقه کښې ضروري اوګڼړي هغه دې جاري کړي. داهم روادى چه دهرې علاقې اوهرې زمانې اسلامي حکومت دشرعي قاعدو په جوړ دقاضيانو په اختيار اتو باندې پابندى اولګوي اود خپلې مقرر کړې پيمانې ئې پابند کړي ځنګه چه په روستنو زمانو کښې داطريقه جاري شويده اوتراوسه پورې په ټولو ملکونو کښې تقريباهم دا صورت رواج لري،

اوس په دې خبره ځان پوهه کړئ چه قرآن اوسنت دکوموجرمونوسزاګانې تاکلې نه دی بلکه دحاکمانو اوقاضیانوپه حواله کړې شویدی، دغه قسم سزاګانوته دشریعت په اصطلاح کښې [تعزیرات] وئیلې شی اودکوموجرمونوسزاګانې چه قرآن اوسنت تاکلې دی هغه دوه قسمه دی، ① په کوموکښې چه دالله تعالی حق غالب ګرځولې شویدې دهغې سزاته حد وئیلې شی، جمع ئې [حدود] ده، ② بل قسم هغه دی چه دشریعت له مخه پکښې دبنده حق غالب منلې شویدې دهغې سزاته قصاص وئیلې شی،

قرآن کریم د[حدود] او[قصاص] بیان پوره تفصیل اووضاحت سره پخپله کړیدې د نورو تعزیری جرمونوتفصیلات ئې درسول الله ﷺ بیان اودحاکمانوصوابدیداورائې ته پریښې دی، خلاصه داده چه ددې درې واړوسزاګانواحکام په ډیروځیزونوکښې مختلف دی ځوک چه دعام عرف په بنا، دهرجرم سزاته تعزیروائی اودشرعی اصطلاحاتوپه فرق باندې نظرنه لری، هغوئ اکثرپه شرعی احکاموکښې غلطیانواومغالطوسره مخ کیږی،

تعزیری سزاګانې، دحالاتوپه جوړسپکولې، سختولې شی اومعاف کولې ئې هم شی. په دې کښې دحاکمانواختیارات وسیع اوډیردی، په حدودوکښې حکومت، حاکم قاضی یاامیرپوتې قدرې هم دخل نشی ورکولې، نه پکښې څه بدلون راوستې شی اونه پکښې دکمی، زیاتی کولواجازت شته، دزمانې یاعلاقې په بدلیدوهم په دې څه اثرنه پریوزځی، اونه ئې ځوک حاکم یاامیرمعاف کولې شی،

په اسلامی شریعت کښې حدود، پنځه دی، د① ډاکې، ② غلا، ③ زنا، او④ دزناد تورپورې کولو سزاګانې چه دقرآن کریم په نص سره ثابتې دی، [۵] پنځم حد دشراب خورئ دې چه دصحابه کرامو ﷺ په اجماع سره ثابت شوې دې، په دې طریقه سره د ټولو پنځوؤ جرمونو سزاګانې متعین شوې چې هغه ته حدود وئیلې شی پنځوقسموسزاګانوکښې څنګه چه ځوک حاکم، امیریاحکومت هیڅ قسم دخل نشی کولې، دغه شان دمجرم په توبې سره ئې هم ورته سزانشی معاف کولې، البته که الله تعالی ئې توبه قبوله کړی نودآخرت سزابه ئې ورته هم هغه معاف کړی، صرف دډاکې په سزاکښې فرق داسې شته چه دګرفتارئ نه رومبې دهغه په داسې قسم توبې کولوسره هم حدمعاف کیدې شی، چه دهغه دمعاملاتودجاج اغستونه ئې توبه په رښتیا ثابته شی، خوهرکله چه ګرفتارشی نوتوبې لره ئې هم څه اعتبار نشته، ددې نه علاوه نور حدود، په توبې سره هم په دنیاکښې هیچرې نشی معاف کیدې که توبه ئې دګرفتارئ نه وړاندې وی اوکه روستو. په تعزیری جرمونوکښې دحق سره سمون لرونکې سفارشات آوریدې شی لیکن په حدودالله کښې، سفارش کول هم ناروادی، اوآوریدل ئې هم ناروادی، چنانچه رسول الله ﷺ دې نه سخته منع کړیده، دحدودوسزاګانې عموما سختې دی اوددې دجاری کولوقانون هم په دې شان سخت دې چه پکښې هیچاته دکمی، زیاتی کولواجازت نشته اونه ئې ځوک معاف کولې شی، څنګه چه سزااوقانون سخت ایښودې شویدې دغه معاملې لره په توله باندې د ساتلوپه غرض، دجرم اوددې دثبوت مکمل کولواوپوره کولودپاره شرطونه هم سخت ایښودې شوی دی، دغه شرطونوکښې که یوشرط هم پاتې شونوحدنشی جاری کیدې یواځې په دې سره نه بلکه ثبوت کښې یومعمولی شک پیداکیدوسره هم حدنشی جاری کیدې، داسلام منلې شوې قانون په دې کښې دادې چه: «الحدود تندرء بالشبهات» [حدود په

معمولي شبهې سره هم ساقطيږي!
دلته په دې خبره هم ځان پوهول پکاردي چه هرکله په څه صورت کښې شرعي حدپه دې وجه په يو مجرم جاري نکړې شي چه دهغې په ثبوت کښې څه شبه وي ياپکښې څه ضروري شرط کم وي، نو دا ضروري نه ده چې مجرم ته دې مکمل آزادي ورکړې شي چه بيابياپه جرم کولوزړور شي بلکه حاکم به ورته دهغه دحال مناسب تعزيرورکوي، هرکله چه دشريعت تعزيري سزاګانې عموماداشان بدني او جسماني دي چه عبرت ترې اغستې شي اودجرمونوبنديزپرهم راتلې شي، مثلادزناثبوت دپاره که صرف درې ګواهان وي چه ثقه اومنصفان هم وي اود دروغو وئيلوشبه پرنشي کيدې خوديوګواه د کميدوپه وجه پرشرعي حدنشي جاري کولې، ليکن مطلب ئې داهم نشوچه مجرم مکمل آزاد کړې شي بلکه دوخت حاکم به ورلره مناسب تعزيري سزاورکوي چه د دروغګولوپه صورت کښې به وي. يادې بل مثال داسې واخلئ چه دغلا دثبوت دپاره چه کوم شرطونه ټاکلې شويدي په هغې کښې که څه کمې يا شي ياپه کښې شبه پيداشي نوشرعي حد[لاس پريکول] پرجاري کيدې نشي خودې مطلب نشو چه هغه بيخي آزادشوبلکه هغه ته به دهغه دحال مناسب نورې تعزيري سزاګانې ورکولې شي.

دحدودوپشان، دقصاص سزاهم قرآن کريم ټاکلې ده چه دځان په بدله کښې دې ځان واخلی د زخمونوپه بدل کښې دهغې برابرسزادې ورکړې شي، خوفرق پکښې دادې چه حدود دالله تعالى دحق په حيثيت جاري کړې شويدي، که حق خاوندانسان ئې معاف کول غواړې نو معاف کيږي به نه اوحدبه خامخاجاري کيږي، مثلاکه يوغل لره دمال خاوندمعاف هم کړي نو دغلا شرعي سزابه نشي معاف کيدې، ليکن قصاص کښې، قرآن اوسنت، دبنده حق لره غالب ګرځولې دې، چنانچه په قاتل باندې دقتل دجرم ثابتيدونه پس به هغه دمقتول ولي ته حواله کولې شي که هغه اوغواړي قصاص به ترې اغستې شي اوکه اوغواړي نومعاف کولې ئې هم شي،

دغه حال دزخمونودقصاص هم دې، داخبره خودرته وړاندې معلومه شويده چه هرکله مجرم لره [قاتل] دمقتول ولي معاف کړونودهغې دامطلب نشوچه هغه دې مکمل آزاد کړې شي چه دې د نوروخلقوپه قتلولوباندې نبه زړور شي بلکه دحکومت وخت کاردادې چه هغه ورته بله مناسبه سزا [الکه عمرقيدوغيره] ورکړي څکه چه دمقتول ولي خوخپل حق ورته معاف کړوليکن دنوروخلقودمال وجان، حفاظت کول دحکومت وقت فرض داسې دې چه ددغې جرم دبندولوپه غرض ورته بله مناسبه عبرتناکه سزاورکړي،

تردې پورې دشرعي سزاګانوحدودو، قصاص اوتعزيراتوشرعي اصطلاحات اودې سره تړلې ضروري معلومات بيان کړې شو، اوس په دې باره کښې دآيتونوتفسيراودحدودو تفصيل بيانولې شي، په وړومبي آيت کښې دهغه کسانوسزابيان کړې شويده چه د الله تعالى او د رسول سره مقابله او جګړه کوي اوپه زمکه کښې فسادراولاړوي،

دلته اول په دې خبره غورکول دي چه الله اورسول سره دجګړې کولواوپه زمکه کښې دفساد راوړلاړولو مطلب څه دې؟ اوداڅوک خلق دي، محاربه، لفظ د[حرب] نه راغستې شوې دې، ددې اصلي معنى راڼښکل اوراشوکل دي، اوپه محاوروکښې دالفظ د[سَلم] په مقابله کښې استعمالولې شي چه معنى ئې امن اوسلامتي ده، معلومه شوه چه دحرب مطلب بدامني خوروړل دي، اوښکاره خبره ده چه دغلا، قتل اولوټ مارپه يويا دوؤ وارداتوسره عام امن نشي

شوکولې کیدې، بلکه دا صورت هله جوړیږي چه څوک طاقتور ټولې، لارشو کولو، قتل او لوټ مارکولو ته بدې اووهي، چنانچه فقهاؤ رحمهم الله صرف هغه ډله یا کس ددې سزا مستحق ګرځولې دې چه وسله را پورته کړي او په عوامو ډاکې اچوي، دحکومت قانون په زور او طاقت سره ماتول غواړي، داسې خلقو ته په نورو الفاظو کښې ډاکوان، یا باغیان وئیلې شي، په یواځې ځان په پټه پناه هغه جرم کوونکی په دې کښې داخل نه دی چه کله کله جرم کوي لکه ګنړ کپ وغیره شوچه داپکښې نه راخلیږي، [مظهري][1]،

دویمه خبره دا د غور وړ ده چې ډاکوان او باغیان خوانسانانو سره مقابله او جنګونه کوي لیکن دلته ئې الله اورسول ته نسبت کړې دې نو ددې نسبت کولو مطلب دادې چه کله یو طاقت او جماعت دالله تعالی اودرسول ﷺ قانون په زور او طاقت سره ماتول غواړي نو اګر چې په ظاهره ددې مقابله دعوامو او انسانانو سره وي لیکن داجنګ او مقابله په حقیقت کښې اسلامی حکومت سره ده اوهرکله چه اسلامی حکومت کښې دالله او رسول قانون جاري وي نو دامقابله او جنګ هم الله اورسول ﷺ ته منسوب شو،

خلاصه داشوه چه رومبی آیت کښې ذکرشوې سزا هغه ډاکوانو او باغیانو دپاره ده چه اجتماعی قوت سره حملې کوي، عام امن بربادوي او په ډاکه دحکومت دقانون ماتولو کوشش کوي، اوښکاره خبره ده چه ددې مختلف صورتونه کیدې شي، مال لوټول هم کیدې شي، دچا په ننګ ناموس باندې دحملې کولو نه واخله تروژلو او وینوتویولو پورې ټول ددې په مفهوم کښې شامل دی، اوس دې سره د [مقاتلې] او [محاربې] ترمنځه فرق داسې معلوم شو چه [مقاتله] هغه جنګ ته وئیلې شي چه وینې پکښې بهیدې شي اګرچه څوک په کښې اونه وژلې شي او وینه ئې توئې نکړې شي، اوددې په ترڅ کښې مال هم لوټ کړې شي، لیکن د [محاربې] دلفظ معنی په طاقت سره بدامني خورول او سلامتي شوکول دي. لهٰذا دالفظ په اجتماعی طاقت سره دعوامو دمال، ځان او آبرو [ننګ، ناموس] څخه په یو باندې هم بلوسیدلو دپاره استعمالیږي چه په نورو ټکو کښې ورته لارشوکول، ډاکه اوداړه غورځول او بغاوت هم وئیلې شي،

ددې جرم سزا، قرآن کریم پخپله اوټاکله اود الله تعالی دحق [سرکاري جرم] په ډول ئې جاري کړه چه دشریعت په اصطلاح کښې ورته [حد] وئیلې شي اوس اوګورئ چه په دې آیت کښې دډاکې اولارې شوکولو سزا څه ده؟ ددې څلور سزاګانې ذکر دي:

﴿أَن يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَافٍ أَوْ يُنفَوْا مِنَ الْأَرْضِ﴾ [دوئ دې او وژلې شي، یادې په سولئ [په دار] اوخیژولې شي یادې د دوئ لاسونه خپې دمختلفو جانبونه پریکړې شي یادې دزمکه نه اوښکلې شي]، دړومبو دریو سزاګانو دپاره دباب تفعیل دمبالغې صیغه استعمال شوه چه دفعل په بیا بیا او په سختئ سره ئې په کولو دلالت کوي، په دې کښې دجمعې په صیغې استعمالولو سره دې اړخ ته اشاره اوشوه چه د دوئ وژل، په سولئ [په دار] ئې خیژول یالاسونه خپې ئې پریکول دعامو سزاګانو په شان نه دی چه یواځې په هغه کس جاري کیږي چاچه جرم کړې وي بلکه، دغه ټوله ډله کښې که یو کس هم دغه جرم اوکړی نو دغې ټولې ډلې ته به دوژلو، په سولئ دخیژولو یادلاسونو خپو پریکولو سزا ورکولې شي،

[1]) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۸۶، ۸۷.

دا شان دې اړخ ته پکښې هم اشاره مونده شي چه دغه سزاګانې دقصاص په ډول نه دي چه دمقتول داولياؤ [اختيارمنو وارثانو] په معاف كولو سره به معاف كيږي، بلكه داشرعي حد، د الله تعالى د حق په ډول جاري كړې شويدې، كه نقصان مونده ونكي خلق ئې معاف هم كړي نو د شريعت له اړخه ئې سزانه معاف كيږي، دادواړه حكمونه څكه مرادواغستې شوچه په صيغې دتفعيل سره ذكرشويدي [تفسير مظهري وغيره] ([1])،

دلارې شوكولو داځلورسزاګانې په حرف د [أو] ذكركړې شوې چه په څوځيزونو كښې داختيار وركولو دپاره هم استعماليدې شي اوتقسيم كاردپاره هم، په دې وجه دامت فقهاؤ دصحابه كرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله يوې ډلې د [أو] حرف داختيارور كولو دپاره داسې ګڼړلې دې چه دې ځلورو سزاګانو كښې امام اوامير ته دشريعت له مخه دا اختيارور كړې شويدې چه د ډاكوانو دقوت، رعب اودجرمونو سختوالى اوسپكوالى ته دې اوګوري اودهغې مطابق دې داځلوروارو سزاګانې، ياددې څخه څه يوه جاري كړي،

د سعيدبن مسيب رحمه الله، عطا رحمه الله، داؤد رحمه الله، حسن بصري رحمه الله، ضحاك رحمه الله، نخعي رحمه الله، مجاهد رحمه الله اودځلوروامامانو څخه دامام مالك رحمه الله مذهب هم دادې، ليكن امام ابوحنيفه رحمه الله شافعي رحمه الله احمدبن حنبل رحمه الله اودصحابه كرامو رضي الله عنهم اوتابعينو رحمهم الله يوجماعت [أو] لره د تقسيم كارپه معنى كښې اغستې دې اوپه دغه بنائې دآيت مطلب دابنودلې دې چه دشوكمارو [دلارو شوكوونكو] او د شوكې په مختلفو حالاتوباندې مختلفې سزاګانې مقررې دي چه تائيد ئې ديو حديث شريف نه هم كيږي كوم كښې چه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روايت منقول دي چه رسول الله ﷺ، ابوبرده اسلمي سره دصلح معاهده [الوظ] كړې ووچه هغه دغه لوظ مات كړو او په هغه خلقوئې ډاكه اوغورځوله كوم چه مدينې منورې ته دمسلمانيدو دپاره په لاره راروان وو، په دې واقعه كښې جبرائيل عليه السلام دسزادا حكم دالله تعالى له اړخه راوړلو ([2]) چه چاقتل هم اوكړو اومال ئې هم لوټ كړونو هغه دې په سولئ اوخيژولې شي، چاچه يواځې قتل كړې دې او مال ئې نه دې لوټلې، هغه دې قتل كړې شي اوچاچه قتل نه دې كړې صرف مال ئې لوټلې دې نو دهغه لاسونه خپې دې دمختلفو اړخونو نه پريكړې شي اوكه څوك د دوئ څنې مسلمان شي نو دهغه جرم دې معاف كړې شي، اوچاچه لوټ اوقتل هيڅ نه وي كړې صرف خلق ئې ويرولي وي چه په هغې سره عام امن كښې خلل راغلې وي نو هغه دې جلاوطن [دوطن نه خارج] كړې شي، كه دې خلقود داراسلام څوك استوګن [مسلم ياغيرمسلم] وژلې وي اومال ئې نه وي لوټ كړې نو سزائې ﴿أَنْ يُقَتَّلُوا﴾ ده چه ټول دې قتل كړې شي اوګرچه دغه قتل بې واسطې [انيغ په نيغه] صرف څو كسانو كړې وي، كه څوك ئې وژلي هم وي اومال ئې هم لوټ كړې وي نو دهغوئ سزا ﴿أَوْ يُصَلَّبُوا﴾ ده چه په سولئ اوخيژولې ي، صورت به داسې وي چه ژوندې به په سولئ آويزان كړې شي، بيابه په نيزې ياپه بل تيره څيزسره ئې خيټه څيرې كړې شي اوكه دغه خلقوصرف مال لوټلې وي څوك ئې وژلې نه وي نو سزائې:

﴿أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِنْ خِلَافٍ﴾ ده يعنې ښې لاس ئې سره دمړونده اوګسه پښه ئې دګيټو سره پريكړې شي، دلته هم اګر چې يو څو كسانو بلاوواسطه [انيغ په نيغه] لوټل كړې دي

[1]) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٨٨
[2]) تفسير البغوي تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٢٧

[او تولو د سیرمې نه دی کړی] خو سزا به ئې تولو د پاره هم دغه وی، ولې چه دغه کار اګرچه څو کسانو کړې دې خو بیاهم د تولو په ډاډئې کړې دې، ځکه تول په دغه جرم کښې شریک حسابیږی که دلوټ مار، قتل کولو نه ورانډې ورانډې بندیان کړې شونو سزائې ﴿أَوْ يُنفَوْا مِنَ الْأَرْضِ﴾ ده، یعنی زمکې نه اوښکل دی،

دفقهاؤ رحمهم الله یو جماعت زمکې نه داوښکلو د امطلب اغستې دې چه دوئ دې د [دار اسلام] نه اوښکلې شی او څنو تر د امطلب اغستې دې چه کوم ځائې کښې ئې ډیره اچولې ده د دغه ځائې نه دې اوښکلې شی، حضرت عمر رضی الله عنه په داسې معاملاتو کښې دافیصله کړیده چه که چرې مجرمان دغه ځائې نه اوښکلې شی او علاقه کښې آزاد پریښودل شی نو دهغه ځایونو خلق به تنګوی او آزاروی به ئې، لهذا دغسې مجرم دې په بندی خانه کښې بند او ساتل شی چه په زمکه کښې بل چرته ترنشی وتلې چه او ګرځی راؤ ګرځی، چنانچه امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله هم داخبره اختیار کړیده (۱)،

پاتې شو دا سوال چې داوسنئ زمانې حالاتو ته چه اوکتې شی نو ثابتیږی چه شو کمار یو اخې لوټل او وژل نه کوی بلکه دزنانؤ په تنګ ناموس هم صرفه نه کوی دخلقو په تښتولو او دهغوئ په تاوان بودولو [رسولو] هم ارنه وی، نو د داسې ورانو، ویجاړو کولو به څه سزاوی؟ هر کله چه په قرآن کریم کښې داجمله: ﴿وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا﴾ موجود ده چه دغه قسم تولو ورانو ویجاړولو ته شامليدې شی نو په دې کښې ښکاره خبره داده چه امام او امیر ته به اختیاروی چه په دغه صورتونو کښې دهر صورت دحال مناسب ددغه څلورو سزاګانو څخه یو سزاورکړی او که د بدکارئ شرعی ثبوت تراوشی نو دزناحد دې پرې جاری کړی،

دغه شان یو صورت داهم دې چه قتل یاډاکه ئې نه وی کړې مګر څوک ئې زخمیان کړی وی نو دزخمونو د قصاص شرعی قانون به پرجاری کولې شی [تفسیر مظهری] (۲)،

په آخر د آیت کښې فرمائی: ﴿ذَٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا ۖ وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ یعنی په دنیا کښې پر دغه جاری کړې سزا خو دنیا کښې شرمول دی چه یوه نمونه ده لیکن د آخرت سزا دې نه هم سخته او تر دیرې مودې پاتې کیدونکې ده، دې نه معلومه شوه چه په دنیوی سزاګانو [حدود] قصاص او تعزیراتو، سره د آخرت سزا، بغیر توبې نه نه معاف کیږی، البته که دنیوی سزامونډ وسره، مجرم، دزړه داخلاصه توبه اوباسی نو د آخرت سزا به ورته معاف کړې شی،

په بل آیت ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن قَبْلِ أَن تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ﴾ کښې یو استثناء په دې شان ذکر شویده چه ډاکو او باغی چه د حکومت په قابو او قبضه کښې دراتلو نه ورانډې دخپل وس او طاقت په حالت کښې دخپل کار نه توبه اوباسی او پخپله ددغه کار نه منع شی نو دغه شرعی حد به پرنه شی جاری کولې، خو داسې استثناء دحدودو په عام قانون کښې بل ځائې کښې داسې نشته چه کنې دغلا، زنا وغیره جرم دقاضی په عدالت کښې چې په چاثابت شی نو په اخلاص توبې کولو سره به پر دهغې حد جاری کول ساقط شی، البته داخبره شته چه په اخلاصی توبې سره به ئې د آخرت سزا معاف شی، توبې سره په دنیا کښې دحد نه خلاصیدل نشته، ددې تفصیلی بیان

---

(۱) الشامیة، کتاب الحدود، باب قطع الطریق: ج ۲، ص ۱۱۳
(۲) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۹۰

به څو آيتونو نه پس دغلا د سزا په بيان كښې راشي،

ددې استثناء حكمت دا دې چه يو اړخ ته دړاكوانو په سزا كښې دا سختي اختيار كړې شويده چه دغه ډله كښې كه ديو كس نه هم دغه جرم اوشو نو سزا به ئې دغه ټولې ډلې ته وركولې شي، په دې وجه ددې استثناء په ذريعه معامله سپكه كړې شوه چه په توبې كولو سره ددنيا سزا هم معاف كيږي، دې نه علاوه پكښې يو سياسي خيز هم دا سې شته چه په يو طاقتور جماعت باندې هر وخت قابو موندل آسان نه وي، په دې وجه دهغوئ دا شوق پيدا كړې شو چه توبې كولو ته ئې مخه راؤګرځي،

دا شان په دې كښې يو مصلحت دا هم دې چې د يو نفس قتل كوؤنكي لره لويه سزا ده. نو په اسلامي قانون كښې يو اړخ دا سې هم جوړ كړې شو چه په دا سې سزا ګانو كښې كموالي راشي، په دې غرض ورته ددغه ورانكاريؤنه دلاس په سر كولو شوق وركړې شو، چنانچه هم ددې اثر دا وو چه هر كله علي اسدي د مدينې طيبې په خواؤشا كښې يوه ډله ځان سره په دې غرض راجمع كړې وه چه په لاره تلونكي خلق په لوټ كولو سره تنګوي، هغه يو ورځ په قافله كښې ديو قاري دخلې نه دا آيت واؤريدو: ﴿قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ﴾ دغه قاري ته ورغلو او ورته ئې ددې آيت د دوباره لوستلو خواست او كړو، چه واؤئې ريدو نو خپله توره ئې په كاتۍ كښې بنده كړه، د شو كونه توبګار شو او مدينې منورې ته اورسيدو، دغه وخت د مدينې منورې حاكم مروان بن حكم وو، حضرت ابو هريره رضي الله عنه دهغه لاس اونيولو او د مدينې منورې ته ئې بوتلو، د قرآن كريم دا آيت ئې ورته اولوستلو او وې فرمائيل چه ده ته هيڅ سزا نشي وركولې، هر كله چه حكومت هم په هغه باندې دقابو موندو نه پاتې راغلې و وځكه ټول په دې خبره خوشحاله شو،

دغه شان دحضرت علي رضي الله عنه په زمانه دخلافت كښې حارثه بن بدر په بغاوت كولو سره بهر ته اووتو او د لوټ مار، لارې شكونې وغيره پيشه ئې اختيار كړه، بيا هم ورته الله تعالى د توبې كولو توفيق وركړو، دحضرت علي رضي الله عنه په وړاندې چه راغلو نو شرعي حد ئې پر جاري نكړو،

دلته دا خبره هم ياده لرل پكار دي چه په دا سې توبې سره اګر چه سزا خو ئې معاف شي ليكن دخلقو كړې تاوان به ورته نه معاف كيږي، مثلاً د چالو تلې اصل مال ور سره موجود وي نو هم دهغې واپس كول ضروري دي، كه څوك ئې وژلې يا زخمي كړې وي نو دهغې قصاص به تر اغستې شي، البته كه قصاص ورته دهغې حقدار معاف كړي نو قصاص به ترېنه نشي اغستې چه دا هم ددغه حقدار بنده حق دې مثلاً دمقتول اختيار من وراثان او زخمي شوې په خپل ځان ددې حقدار وي. كه چرې لوټ كړې اصلي مال ورسره موجود نه وي نو دهغې په بدل كښې دې دهغې قيمت يا بل دا سې څيز وركړي چه مالك دمال سره ئې پر جوړه راشي، يا دې د مالك نه دمعاف كولو خواست او كړي چه هغه ئې معاف كړي نو هله معاف شو. دا مسلك دا امام ابي حنيفه رحمه الله او د جمهورو فقهاؤ رحمهم الله دې، كه ژور نظر وا چولې شي نو دحقوق العباد نه ځان خلاصول د توبې يوه ضروري برخه دا سې ده چه بغير ددې نه توبه نه مكمل كيږي، مطلب دا شو چه يو دړاكو او شو كمار [غل] به هله توبه كوونكې [توبګار] منلې شي چه حقوق العباد حقدار و ته ادا كړي يا ئې تر معاف كړي.

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَابْتَغُوْٓا اِلَيْهِ

| اې هغه کسانو | چې ایمان موراوړې دې | او ویریږئ د الله نه | او اولټوئ | هغه ته

| اې د ایمان خاوندانو! د الله ﷻ نه اوویریږئ | او دهغه دربار کښې

الْوَسِيْلَةَ وَجَاهِدُوْا فِيْ سَبِيْلِهٖ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۳۵﴾

ذریعه | او کوشش اوکړئ | په لاره دهغه کښې | ښائیږي چې تاسو ته | کامیابي نصیب شي

د کامیابۍ وسیله اولټوئ | او دهغه په لار کښې کوششونه اوکړئ | چې کامیاب شئ

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا

بیشکه هغه کسان | چې انکار ئې اوکړو | که چرې وې | دهغوئ دپاره | هغه څه

بیشکه چا چې کفر اوکړو | که چرته هغه ټول څه چه په مخ د زمکې دی هغه او د هغې پشان نور هم

فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ لِيَفْتَدُوْا

چې په زمکه کښې دی | ټول | او په مثل دهغې | ورسره نور | د پاره ددې چې فدیه ورکړي

د دوی ملکیت شي | او دوی په هغې سره د قیامت د ورځې دعذاب نه فدیه ورکول اوغواړي

بِهٖ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ وَلَهُمْ

په هغې سره | د عذابه | دورځې د قیامت نه | نو قبول به نه کړې شي | دهغوئ نه | او وی به دهغوئ دپاره

نو بیا به هم د دوی نه قبول نشي | ............ او دوی دپاره

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۳۶﴾ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ

عذاب دردناك | غواړي به هغوئ | چې اووځي | د اور نه | او نه به وی هغوئ | وتونکی

دردناک عذاب تیار شوی دی | دوئ به غواړي چې د دوزخ نه راووځي | خو د هغې نه به وتونکي نه وی

مِنْهَا وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿۳۷﴾ وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْٓا

دهغې نه | او وی به دهغوئ دپاره | عذاب | همیشه | اوغل سړي او غله ښځه چې ده | نو پرېکړئ [تاسو]

............ او د دوئ دپاره د همیشه عذاب مقرر دي | اوغل که نارینه وی او که زنانه نو د دواړو نه

اَيْدِيَهُمَا جَزَآءً بِمَا كَسَبَا نَكَالًا

لاسونه دهغوئ دواړه | دپاره د سزا ورکولو | په هغه عمل | چې کړې دې هغوئ دواړو | دپاره دعبرتناکي سزا

لاسونه کټ کړئ دا د هغوی دعمل بدله ده | او دا سزا د الله تعالی د طرفه مقرر شوي ده

مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۳۸﴾ فَمَنْ تَابَ مِنْۢ بَعْدِ

د طرفه د الله نه | او الله | غالب دي | د حکمت خاوند دي | نو هغه څوك | چې توبه ئې اوویستله | روستو د

............ الله ﷻ غالب دي او صاحب د حکمت دي | نو څوک چې د زیاتي کولو نه پس توبه اوباسي

ظُلْمِهٖ وَاَصْلَحَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

ظلم خپل نه | او اصلاح ئې اوکړه | نو بیشکه الله | به توبه قبلوی | د هغه | بیشکه الله

او خپله اصلاح اوکړي | نو بیشکه الله ﷻ به ورته خپل رحمت متوجه کړي | بیشکه الله ﷻ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ۝ | اَلَمْ تَعْلَمْ | اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ | مُلْكُ السَّمٰوٰتِ |
| بښونکي | مهربان دي | آيا تاته معلومه نه ده | چي بيشکه الله لره ده | بادشاهي دآسمانونو |
| بښونکي اومهربان دي | آيا تاته دا معلومه نه ده چي د آسمانونو او د زمکي | | | |
| وَالْاَرْضِ ؕ | يُعَذِّبُ | مَنْ يَّشَآءُ | وَيَغْفِرُ لِمَنْ | يَّشَآءُ ؕ |
| اودزمکي | هغه عذاب ورکوی | هغه چاته چي اوغواړي | اوبښنه کوی هغه هغه چاته | چي اوغواړی |
| بادشاهي صرف دالله ﷻ ده | چاته چي اوغواړی نو سزا ورکوی | او چاته چي اوغواړی نو ښښنه ورته کوی | | |
| وَاللّٰهُ | عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيْرٌ ۝ | | |
| اوالله | په هر څيز باندي | قادردي | | |
| اوالله ﷻ په هر څيز قادر دي | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** اې دايمان خاوندانو! د الله نه ووېرېږئ او هغه ته د رسيدو د پاره وسيله ولټوئ او د هغه په لاره کښې جهاد وکړئ اميد دې چه تاسو به کامياب شئ يقين وکړئ چه کومو خلقو کفر کړې دې چه زمکه کښې څومره هم څه دي که دا ټول د دوی شي او د دې هومره نور هم شي دې د پاره چه د قيامت په ورځ د عذاب نه بچ کيدو د پاره دا فديې د پاره ورکړي ، بيا به هم د دوی دا پيش کش قبوله نه شي او دوی لره به دردناک عذاب وي. دوی به دا غواړي چه د اور نه ووځي ليکن دوی به نه شي وتلې ، اودوی ته به داسې عذاب وي چه هميشه به وي. او کوم سړې چه غلا وکړي او کومه ښځه چه غلا وکړي نو ددې دواړو لاسونه کټ کړئ ، دې د پاره چه دوی ته د خپل عمل بدله ملاؤ شي او دالله د طرف نه عبرتناکه سزا وي. او الله قدرت والا هم دې اوحکمت والا هم. بيا چه څوک د خپل د ظلم دې عمل نه توبه وباسي او خپل معاملات صحيح کړي نو الله به دده توبه قبوله کړي بې شکه الله ډير بخونکې مهربان دې آيا ته نه پوهيږې چه د زمکې او د آسمان بادشاهي ټوله دالله ده؟ چه چاته وغواړی نو عذاب ورکوي او چه چاته وغواړی نو بخښي ئې او الله په هر يو شي باندې قادردې.

### خلاصه تفسير

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ ﴾اې دايمان خاوندانو دالله ﷻ [د احکامو د مخالفت] نه ويريږئی [يعنی ګناهونه پريږدئی]﴿ وَابْتَغُوْٓا اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ ﴾ او [دعبادت په ذريعه] دالله ﷻ نزديکت لټوئی [يعنی دضروری عبادتونو پابند اوسيږئی] ﴿ وَجَاهِدُوْا فِيْ سَبِيْلِهٖ ﴾ او[دعبادتونو بعضے خاص]دالله ﷻ په لارکښې جهاد کوئی ﴿ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝ ﴾ اميد دې چې [په دې طريقه به] تاسو [پوره]کامياب شئ [اوکاميابی داده چه دالله ﷻ رضامندي حاصله شی او ددوزخ نه خلاصے بيا مومی] ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ﴾ يقينًا کوم خلق چه کافران دی که [فرض کړه د] دوی [نه بعضې هر يو] سره دټولې دنيا ټول څيزونه وی [دے کښې ټولې ښخے کړې او قدرتی خزانے راغلې ] ﴿ وَمِثْلَهٗ مَعَهٗ لِيَفْتَدُوْا بِهٖ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ ﴾ او[يو اځې دا ټول څيزونه نه بلکه که]دے څيزونو سره دغه هومره څيزونه نور هم وی دپاره ددې چه ددې په ورکولو سره د ورځې د قيامت دعذاب نه خلاص شی بيابه هم دغه څيزونه هيچرې

ددوی نه قبول نکړی شی او عذاب نه به بچ نشی بلکه [دوی لره به دردناك عذاب وی [بیا به عذاب کښې ، دداخلیدو نه پس] ﴿ يُرِيدُونَ أَنْ يَّخْرُجُوا مِنَ النَّارِ ﴾ ددې خبرې خواهش [او آرزو] به کوی چه دوزخ نه [په څه شان سره] راووزی ﴿ وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنْهَا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴾ او [دا خواهش به یې هیچرې پوره نشی او] دوی به دې نه کله نه راووزی او دوی لره به عذاب دهمیشه وی [یعني په څه تدبیر سره به یې نه ایساریږی اونه به د سزا همیشوالی ایساریږی].
﴿ وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْٓا اَيْدِيَهُمَا ﴾ او څوك سړې چه غلاوکړی او [دغه شان] کومه ښځه چه غلا اوکړی نو [ددوی حکم دادې چه ائې حاکمانو]ددې دواړوښے لاس[په مروند باندې]پریکړنی ددوی[ددې] ﴿ جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِّنَ اللّٰهِ ۗ ﴾ دکړو په بدل کښې [او دا بدل]په ډول دسزا [دې] دالله ﷻ د طرفه ﴿ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴾ اوالله د لوئې قوت خاوند دے [کومه سزا چه غواړی مقرروی ئے او] لوئې دحکمت خاوند دے [چه هم مناسب سزا تاکی] ﴿ فَمَنْ تَابَ مِنْۢ بَعْدِ ظُلْمِهٖ وَاَصْلَحَ ﴾ بیا چه څوك [دشرعی قاعدې په جوړ] توبه اوکړی دخپلې دے زیاتی [یعنی دغلا] کولونه پس او [مخکښې دپاره] دعملونو سمے راولی [یعنی غلا وغیره نه کوی په خپلې توبے کلك پاتې کیږی] ﴿ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ ۗ ﴾ نو بیشکه الله ﷻ به په ده [دده په حال باندې رحمت سره] توجه اوکړی چه توبے سره به یې شوی گناهونه معاف کوی [اوپه توبے باندې د کلك پاتې کیدو په وجه به زیاته مهر بانی پرې کوی] ﴿ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴾ بیشکه الله ﷻ لوئې دبخښنے خاوند دے [چه دده گناه ئے معاف کړه] لوئې د رحمت خاوند دے [چه په آئنده کښې یې هم پرې زیاته مهربانی اوکړه ائې مخاطبه] ﴿ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ ﴾ آیا ته نه پوهیږے [یعنی ټول پوهیږی]چه یواځې الله ﷻ لره ثابت دې حکومت دټولو آسمانونو او زمکې ﴿ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ ۗ ﴾ هغه چه چالره اوغواړی سزابه ورکړی اوچه چالره اوغواړی معاف به ئے کړی ﴿ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴾ اوالله ﷻ لره په هرڅیز باندې پوره قدرت دې.

## معارف اومسائل

ددې آیتونونه وړاندې په تیرشوی آیتونو کښې دډاکې اوبغاوت شرعی سزااودهغې د احکامو تفصیل بیان شوې وو، اوس دې درې آیتونونه پس دغلا دشرعی سزا بیان راتلونکې دې، په دې منځنی آیتونو کښې تقوی، عبادت، فرمانبرداری اوجهاد سره دمینې پیدا کولو، دکفر، عناد اونافرمانئ تباه کاری بیان شویده، دقرآن کریم په دې خاص طرز چه ژورنظر واچولې شی نو معلومه به شی چه دقرآن کریم عام طرزدادې چه هغه خالص په حاکمانه شان سره د تعزیر او سزا قانون نه بیانوی بلکه دپاللوپه انداز کښې ذهنونولره دجرمونونه بندولو دپاره هم تیار وی، دالله تعالی اودآخرت ویره اودجنت نعمتونه اوراحتونه ورته رامخې ته کوی چه زړونه ئې دجرم نه کرکجن جوړ کړی، چنانچه دجرم اوسزادقانون نه روستو اکثر ﴿ اتَّقُوا اللّٰهَ ﴾ وغیره بیا بیا راوړی، دلته هم په رومبی آیت کښې د درې څیزونو حکم ورکړې شویدې،
① اول د ﴿ اتَّقُوا اللّٰهَ ﴾ [الله تعالی نه ویریږئ] حکم ورکړې شویدې، ولې چه، دالله تعالی ویره داسې یو څیزدې چه انسان لره په حقیقی ډول دپټواوښکاروجرمونونه ایسارولې شی،
② دویم ارشاد دادې: ﴿ وَابْتَغُوْٓا اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ ﴾ یعنی دالله تعالی نزدیکت لټوئ د [وسیلة] لفظ د [وسل] نه مشتق دې، معنی ئې یوځائې کیدل اوپیوست کیدل دی، یعنی په سین او صاد دواړو

سره [وصل، او، وسل] هم دغه معنی لری، فرق دومره قدرې دې چه په صاد سره [وصل] معنی د یوځائې کیدلو او پیوست کیدلو معنی ورکوی او [وسل] په سین سره په مینې محبت سره دیو ځائې کېدو معنی ورکوی، چنانچه صحاح جوهری او د اصفهانی په مفردات القرآن کښې هم ددې تصریح کړې ده. په دې بنا، صاد سره وصلة، او، وسیلة هرهغه څیزته وئیلې شی چه د دوؤ څیزونو ترمنځ یوځائې والی او پیوست کیدل راولی، برابره خبره ده چه دا د مینې محبت په وجه وی او که د بل څه په وجه وی او سین سره وَسیلة، هغه یوځایې والی او پیوست کیدل دی چه د مینې محبت له کبله وی [لسان العرب] مفردات راغب] [1]،

د الله ﷻ د طرف ته [وسیله] دا مطلب لری چه یوڅیزبنده لره خپل معبود ته په مینې محبت سره ورنزدې کړی، په دې وجه پخوانو بزرګانو، صحابه کرامو رضی الله عنهم تابعینو رحمهم الله په دې آیت کښې د وسیلې تفسیر په طاعت [فرمانبرداری] نزدیکت، ایمان او عمل صالح سره کړې دې، د حاکم په روایت حضرت حذیفه رضی الله عنه فرمائیلی دی چه د وسیلې نه مراد نزدیکت او فرمانبرداری ده [2]، او ابن جریر رضی الله عنه د حضرت عطاء رحمه الله مجاهد رحمه الله او حسن بصری رحمه الله وغیره نه هم دا [مطلب] نقل کړیدې [3]،

ابن جریر رحمه الله وغیره، د حضرت قتاده نه د دې تفسیر دا سې نقل کړې دې ﴿تقربوا الیه بطاعته والعمل بما یرضیه﴾ [الله تعالی ته نزدیکت حاصل کړئ د هغه په فرمانبرداری سره او د هغه د رضا د پاره په عمل کولو سره] [4]. په دې بِنا د آیت د تفسیر خلاصه دا شوه چه د الله تعالی نزدیکت لټوئ د ایمان او نیک عمل په ذریعې سره،

او د مسند احمد رحمه الله په یو حدیث کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ او فرمائیل: وسیله د جنت یو اعلی درجه ده چه دې نه پورته بله درجه نشته تاسو د الله تعالی نه دعا کوئ چه دغه درجه ماته راکړی [5]. د صحیح مسلم په یو روایت کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی هرکله چه مؤذن آذان اوکړی نو تاسو هم هغه کلمات ورپسې وایئ بیا په ما درود لیږئ او ما د پاره د وسیلې دعا کوئ [6]،

دې احادیثو نه معلومه شوه چه، وسیله] په جنت کښې دیوې خاصې درجې نوم دې چه رسول الله ﷺ سره خصوصیت لری نو په دې آیت کښې هرمؤمن ته د وسیلې طلب کولو او لټولو حکم په ظاهره دې خصوصیت سره سمون نه خوری خو جواب ئې بیخی صفا دا سې دې چه څنګه د هدایت اعلی مقام رسول الله ﷺ لره مخصوص دې چه د هغې د پاره به ئې همیشه دعا فرمائیله، لیکن د دې کوزې [لاندې] او منځنئ درجې ټولو مؤمنانو لره عامې دی، دغه شان د وسیلې اعلی درجه رسول الله ﷺ لره مخصوص ده او د هغې نه ښکته درجې ټولو مؤمنانو لره، هم د هغوئ ﷺ په ذریعه او واسطه عامې دی،

[1]) لسان العرب: ج ١١، ص ٧٢٢، ومفردات القرآن للراغب: ج ١، ص ٥٢٣، ٥٢٢

[2]) مستدرک الحاکم، رقم الحدیث: ٣٧٤٣ تفسیر سورة المائدة

[3]) تفسیر الطبری تحت هٰذه الآیة: رقم الحدیث ١١٩٠٠ تا ١١٩٠٣

[4]) تفسیر الطبری تحت هٰذه الآیة: رقم الحدیث ١١٩٠٢

[5]) مسند أحمد رقم الحدیث: ٧٤٨١ مسند ابی هریرة رضی الله عنه۔

[6]) صحیح مسلم، کتاب الصلٰوة، باب استحباب القول مثل قول المؤذن الخ: ج ١، ص ١٦٦

حضرت مجدد الف ثاني رحمه الله په خپلو مکتوباتو کښې او قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله په تفسیر مظهري کښې په دې خبرداري ورکړې دې چه هر کله په لفظ د [وسیله] کښې د محبت او رغبت مفهوم شامل دی نو دا اشاره دې اړخ ته ده چه د وسیلې په درجو کښې ترقي، د الله تعالی او د هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مینې محبت باندې موقوفه ده چه مینه، د سنتو د تابعدارۍ نه پیدا کیږي، ولې چه د الله تعالی ارشاد دی:

﴿فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ﴾ (۱) لهذا څومره چه څوک په خپلو عبادتونو، معاملاتو، اخلاقو او د کاروبار او ژوند په ټولو اړخونو کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سنتو تابعداري کوي هومره به ورته د الله تعالی محبت حاصلیږي او هغه به پخپله د الله تعالی په نزد محبوب او خوښ شي، او څومره چه محبت به زیاتېدو کوي هومره به د الله تعالی نزدیکت حاصلیږي.

د وسیلې د لفظ لغوي تشریح او د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله د تفسیرنه هر کله چه دا معلومه شوه چه هغه څیز چه د الله تعالی د رضا او نزدیکت وسیله جوړیږي، هغه انسان لره الله تعالی ته د نزدې کیدو وسیله جوړیږي، په دې کښې څنګه چه ایمان او نیک عمل داخل دی دغه شان په کښې پیغمبرانو او نیکانو خلقو سره ملګرتیا او محبت کول هم داخل دی ولې چه دا هم د الله تعالی د رضا حاصلولو اسباب دی څکه د دې په وسیله د الله تعالی نه دعا کول درست شو، چنانچه حضرت عمر رضی الله عنه د قحطۍ په زمانه کښې حضرت عباس رضی الله عنه لره وسیله جوړه کړه او د الله تعالی نه ئې د باران د پاره دعا او غوښته او الله تعالی قبوله کړه (۲)،

د یو روایت مطابق رسول الله صلی الله علیه وسلم یو نابینا صحابي رضی الله عنه ته د دعا غوښتلو ښودنه دا شان اوفرمائیله: اللّٰهُمَّ اِنِّي اَسْئَلُکَ وَاَتَوَجَّهُ اِلَیْکَ بِنَبِیِّکَ مُحَمَّدٍ نَبِيِّ الرَّحْمَةِ، [منار] (۳)،

په دغه آیت کښې اول د تقوی هدایت اوکړې شو، بیا د ایمان او نیکو عملو نو په ذریعه الله تعالی ته د نزدیکت حاصلولو، وروسته ئې په آخر کښې ارشاد اوفرمائیلو: ﴿وَجَاهِدُوا فِي سَبِيلِهِ﴾ [جهاد کوئ د الله تعالی په لار کښې] اګرچه په نیکو عملونو کښې جهاد هم داخل وو خو هر کله چه د دې درجه د ټولو نیکو عملونو نه زیاته وه نو د دې اعلی مقام ښودلو د پاره ئې بیل څکه په نخښه کړو، لکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي: [ذِروَةُ سِنَامِهِ الجِهَادُ] (۴) [د اسلام اعلی مقام جهاد دی] جهاد ته د خانګړې شان ورکولو یو حکمت دا هم دې چه هر کله په تیرو شوؤ آیتونو کښې د [فساد فی الارض] حرامېدل او نارواکېدل بیان شوي وو، د دنیا او آخرت سزاګانې ئې هم بیان شوې، او د جهاد ظاهري صورت [د فساد فی الارض] ښکاریدو، نو کیدې شوه چه څانا خبره بنده د [جهاد] او [فساد فی الارض] ترمنځه فرق نه وې کړې، لهذا د دې فرق واضح کولو د پاره ئې د جهاد حکم ئې په اهتمام سره اوکړو او په ﴿سَبِيلِهِ﴾ سره ئې اشاره دې خبرې ته اوکړه چه په ډاکې او بغاوت وغیره کښې چې کوم قتل او قتال کیږي او د خلقو مال تښتول کیږي هغه یوازې د ذاتي غرض د پاره لوټلې او تباه کولې شي، او ذلیل مقصدونه پرادانړه وي، لیکن د جهاد مقصد د الله تعالی کلمه بلندول او زور ظلم ختمول دی، اګرچه په ظاهره د [فساد فی

---

۱) التفسیر المظهري تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۳

۲) صحیح البخاري، کتاب الاستسقاء، باب سؤال الناس الامام الاستسقاء الخ: ج ۱، ص ۳۴۷

۳) السنن الکبرى للنسائي رقم الحدیث: ۱۰۴۹۵

۴) جامع الترمذي، أبواب الإيمان، باب ما جاء في حرمة الصلاة: ج ۲، ص ۸۸

الارضِ] او [جهاد] صورتونه یوشان ښکاري. په دې بيان سره د [فسادفی الارضِ] او[جهاد] ترمنځه فرق ښه په ډاکه شو.

په دويم، دريم آيت کښې د کفر، شرک اونافرمانۍ لوئې وبال په داسې اندازکښې ښودلې شويدې چه لږشان ژور نظرورته اوکړې شی نو دادانسان په ژوند کښې يولوئې انقلاب اوغټ بدلون راولی، دشرک، کفراونافرمانۍ ټولو په پرينښودلو مجبوره کوی،

هغه داسې چه عمومادخپلو خواهشاتو اوضروریاتو یادبال بچ دخپلو خواهشاتو او ضروریاتو پوره کولو دپاره انسان په ګناهونو کښې اخته کیږی اوداټول هله پوره کیدې شی چه مال دولت وردپاره جمع کړې شی خو دې دپاره دحلال حرام بیلتون نه کوی اوپه مخه ددې په حاصلولو کښې لګیاوی، په دې آیت کښې الله تعالی د دوئ دبدمستئ دعلاج دپاره اوفرمائیل چه دې څوورځې ژوندا اوددې دآرام دپاره، تاسوچه کوم څیزونه په ډیرخواروا او کوششونوسره جمع کوئ اوبیاهم ټول درته په جمع نه حاصلیږی، ددې ناروا خواهشونو انجام دادې چه هرکله د قیامت عذاب مخې ته راشی اوداخلق اوغواړی چه په دنیاکښې حاصل کړې مال، دولت او سازوسامان ټول په دې بدل کښې ورکړی چه ځان پرِ دعذاب نه بچ کړی نو دانشی کیدې، بلکه فرض کړئ چه دټولې دنیامال ودولت که دغه کس ته حاصل شی اوددې هومره نورهم ورته حاصل شی اوداټول په دې بدل کښې ورکړی چه ځان پرِ دغذاب نه بچ کړی نوهیڅ څیزبه ترې قبول نشی اونه به دآخرت دعذاب نه خلاص شی،

په دريم آيت کښې ترې داهم واضح کړل چه دکفارو دا عذاب به همیشه دپاره وی چه خلاصې به ترهیچرې نشی موندې،

په څلورم آیت کښې بیادجرمونو دسزاګانوبیان شروع شو چه دغلاشرعی سزابیانول دی، د غلا شرعی سزاپه حدودو کښې داخله ده، قرآن کریم پخپله ددې سزاټاکلې ده، دحاکمانو رائې اوخوښې ته ئې نه ده پرینښې، هرکله چه دائې دالله تعالی حق ټاکلې دې ځکه ورته [حدسرقه] وئیلې شی لکه فرمائی:

﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوٓا أَيْدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِّنَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ [دغل سړی اوغلې ښځې لاسونه پریکړئ د دوئ دکړوپه بدل کښې اوالله تعالی زبردست دحکمت خاوند دې]،

دلته په دې خبره هم ژورنظراچول دی چه دقرآن کریم خطاب په عامه توګه نارینټوته وی او زنانه په کښې د دوئ په تبع شاملیږی، لکه دمونځ، روژې، حج زکوة وغیره په تمام احکامو کښې د قرآن پاك او سنت هم دغه اصول دی لیکن دغلا په سزا کښې اود زنا په سزا کښې یې یوازې د نارینټو په ذکر کولو اکتفاء اونسوالې اونکړو بلکه دواړه صنفونه یې جدا جدا ذکر کړل او حکم یې بیان کړو ، ددې وجه داده چې معامله د حدودو ده چه معمولی شبه په کښې راشی نوحد ساقطیږی، اوعمل پرِ نشی کیدې ځکه ئې ددغې طریقې په ځائې داسې اوکړل چه نارینه اوزنانه ئې بیل بیل ښه واضح ذکرکړل اوهریودپاره ئې ځان ځانله حکم بیان کړوچه پرِعمل کولو کښې هیڅ څه شک شبه پاتې نشی. دلته بله خبره هم دغور کولو جوګه ده چه د [سرقې] دلفظ لغوی اوشرعی معنی اوتعریف څه دې؟. قاموس کښې لیکلې دی چه یو محفوظ ځائې

نه،دچامال،بغیر دهغه داجازت نه په پټه اغستل،[سرقه] ده،دائې شرعی تعریف دې[1] چه ددې له مخه دسرقې ثابتیدو دپاره څوځیزونه ضروری شو.

① یو داچه دغه مال دیوکس یادګنړو خلقو ذاتی ملکیت وی،دغلاکوونکی ملکیت په کښې شامل نه وی اونه پکښې ددې څه شبه وی،نه داسې ځیز وی چه دعوامو حقوق پکښې برابروی، لکه دعام خیرښیګړې اداري یاځیزونه شو.مطلب داچه که څوک داسې یو ځیزواخلی چه دده ملکیت په کښې هم شامل وی،یادده دملکیت شبه په کښې وی،یاپکښې دټولوعوامو حقوق یوشان وی نودسرقې حدبه پرېنښی جاری کولې البته حاکم به پرهغه تعزیرجاری کولې شی کوم قسم چه هغه مناسب ګنړی،

② دویم داچه دغه غلاکړې مال په دې شان محفوظ وی چه څوکیداری ئې کیږی،په کورکښې دننه ځاسره محفوظ وی،یابهرپه داسې یومکان کښې پروت وی چه جندره[کلف] ورته لګیدلې وی یاڅوک څوکیدارپرولاړوی که په دې شان محفوظ نه وی نودهغې په اغستوسره څوک غل نشی ګنړلې،که په داسې قسم حفاظت کښې څه شبه قدرې هم راولاړه شی نوبیا به هم پرحدنه جاری کیږی،البته ګناه به ئې وی اومناسب تعزیربه پرهم ورکولې شی،

③ دریم شرط دادې چه دبل چامال ئې بې اجازته اخستې وی،مطلب داچه که داسې څه مال چا اخستې وی چه دهغې داوړلویااستعمالولواجازت وی یاداجازت ورکولوشبه په کښې وی نوحدبه نشی جاری کولې،

④ څلورم په پټه اغستل دی،په دې بناکه چاپه ښکاره دچامال په سرګنده واغستونوهغه [سرقه] نه بلکه ډاکه ده چه سزائې وراندې بیان کړې شویده غرض داچه که په پټه ئې نه وی اغستې نود[سرقې] غلاحدبه پرنه جاری کیږی،

ددې تفصیل په آوریدوبه درته معلومه شوی وی چه هرهغه طریقې سره دچامال اغستل غلانه ده اونه پرد غلاحدجاری کیږی کوم ته چه عام خلق غلاوائی بلکه صرف هغه صورتونو کښې به پرشرعی حدجاری کیږی په کوموکښې چه داټول شرائط موجودوی،

تاسوته به داهم معلومه شوی وی چه په کوموصورتونوکښې شرعی حد دجاری کولو نه پاتې شی نودالازمه نه ده چه مجرم دې بیخی آزاد پریښودې شی،بلکه دوخت حاکم ورته د خپل صوابدید په جوړتعزیری سزاورکولې شی چه د دروو هلوپه شکل کښې هم کیدې شی،

دې نه داهم نه دی ګنړل پکارچه چرته دغلاڅه شرط اونه موندې شی اوحدپرجاری نشی نوګنی دغه اغستې مال،ځیزوغیره دې ورته حلال اوجائزوی بلکه ګناه اوعذاب دآخرت به ورد پاره ضرورر وی،په داسې مال خولاڅه کوې بلکه هغه مال به هم حرام وی اوعذاب د آخرت باعث به وی کوم چه دمالک دخوشحالئ اورضانه بغیراغستې شوې وی لکه چه دقرآن کریم په دې آیت: ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ﴾ کښې ئې چه وضاحت موجود دې،

دلته دا خبره د ذکر کولو وړ ده چې په قرآن کریم دغلااوزناپه باره کښې یوشان الفاظ راغلي دی. فرق دومره دې چه دغلاپه معامله کښې دنارینه ذکرړومبې شویدې لکه فرمائی: ﴿وَٱلسَّارِقُ وَٱلسَّارِقَةُ﴾ اودزناپه باره کښې دزنانه ذکرړومبې راغلې دې لکه فرمائی: ﴿ٱلزَّانِيَةُ وَٱلزَّانِى﴾

[1] ) القاموس الفقهي: ج ۱، ص ۱۷۱، والقاموس المحیط: ج ۲، ص ۲۱۲

ددې فرق حکمتونه مفسرينو رحمهم الله کښې ليکلي دي، په دغې کښې زړه ته پريوتونکي حکمت دې چه دغلا کولو جرم دښځې په نسبت سړي دپاره ځکه ډير سخت دې اوبد دې چه الله تعالى نارينه د ته د روزګار کولو هغه طاقت بخښلي دې چه زنانه ته ئې نه دې بخښلې، هر کله چه ده ته د روزګار ډيرې دروازې خلاصې کړې دي نوسره ددې نه په دې ذليل جرم کښې داخته کيدوله کبله دهغه جرم زيات ګڼړلي شي. دزنا په معامله کښې دزنانه ذکر ړومبې کيدل داحکمت لري چه الله تعالى زنانه ته، طبعي شرم اوحياسره داسې چاپيرچل [ماحول] بخښلى دى چه ددغې ټولوسره هم د بيحيايئ دغه کاراوکړي نودې دپاره سخت جرم ګرځي،

په دې آيت کښې دغلا دشرعي سزابيانولونه پس دوه جملې فرمائيلې شويدى ① يو ﴿جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا﴾ [چه داسزاددوئ دناکاره کارده] ② بله جمله دافرمائيلې شويده ﴿نَكَالًا مِّنَ اللّٰهِ﴾ په دې کښې بيادوه لفظونه دي ﴿نَكَالًا﴾ او ﴿مِّنَ اللّٰهِ﴾ په عربي لغت کښې د[نكال] معنى داسې سزاده چه دهغې په ليدونوروته هم سبق اوعبرت حاصليږي چه په هغې سره دجرم کولونه منع کيږي، زمونږ په پښتو کښې ددې ترجمه [عبرتناکه سزا] کيږي، لهذا په دې کښې اشاره دې ته شوه چه ددې سزاورکولو [الأس پريکولو] يوخاص حکمت داسې دې چه مجرم ته دهغه دبدو کړوسزا ورکړې شي اونوراوويريږي چه ددغه خراب اوناکاره جرم بنديزاوشي د [من الله] په زياتولو سره دې اهم مضمون ته اشاره ده چه دغلا جرم دوه حيثيتونه لري، ① يو داچه دبل مال په ناحقه اغستوسره ئې دهغې په مالک ظلم اوکړي ② بل داچه داسې کولو سره ئې دالله تعالى دحکم خلاف ورزى اوکړو. په اول حيثيت سره دغه دمظلوم حق جوړيدو، دهغې تقاضا داوه چه دحق خاوندکه دغه سزامعاف کول غواړي نومعاف کيدې شي لکه دقصاص په ټولو مسئلو کښې چه پرعمل کيدې شي ليکن په بل حيثيت سره هرکله چه دغه سزادالله تعالى دحق نه دخلاف ورزئ کړوده، په دې لحاظ سره ئې تقاضاداشوه چه دمالک دمال په معاف کولوبه هم معاف کولې ځکه نشي چه داحق دالله تعالى دې کوم ته چه دشريعت په اصطلاح کښې حد، ياحدود وئيلې شي. په دې بنا، [من الله] سره دغه دويم حيثيت اوټاکلې شواواشاره دې اړخ ته اوشوه چه داسزا [حد] دې [قصاص] نه دې، مطلب داچه دغه سزادسرکاري جرم په حيثيت سره ورکړې شويده، بل هيڅوک ئې سوادالله تعالى نه دمعاف کولوحق نه لري اوهغه به ئې په دنيا کښې نه معاف کوي،

په آخرد آيت کښې ﴿وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾ فرمائيلوسره ددې خبرې جواب هم اوشو، کومه چه په وازه خله عموماداسې کولې شي چه داسزاډيره سخته ده اوځنې بې شرمه اوبې ادبه خلق خو تردې وائي چه داوحشيانه سزاده [نعوذبالله منه] لهذا په دې الفاظوسره اشاره داسې اوشوه چه داسخته سزايواځې په دې بنانشي ورکولې چه خالص دقوي اوزبردست الله تعالى تجويز کړې سزاده بلکه د [حکيم] الله تجويز کړې سزاهم ده چه دهغه حکمتونه هم مبنى ده. کومو شرعي سزاګانو ته چه نن صبا ديورپ هوښياران سخته اووحشيانه سزاوائي، دهغې حکمتونه ضرورت اوفائدې به، ددې آيتونو دتفسيرنه پس په تفصيل سره بيانولې شي،

په دويم آيت کښې ئې داسې اوفرمائيل: ﴿فَمَنْ تَابَ مِنْۢ بَعْدِ ظُلْمِهٖ وَاَصْلَحَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ [څوک چه دخپل ناکاره کاراوغلانه منع شواودخپل عمل سمون ئې راوستونوالله تعالى به ئې معاف کړې ځکه چه الله تعالى ډير بخښونکي اومهربان دې]،

ځو آيتونه وړاندې دډاكې دشرعی سزا په بيان كښې ددې دمعافئ هم ذكردې اودلته د غلاد سزا بيانولونه پس هم دمعافئ ذكردې، خو ددې دواړو معافيانو ترمينځه يو خاص فرق د فقهاؤ ﷺ په نزد داسې دې چه دډاكې په سزا كښې الله تعالى، داستثناء په ډول اوفرمائيل: ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن قَبْلِ أَن تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ﴾ ددې استثناء مطلب دادې چه دامعافى دسزا په دنيا كښې هغه وخت ده كله چه دوئ [ډاكوانو اوشوكمارو] باندې حكومت قابو نه وى موندلې اوګرفتار شوى نه وى اوپه دغه حالت كښې دوئ توبه اوباسى، ليكن دغلاد سزانه پس دمعافئ ذكركول دا مطلب لرى چه په آخرت كښې به ئې توبه قبوله شى لكه څنګه چه په ﴿فَإِنَّ اللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ﴾ كښې ورته اشاره شويده، دانه چه دتوبې په وجه به ئې ددنيا شرعى سزا معاف كړې شى، بلكه مطلب دادې چه دآخرت سزا به ئې معاف كړې شى، په دې بنا فقهاء ﷺ په دې باندې متفق دى چه كه ډاكو دګرفتاريدونه وړاندې توبه اوكړى نو دډاكې شرعى سزا به پرِنه جارى كيږى مګر غل كه په هر حالت كښې توبه اوباسى خواه دګرفتاريدونه وړاندې وى اوكه روستو، په دې دواړو صورتونو كښې به ورته دغلا [حد] دنيوى سزا] نه معاف كيږى، كه دګناه دمعاف كيدو په وجه دآخرت دعذاب نه خلاصې بيامومى نو داورسره بې سمونه نه جوړيږى،

وروستې آيت كښې فرمائى: ﴿أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ وَيَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ [آيا، تاسو ﷺ ته دامعلومه نه ده چه دآسمانونو او زمكې سلطنت اوحكومت، يو اځې دالله تعالى دې اودهغه شان دادې چه چاته غواړى عذاب وركوى اوچه چاته غواړى بخښى ئې اوالله تعالى په هرڅيز قادر دې]،

تيروشوؤ آيتونو سره ددې آيت تړون اومناسبت دادې چه په دغې آيتونو كښې دډاكې اودغلا په سزا [شرعى حدودو] كښې دلاسونو خپو يا صرف دلاسونو دپريكولو سخت احكام بيان شوى وو، په سرسرى نظر كولو سره دغه احكام څنې خلقو ته داسې ښكارى چه ګنى دا دانسانى شرافت اوهغه د اكرم المخلوقات كيدلو سره سمون اوجوړښت نه خورى څكه چه انسان په مخلوقاتو كښې بهترين مخلوق دې، ددې شبهې لرې كولو د پاره الله تعالى په دې آيت كښې دا بيان كړل چه زه حقيقى مالك دټول جهان يم، هم زه قادر مطلق يم، اوددې په مينځ كښې دا ارشاد هم اوفرمائيلې شو چه هغه يو اځې عذاب اوسزانه وركوى بلكه معافى هم كوى، كومه چه دهغه په حكمت باندې اډانړه ده، هغه چه څنګه مالک مطلق او قادر مطلق دې دغه شان حكيم مطلق هم دې، څنګه چه انسانى طاقت دهغه دقدرت اوحكومت پوره اندازه نشى لګولې دغه شان دهغه د حكمتونو هم پوره اندازه انسانى عقل اودماغ نشى لګولې اود اصولو مطابق په غور فكر كولو سره ددې جوګه خلق پردومره قدرې علم بيامومندې شى چه دزړونو تسلى ئې پر كيږى،

ديورپ خلق اود دوئ دتعليم نه اثرموندونكى خلق په عامه توګه دااعتراض يادوى چه داسزاګانې سختې دى اوځنې ناتراشه اوبې تولې خلق خوتردې حده پورې وائى چه داسزا ګانې وحشيانه اودانسانى شرافت نه خلاف دى،

دې باره كښې خو [١] اول په وړاندې بيان شوى احكامو باندې نظر واچوائ چه قرآن كريم يو اځې دڅلور جرمونو سزاګانې پخپله ټاكلې دى چه په شرعى اصطلاح كښې ورته [حد] وئيلې شى چنانچه دډاكې اوشوكې ① سزا ښې لاس، ګسه پښه او د ② غلا سزا ښې لاس په

مړوند کېښي پرېکول، ③ دزناسزا په ځنې صورتونو کښي سل درې وهل او په ځنو کښې په سنګسارولو سره وژل دی، ④ په دروغه دزنا دتور پورې کولو سزا اتيا دُرې دی، ⑤ پنځم شرعي حد د شرابو څکلو دې چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم په اجماع سره اتيا دُرې مقرر کړې شوی دی، د دې پنځونه علاوه د نورو جرمونو سزا دوخت د حاکم صوابديد او رائې ته پرېښنودل شويده، چه د هغه جرم او مجرم د حالاتو په خبر اغستو سره د هغې مناسب سزا تجويز کولې شي، په دې باره کښې دا صورت هم کيدې شي چه د اهل علمو او اهل رائې په مشورې سره د سزاګانو تجويز کولو يو خاص نظام قائم کړې شي او قاضيان، ججان وغيره د هغې پابند کړې شي، لکه نن صبا عموما د اسمبلو په ذريعه چه تعزيري قوانين ټاکلې شي او قاضي ياجج په ټاکلو حدونو کښي سزاګانې جاري کوی البته په هغې پنځو جرمونو کښي څوک کس ياټولې يا اسمبلې د بدلون او ستوهيڅ اختيار نه لري د کومو سزاګانې چه قرآن يا اجماع سره مقرر کړيدی، ليکن دا جرمونه که د شريعت له اړخه د ګواهئ په ټاکلو ضابطو سره ثابت نشي، يا ثابت خو شي ليکن هغه شرطونه مکمل نه وی د کومو له مخه چه دا سزا جاري کيږي، نو په دې صورت کښې به هم شرعي حد نه جاري کيږي بلکه تعزيري سزا به ورکولې شي، دې سره دا شرعي ضابطه هم مقرره او منلې شويده چه د شبهې فائده مجرم ته رسي، د جرم په ثابتيدو يا د جرم د شرطونو څخه ديو شرط په څه څيز کښې شبه راشي نو شرعي حد به نشي جاري کولې البته که صرف جرم ثابت شي نو تعزيري سزا به ورکولې شي،

دې نه معلومه شوه چه په دې پنځو جرمونو کښې به ډير داسې صورتونه راوځي چه په هغې کښې به شرعي حدونه جاري کيږي، بلکه د حاکم په صوابديد به تعزيري سزاګانې ورکولې شي، هر کله چه اسلامي شريعت تعزيري سزاګانې ټاکلې نه دی بلکه د هرې زمانې او هر ماحول په جوړ د ملکونو دعامو قوانينو پشان په دې کښې هم بدلون او کمې زياتې کولې شی لهذا په دې باندې چاته د هيڅ قسم اعتراض کولو حق نشته، اوس صرف د دې پنځو جرمونو د سزاګانو مخصوص صورتونه بيانولې شي، مثلاً د اسلامي شريعت له مخې مطلقا په هرې غلا باندې د لاس پرېکولو سزا نشته کومې ته چه په عرف عام کښې غلا وئيلې شی بلکه لاس په هغې غلا باندې پرېکولې شي د کومې مخصوص تعريف چه وړاندې داسې تيرشويدې چه يو محفوظ ځائې نه په پټه طريقه په ناجائزه ول سامان راوښکلې شی د حفاظت سامان مات کړی، چنانچه په دې تعريف سره ډير صورتونه د غلا د سرقې د تعريف نه بهرته ووځی، مثلاً [محفوظ مکان] د شرط نه معلومه شوه چه عام پبلک مقاماتو مثلاً په جومات، عيدګاه، پارک، کلب، استيشن، ويټنګ روم، ريل، جهاز، کښې په عامو ځايونو کښې ايښې څيز څوک غلا کړی، يا د ونو [درختو] نه په غلا سره ميوې راوشوکوی يا شات [عسل] غلا کړی، نو په دې به د سرقې حد نشي جاري کولې، بلکه د عامو ملکونو د قوانينو پشان به پر تعزيري سزاګانې ورکولې شي، د غه شان که څوک داسې خلق چه ورته د کور د ننوتو اجازت ورکړې شوی وی مثلاً هغه د کور د خاوند نوکر، مزدور، ګلکار يا څوک دوست عزيز وی که د غه مکان نه غلا وکړی نو لاس به ئې نشي پرېکولې اګرچه په عرف کښې دې ته هم غلا وئيلې شي، وجه ئې داده چه د غسې خلق د کور د مالک په اجازت سره د هغه کورته ورننوځی او د دوئ په حق کښې حفاظت مکمل نه دې،

په جيب پرېکولو، د چادلاس نه په څه کالی يا رقم تښتولو په تکئ سره په څه اخستلو د چاپه امانت باندې د منکريدلو په وجه به هم د مجرم لاس نشي پرېکولې بلکه د حاکم په

صوابدید به ورته تعزیری سزا ورکولې شي، اګرچه دې ته هم په عرف کښې غلا وئیلې شي او د شریعت له مخې حرام او ناروا کارونه دي مګر د شرعي سرقې په تعریف کښې داخل نه دي.
د غه شان د کفن کش لاس به هم ځکه نشي پریکولې چه اول خو د غه ځائې [قبر] محفوظ نه دې او مړې ئې مالک نه وي البته دا کار سخت حرام دې، په دې حاکم به په خپل صوابدید سره تعزیری سزا ورکوي، که یو شریکوال د خپل شریک مال نه څه غلا او کړي چه د میراث په وجه پکښې څه برخه لري یا پکښې تجارتي برخمن وي نو لاس به ئې ځکه نشي پریکولې چه د غسې شریک مال کښې دې هم برخه لري او شبه د ملکیت پکښې راځي البته تعزیری سزا به ورکولې شي،
د غه ټول شرطونه خو د جرم د تکمیل لاندې راځي، چه تائې اجمالي خاکه او کتله، او س بل څیز د ثبوت تکمیل دې، د حدودو په جاري کولو کښې اسلامي شریعت، د ګواهئ ضابطه هم د عامو معاملاتو نه بیله او ډیره د احتیاط جوړه کړیده، د زنا په سزا کښې د دوؤ ګواهانو په ځائې څلور ګواهان شرط کړې شویدي، دا خبره هم په کښې شته چه ګواهي به هم دستر ګو لیدلو په دې شان ورکوي چه هیڅ شکي لفظ پکښې نه وي راغلې، د غلا په معامله کښې اګر چه دوه ګواهان کافي دي مګر په دې کښې د عامو ګواهیانو په نسبت څه زیات شرطونه هم ایښودل شویدي مثلاً په نورو معاملاتو کښې د ضرورت له کبله قاضي ته اختیار ورکړې شوې دې چه ګواه اګرچه عملي فاسق وي لیکن د قاضي تسلي وي چه هغه دروغ نه وائي نو قاضي ئې ګواهي قبلولې شي خو په حدودو کښې قاضي ته دا اختیار نشته، په عامو معاملاتو کښې دیو سړي او دوؤ ښځو په ګواهئ باندې فیصله کولې شي مګر په حدودو کښې د دوؤ سړو ګواهي ضروري ده، په عام معاملاتو کښې، اسلامي شریعت تمادي [زیاته موده تیریدل] عذر داسې منلې دې چه که هر څو مره موده پس څوک ګواهي ورکوي نو منظورولې شي، لیکن په حدودو کښې داسې نه دې بلکه سمدستي ګواهي ورنکړي بلکه یو میاشت یا د دې نه زیاته موده پس ګواهي ورکړي نو منظوره به نه وي،
د هغه شرطونو اجمالي نقشه کوم چه د سرقې د حد د پاره د غه ټول د فقه حنفي د زیات مستند کتاب بدائع الصنائع نه راغستې شویدي(۱).
د دې ټولو شرطونو حاصل دا دې چه شرعي حد به یوائې په هغه صورت کښې جاري کیږي چه د پاکیزه شریعت د ټاکلو ضابطو په جوړ جرم هم مکمل وي او ثبوت ئې هم مکمل وي، مکمل هم په دې شان چه د هغې هیڅ اړخ کښې څه شک شبه پاتې نشي، معلومه شوه چه اسلامي شریعت، څنګه چه د دې جرمونو سزا ګانې، د حکمت د تقاضا مطابق سختې مقرر کړې دي، د غسې ئې د شرعي حدودو په جاري کولو کښې د زیات احتیاط لحاظ هم ساتلې دې، د حدودو د ګواهئ ضابطه هم د عامو معاملاتو د ګواهئ د ضابطې نه مختلفه ده او ډیر احتیاط په کښې کړې شویدې، که په دې کښې لږ څه کمې راشي نو شرعي حد بیا تعزیری سزا ته منتقل کیږي، د غه شان د جرم د تکمیل په سلسله کښې که څه کمې بیا موندې شي بیا هم شرعي حد پاتې شو او تعزیری سزا به ورکولې شي، د دې عملي اړخ دا دې چه شرعي حدود کله ناکله [یعنی د نیشت برابر] نافذ کیږي په عامو حالاتو کښې د هغه جرمونو سزا ګانې هم تعزیری جاري کولې شي په کومو کښې چه حدود جاري کیدل وي، لیکن کله چه تکمیل د جرم او تکمیل د ثبوت دواړه

۱) بدائع الصنائع، کتاب السرقة: ج۷، ص ۶۵ تا ۷۵

یوخائي شي نو ډیره زیاته سخته عبرتناکه سزا ورکولې شي اګرچه دغه یوخائي کیدل سلوڅخه په یو کښې وی ددې باعث دادې چه هیبت اورعب ئې دخلقو په زړونو او دماغو کښې کښینی او ددغې جرم خواته په تللو سره هم په بدن رپیدل اولړزیدل شروع شي چه همیشه دپاره د جرمونو دبندیزاو دعام امن ذریعه جوړیږی، په خلاف دهغه تعزیری قوانینو چه دغه جرمونه، پیشور [عادتی]خلقو دپاره یو قسم لوبه ده چه په ډیرولوبو ټوقو سره ئې کوی، که په جیل کښې ناست وی بیاهم ددې دکولو پروګرام په ډیرې خوبصورتئ سره جوړ شي په کومو ملکونو کښې چه شرعی حدود جاری کولې شي دهغوئ د حالاتو خبر چه واغستې شي نو دا حقیقت به ښکاره شي چه هلته به لاس پریکړی خلق په ډیرشمیر کښې نشی موندې، په کلونو کلونو به دسنګسارئ واقعه نه راپیښیږی، خو ددې رعب په زړونو باندې بیاهم داسې خوروی چه هلته غلا ،ډاکه اوبې حیائی تش په نوم هم په نظرنه راځی، دسعودی عرب دحالاتونه عام مسلمانان نیغ په نیغه خبردی، ولې چه دحج اوعمرې دپاره هلته دهرملک هرقسم مسلمانان ورځی، په ورځ پنځه ځل خلاص دکانونه وینی پکښې دلکونو ډالروسامانونه پراته وی او مالکان ئې دجمع مانځه له حرم شریف ته ځئ اوښه په تسلئ دمونځ اداکولو نه پس راځی، په زړه کښې ئې وسوسه قدرې هم نه راځی چه دکان به ئې چالږ څه هم غلاکړی وی، داد یو ورځ خبره نه ده، عمرونه داسې تیرشو، که ددنیا یو مُهذب ملک کښې هم داسې اوشونو او به ګورئ چه دو کانونه کولاؤ شي نو په یوورځ کښې به په سلګونو غلاګانې اوډاکې کیږی، دانساني تهذیب او انساني حقوقو دعویدارعجیبه خلق دی چه دجرمونو کسب ګروباندې خورحم کوی لیکن په ټولو هغه انسانانو باندې رحم نه کوی چه ژوندئې دغه کسب ګرومجرمانو ډیرلنډ تنګ کړې وې، حقیقت دادې چه په یو مجرم باندې زړه سوځول پوره انسانیت سره ظلم کول او په امن عامه کښې خلل اچول دی، همدغه وجه ده چه هغه رب العالمین، کوم چه نیکانو ،بدو، پرهیزګارو، اولیاؤ، کافرانو، فاجرانو ټولو ته روزی ورکوی، مارانو، لړمانانو، زمرو او شرمخانو لیوانو ته روزی ورکوی، اوبې انتها رحمت ئې په ټولو باندې وریږی، هرکله چه دشرعی حدودو احکام یې په قرآن کریم کښې نازل کړل نو ورسره ئې داهم اوفرمائیل ﴿وَلَا تَأۡخُذۡكُم بِهِمَا رَأۡفَةٞ فِي دِينِ ٱللَّهِ﴾ [دالله تعالی په حدودو جاری کولو کښې په دغه مجرمانو هیچرې زړه سیزل پکارنه دی] ،بل اړخ ته ئې قصاص لره انسانی ژوند اوګرځولو لکه فرمائی:

﴿وَلَكُمۡ فِي ٱلۡقِصَاصِ حَيَوٰةٞ يَٰٓأُوْلِي ٱلۡأَلۡبَٰبِ﴾ معلومیږی چه داسلامی حدودو خلاف کوونکی خلق دجرمونو بندیدل دسره غواړی نه. ورنه داسلامی شریعت نه زیات بل څوک د رحمت اوشفقت معامله ورازده کولې شي چه دتودجنګ په میدان کښې هم خپلو قاتلانو دښمنانو ته حق ورکوی اوحکم ورکوی چه دښمن زنانه که مخې له درغله نولاس پرمه اوچتوه، که ماشوم په لاس درغلونو ته پرې مه بلوسه، که بوډا موبیاموندونومخه ورپسې مه اړوئ، د دوئ هغه مذهبی عالم مه وژنئ چه ستاسو خلاف په جنګ کولو کښې شریک نه وی اودخپل مذهب په عبادت کښې مشغول وی.

دټولونه زیاته عجیبه خبره داده چه دې اسلامی سزاګانو باندې اعتراض کولو دپاره د هغه خلقو خلې وازیږی چه لاسونه ئې تراوسه پورې دهیروشیما دهغه لکونو بې ګناه اوبې قصوره انسانانو په وینو رنګ دی، دچاپه زړونو کښې چه دسره دجنګ اومقابلې خیال هم چرته نه وو راغلې، په دې کښې زنانه، ماشومان اوبوډاګان ټول داخل دی، اودچازړونه چه دهیروشیما په

حادثې سره هم نه دې یخ شوی، بلکه هره ورځ دزیات خطرناکو بمونو په تیارولو او تجربو کولو کښې مشغوله دی، مونږ دې نه علاوه، څه او وایو؟ چه الله تعالی دې د دوئ دستر ګو نه د خودغرضئ پردې لرې کړی او په دنیا کښې دامن قائیمولو صحیح اسلامی طریقو اړخ ته ئې هدایت ورکړی.

يٰٓاَيُّهَا الرَّسُوْلُ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ

اې رسوله | په غم کښې دې نه اچوی تالره | هغه کسان

|............اې پیغمبره ! ته دهغه کسانو په کار غم مۀ کوه

يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اٰمَنَّا

چې تیز کوششونه کوی | په کفر کښې | دهغه کسانو نه | چې وائی | مونږ ایمان راوړې دې

چې هغوئ کفر ته په تیزئ سره ورځی | هغه کسان چې په خله وائی چې مونږ ایمان راوړې دې

بِاَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِنْ قُلُوْبُهُمْ ۛ وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا ۛ

تش په خلو خپلو | او نۀ وی ایمان راوړې | زړونو د هغوئ | او هغه کسان | چې یهودیان دی

خو ددوئ په زړونو کښې ایمان نشته | ............او هغه کسان چې یهودیان دی

سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ۙ لا

حال دا چې ډیر اوریدونکی دی ستا | د پاره د دروغو | اوریدونکی دی | دپاره دبل قوم

ددوئ دا حال دې چې دروغو سره عادت دی | او دهغه نورو خلقو دپاره چې تاسو ته کله

لَمْ يَاْتُوْكَ ۭ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ مِنْۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهٖ ۚ

چې لانۀ دی راغلې تا ته | چې بدلوی | کلمې | پس دمقرر والی دهغې نه | په ځایونو خپلو کښې

راغلې نۀ وی جاسوسی هم کوی | او دالله ﷻ کلمې دځائې نه بې ځایه کوی | تحریف لفظی په کښې کوی |

يَقُوْلُوْنَ اِنْ اُوْتِيْتُمْ هٰذَا فَخُذُوْهُ وَاِنْ لَّمْ تُؤْتَوْهُ

وایئ | که درکړې شو تاسو ته | دا حکم | نو وایئ خلئ | او که چرې | درنۀ کړې شو تاسو ته هغه

خلقو ته وائی که تاسو ته | تحریف شده | حکم اوکړې شی | نو قبول ئې کړئ | او که درنۀ کړې شی نو

فَاحْذَرُوْا ۭ وَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ

نو ځان اوساتئ اومۀ ئې منئ | او هغه څوک | چې اراده اوکړی الله | په فتنه کښې د اچولو د هغه

ځان ترې نه اوساتئ | ............او چې الله ﷻ دچا د خرابولو اراده اوکړی

فَلَنْ تَمْلِكَ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ شَـيْـــًٔـا ۭ

نو نۀ شی لرلې اختیار ته | نو نشی مالك كیدې ته | دپاره دهغه | دالله نه دخلاصولو | هیڅ قدرله

نو د هغه په باره کښې تۀ د الله ﷻ په مقابله کښې هیڅ وس نشی لرلې

اُولٰۗىِٕكَ الَّذِيْنَ لَمْ يُرِدِ اللّٰهُ اَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ ۭ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا

دا کسان هغه خلق دی | چې اراده اونۀ کړه الله | چې پاك کړی | زړونه دهغوئ | دپاره دهغوئ | په دنیا کښې

دا هغه کسان دی چې الله ﷻ ددوئ زړونه پاکول نه غواړی | د دوئ دپاره په دنیا کښې

خِزۡيٌ ۖ وَّلَهُمۡ فِي الۡاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ ۝ سَمّٰعُوۡنَ

شرمندګي ده | اودې دهغوئ دپاره | په اخرت کښې | عذاب | لوئ | ډيراوريدونکي دي

رسوائي ده | او په اخرت کښې ورله لوئي عذاب مقرر دې | دا خلق د دروغو خوړولو په خاطر جاسوسي کونکي

لِلۡكَذِبِ اَكّٰلُوۡنَ لِلسُّحۡتِ ؕ فَاِنۡ جَآءُوۡكَ فَاحۡكُمۡ

دروغو لره | خوړونکي دي | حرامو لره | نو که چرې راشي هغوئ تاته | نو فيصله اوکړه

دي غټ حرام خواره دي | که تاسو ته په مقدمه کښې راشي | نو که ستاخوښه وي انو ددوئ مينځ کښې فيصله اوکړه

بَيۡنَهُمۡ اَوۡ اَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ ۚ وَاِنۡ تُعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ

په مينځ دهغوئ کښې | ايا مخ اوګرځوه | دهغوئ نه | اوکه ته مخ اوګرځوې | د هغوئ نه

او يا ترې مخ واړوه [د دوی په مينځ کښې د فيصلې کولو نه انکار اوکړه] | اوکه ته ددوئ نه مخ واړوې

فَلَنۡ يَّضُرُّوۡكَ شَيۡـًٔا ؕ وَاِنۡ حَكَمۡتَ فَاحۡكُمۡ بَيۡنَهُمۡ

نو هرګز ضرر نه شي رسولې تاته | هيڅ قدرله | اوکه فيصله کوې ته | نوفيصله اوکړه | په منځ دهغوئ کښې

نو دوئ تاته هيڅ نقصان نشي رسولې | او که ددوئ په مينځ کښې فيصله کوې | نو بيا په

بِالۡقِسۡطِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الۡمُقۡسِطِيۡنَ ۝ وَكَيۡفَ يُحَكِّمُوۡنَكَ

په انصاف سره | بيشکه الله | خوښوي | انصاف کونکي | اوڅرنګي به هغوئ منصف جوړکړي تالره

انصاف سره فيصله کوه | بيشکه الله تعالی انصافدار خلق خوښوي | اودوئ به په تاڅنګه فيصله کوي

وَعِنۡدَهُمُ التَّوۡرٰىةُ فِيۡهَا حُكۡمُ اللّٰهِ ثُمَّ

حال دا چې موجود دې دهغوئ سره | تورات | چې شته په هغې کښې | حکم | د الله | بيا

حال دادې چې دوئ سره تورات شته | اوپه هغې کښې دالله ﷻ احکام ليکلې شوی دی | بيا

يَتَوَلَّوۡنَ مِنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ ؕ وَمَاۤ اُولٰۤـئِكَ بِالۡمُؤۡمِنِيۡنَ ۝

مخ اړوی هغوئ | اروستو دهغې نه | اونه دی | هغوئ | ايمان لرونکی |

دوئ د هغې نه مخ اړوی | خبره داده چې په دوئ کښې بيخي ايمان نشته |

**آسان ترجمه قرآن:** اې پيغمبره ! هغه خلق چې هغوی د کفر په کارونو کښې تيزي کوي، تالره دې هغوی په غم کې مبتلا نه کړي، يعني يو خو هغه خلق دي چې په خوله ئې خو وئيلي دي چې مونږ ايمان راوړې دې خو د دوی زړونو ايمان نه دې راوړې، او بل هغه خلق دي چې هغوی (ښکاره) د يهوديت دين اختيار کړې دې دا خلق د دروغو خبرو ته غوږ ايږدي (اوستا خبرې) د هغه خلقو دپاره اوري چې تا څخه نه دي راغلي دوئ (دالله د کتاب) د ځائ متعين کيدو باوجود هم په هغې کښې تحريف کوي وائي چې که تاسو ته دا حکم درکړې شي نو قبول ئې کړئ اوکه دا حکم درنکړې شي نو بيا ترې ځان اوساتئ اوڅوک چې الله ورته وغواړي چې فتنه کښې ي واچوي نو هغه لره د الله نه د بچ کولو د پاره ستا څه زور نه چليږي دا هغه خلق دي چې (ددوی د نافرمانئ د وجې نه) الله ددوی د زړونو د پاک کولو اراده نه ده کړې دوی لره په دنيا کښې رسوائي ده او دوی لره په آخرت کښې لوئ عذاب دې . دوی غوږ ايږدي دروغو ته او ډير خوري

حرامو لره نو که دوی ستا خواته راشي نو که ته وغواړې نو ددوی مینځ کښې فیصله وکړه او که خوښه دي شي نو مخ ترې واړوه او که ته دوی نه مخ واړوې نو دوی تا ته هیڅ نقصان نه شي رسولې ، او که فیصله کوې نو د انصاف فیصله کوه .یقیناً الله د انصاف کوونکو سره مینه کوي او دوی به څنګه په تا فیصله کوي حال دا چه دوی څخه تورات موجود دې په هغې کښې دالله فیصله موجود ده ؟ بیا دې نه وروستو دي ( فیصلې نه ) آوړي په اصل کښې دوی ایمان والا نه دی.

**د آیتونو ربط:** دسورة مائده د دریمې رکوع څخه د اهل کتابو ذکر راروان وؤ. ددې په مینځ مینځ کښې څه لړ لړ او بعضې مضامین خاص خاص مناسبت سره راغلي وو. اوس بیا مخکښې د اهل کتابو ذکر تردیره پورې شوي دې . په اهل کتابو کښې د یهودیانو او نصرانیانو دوه ډلې وې . په دوئ کښې یوه بله ډله شامله شوې وه چې هغوئ په حقیقت کښې یهودیان وو خو منافقانه طریقې سره مسلمانان شوي وو. مسلمانانو ته به یې وئیل چې مونږ اسلام قبول کړې ي خو کله چې به دخپلو مذهب والو خلقو سره یو ځائې شو نو مسلمانانو پورې به یې خنداګانې کولې. دا مذکوره درې آیتونه ددې دریو واړو ډلو متعلق دی ، او ددوئ د داسې عملونو او حالاتو باره کښې دی چې دهغې څخه دا ښکاره ده چې دا خلق دالله ﷻ د احکامو او هدایاتو په مقابله کښې خپل خواهشات او خپلې رائې وړاندې کوی.اوپه احکاماتو او هدایاتو کښې تاویلونه کوی او هغه د خپل خواهشاتو مطابق کولو کوششونه کوی. دې مذکوره آیتونو کښې دداسې خلقو د آخرت دبد انجام او رسوایی بیان دې . ددې په ضمن کښې د مسلمانانو دپاره څو اصول او هدایات او شرعی احکام بیان شوی دی .

**شان نزول:** ددې مذکوره آیتونو د نازلیدو سبب دوه واقعات دی . اودا د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې د مدینې منورې سره نزدې د یهودو قبیلو کښې واقع شوی وو. یوه واقعه دقتل او قصاص او بله د زنا اود هغې د سزا ده.

څوك چې د تاریخ څخه خبر وی نو دا خبره هغه څخه پټه نه ده چې د اسلام څخه مخکښې په هره خطه ، او هره طبقه کښې دظلم حکومت وو. طاقت لرونکی کمزورو ، بې عزته خلقو عزت والا خلق غلامات جوړ کړی وو. طاقتورو او عزت والو دپاره یو قانون وو او د کمزورو او بې عزته خلقو دپاره بل قانون وو. لکه څنګه چې نن صبا په مهذبه ملکونو کښې د سپین او تور دپاره جدا جدا قانون دې. کله چې محسن انسانیت نبی کریم ﷺ تشریف راوړو نو دا ټول فرقونه یې ختم کړل . د بنی آدم د حقونو او مساوات اعلان یې اوکړو. او انسان ته یې د انسانیت او آدمیت سبق اوښودلو. د نبی کریم ﷺ مدینې منورې ته د راتلو څخه مخکښې په مدینه منوره کښې دوه قبلې بنی نضیر او بنو قریظه آبادې وې. دې دواړو کښې بنو نضیر په قوت ، شان شوکت او دولت او عزت کښې د بنو قریظه څخه ښه ګڼړلې شول.دې خلقو به په بنو قریظه باندې ظلمونه کول او دې خلقو به د مجبورئ څخه دا برداشت کول. تر دې چې پورې چې بنو نضیر په یوه بې عزته معاهده باندې مجبور کړل ، هغه دا چې که د بنو نضیر یو کس راپاسی او د بنو قریظه کس اووژنی نو د بنو قریظه کس ته به د قصاص اخستلو حق نه وی بلکه اویا وسق کهجورې به ورته د دیت په طور ورکولې شی. [وسق یوه پیمانه ده ، او دا زمونږ د وزن اعتبار سره تقریبا پنځه منه او لس سیره دې] اوکه معامله ددې برعکس وی یعنی

که د بنو قریظه یو کس د بنو نضیر یو کس لره قتل کړی نو قانون به دا وې چې دهغه قاتل به قتلولې هم شي او د هغه څخه به دیت هم اخستلې شی. او دیت به هم د بنو نضیر د دیت څخه دوچند وی یعنی یو سل څلویښت وسق کهجورې ، او صرف دا نه بلکه دې سره دا هم شامل وو چې چرته د بنو نضیر مقتول ښځه وی نو ددې په بدله کښې به یو سړې قتل کولې شی. او که مقتول سړې وی نو دده بدله کښې به د بنو قریظه دوه سړی وژلې کیږی. او که د بنو نضیر یو غلام یې قتل کړو نو ددې بدله کښې به د بنو قریظه آزاد سړې وژلې کیږی. او که د بنونضیر د یو سړی څخه یې لاس پرې کړو نو د بنو قریظه د سړی څخه به دواړه لاسونه پرې کړې کیږی. که یو غوږ یې کټ کړې وی نو دواړه غوږونه به ترې پرې کړې کیږی. دا قانون د اسلام څخه مخکښې ددې دواړو قبیلو مینځ کښې رائج وو. او بنو قریظه د کمزورئ په وجه ددې قانون منلو باندې مجبور وو.

کله چې نبی کریم ﷺ هجرت اوفرمائیلو او مدینې منورې ته راغلل او مدینه منوره دارالاسلام جوړ شو. دا دواړو قبیلو نه اسلام قبول کړې وو او نه د څه معاهدې په بناء د اسلامی احکامو د منلو پابند وو. خو د اسلام د عدل قانون او عامو آسانو ته یې نظر کولو. په دې دوران کښې دا یوه واقعه راپیښه شوه چې د بنوقریظه یو سړی د بنونضیرو یو سړې قتل کړو. نو بنو نضیر د قریظه څخه ددې پورته معاهدې په بناء د بنو قریظه د دوؤ کسانو د وژلو مطالبه کوله. اگر چې بنو قریظه اسلام کښې نه وو داخل شوی ، او نه یې د نبی کریم ﷺ سره څه معاهده شوې وه ، خو دا خلق یهودیان وو ، دوئ کښې ډیر خلق تعلیم یافته وو او د تورات پشنگوئی ورته معلومې وې چې نبی کریم ﷺ نبی آخر الزمان دې او د نبی کریم د تشریف راوړو خوشخبری تورات ورکړې ده. خو د تعصب او ددنیاوی لالچ په وجه اسلام کښې نه وو داخل شوی. او په دې خبره کښې یې هم نظر وو چې د نبی کریم ﷺ مذهب د مساوات او عدل او انصاف مذهب دې. په دې وجه د بنو نضیر د ظلم څخه د بچ کیدو دپاره دوئ ته یو سهارا ملاؤ شوه ، او دوئ د دوچند دیت ورکولو څخه انکار اوکړو ، او دا یې وئیل چې زمونږ خاندان یو دې ، د یو وطن استوګن یو ، او زمونږ د دواړو یو مذهب دې چې یهودیت دې. دا غیر منصفانه معامله چې تر ننه پورې زمونږ او ستاو ترمینځه راروانه وه ، دا ستاسود زبردستئ او زمونږ د کمزورتې په وجه وه ، اوس ددې منلو ته تیار نه یو.

دې جواب سره بنو نضیر ډیر زیات غصه شو ، او حالات تر دې پورې راؤسیدل چې جنگ ته تیار شول خو د څو مشرانو په مشورې سره دا خبره اوشوه چې ددې معاملې فیصله دې په نبی کریم ﷺ اوکړې شی او بنو قریظه خو دا غوښتل ، ځکه چې هغوئ ته معلوم وو چې نبی کریم ﷺ به دبنو نضیر دا ظلم نور برقرار او نه ساتی. بنو نضیر هم خپلو کښې صلاح مشورې شروع کړې او مجبوره شوی وو ، خوسازش یې دا اوکړو چې د مقدمې شروع څخه مخکښې یې څو کسان مخکښې اولیږل ، او دا څو کسان اصل د یهودو د مذهب وو خو منافقت سره یې د اسلام اظهار کړې وو او د نبی کریم ﷺ خدمت کښې به حاضریدل. او د دوئ مطلب دا وو چې دا خلق په څه طریقه د نبی کریم ﷺ څخه د مقدمې فیصله او نظریه معلوم کړی. او دې خلقو ته یې دا تاکید اوکړو چې که نبی کریم ﷺ زمونږ د مطالبو موافق فیصله ورکړه نو دا قبوله کړئی او که ددې خلاف څه حکم یې اوکړو نو د منلو وعده ورسره مه کوئی.

د نزول د سبب دا واقعه تفصیل سره بغوی نقل کړې ده او مسند احمد او ابوداؤد کښې عبد الله بن عباس رضی الله عنه څخه ددې خلاصه منقول ده ، [مظهری] [1]

داشان بله واقعه د زنا ده اودهغې تفصیل بغوی رحمه الله داشان نقل کړې دې چې دا واقعه د خیبر په یهودیانو کښې شوې ده. او تورات کښې چې کومه سزا مقرر وه دهغې مطابق دا دواړه به سنګسار کیدل. خو ددې دواړو تعلق یو لوئي خاندان سره وو. یهودیانو دخپل قدیم عادت مطابق داغوښتل چې دوئ دپاره دې په سزا کښې نرمي اختیار کړې شي. او هغوئ ته دا معلومه وه چې د اسلامي مذهب کښې ډیرسهولتونه دی ، په دې وجه یې دا اوګڼل چې په اسلام کښې به په دې سزا کښې تخفیف وی . دخیبر خلقو بنو قریظه ته دا پیغام اولیږلو چې ددې معاملې فیصله دې په نبی کریم ﷺ اوکړې شي . او دواړه مجرمان یې هم ورسره اولیږل. او مقصد یې دا وو چې که نبی کریم ﷺ څه وړه شان سزا جاري کړي نو هغه اومنئ ګنی انکار اوکړئی . اول خو نبو قریظه په شك کښې شو چې نبی کریم ﷺ به ددې متعلق څخه فیصله کوی ، او بیا به هغه مونږ منو ، خو د خبرو اترو څخه ورستو دا فیصله اوشوه چې ددوئ څو سرداران دې دا فیصله د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې پیش کړي او دا مجرمان دې هم ځان سره بوځی او په نبی کریم ﷺ باندې دې ددې فیصله اوکړې شي .

نو د کعب بن اشرف وغیره یو وفد دوئ سره د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو. سوال یې اوکړو چې که یو وادۀ شوې سړې او ښځه زنا اوکړي نو ددوئ سزا به څه وی ؟ نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې آیا تاسو به زما فیصله منئی؟ هغوئ اقرار اوکړو. په دغه وخت کښې جبرائیل علیه السلام د الله ﷻ فرمان راوړو او حاضر شو ددوئ سزا سنګسار دې . هرکله چې دې خلق دا فیصله واوریدله نو روستو شواو ددې دمنلو څخه یې انکار اوکړو.

جبرائیل علیه السلام نبی کریم ﷺ ته دا مشوره ورکړه چې تاسو دې خلقو ته اووایې چې زما ددې فیصلې منلو یا نه منلو دپاره تاسو ابن صوریا حاکم جوړ کړئی . اود ابن صوریا حالات او صفات یې نبی کریم ﷺ ته اخودل. نبی کریم ﷺ دې وفدته اووئیل چې آیا تاسو هغه کسْ پیژنئ چې سپین رنګ یې دې اوپه یوه سترګه باندې معذوره دې . فدك کښې اوسیږي او خلق ورته ابن صوریا وائی . ټولو اقرار اوکړو. نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو تاسو خلق هغه ته په کومه سترګه ګورئی؟ هغوئ اووئیل چې د یهودو عالمانو کښې په مخ دزمکې دهغه څخه لوئې عالم بل نشته دې نبی کریم ﷺ ورته اووئیل چې هغه راولئ.

هغه راغلو ، نبی کریم ﷺ هغه ته قسم ورکړو او تپوس یې ترې اوکړو چې په دې صورت کښې د تورات څه حکم دې ؟ ده اووئیل چې قسم مې په هغه ذات وی چې د چا تاسو ماته قسم راکړو ، که تاسو ماته قسم نه وې راکړې ، او ماته ددې خبرې خطره نه وی چې غلطې خبرې کولو سره به تورات ما اوسیزی ، نو ما به دا حقیقت هیڅکله نه وو ښکاره کړې. حقیقت دادې چې د اسلام د حکم پشان تورات کښې هم دا حکم دې چې دا دواړه دې سنګسار کړې شي .

نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې په تاسو باندې څه داسې آفت راغلو چې تاسو د تورات د حکم خلاف ورزی کوئ. ابن صوریا اووئیل چې اصل خبره داده چې د زنا شرعی سزا خو زمونږ په مذهب کښې هم دا ده ، خو زمونږ یوشهزاده په دې جرم کښې ګرفتار شو ، مونږ هغه سره نرمی

---

[1]) تفسیر البغوی تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۵۷ ومسند أحمد، مسند عبد الله بن عباس رضی الله عنهما رقم الحدیث: ۲۲۵۰

اوکړه او هغه مو پرېښودو ، سنګسار مو نه کړو. بیا دا یو جرم د یو معمولي کس څخه اوشو ، او ذمه دارو خلقو اووئیل چې دې سنګسار کړئې نو د مجرم خپلوانو احتجاج اوکړو چې تاسو ده ته شرعي سزا ورکوئې نو اول شهزاده ته یې ورکړئې ، ګنې مونږ به بالکل دې سزا ورکول ته دې پرې نږدو. هرکله چې دا خبره زیاته شوه نو ټول راپو ځائې شول چې ټولو دپاره یوه سپکه او وړه شان سزا تجویز کول پکار دی او د تورات حکم دې پرېښودلې شي. نو په دې وجه مونږ د وهلو او د هغه د مخ تورولو سزا مقرر کړه ، او اوس هم دا رارواڼه ده[1].

## خلاصه تفسیر

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ لَا يَحْزُنكَ ٱلَّذِينَ يُسَٰرِعُونَ فِى ٱلْكُفْرِ ﴾ ائې رسول ﷺ کوم خلق چه په کفر [یعنی دکفر په خبرو] کښې په منډه منډه پریوزي [یعنی بےتکلفه په شوق سره دا خبره کوی] تاسو لره دے هغوی نه غمژن کوی [یعنی تاسو دهغوی دکفریاتو په خبرو هم غم او افسوس کونکی مه کیږئی] ﴿ مِنَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِأَفْوَٰهِهِمْ ﴾ خواه هغوی دهغه خلقو نه وی چه په خپلو خلوخو [دروغ رښتیا] وائی چه مونږ ایمان راوړو ﴿ وَلَمْ تُؤْمِن قُلُوبُهُمْ ﴾ او دهغوی زړونو یقین [یعنی ایمان] راوړے نه دې [مراد ترې منافقان دی چه په یو واقعه کښې دحضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوی وو] ﴿ وَمِنَ ٱلَّذِينَ هَادُوا۟ ۛ سَمَّٰعُونَ لِلْكَذِبِ سَمَّٰعُونَ لِقَوْمٍ ءَاخَرِينَ ﴾ اوکه دهغه خلقو نه وی چه یهودیان دی [الکه چه په بله واقعه کښې دغه خلق حاضر شوی وو] دا [دواړه قسمه] خلق [د اوله سره نه ددین په باره کښې دخپلو بډلوونکو عالمانو نه] د غلطو خبرو آوریدو عادت دی [او هم ددغو غلطو خبرو د تائید په لټون کښې دلته راغلل] ستاسو ﷺ خبرې دبل قوم په خاطر په غوږونو اینبو اینبو سره آوری دکوم قوم چه دا حالات وی چه [یوخو] ﴿ لَمْ يَأْتُوكَ ﴾ هغوی ستاسو خواته [دزیات تکبر او دښمنئ له کبله پخپله] رانغلل [بلکه نور خلق ئے خالص په دې غرض در اولیږل چه ددوی نه دبدل شوو احکامو په جوړ څه خبره په ګوته ورشی.حق لټول ئے مطلب نه وو.ولې چه د ږومیے نه] کلام [الهی] ﴿ يُحَرِّفُونَ ٱلْكَلِمَ مِنۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهِۦ ﴾ پس ددې نه چه هغه [کلام] په خپلې [صحیح] موقعه باندې [قائم] وی [دلفظ یا معنے له مخه یا په دواړو شانه] بدلوی رابدلوی [چنانچه ددغې عادت په جوړ د دیت او رجم حکم یئ هم د ځانه په جوړ کړی رسم کښې بدل کړو بیا یئ ددې احتمال په بنا چه شاید د شریعت محمدی نه دې رسم ته څه تکیه ملاوشی.دلته یئ خپل جاسوسان راولیږل.دریمه خبره دا وه چه یواځې دخپل بدل کړی رسم سره جوړښت لرونکې خبرې په لټون کښې نه ګرځی بلکه،ددې نه علاوه دغه راتلونکو ته] ﴿ يَقُولُونَ إِنْ أُوتِيتُمْ هَٰذَا فَخُذُوهُ ﴾ وائی چه که تاسو ته [هغه ځائې ته په تلو] دا حکم [بدل کړې شوے] درکړې شی نوهله ئے قبول کړئ [یعنی دهغې په جوړد عمل کولو اقرار اوکړئی] ﴿ وَإِن لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَٱحْذَرُوا۟ ﴾ اوکه تاسو ته دا حکم [بدل کړې شوے] درنه کړې شی نو [دهغې په قبلولو کښې] احتیاط کوئی [پس ددغه جاسوسانو په لیږونکی قوم کښې خوخرابئ دا شوے.اول تکبر اودښمنی چه پخپله د نه حاضریدو سبب جوړشو. بل دحق نه لټول.بلکه دحق د بدلولو نه پس دهغې د تائید او مضبوطوالی فکر کول.دریم د حق قبلولو نه نور خلق هم منع کول.تر دې پورې چه دراتلونکو او رالیږونکو بیله بیله خرابی بیانول وو.وریسے دټولو شریکه

---

[1] ) تفسير البغوي تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۵۵،۵۶

بدي بيانول دي ﴿وَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ فَلَنْ تَمْلِكَ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ﴾ او [بنيادي خبره داده چه] د چا خرابيدل او گمراه كيدل الله ﷻ ته منظور وي [اگرچه دا تخليقي منظوري ددغې گمراه د گمراهئ دقصد كولو نه پس وي] نودے دپاره الله ﷻ سره [ائې عام مخاطب] ستا څه زرو نشي چليدلے [چه دغه گمراهئ لره د پيدا كيدو نه ايساره كړې دې خو يو عامه قاعده شوه اوس دا اوگنړئ چه] ﴿ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَمْ يُرِدِ اللّٰهُ اَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ ؕ﴾ دا خلق [هم] داسې دي چه الله ﷻ ته ددوی زړونه [كفرياتو نه] پاكول منظور نشو [ولې چه وی هډو ددې قصد نه كوی څكه ئې الله ﷻ تخليقي پاكول نه كوی.بلكه ددوی د گمراهئ دقصد په وجه تخليقًا هم ددوی خرابيدل منظور دی پس د ذكر شوې قاعدې مطابق هيڅوك دوی ته هدايت نشي كولې . مطلب دا چه هر كله دوی پخپله دخراب پاتې كيدو قصد لرې اود قصد نه پس ددغه فعل پيدا كول دالله ﷻ عادت دې او د الله ﷻ پيدا كول هيڅوك نشي منع كولې.پس ددوی د واپس راتلو اميد به څه اوكړې شي. په دې سره د رسول الله ﷺ زياته تسلی كيدې شی چه كلام ترې شروع شوې وو نود كلام مضمون دتسلئ نه شروع شو اوپه دې ختم شو.وروسے ددغې عملونو نتيجې بيانوی فرمائی چه] ﴿لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ ۚ وَّلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝﴾ دے [ټولو] خلقو لره پدنيا كښې رسوائی ده او په آخرت كښې دوی [ټولو] لره سزا لويه ده [يعنی دوزخ چنانچه د منافقانو دا رسوائی اوشوه چه مسلمانانو ته ددوی منافقی ښكاره شوه او ټولو ورته د ذلت په نظر كتل. چناچه ديهودو د وژلو دقيدولو اووطن نه د ايستلو بيان په روايتونو كښې مشهور دې او د آخرت عذاب ښكاره دې] ﴿ سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ﴾ دا خلق [ددين په باره كښې] دغلطو خبرو آوريدو عادت دی [څنگه چه مخكښې بيان شو] ﴿ اَكّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ ؕ﴾ غټ حرام خواره ٔ دی [هم دغے حرص دوی لره په احكامو كښې د غلط بيانئی عاد څكه اوگرځول چه دوی په هغې باندې شكرانے اخلی هركله چه ددې خلقو دا عادت دے] ﴿ فَاِنْ جَآءُوْكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ اَوْ اَعْرِضْ عَنْهُمْ ۚ﴾ نودا خلق چه [خپله څه مقدمه راوړی] تاسوته [فيصلے غوښتلو دپاره] راشی نو [تاسو ته اختيار دی] چه تاسو دهغوی [دمعاملے] فيصله اوكړئی يا پرې ځان ناغرضه كړئی ﴿وَاِنْ تُعْرِضْ عَنْهُمْ فَلَنْ يَّضُرُّوْكَ شَيْـًٔا ؕ﴾ اوكه تاسو [دا رائې اختيار كړئ چه] ځان پرې ناغرضه كړئی نو [انديښنه مه كوئی چه زړه بدی به شي اودښمنی به درسره لرې څكه چه] ددوی وس نشته چه تاسو ته لږ هم زيان ورسوی [ولې چه الله ﷻ ستاسو حفاظت كوونكې دی] ﴿ وَاِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ ؕ﴾ اوكه [دفيصلے كولو رائې مو لرله او] فيصله ئې كوئی نوددوی په مينځ كښې دعدل [يعنی د اسلامی قانون [په جوړ فيصله اوكړئی] ﴿ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ۝﴾ بيشكه الله ﷻ انصاف كوونكوسره مينه لرې [او اوس دغه عدل او انصاف يواځې په اسلامی قانون اوانره دې نو الله ﷻ ته خوښ كسان به هغه وی چه ددغې قانون مطابق فيصله كوی]. ﴿ وَكَيْفَ يُحَكِّمُوْنَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرٰىةُ﴾او [دتعجب خبره ده چه] هغوی به [په دينی معامله كښې] په تاسو [څنگه فيصله كوی] حالانكه هغوی سره تورات [موجود] دے ﴿ فِيْهَا حُكْمُ اللّٰهِ﴾ چه په كښې دالله ﷻ حكم [اليكلے شوے] دے [او هغوی ددې دمنلو دعويدار دی اول خودا لرے خبره ده] ﴿ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ؕ﴾ بيا [دا تعجب په دې سره زيات شو چه] دے [فيصلے راوړلو] نه پس [چه كله ستاسو فيصله [راوړی نوهغې نه هم] آوړی [يعنی اول خوپه دې حالت كښې په فيصلے راوړلو ئے تعجب كيدو

بیا هم دا احتمال کیدیشو چه ګنی دوی ته ستاسو په حق کیدل واضح شوی وی ځکه به درته راغلی وی خو دا فیصله ئې اونه منله نودغه تعجب بیا سر دوباره شو چه دوي دا فیصله په کوم غرض تاسو راوړې ده.او په دې سره هر عقل مند ته اندازه اوشوه چه[﴿ وَمَآ أُولَٰٓئِكَ بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾] داخلق هیچرې اعتقاد لرونکی نه دی[دلته په عقیدتمندئی سره نه وو راغلی بلکه خپل مطلب دپاره راغلی وو اوهر کله چه دغه نه منل ئې د اعتقاد دنیشوالی دلیل دې نو ترې دا هم معلومه شوه چه څنګه محمد ﷺ سره اعتقاد نه لری دغه شان خپل کتاب سره هم پوره اعتقاد نه لری چه دلته یئ فیصله ولې راوړله.غرض دا چه یو طرف ته هم نه دی.دځه نه یئ چه انکار دې هغې سره ئې په ډاګه اعتقاد نشته او څه سره چه د اعتقاد لرلو دعوی کوی هغه هم په دروغه ده].

## معارف او مسائل

ددې دریځ آیتونو او وړپسې دنورو آیتونو دنازلیدو داسبابو او واقعاتو یو تفصیلی بیان رومبې راغلې دې،خلاصه ئې داده چه یهودیانو به دخپل زور عادت مطابق کله دخپلو لوئې پاللو،په غرض کله دمال او عهدې په لالچ کښې دخلقو دخواهش مطابق فتوې جوړولې،خصوصاد سزاګانو په معامله کښې خو عام رواج داجوړشوې ؤ چه یو لوئې بنده به څه جرم اوکړونو هغه دپاره به ئې دتورات سخته سزا په نرمه سزا کښې بدلوله څنګه چه الله تعالی فرمائی:﴿يُحَرِّفُونَ ٱلۡكَلِمَ مِنۢ بَعۡدِ مَوَاضِعِهِۦ﴾

هر کله چه رسول الله ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړو او داسلامی شریعت عجیبه غریبه نظام د دوئ مخې ته راغلو چه آسانئ اورعایتونه پکښې هم ډیر وو،دجرمونو دبندیز دپاره دسزاګانو معقول انتظام هم پکښې وو،ددې کبله کومو خلقو به چه دتورات سختې سزاګانې آسانولې دغې خلقو ته داموقعه هم په لاس راغله چه په داسې معاملاتو کښې رسول الله ﷺ له یو دریمګړې منصف جوړکړی چه یو به داسلامی شریعت دنرمو او آسانو احکامو نه فائده پورته کړی او دتورات داحکامو دبدلولو دجرم نه به هم بچ شی،خو شرارت ئې پکښې دا جوړکړو چه اول به ئې دفتوې په ډول درسول الله ﷺ نه معلومات کول که فیصله به د دوئ طبیعت ته پریوتله نو هغوئ ﷺ له به ئې هله دریمګړې [منصف] جوړولو ورنه فیصلې دپاره به هغوئ ﷺ ته بیانه ورتلل،په دغې رویې سره درسول الله ﷺ زړه مبارک ته ډیر خفګان اودرد رسیدو،ځکه دآیت په شروع کښې هغوئ ﷺ ته تسلی ورکړې شوه چه مه خفه کیږئ ددې انجام به ستاسو په حق کښې دخیروی،

بیائې په دې خبرکړو چه دغه خلق ستا په دریمګړی [منصف] جوړولو کښې اخلاص نه لری بلکه د دوئ په نیتونو کښې فساد دې،بیا وړپسې آیت کښې ئې ورته اختیار ورکړو چه ستاسو خوښه ده فیصله ئې کوئ او که ځان ترې انغاړئ،اوپه دې ئې هم خبرکړو چه که ځان ترې انغاړئ نو درته هیڅ نقصان نشی دررسولې چنانچه فرمائی:﴿فَٱحۡكُم بَيۡنَهُمۡ أَوۡ أَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ﴾ دې نه پس په بل آیت کښې ارشاددې چه ددوئ فیصله کول موکه زړه غواړی نو هغه په عدل او انصاف سره دخپل شریعت مطابق کوئ،ولې چه درسول الله ﷺ په پیغمبر کیدو سره رومبئ ټول شریعتونه او قوانین منسوخ شویدی،سوا دهغې نه چه په قرآن کریم اوپه مصطفوی شریعت

کښې باقي پرېښودل شويدي، چنانچه ورپسې آيتونو کښې قانونِ الهی نه خلاف په يوبل قانون يارسم او رواج سره فيصله کول، ظلم فسق او کفر گرځولې شويدي،

**په اسلامي حکومت کښې د غير مسلمو مقدمو ضابطه:** دې خبرې ته پوره فکر کول پکاردی چه د دغه وخت يهودو به که د رسول الله ﷺ عدالت ته فيصله راوړله خو سره د دې نه ئې هم په هغوئ ﷺ او د هغوئ ﷺ په شريعت ايمان نه لرلو، او ذميان هم نه وو، صرف د جنگ نه کولو معاهده ئې د رسول الله ﷺ سره کړې وه، په دې وجه هغوئ ﷺ ته دا اختيار ورکړې شو چه که خوښه موشوه نو فيصله ئې مه کوئ او که خوښه موشوه نو د خپل شريعت په جوړنې فيصله او کړئ، ولې چه په اسلامي حکومت باندې دا وخت د دوئ هيڅ ذمه داري نشته، که دوئ ذميان وې او فيصله ئې اسلامي حکومت ته راوړلې وې نو په مسلمان حاکم باندې به ئې فيصله کول ځکه فرض وو چه د دوئ د حقوقو حفاظت کول او دوئ له د ظلم نه بچ کول د اسلامي حکومت د غسې ذمه داري وه ځنگه چه ئې د مسلمانانو په باره کښې ذمه داري ده چنانچه په راتلونکی آيت کښې ئې داسې او فرمائيل: ﴿وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ﴾ [يعنی که دغه خلق تاسو ﷺ ته خپله مقدمه راوړی نو د هغې فيصله د خپل شريعت مطابق او کړئ]،

په دې آيت کښې هغوئ ته د اختيار ورکولو په ځائې ديوې تاکلې فيصلې او حکم کولو ارشاد دې، امام ابوبکر جصاص رحمه الله په [احکام القرآن] [1] کښې د دې دواړو جوړښت داسې راوستې دې چه په رومبی آيت کښې د اختيار ورکولو مطلب دا دې چه دغه خلق زموږ د حکومت استوگن يا ذميان نه دی بلکه په خپلو ځايونو پراته دی چه ورسره څه معاهده قدرې شويده، ځنگه چه د بني نضير او بني قريظه حال وو چه اسلامي حکومت سره صرف د دوئ د جنگ نه کولو معاهده شوې وه او د دويم آيت حکم د هغې خلقو په باره کښې دې چه د اسلامي حکومت استوگن دی، او په دې کښې د ذميانو په ډول پاتې کيږی،

اوس دې خبرې ته هم پوره خيال کول داسې پکاردی چه په دواړو آيتونو کښې رسول الله ﷺ ته دا هدايت ورکړې شويدې چه د دوئ [غير مسلمو] خلقو فيصله د الله تعالی د نازل کړی حکم [د خپل شريعت] په مطابق کوه، د دوئ د خواهشاتو يا د دوئ د مذهب په جوړمه کوه،

د دې وضاحت داسې دې چه دا حکم د هغه معاملاتو په باره کښې دې چه ذکرئې د دې آيتونو په شانِ نزول کښې مخې ته راغلې دې، يو معامله د قتل د سزا او د خون بهاوه او بله د زنا او د هغې د سزا وه، په داسې معاملاتو يعنی د جرمونو په سزاگانو کښې د ټولې د نيا دستور دا دې چه د پوره ملک يو قانون وی چه په [جنرل قانون] ياديږی، داسې قانون کښې د ډلو يا مذهبونو په بنياد هيڅ فرق نشی کولې، مثلاً د غل لاس پريکول، يا ځې مسلمان د پاره نه بلکه د ملک د ټولو استوگنو د پاره به عام وی، د غه شان د قتل او زنا، سزاگانې به هم ټولو د پاره عامې وی، خو په دې وجه دا ضروري کيږی نه چه د غير مسلمو شخصي او خالص مذهبي معاملاتو فيصله دې هم د اسلامي شريعت مطابق وی،

---

[1] ) أحكام القرآن، سورة المائدة، باب الحكم بين اهل الكتاب: ج ٦، ص ٥٣

چنانچه پخپله رسول الله ﷺ شراب او خنزیر لره مسلمانانو د پاره حرام او ګرځول او په دې ئې سزا مقرر کړه، مګر غیر مسلمو لره ئې په دې کښې آزاد پریښول، د غیر مسلمو په نکاح، غم، ښادئ باندې ئې هیڅ غم غرض نه دې کړې بلکه د دوئ د مذهب صحیح نکاحونه ئې هم قائیم اولرل،

د مقام هجر مجوسیان، د نجران او وادئ قرى یهود او نصارې د اسلامی حکومت ذمیان جوړ شول، رسول الله ﷺ ته دا معلومه وه چه مجوسیان خپله مور، خور هم په نکاح اخلی، د غه شان یهودیان هم نصارى هم بغیر د عدت تیرولو یا بغیر د ګواهانو نه هم نکاح معتبر ګنړی، خو بیا هم د هغوئ په شخصى معاملاتو کښې دخل ورنکړو او د هغوئ کړی نکاحونه ئې په خپل ځائې قائیم اولرل،

خلاصه دا شوه چه د اسلامی حکومت غیر مسلمو استوګنو لره به په شخصى، ذاتى، او مذهبى معاملاتو کښې بیخی آزاد پریښودل شی او که په د غه باره کښې د مقدمې د فیصلې کولو ضرورت راپیښ شی نو د هغوئ د مذهب په منصف به فیصله کولې شی کوم لره چه اسلامی حکومت مقرر کړی،

البته که د غه غیر مسلم خلق دواړه فریقه په خپله خوښه فیصلې د پاره مسلمان حاکم ته خپله مقدمه راوړی نو بیا به مسلمان حاکم د هغې فیصلې، د خپل شریعت مطابق کوی، ولې چه هغه به د دواړو اړخوله طرفه دیو منلی شوی دریمګړی [منصف] شان لری، چنانچه په ﴿وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ﴾ راتلونکی آیت کښې د اسلامی شریعت په مطابق د فیصلې ورکولو حکم چه رسول الله ﷺ ته ورکړې شویدې هغه د عام [جنرل] قانون په معامله کښې یا په داسې صورت کښې ورکړې شویدې چه د غه خلق پخپله د فیصلې د پاره په خپله خوښه رسول الله ﷺ ته راغلی وی، او دواړو فریقو په خپله خوښه هغوئ ﷺ لره دریمګړې [منصف] منلې وی، لهذا ښکاره خبره ده چه د هغوئ ﷺ فیصله هم هغه پکار ده چه هغوئ ﷺ پرایمان لری، او د هغوئ ﷺ د شریعت حکم وی.

په هر حال د دغه آیتونو څخه په وړومبی آیت کښې رسول الله ﷺ ته تسلی ورکړې شوه، ورپسې دیهودیانو د سازش نه هغوئ ﷺ په دې شان خبر کړې شو: ﴿يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ لَا يَحْزُنْكَ﴾ نه تر آخره پورې دغه بیان دې، په دې کښې ورته ښکاره کړې شو چه تاسو ته راتلونکې وفد د منافقانو دې چه پټ سازبازئې د یهودیانو سره دې او هم د هغوئ رالیږلې شوې رالیږلې شوې راروان دې، بیا د راتلونکی وفد، څو خراب خویونه ئې بیان کړل او مسلمانان ئې د هغې په خرابئ خبردار کړل، د دې په ضمن کښې ئې ورته دا هم اوښودل چه د دوئ دغه خویونه د کفر دی د هغې نه لرې لرې اوسیږئ.

**د یهودو یو ناکاره خوئې**: وړومبې ناکاره خوئې ئې یودا اوښودلو ﴿سَمَّاعُونَ لِلْكَذِبِ﴾ د دروغو او غلطو خبرو د آوریدو عادت لری، د علم د دعویدارو، تګ مارانو یهودیانو د اسې په پټو سترګو تابعداری کوی چه د هغوئ نه د تورات د احکامو په ښکاره خلاف ورزی وینی، او بیا هم هغوئ پسې روان وی او د هغوئ نه غلطې بیان کړې شوې قیصې په مخه آوری.

**عوامو لره د علماؤ د تابعدارئ ځو لو ضابطه**: په دې کښې ځنګه چه د بدلولو نکو، د الله او رسول الله ﷺ په احکامو کښې د غلطو ځیزونو شاملوونکو د پاره درکې دی، د غه شان ئې هغه خلق سخت مجرمان ګرځولی دی چه د غسې خلقو لره په اماما نو جوړولو سره د هغوئ د ځانه جوړ کړی غلطو روایتونو آوریدو لو عادت شویدی، په دې کښې مسلمانانو د پاره یو اهم اصولی هدایت دادې چه

اګر که جاهلو عوامو لره په دين باندې د عمل کولو د پاره لار يو اخې هم داده چه د علماؤ په فتوې او تعليم باندې عمل اوکړي، ليکن د دې ذمه دارۍ نه عوام هم نشي خلاصيدې چه د فتوې اغستو او په هغې باندې د عمل کولو نه وړاندې د خپلو مقتداګانو [پيشوايانو علماؤ] باره کښې دومره تحقيق خو اوکړي څومره چه يو بيمار، يو ډاکټر يا حکيم ته د ورتلو نه وړاندې کوي، ډېر هغه خلقو او پيژندونکو نه تحقيق کوي چه د دې مرض د پاره کوم يو ډاکټر پوره ماهر دې، کوم يو حکيم ښه دې، هغه سره کومې کومې ډګرۍ دی، د هغه نه په علاج کوونکو باندې د هغه په [شفاء خانه] کښې څه تيريږي؟ که د خپل وس مطابق هر قسم تحقيق کولو نه پس هم څوک مريض، د يو غلط حکيم يا ډاکټر په جال کښې راګيرشي يا هغوئ څه غلطی اوکړه نو د عاقلانو [عقلمندو] خلقو په نزد هغه د ملامتې کولو وړ نه وی، ليکن که بې تحقيقه څوک مريض ديونا پوهه ډاکټر په جال کښې راګيرشي او د هغې نه څه بل مصيبت جوړشی هغه به د عقلمندو په نزد په خپله د خپل ځان دوژلو ذمه وار وی.

د عوامو د غه حال په دينی کارونو کښې هم دې، چه د پوره تحقيق نه پس د اهلِ علمو او تجربه کار خلقو نه پس که څوک عالم خپل مقتدا او پيشوا جوړ کړي او د هغه په فتوې باندې عمل اوکړي نو هغه به د خلقو په نزد معذوره ګنړلې شی او د الله تعالى په نزد هم، چنانچه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی: [فَإِنْ إِثْمُهُ عَلَى مَنْ أَفْتَى][1]

يعنی په دغې غلطې فتوې د عمل کولو ګناه به په مفتی وی، خو هله چه دغه عالم او مفتی په قصد دغسې کړی وی، يا د خپل وس مطابق ئې پوره غور فکر پکښې نه وی کړې، يا بالکل د سره عالم نه وی او خلقو ته په دهوکه ورکولو سره په دغه منصب مسلط شوی وی.

ليکن که چابې تحقيقه خالص په خپل خيال سره چالره عالم او مقتدا او منلو او د هغه په وينائې عمل اوکړو چه په حقيقت کښې هغه د دې اهل نه وی نو د دې وبال به يو اخې په دغه مفتی او عالم نه وی بلکه هغه کس به ورسره په دغه جرم کښې يو شان شريک وی چا چه بې تحقيقه د خپل ايمان واګې دغې کس ته حواله کړې، چنانچه هم د داسې خلقو په باره کښې د قرآن کريم دا ارشاد وارد شويدې: ﴿سَمَّٰعُونَ لِلْكَذِبِ﴾ [دا خلق د دروغو خبرو آوريدو عادت دی]. د خپلو پيشوايانو د علم، عمل، امانت او ديانت د تحقيق کولو نه بغير ورپسې په پټو سترګو روان شويدی، او هغوئ نه د موضوعی او غلطو روايتونو د آوريدو او منلو عادت شويدی،

قرآن کريم دا حال د يهوديانو بيان کړيدې او مسلمانانو ته ئې آورولی دی چه هغوئ دې ترځان ساتی ليکن په نننۍ دنيا کښې د مسلمانانو د غتې بربادۍ يو سبب دا هم دې چه د دنيا په معاملاتو کښې خو ډير هوښيار، چست او چالاک دی، چه رنځورشی نو د ښه ډاکټر او حکيم لټون کوی، چه مقدمه ئې پيښه شی نو ښه، نه ښه وکيل يا بيرسټر لټوی، د يو مکان جوړولو د پاره د اوچتو ماهرانو او انجنيرانو په لټون کښې وی، ليکن د دين په معامله کښې داسې سخيان دی چه صرف د چاغټه ږيره، اوږد قميص، غټ پټکې [النکوټه] او وينی، څه قدرې الفاظ ئې واوري نو هغه لره خپل پيشوا، مقتدا، عالم، مفتی او رهبر جوړ کړی، دا تحقيق نه کوی چه ده چرته علم حاصل کړيدې او که نه؟ د ماهرينو علماؤ په خدمت کښې د پاتې کيدو په وجه د علم دين څه ذوق

---

[1]) سنن ابی داود، کتاب العلم، باب التوقی فی الفتيا: ج ٢، ص ٥١٥

لري او که نه؟ څه علمي خدمات ئې کړيدي او که نه؟ دربښتينو بزرګانو، او دخدائي خلقو په مجلس کښې دپاتې کيدو په وجه ئې څه تقوي او پاکيزګي حاصله کړيده او که نه؟،

ددې په نتيجه کښې مسلمانان خلق کوم چه ددينداره جوړيدلو شوق لري، په ډيرشمير کښې دجاهلو واعظانو اود دوکاندارو پيرانو په جال کښې راګيريدو په وجه دصحيح لارې نه په بل مخ روان شي، دهغوئ علم دين يو اخې هغه قيصې پاتې شي چه نفساني خواهشاتو ته پکښې آزادي حاصله شي، هغوئ په دې مست وي چه مونږ په دين باندې چليږو اولونې عبادت کوو، مګر حقيقت هغه دې چه قرآن کريم ئې په دې الفاظو کښې بيانوي: ﴿اَلَّذِیْنَ ضَلَّ سَعْیُهُمْ فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا وَهُمْ یَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ یُحْسِنُوْنَ صُنْعًا﴾ [داهغه خلق دي چه دهغوئ کوشش اوعمل، هم په دنيا کښې برباد شويدې اوهغوئ په خپل خيال سره داګنړي چه مونږه ډيرښه عمل کړيدې]،

خلاصه داده چه قرآن کريم دمنافقانو يهوديانو حال په ﴿سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ﴾ سره دبيانولو په ضمن کښې يو لوئې اوډيرضروري اصول دااوښودل چه جاهل عوام خو به خامخا د علماؤ تابعداري کوي ليکن دا ورد پاره ضرور پکار دي چه بې تحقيقه دې چالره عالم اوپيشوانه جوړوي او نا واقفو خلقو نه دې په غلطو خبرو آوريدو ځان نه عادت کوي،

**د يهودو يو بل خراب خوئې:** ددغې منافقانو بل خراب خوئې يې دااوښودلو چه: ﴿سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِیْنَ لَمْ یَاْتُوْكَ﴾ يعني داخلق خو په ظاهره داسې ښکاري چه دڅه ديني حکم پوښتلو دپاره راغلي وي، ليکن په حقيقت کښې د دوئ مقصد دين نه دې اونه ديني حکم معلومول دي، بلکه دوئ دداسې يهودي قوم جاسوسان دي چه دخپل تکبرله وجې تاسوله پخپله نه دي راغلي دهغوئ دخواهش مطابق صرف داغواړي چه دزنادسزاپه باره کښې ستاسورائې اونظر معلوم ولونه پس ئې هغوئ ته بيان کړي، بيا د منلو اونه منلو فيصله به پخپله کوي، داشان مسلمانانو له په دې خبرداره کول دي چه يو عالم دين نه دفتوې معلومولو دپاره ضروري دي چه دمعلوموونکې نيت دالله تعالى اورسول دحکم معلومول اوپه هغې باندې عمل کول وي، صرف دمفتيانو درائې معلومول ئې که په دې غرض وي چه دخپل خواهش مطابق څه حکم اولټوي نو دادخواهش دنفس اودشيطان تابعداري ده، دې نه ځان ساتل پکاردي،

**دريم ناکاره خصلت دکتاب الله بدلول دي:** ددې خلقو دريم ناکاره خصلت ئې دابيان کړو چه داخلق دالله تعالى کلام له دخپل ځائې نه په لرې کولو سره غلطې معنې ئې بيانوي او دالله تعالى احکام بدلوي، په دې کښې داصورت هم داخل دې چه دتورات په الفاظو کښې څه ردوبدل اوکړي، يائې الفاظ په ځائې پريږدي اوپه معنى کښې ئې عبث قسم تاويلونه او بدلونونه راولي، يهوديان ددې دواړو قسمو بدلونونو عادت دي،

په دې سره مسلمانان داسې خبرداره کول دي چه الله تعالى دقرآن کريم دحفاظت ذمه پخپله اغستې ده په دې کښې دلفظي بدلون راوستو جرات، څوک نشي کولې ولې چه دليکلو نسخونه علاوه ئې دلکونو انسانانو په سينو کښې محفوظ کړې دي که څوک پکښې دزور، زير غلطي هم اوکړي نوسمدستي هغه نيولې شي، معنوي بدلون خو په ظاهره پکښې راوستلې شي اوخلقو کړې هم دي مګر ددې دحفاظت دپاره الله تعالى داانتظام کړې دې چه په دې امت

کښې به ترقیامته پورې داسې یو جماعت قایم پاتې کیږي چه دقرآن کریم اوسنت نبوی په معنی اومطلب به په صحیح شان پوهیږي اودبدلون راوستونکو خلقو راز به ښکاره کوي،

**خلورم ناکاره خصلت رشوت خورل:** په بل آیت کښې یوبل خراب خصلت ئې داسې بیان کړې دې چه ﴿اَكّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ﴾ [دا خلق د [سُحت] خورلو عادت دی]، د [سُحت] لفظی معنی داده چه یو څیز دبیخه برباد کړیشي چنانچه قرآن کریم فرمائي:،

﴿فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ﴾ یعنی که تاسو ددې حرکت نه واؤنه ړیدئ نو الله تعالی به په خپل عذاب سره ستاسو بیخ بنیاد اوباسی، لیکن دلته په قرآن کریم کښې د [سُحت] معنی رشوت دې، چنانچه حضرت علی کرم الله وجهه، ابراهیم نخعي رحمه الله حسن بصری رحمه الله مجاهد رحمه الله قتاده رحمه الله ضحاک رحمه الله وغیره دتفسیر امامانو، د [سُحت] تفسیر په رشوت سره کړیدې،

[رشوت] ته [سُحت] ځکه وئیلې شی چه دانه یواځې د دوه اړخیزدلین دین کوونکو بیخ بنیاد اوباسی بلکه دټول ملک اوقوم بیخ بنیاداوباسی اوعام امن لره تباه کوی په کوم ملک یا محکمه کښې چه رشوت چلیږی هلته قانون بې اثره پاتې کیږی حالانکه دملک قانون داسې یو څیزدې چه ورسره دملک اوملت امن په ځائې ساتلې شی دهغې بې اثره کیدوسره دخلقو مال وځان اوننګ، عزت محفوظ نشی پاتې کیدې په دې وجه رشوت ته په اسلامی شریعت کښې [سُحت] اووئیلې شوچه ددې سخت حراموالې ښکاره شی، چنانچه ددې دروازې بندولو دپاره، دصحیح حدیث له مخې هغه تحفې اوډالئ هم رشوت اوحرام اوګرځولې شوې چه امیرانو اوحاکمانوته پیش کولې شی [جصاص] [1]،

په یوحدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی، الله تعالی په رشوت اخستونکی او رشوت ورکوونکې [دواړو] لعنت کړیدې اوپه هغه چاهم چه ددې دواړوترمنځه دلالی کوی [جصاص] [2]،

درشوت شرعی تعریف دادې چه دکوم څیزعوض اخستل دشریعت له مخې درست نه وی او هغه واخستې شی، مثلاً دخپلې ذمه داری په کارپوره کولوباندې عوض واخستې شی لکه یو سرکاری ملازم چه دیوکارکولوتنخواه وصولوی اوپه هغې باندې بیابل چانه هم څه اخلی، یاموریلاردخپلې لورد واده کولوذمه داری لری، اوبیاهم هغه ددې په بدل کښې دبل چانه څه عوض واخلی، دغه رشوت شو، یاپه مونځ، روژه اوحج اداکولو، په تلاوت دقرآن باندې عوض اخستل هم ځکه رشوت دې چه داعبادتونه دی اومسلمان ددې اداکولوذمه واردې، یعنې د خپلې دنیوی یادینی ذمه وارئ پوره کولوپه عوض کښې څه اغستل رشوت دې البته دقرآن کریم تعلیم اوامامت ددې نه [په فتوی د متاخرینو رحمهم الله مستثنی دی،

لهذا څوک چه په رشوت باندې دناجائز کار ترسره کړی یعنی هغه ته پرخپل حق وراورسوی نوهغه به درشوت داخستو ګناهګاروی چه دغه مال [درشوت] به وردپاره سحت اوحرام وی اوکه درشوت په وجه ئې دحق نه خلاف کاراوکړونوداحق تلفی اودالله تعالی دحکم بدلولوبل سخت جرم جوړیږی، الله تعالی دې ترمسلمانان محفوظ لری، آمین.

---

[1] ) أحكام القرآن للجصاص، سورة النساء، باب أكل ولى اليتيم من ماله وباب الرشوة: ج ٢، ص ٧٠، وج: ٦، ص ٢٨

[2] ) أحكام القرآن للجصاص، باب الرشوة: ج ٦، ص ٢٨

إِنَّآ أَنزَلْنَا
بیشکه مونږه | نازل کړو
| ............بیشکه مونږ

التَّوْرٰىةَ فِيهَا هُدًى وَّنُورٌ ۚ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ
توراة | چې په هغې کښې وه|لاربنودنه | اورنړا وه | چې فیصلې به کولې| په هغې سره| پیغمبرانو
تورات نازل کړې دې | اوپه هغې کښې هدایت اورنړا وه| تولو پیغمرانو چې

الَّذِينَ أَسْلَمُوا لِلَّذِينَ هَادُوا وَالرَّبَّانِيُّونَ وَالْأَحْبَارُ
هغه | چې مسلمانان وو| هغه کسانو ته| چې یهودیان وو| اودغسې ربانیانو | اوعالمانو هم
دالله ﷻ تابع وو ددې کتاب مطابق یهودیانو دپاره فیصلې کولې | اودغه شان بزرگانو اوملایانو هم

بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِن كِتَابِ اللَّهِ وَكَانُوا
په سبب دهغې | چې طلب دحفاظت شوې وو دهغوئ نه | دالله دکتاب | اووو هغوئ
خکه چې هغوئ د الله ﷻ دکتاب ذمه وار کړې شوی وو|............ او پخپله په دې

عَلَيْهِ شُهَدَاءَ ۚ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوا
په هغې باندې| گواهان |نومهٔ ویریږئ | دخلقو نه |اواوویریږئ زمانه | اومهٔ اخلئ
خبره گواهان شوی وو|............نودخلقو نه مه ویریږئ| او زما نه ویریږئ | ............او زما په

بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا ۚ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ
په آیتونو زما|قیمت | لږ | اوچا چې | اونهٔ کړو حکم | په هغه| چې نازل کړې دې الله
آیتونو د دنیا لږ قیمت مهٔ اخلئ| اوخوک چې دالله ﷻ دقانون مطابق فیصله نهٔ کوی

فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ ۝ وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا
نودغه کسان| هم هغوئ دی| کافران | اولیکلې وو مونږ| په هغوئ باندې |په دې تورات کښې
نوهم دغه کسان کافران دی | اومونږ دوئ ته په تورات کښې حکم ورکړې وو

أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنفَ
چې بیشکه نفس| په بدله دنفس کښې | اوسترگه په بدل دسترگې کښې| اوپوزه
چې دخان بدله کښې خان ، دسترگې بدله کښې سترگه ، دپوزې

بِالْأَنفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ
په بدل دپوزې کښې | اوغوږ | په بدل دغوږ کښې | اوغابښ | په بدل دغابښ کښې | اوزخمونه
بدله کښې پوزه ، اود غوږ بدله کښې غوږ اود غابښ بدله کښې غابښ دی|اوباقی تول زخمونه په برابری

قِصَاصٌ ۚ فَمَن تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهُ ۚ
په قصاص دی|نو خوک چې معافی اوکړی|ددغې[زخم]|نو دغه عفوه|کفاره ده|دپاره دهغه[د گناهونو]
دی| ........نوچاچې بدله اخستل معاف کړل | نوهغه به ورله کفاره اوگرځی

وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۞

اوهغه چا | چې فیصله اونه کړه | په هغه قانون | چې نازل کړی دی | الله | نو دغه کسان چې دی | هغوئ | ظالمان دی

اوڅوک چې دالله ﷻ د حکم مطابق فیصلې نه کوی | ..................نو هم دغه کسان ظالمان دی

وَقَفَّيْنَا عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا 2

اواولیږلو مونږه | روستو دهغوئ نه | عیسی علیه السلام | خوي | د مریم | چې تصدیق کونکې وؤ | دهغه څه

بیا مونږه دغه پیغمبرانو پسې ورستو عیسی دمریم خوئې راولیږلو | چې هغوی د هغه کتابونو تصدیق کونکې

بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ فِيْهِ هُدًى

چې دهغه دوړاندې موجود وؤ | دتورات نه | اوورکړو مونږ هغه له | انجیل | چې په هغې کښې الاربښودنه وه [حق ته]

وؤ | کوم چې د تورات نه وړاندې تیر شوی وؤ | اومونږ هغه ته انجیل ورکړوا چې په هغې کښې هدایت

وَّنُوْرٌ وَّمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَهُدًى

اورنړا وه | اوتصدیق کونکې وؤ | دهغه څه | چې په هغه وخت کښې موجود وؤ | دتورات نه | اوهدایت وؤ

اورنړا وه | اود تورات تصدیق ئې کولو کوم چې دهغه وړاندې وؤ | .......... اودغه انجیل د پرهیزګارانو

وَّمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ۞ وَلْيَحْكُمْ اَهْلُ الْاِنْجِيْلِ بِمَآ

اونصیحت وؤ | دپاره دپرهیزګارانو | اوفیصله دکوی | اهل د انجیل | مطابق دهغه قانون

دپاره هدایت اونصیحت وؤ | ............اوزمونږ داحکم وؤ چې دانجیل منونکې دې دهغې مطابق

اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْهِ ؕ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

چې نازل کړې دې الله | په هغه کښې | اوهغه څوک | چې فیصله اونه کړی | په هغه قانون | چې نازل کړې دې الله

فیصله کوی | اوڅوک چې دالله ﷻ دحکم مطابق فیصله نه کوی

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۞ وَاَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ

نودغه کسان | هم هغوئ دی | فاسقان | او راولیږو مونږ | تاته ائې محمد ﷺ | کتاب | دحق سره

نوهم دغه کسان نافرمان دی | ..................اومونږ تاته داکتاب درکړې دې | چې حقې خبرې کوی

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتٰبِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ

چې تصدیق کونکې دې | دهغه څه | چې موجود دی په وړاندې د دهٔ | د کتاب نه | اومحافظ دې | په هغه کتاب

اودمخکینی کتاب تصدیق کوی | .............................. او د هغې حفاظت کوی

فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ

نو فیصلې کوه | په منځ ددوئ کښې | مطابق دهغه قانون | چې نازل کړې دې الله | اومهٔ کوه پیروی

نوائې پیغمبره ﷺ ته ددوئ مینځ کښې دالله ﷻ دحکم مطابق فیصله کوه | اوته د هغې حقې لارې مقابله کښې

اَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ الْحَقِّ ؕ لِكُلٍّ جَعَلْنَا

دخواهشاتو ددوئ | دهغه څیزونو نه | چې راغلې دې تاته | د حکم د الله نه | مقرر کړې دې مونږه د هر یو د پاره

د دوی دخواهشاتو تابعداری مهٔ کوه | چې مخ واړروئ دهغې نه چې تاته راغلې ده | مونږ په تاسو

مِنكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا ۚ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً

ستاسو نه|یو شریعت|اویوه لاره دعمل|اوکه غوښتلې الله |نو خامخا به ئې جوړ کړي وئ تاسو| امت

کښې د هریوې ډلې دپاره یو خاص شریعت او خاص لاړ مقرر کړې ده | او که الله ﷻ ته منظوره وې نو.

وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ

یو |لیکن بیل ئې کړئ|دپاره ددې چې امتحان اخلی ستاسو| په هغه څه کښې|چې درکړي ئې دی تاسو لره

تاسو ټول به ئې یوه ډله کړې وئ | خو هغه داغواړي چې پخپلو احکامو سره ستاسو امتحان اوکړي

فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ۚ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ

نو وړاندې شئ | نیکو ته | الله ته | واپس تلل دی ستاسو | دټولو | نو خبر به کړي تاسو

نو نیکو کارونو کښې وړاندې شئ | آخر تاسو ټول به الله ﷻ ته واپس کیږئ | نو هغه به تاسو ته د هغه خبرې

بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ۙ وَاَنِ احْكُمْ

په هغه څه|چې وئ تاسو|په هغې کښې |چې اختلاف به موکولو| اودا چې | فیصله کوه

خبر درکړي په کومه کښې چه تاسو اختلاف کولو| او ائې [پیغمبره] ددوئ مینځ کښې

بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ

په منځ ددوئ کښې|مطابق دهغه قانون|چې نازل کړې دې الله | اومه کوه پیروی | دخواهشاتو ددوئ

دالله ﷻ د کتاب [قرآن] مطابق فیصله اوکړه| ..................اوددوئ د خواهشاتو تابعداری مکوه

وَاحْذَرْهُمْ اَنْ يَّفْتِنُوْكَ عَنْۢ بَعْضِ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

اویره کوه ددوئ نه| چې په فتنه کښې وانه چوی تا لره| دخینی |هغه هدایت نه| چې نازل کړې دې الله

اود دوی نه ویره کوه چې دداسې فیصلې نه دې اونه ګرخوی چې الله ﷻ تا ته رالیږلې وی

اِلَيْكَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ اَنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ

تا ته |نو که چرې| مخ واړوو دوئ | نو پوهه شه |چې بیشکه | اراده لری الله | چې

که دوئ دحقې لارې نه مخ واړوی | نو پوهه شه چې الله ﷻ داغواړی چې

يُّصِيْبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوْبِهِمْ ۚ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ

اورسوی دوئ ته سزا|په سبب دخینو|ګناهونو ددوئ | اوبیشکه | زیات | دخلقو نه

دوئ ته د بعضې ګناهونو سزا [په دنیا کښې هم] ورکړي | اوړښتیا خبره داده چې په دوئ کښې ډیر خلق

لَفٰسِقُوْنَ ۞ اَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُوْنَ ۚ وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ

خامخا فاسقان دی |ایا نو فیصلې | دجاهلیت | غواړي دوئ | او څوک دې| زیات ښۀ| دالله نه

فاسقان دی | نو آیا دوئ دجاهلت دوختونو فیصلې غواړي| اوحال دادې چې څوک به الله ﷻ یقین ساتی دهغوئ

حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ۞

په فیصلو کولو کښې|دپاره دهغه قوم| چې یقین لری|

په نزد دالله ﷻ نه بهتره فیصله دچانشی کیدې

**آسان ترجمه قرآن:** بې شکه مونږ تورات رالیږلې وو هغې کښې هدایت او رنړا وه، ټولو انبیاء علیهم السلام چه د الله تابعدار وو د هغې مطابق به ئې د یهودو د معاملاتو فیصلې کولې .او ټول الله والا او علماؤ هم (په دې به ئې عمل کولو) ځکه چه الله دوی د کتاب محافظین جوړ کړي وو او هغوی په دې ګواه وو نو (اې یهودوا) تاسو د خلقو نه مه ویرېږئ او ځما نه وویرېږئ او د لږ غوندې قیمت په عوض کښې دا دنیا مه اخلئ او کوم خلق چه دالله د رالیږلې شوې حکم مطابق فیصله ونکړي نو دا خلق کافر دی. او مونږ په (تورات کښې) دوی د پاره دا حکم لیکلې وو چه د نفس په بدله کښې به نفس وي، د سترګې په بدله کښې سترګه د پوزې په بدله کښې پوزه ، د غوږ په بدله کښې غوږ ، د غاښ په بدله کښې غاښ، او د زخمونو دې هم (دغه شان) بدله واغستې شي هغه څوک چه دا بدله معاف کړي نو دغه د ګناهونو کفاره به شي او کوم خلق چه دهغه حکم مطابق فیصله نه کوي کوم چه الله رالیږلې دې دغه خلق ظالمان دي او مونږ دې (پیغمبرانو) نه وروستو عیسی ابن مریم دهغې نه مخکښې کتاب یعنې د تورات تصدیق کوونکې لیږلې وو او مونږ هغه ته انجیل ورکړې وو چه هغې کښې هدایت او رنړا وه ، او چه د دې نه مخکښې کتاب یعنې د تورات تصدیق کوونکې او د متقیانو د پاره ټول هدایت او نصیحت راغلې وو. او انجیل والو ته پکار دي چه الله په دې کښې څه رالیږلی دي دهغې مطابق فیصله وکړي او کوم خلق چه د الله د نازل شوې حکم مطابق فیصله نه کوي هغه خلق فاسقان دي او(اې محمد صلی الله علیه وسلم) مونږ په تا باندې کتاب نازل کړې دې چه په حق باندې مشتمل دې او چه د دې نه کوم کتابونه مخکښې دی د هغې تصدیق کوي او د هغې نګهبان دې نو ددې خلقو په مینځ کښې دهغه حکم مطابق فیصله وکړه چه کوم الله رالیږلې دې او کومه خبره چه تا ته راغلې ده هغه مه پرېږده چه د دوی خواهشاتو پسې روان شې تاسو کښې هر یو(امت) د پاره مونږ یو (جدا) شریعت او طریقه مقرر کړی ده او که د الله خوښه وه نو ټول به ئې یو امت جوړ کړې وو لیکن (جدا شریعت ئې ځکه درکړو) دې پاره چه څه ئې تاسو ته درکړي دي په هغې کښې په تاسو امتحان وکړي دې وجې نه نیکو کښې د یو بل نه د مخکښې کیدو کوشش وکړئ – الله تعالی طرفته د ټولو واپس کیدل دي هغه وخت به تاسو خبر کړی په هغه څه چه تاسو به پکښې اختلاف کولو. او (مونږ حکم کوو) چه ته ددوی په مینځ کښې د هغه حکم مطابق فیصله وکړه کوم چه الله رالیږلې دې. او د دوی د خواهشاتو تابعداري مه کوه او ددوی د دې خبرې نه ځان بچ کړه چه دوی تا په فتنه کښې وانه چوي او د یو داسې حکم نه دې وانه ړوي کوم چه الله رالیږلې دې که په دې باندې دوی مخ واړوي نو پوهه شه چه الله تعالی دوی دځنو ګناهونو په وجه باندې مصیبت کښې مبتلا کولو اراده کړې ده او دې خلقو کښې اکثر فاسقان دي آیا دوی د جاهلیت فیصله لټوي؟ حال دا چه کوم خلق چه یقین کوي د هغوی دپاره د الله نه سوا ښه فیصله کوونکې بل څوک دې؟

**د ایتونو ربط:** دا د سورة مائده اوومه رکوع ده.په دې کښې الله تعالی یهودیان ، نصاری او مسلمانان ته د شریعت یو خاص حکم باندې خبرداره کړی دی . او ددې ذکر په سورة مائده کښې په جدا جدا ځایونو کښې راروان دې . او هغه معامله الله تعالی سره د کړې شوې وعدې او عهد ده. او د الله ﷻ په رالیږلی شوی احکامو کښې د بدلون راوستلو دې . او چې دا د یهودو او نصاراؤ دائمی خصلت او عادت وو.

دې ركوع كښې الله ﷻ اول اهل توارت يهود مخاطب كړي دي ، هغوئ ته ئې د بې لارې كيدو او دهغوئ دبد انجام نه خبر كړي دي . اوددې مينځ مينځ كښې ئې د قصاص ځينې احكامو ذكر كوئ په دې مناسبت اوفرمائيل چې مخكښې آيتونو كښې چې كومه واقعه د يهوديانو ذكر كړې شوې ده هغه هم د قصاص سره متعلق وه ځكه چې بنو نضير د ديت او قصاص كښې د مساوات قائل نه وو بلكه بنو قريظه ئې د ځان نه په كم ديت اخستلو باندې مجبوره كړي وو. دې آيتونو مباركو كښې الله ﷻ يهودو ته سخته تنبيه وركړه ځكه چې هغوئ د الله تعالى دجارى شوى قانون خلاف ورزى كوله. او څوك چې داسې كوى هغوئ ته ئې ظالمان او كافران اوويئيل.

دې نه پس دريم آيت مبارك كښې انجيل والو ته هم ددې مضمون خطاب كړې شوې دې او ورته فرمائيلې شوى دى چې څوك د الله تعالى د جارى شوى قانون خلاف ورزى كوى نو هغه ته خبردارې وركولې شى . او څوك چې داسې كوى نو هغوئ مشركان او نافرمانه دى .

دې نه پس ئې په څلورم ، پنځم او شپږم آيتونو مباركو كښې ئې رسول كريم ﷺ مخاطب كړې دې او مسلمانانو ته ئې هم ددې مضمون هدايت كړې دې چې دوئ دې داهل كتابو په شان په دې مرض كښې نه اخته كيږى چې د دوئ د عهدو او مال په لالچ كښې د الله ﷻ احكام بدل كړى يا ددې قانون خلاف يې د خپله طرفه يو قانون جوړ كړو .

په دې ضمن كښې يوه بله اصولى مسئله داهم ذكر كړې شوې ده چې اګر چې د عقائدو په اصولو كښې او د الله تعالى په اطاعت كښې ټول انبياء كرام ﷺ هم په يوه عقيده او په يوه طريقه باندې وو، خو د حكمت د تقاضې مطابق هر پيغمبر ﷺ ته دهغه زمانې په مناسبت سره شريعت وركړې شوې وو. او په هغې كښې ډير فروعى او جزوى احكام مختلف دى . او دائې هم اوفرمائيل چې كوم پيغمبر ﷺ ته كوم يو شريعت وركړې شو دې هغه په هغه زمانه كښې دحكمت د تقاضې مطابق او واجب الاطاعت وو. او هر كله چې دا منسوخ كړې شوې او بل شريعت راوړې شو نو په هغه وخت كښې هم هغه د حكمت د مطابق او واجب الاطاعت شو. په دې كښې د شريعتونو مختلف كيدلو طرفته هم يوه اشاره چې كله شريعتونه بدليږى او مختلف كيږى نو په دې كښې يو خاص حكمت وي .

## خلاصه تفسير

﴿ إِنَّآ أَنزَلْنَا ٱلتَّوْرَىٰةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ ﴾ مونږ [په حضرت موسى ﷺ باندې ] تورات نازل كړې وو چه په كښې [د صحيحو عقيدو] هدايت وو او [دعملى احكامو هم] وضاحت وو ﴿ يَحْكُمُ بِهَا ٱلنَّبِيُّونَ ٱلَّذِينَ أَسْلَمُوا۟ ﴾ انبياء [دبنى اسرائيلو] كوم چه [داسې وو چه په لكونو خلق ئې تابعدار وو وريسې روان وو] د الله ﷻ فرمانبردار وو ددغې [تورات] په جوړ به يې يهودو ته حكم وركولو ﴿ لِلَّذِينَ هَادُوا۟ وَٱلرَّبَّـٰنِيُّونَ وَٱلْأَحْبَارُ ﴾ او [دغه شان دهغوى بعضې] اهل الله اوعالمانو هم [دهغې په جوړ چه همدغه ددې وخت شريعت وو حكم وركولو] ﴿ بِمَا ٱسْتُحْفِظُوا۟ مِن كِتَـٰبِ ٱللَّهِ ﴾ په وجه ددې چه هغوى [اهل الله او عالمانو] ته په دې كتاب الله [باندې د عمل كولو او نورو لره پرې عمل كولو دپاره د تيارولو] دحفاظت [پابندئى كولو] حكم [دنبيانو ﷺ په ذريعه] وركړې شوى وو ﴿ وَكَانُوا۟ عَلَيْهِ شُهَدَآءَ ﴾ اوهغوى ددې [يعنى پخپله پرې دعمل كولو او نورو لره پرې دعمل كولو دپاره تيارولو] اقراريان شوى وو [يعنى هر كله چه هغوى ته ددې حكم وركړې شوې وو اوهغوى قبول

کړي هم وو لهذا همیشه دپاره ددې پابند پاتې شول] ﴿ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ ﴾ نو [ددې زمانې دیهودو عالمانواو رئیسانو سردارانو هرکله چه همیشه دپاره ستاسوټول مقتدیان دتورات منونکي راغلي دي نو] تاسو هم [دمحمد ﷺ دپیغمبرئ تصدیق په باره کښې چه حکم ئې په تورات کښې دې] دخلقو نه [دا] اندیښنه مه کوئ [چه که مونږ ئې تصدیق اوکړو نودعامو خلقو په نظر کښې به زمونږ مرتبه کښې فرق راشي] او[صرف] زمانه ویرېږئ [چه په تصدیق نه کولو باندې سزاکانې] درکومه ﴿ وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا ﴾ او زما د احکامو په بدله کښې [د دنیا] سامان لږ [چه تاسو ته دخپلو عوامو نه په لاس درځي] مه اخلئ [ولې چه همدغه دمرتبې اومال محبت په تاسو باندې د تصدیق نه کولو باعث جوړېږي] او [یاد لرئ] ﴿وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ﴾ څوك چه دالله ﷻ دنازل کړې قانون په جوړحکم نه کوي [بلکه غیر شرعي حکم لره په قصد سره حکم شرعي ضباطوي اودهغې موافق حکم کوي] ﴿ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ ﴾نو داسې خلق بالکل کافر دي [څنګه چه اني یهودو تاسو کوئ چه د محمد ﷺ د پیغمبرئ په عقیده کښې او د رجم وغیره په عملونوکښې دخپله خانه جوړ کړو څیزونو ته حکم الهی وايئ پخپله هم دې سره ګمراه کیږئ او نورو لره هم ګمراه کوئ] ﴿وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا ﴾او مونږ په دوی [یهودو] باندې دغه [تورات] کښې دا خبره فرض کړې وه چه [که څوك چالره په قصد سره قتل یا زخمي کړي او حقدار ئې پرې دعوی اوکړي نو] ﴿ أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنْفَ بِالْأَنْفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ ﴾ ځان په بدل د ځان کښې ، سترګه په بدل د سترګې کښې او پوزه په بدل د پوزه کښې اوغوږ په بدل د غوږ کښې او غاښ په بدل د غاښ کښې ﴿ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ ﴾ او [دغه شان دنورو] خاص زخمونو هم بدله ده ﴿ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ ﴾ بیا چه څوك [ددې قصاص بدلې د اخستلو حقدار جوړیدو باوجود هم] دے [قصاص] لره معاف کړي نو دغه [معاف کول] به هغه [معاف کوونکي] لره [دهغه د ګناهونو]کفاره [یعنی دګناهونو دلرې کیدو وجه] جوړه شي[یعنی معاف کول دثواب موجب جوړیږي] او [هرکله چه یهودودغه احکام پرېښي وو په دې وجه ورته بیا دړکه آوروي] ﴿ وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ﴾ څوك چه دالله ﷻ د نازل کړې قانون په مطابق حکم اونکړي [مطلب دا چه پورته بیان شو]﴿ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴾نو داسې خلق بیخي ظلم کوي [یعنی ډیر خراب کار کوي] ﴿ وَقَفَّيْنَا عَلَىٰ آثَارِهِمْ بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ﴾او مونږ دهغوی [پیغمبرانو ﷺ] نه روستو [دکومو بیان چه په ﴿یحکم بها النبیون﴾ کښې راغلي دي] عیسٰی بن مریم لره په داسې حالت کښې [پیغمبر جوړلو سره] اولیږلو ﴿ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ ﴾ چې د ځان نه د مخکښې کتاب یعنی تورات تصدیق کونکی هم وو [چې د رسالت دلوازماتو نه یې چې د ټولو کتب الهیه به تصدیق کوي﴿ وَآتَيْنَاهُ الْإِنْجِيلَ فِيهِ هُدًى وَنُورٌ وَمُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ وَهُدًى وَمَوْعِظَةً لِلْمُتَّقِينَ ﴾ او مونږ هغه انجیل ورکړو چې په هغې کښې [د تورات په شان دصحیح عقیدو هم] هدایت کړې شوې وو او [د احکام عملیه هم] وضوح وو او هغه [انجیل] د خپل ځان څخه مخکښې کتاب یعنی تورات تصدیق [هم] کولو[او دا هم د لوازمات کتاب الهی څخه دی] او هغه سراسر هدایت او نصیحت وود الله ﷻ څخه دویریدونکو دپاره اوهغه سراسری هدایت اونصیحت وو الله ﷻ نه ویریدونکو دپاره.﴿وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الْإِنْجِيلِ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فِيهِ ﴾او[دا انجیل ورکولو سره موحکم

کړې وو چه] د انجیل خاوندانو لره پکار دی چه الله ﷻ په دې کتبې څه نازل کړی دی دهغې موافق دے حکم کوی او [اتې ددې زمانے نصرانیانو واورئ چه] ﴿وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ﴾ څوك دالله ﷻ دنازل کړی په جوړ حکم نه کوی [ددې معنی پورته بیان شوې ده] ﴿فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾نو داسې خلق بیخی بےحکمی کوونکی دی [او انجیل د محمد ﷺ دپغمبرئ خبرورکوی نوتاسو ددې خلاف ولې روان یئ] ﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ﴾ او [د تورات او انجیل نه پس] مونږ دا کتاب [یعنی قران] تاسو ته رالیږلے دې چې پخپله هم په صدق [اوربښتینئ] سره ستائیلے شوې دے ﴿مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَابِ﴾ اوددې نه رومبے چه کوم [آسمانی] کتابونه [راغلی] دی [لکه تورات انجیل اوزبور] دهغې هم [داسې] ربښتینولی کوی [چه هغه هم دالله ﷻ د طرفه نازل کړې شویدی] ﴿وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ﴾او [هر کله چه دا کتاب کوم چه په قران کریم سره یادیږی تر قیامته پورې محفوظ دې او ترقیامته پورې به عمل پرې کولې شی اوپدغے آسمانی کتابونو کښې یئ تصدیق موجود دې لهذا دا کتاب] ددغې کتابونو[د ربښتینی کیدو دمضمون همیشه دپاره] حفاظت کوونکې دې [ولې چه پدې قران کښې به تل دپاره دا خبره وی چه دغه کتابونه دالله ﷻ له طرفه نازل کړې شوی دی هر کله چه قران پاك داسې یو کتاب دے] ﴿فَاحْكُم بَيْنَهُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ﴾ نو ددغې خلقو [اهل کتابو] تر مینځه معاملاتو کښې [کله چه ستاسو په مخکښې پیش کړې شی] ددې لیږلے شوی کتاب موافق فیصله کوئی ﴿وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ عَمَّا جَاءَكَ مِنَ الْحَقِّ﴾ اودا کوم ربښتینے کتاب چه تاسو ته راغلې دې دهغې نه په لرے کیدو د دوی په [خلاف شرع] خواهشاتو [فرمائیشونو] پسے [بیا هم په آئینده کښې] مه زنی [څنگه چه تر اوسه پورې موترې صفا انکار کړې دې حالانکه دوی هم تاسو ته ددې خواستونه او منتونه مخکښې کړی دی یعنی ستاسو دا رائې ډیره زیاته درسته ده په دې همیشه دپاره کلك پاتې کیږئ.اوای اهل کتابو تاسو ددې فیصلے کولو نه ولې انکاری یئ آیا نوے دین راتلل څه د حیرانتیا خبره ده آخر]﴿لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا﴾په تاسوکښې هریو[امت] دپاره] ددې نه مخکښې مونږ خاص شریعت او خاص طریقت تجویز کړې وو [مثلا دیهودو شریعت او طریقت تورات وو اود نصرانیانو شریعت او طریقت انجیل وو.بیا که د امت محمدی ﷺ دپاره شریعت او طریقت قران کریم مقرر کړې شو چه ددې حق کیدل هم په دلیلونو سره ثابت دی نو دے نه انکار کولو وجه څه ده] ﴿وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً﴾ اوکه الله تعالی ته ستاسو[دتولو هم یوطریقه لرل] منظور وے نو [هغه په دی هم قدرت لرلو چه] تاسو تولو [یهودو نصرانیانو اواهل اسلام] لره به یئ [هم په یو شریعت ورکولوسره] هم په یو امت کښې کړی وی [نوے شریعت به نه راتللو چه کوم نه تاسو ډده کوئی] ﴿وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ﴾ لیکن [په خپل حکمت سره ئےداسې اونه کړل [بلکه هر یو امت ته یئ جدا جدا طریقه ورکړه] دپاره ددی چه کوم دین ئے تاسو ته [په هره زمانه کښې نوے نوے] درکړې دې په هغې کښې ستاسو دتولو [ستاسو د فرمانبردارئ ښکاره کولو دپاره] امتحان واخلی [ولې چه اکثر طغبی خبره داسې وی چه نوے طریقے لره اوبره گنړلے شی اوددې مخالفت کولو دپاره راپاره کول کیږی.لیکن د صحیح عقل او انصاف خاوند ته هر کله چه حقیقت ښکاره شی نو خپل طبیعت لره هغې سره په جوړښت لرلو باندې مجبوره کوی.اودا یو لوئې امتحان دې نو که

دټولو خلقو صرف يو شريعت وے نودهغي په شروع کښ دخلقو امتحان خويه شوې وو ليکن دوی پسے د راتلونکو خلقو امتحان به څکه نشو کيدلې چه هغوی به ورسره د عادت کيدو له وجې مخالفت نه کولو.اوس خودهر يو امت امتحان اوشو. دامتحان يو صورت دا هم وی چه انسان لره د کومو څيزونو نه منع کړې شی چه په هغې عمل کول جاری وی يا بيخی پريښودے شوې وی لهذا دا امتحان هله په کلک ډول اخستلې شی چه شريعتونه ګنړ راغلی وی او منسوخ باندې عمل کولو نه پس په کښې منع رازی.اود شريعت ديو والی په صورت کښې اګر که د ګناهونو نه منع وی ليکن په حقيقت کښې څه شبه نه وی څکه به پئ امتحان هم ددې درجے نه وو.ددې دواړو امتحانونو مجموعه دهر امت مخکښنو او روستو خلقو ټولو دپاره عامه شوه څنګه چه په رومبی صورت کښې يواځې د رومبو خلقو امتحان کيدلې شو.هرکله چه په نوی شريعت کښې دا حکمت دې] ﴿فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ﴾ نو [د تعصب په پريښودو سره مفيدو خبرو طرف ته يعنی هغه عقيدو عملونو اواحکاموطرف ته کوم چه په قران پاک کښې دی] رامنډه کړئ [يعنی په قران پاک باندې ايمان راوړلو سره په هغې روان شئ يو ورځ] ﴿إِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ﴾ تاسو ټولو لره يواځې دالله ﷻ طرف ته تلل دی بيا به هغه تاسو ټولو ضباطوی [چه په کښې تاسو سره دحق واضح کيدو نه په دنيا کښې خامخا] اختلاف کولو [لهذا دغه ته ځايه اختلاف پريږدئی او هغه حق قبول کړئی چه اوس يواځې په قران پاک کښې دې] او [هر کله چه دے اهل کتابو دومره اوچت ټوپ اووهلو چه تاسو نه خواست دا کوی چه ددوی په خواهش برابره فيصله اوکړئی چرته چه ددې احتمال هم نشي کيدلې .لهذا دوی دحوصلے راکښته کولو اوپه آورولو سره دوی لره تل دپاره د نااميده کولو په غرض]

﴿وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ﴾ مونږ [بيا بيا] حکم ورکوو چه تاسو ددوی [اهل کتابو] تر مينځه معاملاتو کښې [کله چه ستاسو په مخکښې پيش شی] ددې ليږلی کتاب په جوړ فيصله کوئی ﴿وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ﴾ او ددوی په [خلاف شرع] خواهشاتو [او فرمانشونو] پسے [په راتلونکو وختونو کښې هم] مه ځئ [څنګه مو چه تراوسه پورې هم اونه کړل] ﴿وَاحْذَرْهُمْ﴾ اوددوی نه [يعنی ددوی ددې خبرې نه آئنده کښې هم دوراندې پشان] احتياط کوئی ﴿أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ إِلَيْكَ﴾ چه [هسې نه] دوی مو دالله ﷻ د راليږلی شوی [شريعت څه حکم نه هم واو] اونړوی[يعنی اګر که ددې خبرې احتمال نشته ليکن ستاسو د قصده دې داسې وی چه ثواب درته هم ملاويږی] بيا [سره ددې نه چه قران پاک واضح دې او فيصله ئے حقه ده] ﴿فَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ اللّٰهُ أَنْ يُصِيبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ﴾ که دا خلق [دقران کريم نه اوددې په جوړستاسودکړې فيصلےنه] سر اورغړوی نودا يقين اوکړئی چه بس هم الله ﷻ ته منظور دی چه ددوی په بعضې جرمونو باندې [هم په دنيا کښې] دوی ته سزا ورکړی [دغه بعضې جرم فيصله نه منل دی اود قران کريم دحقانيت دنه منلو پوره سزا به ورته په آخرت کښې ملاويږی. ولې چه رومبے جرم د ذمی کيدو خلاف دې او دويم جرم دايمان خلاف دې. دحربيت سزا په دنيا کښې وی او دکفر سزا په آخرت کښې وی چنانچه ديهودو سرکشی او وعده ماتول هرکله چه د حدنه ورتيره شوه نو دوی ته د قتل قيد او وطن نه دبهر کولو سزا ورکړې شوه] ﴿وَإِنَّ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ لَفَاسِقُونَ﴾ او [اې محمد ﷺ ددوی ددې حالاتو په آوريدو به ستاسو خفګان ضرور

وی لیکن تاسو زیات غم مه کونی ولې چه] زیات خلق خو [په دنیا کښې همیشه دپاره] هم بې حکمه [نافرمانه] کیدل [اراروان] دی دا خلق [دهغه قرانی فیصلې نه چه بعینه عدل او انصاف دې په سر ارغړولوسره] ﴿ اَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُوْنَ ﴾ آیا بیا د جاهلیت د زمانې فیصله غواړی [چه دنورو آسمانی شریعتونو برعکس ئې دخپله خانه جوړه کړې وه اوبیان ئې ددې رکوع نه مخکښې د دوو واقعو په ترڅ کښې ﴿يا يها الرسول﴾ په تمهید کښې تیر شوې دې. حالانکه هغه سراسر دعدل او دلیل خلاف ده یعنی سره د علمه دعلم نه سر غړول اودې علمۍ او جهل طلبګار کیدل څومره لویه عجیبه خبره ده] ﴿ وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴾ اوبه فیصله کولوکښې به څوك ښه [فیصله کوونکې] وی د هغه څوك برابر هم نشته [بلکه هیڅوك نشته. دالله ﷻ فیصله پرېښودل اودبلې فیصلې طلبګار کیدل خالص جهل نه دې نو نور څه دی؟ لیکن دا خبره هم یواځې] دیقین [او ایمان] لرونکو په نزد ده [ولې چه په دې پوهیدل هله کیدیشی چه عقلی قوت ئې صحیح وی او دغه کافران ددې نه بې نصیبه دی].

### معارف او مسائل

ددې آیتونو څخه په ړومبی آیت کښې ارشاد دې:

﴿ اِنَّآ اَنْزَلْنَا التَّوْرٰىةَ فِيْهَا هُدًى وَّنُوْرٌ ﴾ [مونږه خپل کتاب تورات اولیږلو چه پکښې حق ارخ ته لاربښودل اوخاص نوروو، په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه دتورات دشریعت په منسوخ کولوسره دتورات څه نمګړتیانه راځی، بلکه دزمانې بدلیدوسره احکام، هم دضرورت مطابق بدل کړې شو، ګنی تورات هم زمونږ نازل کړې کتاب دې په دې کښې بنی اسرائیلو دپاره دهدایت اصول هم ذکرکړې شویدی اویو خاص نورهم شته چه په روحانی ډول د دوئ په زړونو باندې اثرغورځوی،

بیائې اوفرمائیل: ﴿ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّوْنَ الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا لِلَّذِيْنَ هَادُوْا وَالرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ ﴾ [تورات مودې دپاره نازل کړې ووچه ترڅوپورې ددې شریعت نه وی منسوخ کړې شوې، ترهغې پورې راتلونکی پیغمبران ﷺ اودهغوئ نائبان خدائی خلق اوعلماځول دې ددې تورات مطابق فیصلې کوی]، داقانون دې په دنیا کښې په مخه چلوی په دې کښې ئې دانبیاء ﷺ نائبان په دوو قسمو کښې ذکرکړیدی.

① ﴿ وَالرَّبّٰنِيُّوْنَ ﴾ ② ﴿ الْاَحْبَارُ ﴾، ربانی لفظ رب طرف ته منسوب دې چه معنی ئې ده [الله والا] احبار دحبر جمع ده چنانچه دیهودو په محاوره کښې به عالم ته حبروئیلې شو، اګر که داخبره ښکاره ده چه خدائی خلق به هغه ته وائی چه دالله تعالی دضروری حکمونو علم هم لری ورنه بغیر دعلم نه عمل کیدې نشی، او د الله تعالی د احکامونه بغیر اطاعت او عمل کول هیڅ یو کس دالله تعالی نه ویریدونکې نشی کیدې. دغه شان دالله تعالی په نزد عالم به هم هغه ته وئیلې شی چه په خپل علم باندې عمل هم کوی، که داسې نه وی اوداحکامو الهیئ نه دخبریدو باوجود ضروری فرضو، واجباتو باندې هم عمل نه کوی، نه دې ارخ ته خیال کوی نو هغه دالله تعالی اودهغه درسول ﷺ په نزد دجاهل نه زیات بدتر وی، ددې نتیجه دا شوه چه هر خدائی بنده عالم وی اوهر عالم خدائی بنده وی، مګر دلته په بیل بیل بیانولو سره په دې خبره خبرداری ورکړې شوه چه اګرچې خدائی بنده هغه څوک کیدې شی چه علم لری اوعالم دپاره عمل

ضروري وي، ليکن هرڅوک په هغه نوم يادولې شي د کوم شي رنګ چه پرِغالب وي، څوک چه په زياته اندازه کښې عبادتونه، عمل او د الله تعالى ذکرکوي اوددين علم په اندازه دضرورت لري هغه ته رباني [خدائي] بنده وئيلي شي، چه په اوسنئ اصطلاح کښې ورته شيخ، مرشد، پيروغيره وئيلي شي اوڅوک چه علمي مهارت پيداکولونه پس خلقوته دشرعي احکامو ښودلو، ورازده کولو په خدمت کښې اخته وي، دفرضوواجباتواوسنت مؤکده نه علاوه په نوروںفلي عبادتونوکښې زيات وخت نشي لګولې. هغه ته حبرياعالم وئيلې شي،

خلاصه داده چه په دې شان داهم اوښودلې شوچه شريعت، طريقت، علماؤاومشائخ اصل کښې يودي، فرق صرف دطريقه کاراودغالب شغل په بناباندې کيدې شي، دې نه معلومه شوه چه علماء اوصوفيا څه بيل بيل خلق نه دي بلکه د دواړودڅوندمقصددالله تعالى اودهغه درسول ﷺ اطاعت او فرمانبرداري ده، البته ددې مقصد، حاصلولوډپاره د دوئ طريقه کارمختلف ښکاري،

بيائې اوفرمائيل ﴿بِمَا اسْتُحْفِظُوْا مِنْ كِتٰبِ اللّٰهِ وَكَانُوْا عَلَيْهِ شُهَدَآءَ﴾ [دا انبياء، اود دوئ دواړقسم نائبان علماء، او مشائخ دتورات داحکاموجاري کولوڅکه پابندووچه الله تعالى دتورات حفاظت د دوئ په ذمه لګولې وواودوئ دهغې دحفاظت کولولوظ او قول کړې وو.

تردې پورې دابيان ووچه تورات دالله تعالى کتاب، نوراوهدايت دې چه دانبياؤ ﷺ اودهغوئ رشتينو نائبانو، مشائخواوعلمائي کرامو دهغې حفاظت کړې دې، وروسې دموجوده زمانې يهودئې په دې خبرداره کړل چه ستاسو تلل کاره دي اوددې اصلي سبب ئې ورته اوښودلواو ورته ئې اوفرمائيل چه تاسو لره دخپلو تيروشوؤبزرګانوپه نقش قدم باندې تلل داسې پکاروو چه دتورات حفاظت موکولې ليکن تاسوپکښې التّه بدلون راوستو، ولې چه په تورات کښې ډيروضاحت اوتفصيل سره دمحمد ﷺ دتشريف راوړوخبرورکړې شوې وواوپه هغوئ ﷺ باندې دايمان راوړوهدايت يهودوته شوې وو، دغې خلقواپوته، ددغې هدايت خلاف ورزي اوکړه، په رسول الله ﷺ باندې دايمان راوړلوپه ځائې ئې دهغوئ ﷺ مخالفت شروع کړاو ورسره ئې د دوئ دمهلکې غلطئ سبب داسې بيان کړوچه هغه د دوئ محبت وو دمرتبې اومال سره، يعنې سره ددې چه رسول الله ﷺ ئې په حقه رسول ګڼړلو اوبياهم دهغوئ دتابعداريئ کولونه ځکه ويريدل چه اوس په اسلام قبلولوسره به صرف يو مسلمان بنده جوړشي چه د دوئ دغه مشري به ختمه شي بله خبره داوه چه دغه خلقوداپيشه جوړه کړې وه چه غټانونه درشوت اغستوپه بدل کښې ئې دتورات داحکاموپه بدلولوسره هغوئ لره آسانئ پيداکړې وي، نوپه دغې کارباندې دخبرداره کولودپاره ئې دموجوده زمانې يهودوته اوفرمائيل چه: ﴿فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا﴾ [تاسو دخلقونه داسې مه ويريږئ چه هغوئ به ستاسو تابعداري کول پريږدي يابه ستاسو مخالف شي اوتاسوددنياپه لږسامان اغستوسره د دوئ دپاره دالله تعالى په احکامو کښې ګډودي مه راولئ، ولې چه داخوستاسودپاره ددين دنيا بربادي ده] ، اوبله داخبره هم ده چه: ﴿وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ﴾ [څوک چه دالله تعالى نازل کړواحکامولره واجب نه ګڼړي اوپه هغې سره فيصلې نه کوي، بلکه دهغې خلاف فيصلې کوي نوهغه کافراو منکردي] چه سزائې هميشه عذاب دجهنم دي،

وروستي دقصاص احکام په دې حواله سره بيان کړې شويدي چه مونږه دا احکام په تورات کښې نازل کړيدي لکه فرمائي: ﴿وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنْفَ بِالْأَنْفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ﴾ [مونږه يهودولره په تورات کښې داحکم دقصاص نازل کړې وو چه دځان په بدل کښې ځان دسترګې په بدل کښې سترګه، دپوزې په بدل کښې پوزه، دغوږ په بدل کښې غوږ، دغاښ په بدل کښې غاښ اودخاص زخمونو بدل دې] ،

دبني نضيرو او بني قريظو ترمنځه درسول الله ﷺ په خدمت کښې پيش شوې مقدمه داسې وه چه بني نضيرو، بني قريظو لره په دې مجبوره کړې ووچه که دبني نضيرو څوک سړې به بني قريظو اووژلو نو په بدل کښې به ئې دبني قريظو سړې وژلې شو او دې نه علاوه به ترپوره ديت هم اغستې شو او که دبني نضيرو يو کس به دبني قريظو څوک اووژل نو دهغه قصاص به بيخي نه وو صرف ديت به ئې هم هغه ورکولو چه دبني نضيرو په نيمه به وو ،

په دې آيت کښې الله تعالى ددغې غلا پرده يې اوشلوله کړه چه پخپله په تورات کښې هم د قصاص او د ديت دبرابرئ احکام موجود دي، داخلق په قصد سره دې نه سرغړوى اوخالص څه چل جوړولو دپاره خپله مقدمه درسول الله ﷺ په خدمت کښې راوړې،

په آخر ددې آيت کښې ئې اوفرمائيل: ﴿وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ﴾ [څوک چه دالله تعالى په نازل کړو احکامو سره حکم نه کوې هغه کافردي] ولې چه داسې خلق دالله تعالى داحکامو نه منکر او باغيان دي په دريم آيت کښې اول دحضرت موسى ﷺ دپيغمبر کيدو داسې بيان دې چه هغوئ دتورات دتصديق دپاره ليږلې شوې وو، بيادانجيل بيان په داسې شان شوې دې چه هغه هم دتورات په شان هدايت اونوردې،

په څلورم آيت کښې ئې ارشاد اوفرمائيلو چه دانجيل خاوندانو له پکاردي چه په انجيل کښې دالله تعالى دنازل کړې قانون په جوړدې احکام جارى کوى او څوک چه دالله تعالى دنازل کړې حکمونو په خلاف حکم جارى کوى هغه نافرمانه اوسرکش دي،

**قرآن کريم دتورات اوانجيل هم محافظ دې:** په پنځم اوشپږم آيت کښې رسول الله ﷺ ته داسې خطاب دې چه مونږه په تاسو ﷺ قرآن نازل کړو چه دې نه د وړاندې کتابونو، تورات او انجيل تصديق هم کوى، اوددې محافظ هم دې، ولې چه هرکله اهلِ تورات په تورات کښې او اهلِ انجيل په انجيل کښې بدلون راوستونو يو اځې قرآن دهغې محافظ او څارنوال شو، چه دهغوئ دغه بدلون راوستل ئې ښکاره کړل، حق اوحقيقت ئې څرګند کړو اودتورات اوانجيل اصل تعليمات نن هم دقرآن کريم په ذريعه په دنيا کښې باقي دي، ولې چه ددې کتابونو وارثانو او ددې دتابعدارئ دعويدارانو، ددې شکل داسې وران کړې دې چه دحق اوباطل، بيلتون ناممکن شو په آخر دآيت کښې رسول الله ﷺ ته هم هغه حکم ورکړې شو کوم چه اهلِ تورات او اهلِ انجيل ته ورکړې شوې ووچه ستاسو ﷺ احکام اوفيصلې دې تولې، دالله تعالى دنازل کړې احکامو مطابق وى، اوکوم خلق چه دخپلو خواهشاتو په جوړ تاسو نه فيصلې غواړي، تاسو ﷺ دهغوئ دچل ول نه خبردار اوسيږئ، ددغې ارشاديوه خاص وجه داوه چه ديهودو يو څو عالمان، درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو چه تاسو ﷺ ته دا معلومه ده چه مونږه ديهودو علماء اوپيشوايان يو اوزمونږ دمسلمانيدو په نتيجه کښې به هغوئ ټول هم مسلمانان شي خوزمونږ دمسلمانيدو يو شرط دادې چه يوه داسې مقدمه تاسوته

راوړونکی یو کومه چه ستاسو قوم سره لرو، که دهغې فیصله موږ مونږ په خوښه اوکړه نو مونږ به ټول مسلمانان شو. چنانچه رسول الله ﷺ لره الله تعالی په دې خبردار کړو چه تاسو به د الله تعالی د نازل کړی قانون نه خلاف فیصله په هیڅ صورت کښې نه ورکوئ اګر چه دوئ خپل مسلمانیدل هم په دې موقوف کړی،

**دانبیاؤ ؑ په شریعتونوکښې جزوی اختلاف اودهغې حکمت:** په دې آیت کښې دویم هدایت ورکولو سره دیو ډیر ضروری اصولی سوال جواب هم ورکړې شویدې، سوال دا و چه هر کله ټول انبیاء ؑ او هغوئ باندې نازل شوی کتابونه، شریعتونه او صحیفې ټول هر څه د الله تعالی د اړخه رالیږلې شویدی نو بیا په دغه کتابونو او شریعتونو کښې اختلاف ولې دې؟ او په روستو شریعت سره ړومبنې شریعت ولې منسوخ کړې شویدې؟ د دې جواب سره د خداوندی حکمت نه داسې ورکړې شویدې:

﴿لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ ۖ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ﴾

[تاسو کښې هر طبقې د پاره، مونږه یو خاص شریعت او دعمل یو خاص طریقه جوړه کړیده، دهغې اصول اګرچه شریک او اتفاقی دی مګر په فروعی احکامو کښې اختلافات په مصلحتونو باندې بناوی، که الله تعالی غوښتلې نو تاسو ټولو لره به ئې یو امت او یو ملت جوړ کړی وو، د ټولو به هم یو کتاب او یو شریعت وو، لیکن الله تعالی ته دا ځکه منظور نه دی چه د خلقو آزمیښت کول ئې داسې مقصود دی چه څوک، دعبادت په حقیقت باندې دواقف کیدو په وجه هروخت د دې په انتظار کښې وی چه په کوم حکم ملاوید سره هغه ترسره کړی، د نوی راتلونکی کتاب یا شریعت تابعداری اوکړی] ړومبې کتاب او شریعت ئې که هر څو مره خوښ وی، د پلار نیکه مذهب ئې هم وی، په دې وجه ورته دهغې پریښول ډیر سخت او ګران وی خو بیا هم دحکم په انتظار کښې وی که د دې د پریښودو حکم راشی نو دهغې په منلو کښې به هیڅ قسم کش، کړپ نه کوی، او الله تعالی دا هم ښکاره کول غواړی چه څوک د دې حقیقت نه خان ناخبره ساتی، یو خاص شریعت یا خاص کتاب لره خپل مقصود جوړوی، او هم دې لره د خپل پلار، نیکه مذهب بولی، د دې پریښودو ته په هیڅ صورت کښې تیارنه وی، اګرچه په دې باره کښې د الله تعالی حکم هم راشی]

دشریعتونو داختلاف یو غټ حکمت دا دې چه د دې په ذریعه دهرې زمانې او هرې طبقې خلق د صحیح عبادت او بندګئ دحقیقت نه خبرولې شی چه په حقیقت کښې عبادت دبندګئ، فرمانبرداریئ او تابعداریئ نوم دې، دا یو اخې په مونځ، روژې، حج، زکوة یاذکر او تلاوت باندې اد انړه نه لری، او نه ئې ذات مقصود دې بلکه د دې ټولو مقصد یو اځې دحکم الهی تابعداری کول دی، چنانچه په کومو وختونو کښې چه دمونځ کولو نه منع راغلې ده نو په دغه وختونو کښې مونځ کول د ثواب کار نه، بلکه اپوټه د ګناه موجب کار دې، په ټول کال کښې داخترونو او د ایام تشریق د [پنځو] ورځو روژې نیول منع دی، نو په هغې کښې روژه نیول د ګناه کار دې، د ذی الحجې دمیاشتې دنهمې ورځې نه سوا په نورو ورځو کښې، د عرفات په میدان کښې راجمع کیدل، دعا او عبادت پکښې کول د ثواب کار نه بلکه د ګناه کار دې، سره د دې چه په مکه مکرمه کښې د حاجیانو د پاره په دغه ورخ دغلته وقوف کول د ټولو نه لوئې عبادت هم دغه دې، دغه شان د ټولو نورو عبادتونو حال هم دا دې، ترڅو چه دهغې د کولو حکم جاری وی نو هغه به عبادت وی، او کله چه کوم حد باندې دهغې د بندیز حکم اوشی نو هغه هم حرام او ناروا کیږی، جاهل عوام

په دې حقيقت خبر نه دی د کومو عبادتونو چه عادتونه گرځيدلی دی بلکه کوم قومی رسوماتو لره چه چه هغوئ دعبادت په ډول کوی نو په دې شان هغوئ دالله تعالی اودرسول الله ﷺ ښکاره احکام شاته غورځوی، چنانچه په دې شان سره بدعتونه اونوی کارونه ددين برخه جوړولې شی کوم چه دپخوانو کتابونو اوشريعتونو دبدلون سبب جوړ شوی دی، الله تعالی په مختلفو پيغمبرانو ﷺ، مختلف کتابونه اوشريعتونه نازلولو سره انسانانو ته ښودلی دی چه څه يوعمل يايوعبادت لره مقصود جوړ نکړی، بلکه په صحيح ډول دې دالله تعالی فرمانبرداره بندگان جوړ شی، اوکله چه ورته دوړاندينی عمل دپريښودو حکم اوشی نوسمدستی ئې پريږدی اودکوم عمل کولو حکم چه ورته اوشی، سمدستی دی په هغې عمل کوی،

دې نه علاوه دشريعتونو داختلاف يولوئې حکمت داهم دې چه ددنيا ذهردوراوهرې طبقې د انسانانو مزاجونه اوطبيعتونه مختلف وی، دزمانې په بدليدو سره دانسان په طبيعت باندې ډيرلوئې اثرپريوځی، کنه دټولو دپاره فروعی احکام هم يوشان اوگرځولې شی نو انسانانو ته گرانيږی، لهذا دالله تعالی دحکمت داتقاضاشوه چه دهرې زمانې اوهرمزاج دجذباتو په لحاظ ساتلو سره په فروعی احکامو کښې مناسب تبديلی اوکړې شی، دلته دناسخ اومنسوخ دامعنی نه وی چه حکم کوونکی ته حالات معلومه نه وواوحکم ئې ورکړو، هرکله چه ورته نوی حالات معلوم شونو هغه ئې منسوخ کړو يارومبې حکم ئې دبې پروايئی اوغلطئ په بناکړې وو، بياچه خبرشو هغه ئې بدل کړو، بلکه په شريعتونو کښې دناسخ اومنسوخ مثال بيخی ديوې ډاکټری اوحکيمی نسخې پشان دې هرکله چه يو ډاکټر\حکيم يومريض ته دارو [دواء] ورکوی نواندازه ورته لگی چه دومره ورځو کښې چه دده بيماری بل مخ ته واوړی نودهغې مطابق به ورته فلانئ نسخه په بدل کښې ورکولې شی، په دې بناډاکټر\حکيم رومبئ نسخې ته غلط ونيل صحيح نه دی بلکه حقيقت داوی چه هغه وخت دپاره هغه نسخه صحيح اوضروری وی اوراتلونکو حالاتو کښې يوې پسې بله نسخه صحيح اوضروری شوه،

**په تيروشوؤآيتونوکښې دراغلي هغه احکاموخلاصه کوم چه ښکاره وواوکوم چه هغه دې په ترخ کښې وو؟**

په دغې تيروشوؤرومبوآيتونو کښې داخبره بيان شوه چه کومه مقدمه درسول الله ﷺ په وړاندې پيش شوې وه دهغې په باره کښې درسول الله ﷺ کړې فيصله دتورات مطابق وه، ددې نه ثابته شوه چه درومبوشريعتونواحکام به ترهغه پورې په راتلونکو شريعتونو کښې هم جاری اونافذ پاتې وی ترڅوچه منسوخ شوی نه وی، څنگه چه ديهودوپه دغه مقدمو کښې دقصاص دمساوات اودزناپه سزاکښې دسنگسارئ حکم تورات کښې هم ووبياقرآن کريم هم دغې لره بعينه [هوبهو] باقی اولرل،

دغه شان په بل آيت کښې دزخمونو دقصاص حکم چه دتورات په حواله بيان کړې شوې دې، په اسلام کښې، همدغه حکم رسول الله ﷺ جاری کړو، په دې بنا، دجمهورو اسلامی علماؤ ﷺ په نزد ضابطه داده چه درومبنو شريعتونو هغه احکام چه قرآن کريم هغې لره نه وی منسوخ کړی، هغه به زمونږ په شريعت کښې هم نافذ وی اوپه هغې عمل کول به واجب وی، همدغه وجه ده چه په بيان شوؤآيتونو کښې، اهل تورات ته دتورات مطابق اواهل انجيل ته دانجيل مطابق دحکم ورکولو اوعمل کولو حکم ورکړې شويدې، حالانکه دغه دواړه کتابونه اوددې شريعتونه درسول الله ﷺ په پيغمبر کيدو سره منسوخ شوی دی، مطلب ئې داشو چه دتورات اوانجيل

کوموا احکامو لره چه قرآن کریم نه دی منسوخ کړی دهغې تابعداری کول اوس هم واجب دی،
ددې آیتونونه دریم حکم دا ثابت شو چه دالله تعالی دنازل کړی احکامو په خلاف حکم
کول په ځنې صورتونو کښې کفر دې هر کله چه اعتقادئې ددې دحقوالې نه وی، او په ځنې
صورتونو کښې ظلم او فسق دې، داهله چه عقیده خونې ددې دحقوالی وی خو عمل کول ئې ددې
په خلاف وی، په دې آیتونو کښې څلورم حکم دا راغلې دې چه رشوت اغستل مطلقا حرام دی
اوخصوصا په عدالتی فیصله باندې رشوت اغستل ددې نه هم زیات سخت دی،
دې آیتونونه پنځم حکم دا څرګند شو چه ټول انبیاء ﷺ او د دوئ شریعتونه په بنیادی ډول بیخی
یو شان دی، البته ددې جزوی او فرعی احکام مختلف دی چه په لویو حکمتونو باندې اړه لری.

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا
اٰئې هغه کسانو | چې ایمان موراوړې دې | مه نیسئ
|.............. انې ایماندارو ! تاسو دهغه کسانو سره

الْيَهُوْدَ وَالنَّصٰرٰى اَوْلِيَآءَ ؕ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ؕ وَمَنْ
یهودیان | او عیسایان | دوستان خان له | ځینی ددوئ | دوستان دی | دځینو | او چا چې
دوستی مه کوئ چې یهودیان او نصاری دی | دوئ دیو بل دوستان دی | او که په تاسو کښې څوک

يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَاِنَّهٗ مِنْهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ
دوستی اوکړه | ددوئ سره ستاسو نه | نو بیشکه چې هغه | هم دهغوئ نه دې | بیشکه چې الله
دوئ سره دوستی ساتی | نو دهغوئ دله کښې به شمیرلې شی | ........................ الله ﷻ

لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۞ فَتَرَى الَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ
هدایت نه کوی | قوم | ظالم ته | پس وینې ته | هغه کسان | چې په زړونو دهغوئ کښې
ظالمان خلق دهدایت نه محروم ساتی | خکه خو ته وینې ګورې چې دچا په زړونو کښې

مَّرَضٌ يُّسَارِعُوْنَ فِيْهِمْ يَقُوْلُوْنَ نَخْشٰٓى اَنْ تُصِيْبَنَا
مرض دې | چې هغوی منډې وهی | د هغوی طرف ته | وائی | چې مونږه ویریږو | چې او به رسیږی مونږ ته
د نفاق امرض ګډې | هغوئ په منډه منډه دغې خلقو کښې ورننوځی | او وائی چې مونږ ویریږو چې دمصیبت په

دَآئِرَةٌ ؕ فَعَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِىَ بِالْفَتْحِ اَوْ اَمْرٍ مِّنْ عِنْدِهٖ فَيُصْبِحُوْا
یوه حادثه | نو نزدې ده چې الله به | راولی | فتحه | یا بل حکم | د طرف خپل نه | نو شی به هغوئ
چکر راګیرنه شو | زرده چې الله ﷻ به تاسو ته فتح درکړی | یا به د خپل طرفه بل څه حکم اوکړی | نو دوی

عَلٰى مَآ اَسَرُّوْا فِىْٓ اَنْفُسِهِمْ نٰدِمِيْنَ ۞ وَيَقُوْلُ
په هغه منافقت باندې | چې پټ ساتلې دې هغوئ | په زړونو خپلو کښې | شرمنده | او وائی به
چې خپلو زړونو کښې کوم نفاق پټولو په هغې به پښیمانه شی | .............. او هغه کسان به وائی کوم

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَهٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ

هغه كسان | چې ايمان ئې راوړې وي | آيا دا | هغه كسان دي | چې قسمونه خوړل دوئ | په الله باندې

چې مسلمانان دي | چې ښه دا هغه كسان دي | چې د الله ﷻ په نوم به ئې غټ غټ قسمونه خوړل

جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ ۙ اِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ ۭ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ

سخت | قسمونه خپل | چې بيشكه دوئ | خامخا ستاسو سره دي | عبث شو | عملونه د دوئ

چې مونږ | يعني دوئ | تاسو سره ملګرى يو | د دوئ ټول كوششونه ضائع شو

فَاَصْبَحُوْا خٰسِرِيْنَ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَنْ يَّرْتَدَّ

نو شول دوئ | نقصانيان | اې هغه كسانو | چې ايمان مو راوړې دې | هغه څوك | چې واوړيدو

او دوئ نامراده پاتې شو | ......... اې د ايمان خاوندانو كه په تاسو كښې څوك د خپل

مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَسَوْفَ يَاْتِي اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُّحِبُّهُمْ

ستاسو نه | د دين خپل نه | نو زر به | راولي الله | داسې قوم | چې محبت به كوي [الله] د هغوئ سره

دين نه واوړي | نو الله ﷻ به نور داسې ډير خلق راپيدا كړي | چې هغوئ به د الله ﷻ خوښ وي

وَيُحِبُّوْنَهٗٓ ۙ اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ

او محبت به كوي هغوئ د الله سره | نرم به وي | په مؤمنانو باندې | سخت به وي

او الله ﷻ به د هغوئ خوښ وي | د مسلمانانو د پاره به نرم وي | او د كافرانو د پاره به سخت وي

عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۡ يُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ

په كافرانو باندې | كوشش به كوي | په لاره د الله كښې | او نه به ويريږي | د ملامتيا

او د الله ﷻ په لار كښې به جهاد كوي | او د ملامتګر د ملامتيا نه به نه ويريږي ...........

لَآئِمٍ ۭ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَاللّٰهُ

د ملامت كونكي نه | دا | فضل د الله دې | چې وركوي دا | هغه چاله | چې رضائي شي | او الله

دا د الله ﷻ فضل دې | چې چاته ئې خوښه شي وركوي ئې | ........... او بيشكه الله ﷻ

وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ۝ اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَالَّذِيْنَ

فراخه دې | پوهه دې په هر څه | بيشكه | دوست ستاسو الله دې | او رسول د هغه دې | او هغه كسان

ډير د وسعت مالك دې او په هر څه پوهه دې | په حقيقت كښې خو ستاسو ملګرى الله او د هغه رسول

اٰمَنُوا الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ

چې ايمان ئې راوړې دې | هغه | چې قائموي | مونځ | او وركوي | زكاة | او هغوئ

او هغه مومنان دي | چې په پابندئ سره مونځونه كوي | ........... او زكاة وركوي | او هم دوئ

رٰكِعُوْنَ ۝ وَمَنْ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالَّذِيْنَ

ركوع كونكي دي | او څوك چې دوستي كوي | د الله سره | او د رسول د هغه سره | او د هغه كسانو سره

الله ﷻ ته سر ټيټوي | ........... او څوك چې الله ﷻ سره او د هغه رسول سره او

اٰمَنُوْا فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ
چي ایمان ني راوړوا | نو بیشکه | ډله دالله | هم هغوئ غالب دی | ائي هغه کسانو
مؤمنانوسره دوستی کوی | نو دالله ﷻ ډله به همیشه غالبه وی ۔ |................ ائي مسلمانانو!

اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ هُزُوًا
چي ایمان مو راوړي دي | مه نیسئ | هغه کسان | چي نیولي دي هغوئ | دین ستاسو په ټوقو
هغي خلقوسره دوستي مه کوئ | ............ چي ستاسو دین پسي توقي ............

وَّلَعِبًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ
اولوبو سره | دهغه کسانونه | چي ورکړي شوي دي ورته | کتاب | مخکښي ستاسونه
اومسخري کوی | کوم چي ستاسونه مخکښي اهل کتاب دی انودوی سره هم دوستي مکوئ!

وَالْكُفَّارَ اَوْلِيَآءَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝ وَاِذَا
او کافران | دوستان | او اوویریږئ | دالله نه | که چرې یئ تاسو | مؤمنان | اوهرکله چي
اوکه کافران دی | اودالله ﷻ نه ویره کوئ | که تاسو په سچه مسلمانان یئ | .............. او چي

نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ
رابلئ تاسو | مانځه ته | انو نیسی دوی اذان لره | په ټوقو | اولوبو سره | دالویي توقي | په سبب ددې چي دوئ
تاسو دمونځ دپاره اذان کوئ | انو دوی په هغي پسي توقي اومسخري کوی | داځکه چه دوئ

قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ۝
داسي قوم دي | چي نه لری عقل
دعقل نه کار نه اخلی

**آسان ترجمه قرآن:** اې دایمان خاوندانو! یهودو او عیسایانو لره مددګار مه جوړوئ دوی خپله د یو بل مددګار دي او تاسونه چه څوك هم ددوی سره دوستي کوي نو هغه به د هغوی نه وي – یقینًا الله ظالمانو ته هدایت نه کوي نو د کومو خلقو په زړونو کښې چه (د نفاق) مرض دې ته به دوی لره وینې چه دوی په هغوی کښې ننوځي او وائي چه مونږ ویریږو چه وبه رسیږي مونږ ته مصیبت "(لیکن) څه لرې نه ده چه الله (مسلمانانو ته) فتح ورکړي یا د خپل طرف نه څه بله خبره ښکاره کړي هغه وخت به دا خلق په هغه خبره پښیمانه وي کومه چه دوی په زړونو کښې پټه کړې وه او (هغه وخت) به ایمان والا (یو بل ته) وائی چه آیا دا هغه خلق دي چه دوی ډیر په زور اوشور سره په الله قسمونه خوړلی وو چه دوئ تاسو سره دی. ددوی اعمال تباه شو او دوی نامراده شو. اې دایمان خاوندانو! که تاسو کښې څوك د ایمان نه واوړي نو الله به داسې خلق پیدا کړي چه هغوی سره به الله محبت کوي او هغوی به د الله سره محبت کوي چه د مؤمنانو د پاره به نرم وي او د کافرو د پاره به سخت وي، د الله په لاره کښې به جهاد کوي او دچا ملامتیا کونکي د ملامتیا نه به نه ویریږي دا د الله فضل دې چه چا ته ئې وغواړی نو ورکوي ئې، اوالله ډیرې فراخئ والا دې، علم والا دې (اې مسلمانانو!) ستاسو امداد کونکې خو الله دې او د هغه رسول دې او هغه مؤمنان دي چه هغوی مونځ کوي او زکوة ورکوي چه هغوی (د زړه نه) الله ته سر ښکته کوي او څوك

چه الله او د هغه رسول او مؤمنانو لره دوست جوړ کړي نو (هغه دالله ډله کښې شامل شو) او هم دالله ډله په غالبیږي اې د ایمان خاوندانو اکومو خلقوته چه ستاسو نه مخکښې کتاب ورکړې شوې وو دهغوی نه هغه خلق چه ستاسو دین لره ټې په لوبو او ټوقو باندې نیولې دي او کافرانو لره په دوستئ مه نیسئ ؛ او که تاسو واقعي مؤمنان یئ نو دالله نه ویره ساتئ . او کله چه تاسو (خلق) راغواړئ دپاره د مونځ نو دوی دې بلنې لره په ټوقو او په لوبو نیسي، دا ټول (حرکتونه) دې وجې نه دي چه دوی کښې عقل نشته.

## خلاصه تفسیر

: دي مذکوره آیتونو کښې درې اصولی مضامین بیان شوی دی . او دا د مسلمانانو د اجتماعی او ملی وحدت بنیادی اصول دی .

اول دا چې غیر مسلمو سره رواداری ، همدردی ، خیر خواهی ، عدل و انصاف او احسان هر څه کولې شی. او داسې ځکه کول پکار دی چې هغوئ ته د دې تعلیم ورکړې شوې دې . او دداسې دوستانې اجازت په کښې کښې نشته دې چې هغې سره د اسلام امتیازی نخښې خرابې او ګډې وډې شی. او دا هغه مسئله ده چې دترك موالات په نوم سره معروفه ده .

دویم مضمون دادې چې چرته یو ځائې کښې مسلمانان دا بنیادی اصول پریږدی او غیر مسلمو سره خلط ملط اوکړی نو دوئ دي دا نه ګنړي چې ګنی دې سره به اسلام ته څه زیان او نقصان اورسی. ځکه چې داسلام د بقاء او حفاظت ذمه واری الله ﷻ اخستې ده. دا څوك نشي ورانولې . که یو قوم په غصه کښې راشی او شرعی حدودو نه تجاوز اوکړی ، مثلا اسلام پریږدی نو الله ﷻ به بل یو قوم راولی چې هغوئ به د اسلام اصول او قوانین قائم اوساتی.

دریم مضمون دادې چې کله یو طرفته منفی اړخ معلوم شو نو د مسلمانانو ژوره دوستی خو د الله ﷻ سره او دهغه د رسول ﷺ سره او دوئ باندې د ایمان راوړونکو یعنی مؤمنانو سره کیدې شی .دا یوه اجمالی خبره ده چې په دې پورته پنځو آیتونو مبارکو کښې بیان شوې ده ، اوس ددې آیتونو مبارکو مختصر شان تفسیر اوګورئ:

## خلاصه تفسیر

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ ﴾ائې دایمان خاوندانو تاسو [دمنافقانو پشان] یهودو اونصرانیانو لره [خپل] دوستان مه جوړوی هغوی [هم پخپله] دیو بل دوستان دی [یعنی یهودیان خپل مینځ کښې او عیسایان خپل مینځ کښې دیویل دوستان ځکه دی چه دا د یو باغ مولئ دی نوستاسو ورسره څه مناسبت کیدیشی؟] ﴿ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ ﴾او [ددې جملې نه معلومه شوه چه دوستی دمناسبت په بنیاد کیدیشی نو] څوك چه په تاسو کښې وی دوی سره دوستی کوی بیشکه هغه به [دیو خاص مناسبت په لحاظ] هم ددوی نه وی [او اګر چه دا خبره ښکاره ده لیکن ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ یقینًا الله ﷻ [ددې خبرې] پوهه دسره نه ورکوی هغه چاته چه [کافرو سره په دوستئ جاری لرلو سره] خپل نقصان کوی [یعنی په دوستئ کښې د وربوښتیدو په وجه داخبره دهغوی په پوهه کښې بیخی نه رازی اوهر کله چه دغسې خلق په دې خبره نه پوهیږی] .

﴿ فَتَرَى ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَٰرِعُونَ فِيهِمْ ﴾ځکه [ائې لیدونکیه] ته به داسې خلقو لره چه په زړونو کښې یې [دمنافقت] مرض دے وینے چه په منډه منډه دغه [کافرو] کښې ورننوځی [که

څوك ئے ملامته كړي نو دخپل چل ول په خبرو كښې ورته داسې | ﴿ يَقُولُونَ نَخْشَىٰ أَن تُصِيبَنَا دَائِرَةٌ ﴾ وائي چه [زمونږ دوی سره يو ځائې كيدل د زړه نه نه وي بلكه د زړه نه خو تاسو سره يو صرف د څه ښيګړے په خيال دوی سره ګډون كوو هغه ښيګړه دا ده چه] زمونږ انديښنه ده چه [كيديشى د زمانے په بدليدو سره] مونږ ته څه مصيبت راپيښ شى [لكه قحطى نيستى او خوارى غريبى شو ه اوددې د پنګے خاوندانو يهوديانو نه بيا قرض اخستې شو كه دا لباسى لين دين هم ورسره نه كوو نودغسې پيښو كښې به هيڅ اسره نه لرو چناچه د ﴿نخشى ان تصيبنا دائرة﴾ مطلب به يئ دا ښكاره كولو ليكن په زړه كښې يئ دا غلا وه چه هسې نه كافر په مسلمانانو باندې غالب شى] اوبيا زمونږ د يهوديانو ته احتياج راشى خكه ورسره د اوسه نه دوستى كوو﴿ فَعَسَى اللَّهُ أَن يَأْتِيَ بِالْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِ ﴾[نو نزدې اميد] دې [وعده ده] چه الله به [مسلمانانو ته مكمله] فتح وركړى [دهغه كافرو په مقابله كښې چه دوی ورسره دوستى كوى اود مسلمانانو كوشش به په كښې هم دخل لرى] يا څه بله خبره خاص دخپل طرف نه [ښكاره كړى يعنى ددوی تاكلے منافقت ښكاره كړى چه د مسلمانانو د تدبير په كښې هيڅ د خل نه وى.مطلب دا چه د مسلمانانو فتح او ددوی راز ښكاره كول دواړه قريب قريب كيدونكى دى] ﴿ فَيُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا أَسَرُّوا فِي أَنفُسِهِمْ نَادِمِينَ ﴾ بيا به [دغه وخت] په خپلو [مخكښنو] پټو د زړه په خيالاتو باندې پښيمانه وى [چه مونږ ګنړل چه كافر به غالب كيږى اودا څه خلاف كار اوشو.نوپښيمانتيا خوئے په خپل خيال باندې وه چه طبعى خبره ده بله دا چه پښيمانى په خپله هم منافقت وه د كوم له كبله چه نن شرمنده شو په ﴿ما اسروا﴾ كښې دا دواړه داخل دى.اودريمه پښيمانى ئےدا شوه چه كافرو سره ئے دوستى بيكاره لاړه او مسلمانانو سره يئ هم ورانه كړه.هركله چه دوستى ئے په ﴿ما اسروا﴾ باندې ولاړه وه لهذا ددې دواړو پښيمانو يادولو سره دريمه يے د ښكاره يا دولو نه پخپله معلومه شوه] او [هركله چه په زمانه د فتح كښې به ددغه خلقو منافقت هم سركندشى نوخپل مينځ كښې به] ﴿ وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ۙ إِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ ﴾ مسلمانان خلق [په تعجب سره]وائى آيا دا هغه كسان دى چه په ډيرې مبالغې سره به يئ [زمونږ په مخكښې قسمونه خوړل چه] مونږ[د زړه نه] تاسو سره يو[داخو نورڅه ثابت شو الله ﷻ فرمائى چه]﴿ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ ﴾ ددې خلقو ټولې كاروائې [چه دواړو فريقو سره ئے په خير خيريت اوسيدل غوښتل هغه ټول] عبث لاړل چه دهغې په وجه [دواړه طرفو ته] ﴿ فَأَصْبَحُوا خَاسِرِينَ ﴾ نامراده پاتې شول [ولې چه كافرو خوماتے اوخوړه چه ورسره ملګرتيا كول خالص بے فائدې شو اومسلمانانو ته يئ راز معلوم شو اوس ئے هغوى سرههم جوړه راتلل ګران شو مثال ئے داشو چه ددې خوا نه اوشړلى شو د هغې خوا نه مانده پاتې شوه].

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَن يَرْتَدَّ مِنكُمْ عَن دِينِهِ ﴾ائې د ايمان خاوندانو [يعنى كوم خلق چه ددې آيت دنازليدو په وخت كښې مومنان دى] څوك چه په تاسو كښې دخپل [دې] دين نه واوړى نو [داسلام هيڅ نقصان خكه نشته چه داسلامى خدمتونو تر سره كولو دپاره] ﴿ فَسَوْفَ يَأْتِي اللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴾ الله ﷻ به ډير زر [ددوى په ځائې] داسې قوم پيدا كړى چاسره به چه دالله ﷻمحبت وى اودهغوى به الله ﷻ سره محبت وى مهربانه به وى هغوى په مسلمانانو باندې تيزبه وى په كافرو باندې [چه هغوى سره به] ﴿ يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا

يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ ﴾ جهاد كوى دالله ﷻ په لار كښې او [ددين او جهاد په معامله كښې به] دغه خلق د چا ملامتيا كوونكى د ملامتيا انديښنه نه كوى [څنګه چه دمنافقانو حال دې چې يې زړه يې زړه به جهاد ته تلل ولې چه انديښنه به ورسره وه چه كافر به يې ملامتيا كوى چا سره چه زړه كښې دوستى وه يا به ورسره داسې حادثه راپيښه شى چه چاسره نې جهاد كول رازى هغه به يې دوستان عزيزان وى نو ټول به يې په ليدو يا آوريدو ملامته كوى چه ددغې خلقو د وژلو دپاره تلى وو] دا [تيرشوى صفتونه] ﴿ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ﴾ دالله ﷻ فضل دے چا ته چه غواړى وركوى نې ﴿ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴾ اوالله ﷻ ډير د فراخئ خاوند دے [چه كه غواړى نوټولو ته دا صفتونه وركولې شى ليكن] دلوئې علم خاوند [هم] دے [دهغه په علم كښې يې چه چاته وركولو كښې خيروى هغوى ته يې وركوى].

﴿ اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ رٰكِعُوْنَ ﴾ بيشكه ستاسو دوستان خو [چا سره چه تاسو لره دوستى لرل پكاروى] الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ او ايماندار خلق دى چه په دې سے شان سره دمونځ پابندى كوى او زكات وركوى چه پدوى [ددوى په زړونو] كښې خشوع [عاجزى] وى [يعنى عقيدې اخلاق اومالى او بدنى ټول عبادتونه په كښې راجمع شو] ﴿ وَمَنْ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ﴾ او څوك چه دبيان شوى [مضمون په جوړ] الله سره دوستى لرى او دهغه رسول ﷺ او ايماندارو خلقو سره نو [هغه دالله ﷻ په ډله كښې داخل شو او] ﴿ فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ ﴾ دالله ﷻ ډله بيشكه غالب ده [اوكافر مغلوب دى غالب سره د مغلوب د جوړښت اود دوستئ فكر كول خالص نامناسبه دى].

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ هُزُوًا وَّلَعِبًا ﴾ اې د ايمان خاوندانو مه جوړونى هغو خلقو لره چه جوړ كړې نې دے دين ستاسو ټوقے اولوبے [چه د دروغژن ګنړلو نخښه ده] ﴿ مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ ﴾ دهغه كسانو نه چه وركړې شوې دې ورته كتاب [آسمانى تورات اوانجيل] مخكښې ستاسو نه [چه يهود او نصرانيان دى] ﴿ وَالْكُفَّارَ اَوْلِيَآءَ ﴾ او [دغه شان] نورو كفارو لره [هم چه مشركان وغيره دى] دوستان [يعنى يهودو نصرانيانو او نورو كافرو مشركانو وغيره لره دوستان څكه مه جوړوئى چه هغوى ستاسو دين پورې خنداګانے اوټوقے كوى ولې چه اصلى علت كفر اودروغژن ګنړل خو مشترك دى] ﴿ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴾ اوالله ﷻ نه ويريږئ كه تاسو ايمان لرئ [يعنى ايماندارخو يئ كنه نوكوم څيزنه چه الله ﷻ منع كړيده هغه مه كوئ] ﴿ وَاِذَا نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ﴾ او [څنګه چه ددين اصولو سره ټوقے كوى دغه شان فروع سره يې هم ټوقے كوى لكه] كله چه تاسو مانځه دپاره [د اذان په ذريعه] اعلان كوئ نو دغه خلق [ستاسو] دغے [عبادت] پورې [چه په كښې اذان او مونځ دواړه راغلل] ټوقے اولوبے كوى [او] ﴿ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ﴾ په دې سبب دې چې دوى داسې خلق دى چه بيخى عقل نه لرى [اورنه حقه خبره به يې پيژندله او ورپورې به يې ټوقے نه كولې].

## معارف او مسائل

په رومبى آيت كښې مسلمانانو ته داحكم وركړې شويدې چه دوئ دې يهودو اونصاراؤ سره موالات [جخته دوستى] نه كوى څنګه چه عام غيرمسلم خلق او يهودو نصارى، دادستور لرى چه هغوئ ټينګه دوستى خاص خپل خپل قوم سره لرى او مسلمانانو سره دغسې ټينګه دوستى نه لرى،

بیا که یو مسلمان ددې خلاف ورزی او کړه او چا یهودی یا نصرانی سره ئې ټینګه دوستی او کړه نو هغه به د اسلام په نظر کښې ددې جوګه وی چه د مسلمان په ځائې ددغې قوم غړې او شمیرلې شی،

**شان نزول:** د تفسیر امام ابن جریر رحمه الله د حضرت عکرمه رضی الله عنه (١) په روایت بیان کړیدی چه دا آیت په یو خاص واقعه کښې نازل شویدې، واقعه داسې وه چه هر کله رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینې منورې ته تشریف راوړونو ددغې خوا وشا یهودو او نصاراؤ سره ئې ددې خبرې یو لوظ قول کړې وو چه دوئ به نه خود مسلمانانو خلاف پخپله جنګ کوی، نه به د جنګ کوونکی قوم امداد کوی بلکه مسلمانانو سره اوږه په اوږه به دهغوئ [دښمنی] مقابله کوی، دغه شان مسلمانان به هم نه خو پخپله دوئ سره جنګ کوی او نه به هغوئ سره د جنګ کوونکو امداد کوی بلکه دهغوئ د مخالفینو مقابله به کوی، تر څه زمانې پورې دغه لوظ او قول باندې دواړو اړخو عمل کولو لیکن هر کله چه یهودیان سازشی فطرت او اسلام دښمن طبیعت لری په دې وجه ډیر وخت په دغې لوظ، قول ټینګ پاتې نشول او د مسلمانانو په خلاف مشرکانو دمکې سره ئې سازباز او کړو، او خپلې قلاته د رابللو دپاره ئې هغوئ ته خط اولیږلو، هر کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې سازش خبر شو نو هغوئ صلی الله علیه وسلم د دوئ دمقابلې دپاره دمجاهدینو یوه ډله اولیږله، دبنی قریظو دغې یهودیانو یو خوا خو دمکې مشرکانو سره دغه سازش کړې وو او بل خوا په مسلمانانو کښې ورننوتلی وو او ډیرو مسلمانانو سره ئې د دوستئ معاهدې او سمجهوتې کړې وې، او په دغه ډول به ئې د مسلمانانو په خلاف مشرکانو دپاره جاسوسی کوله، لهذا دغه ذکر شوې آیت نازل شو چه دې مسلمانانو لره د یهودیانو او نصاراؤ د ژورې دوستئ نه بند کړل دې دپاره چې هغوئ د مسلمانانو خاص خبرونه معلوم نکړې شی، دغه وخت ځنې صحابه کرامو رضی الله عنهم [حضرت عباده بن صامت وغیره] خو ښه په ډاګه دغه خلقو سره خپله معاهده ختمه کړه او د ترک موالات اعلان ئې او کړو او ځنې خلق چه د منافقانو په ډول مسلمانانو سره یو ځائې شوی وو، یا تر او سه پورې دهغوئ په زړونو کښې اسلام پوره ننوتې نه وو، هغوئ ورسره په ترک موالات کښې داخطره محسوسه کوله چه که مسلمانان مغلوب شی او د مشرکانو، یهودو، او نصاراؤ سازشونه کامیاب شی نو زمونږ به بدحالی وی، لهذا دې خلقو سره هم داسې معامله لرل پکاردی چه دغه وخت زمونږ دپاره مصیبت جوړنشی، چنانچه عبدالله بن ابی بن سلول خو هم په دې بناوئیلی وو چه دې خلقو سره په بائیکاټ کولو کښې زه خطره محسوسوم ځکه ورسره دوستی نشم پریښودې، نو دغه دریم آیت شریف نازل شو:

﴿فَتَرَى الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَّرَضٌ يُسَارِعُونَ فِيهِمْ يَقُولُونَ نَخْشَىٰ أَن تُصِيبَنَا دَائِرَةٌ﴾ [یعنی هر کله چه د ترک موالات شرعی حکم هغه خلقو واوریدو، د چا په زړونو کښې چه د نفاق مرض دې، خپلو کافرانو دوستانو ته په منډه ورغلل او وې وئیل چه دوئ سره په بائیکاټ کولو کښې زمونږ دپاره خطرې دی]،

الله تعالی د دوئ په جواب کښې اوفرمائیل: ﴿فَعَسَى اللَّهُ أَن يَأْتِيَ بِالْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِ فَيُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا أَسَرُّوا فِي أَنفُسِهِمْ نَادِمِينَ﴾ یعنی ددې خلقو خو خیال دادې چه دا مشرکین او یهودیان به په مسلمانانو غالب راشی، مګر الله تعالی فیصله کړیده چه داسې به نه وی، بلکه قریبه ده چه مکه به فتحه شی، یا دمکې دفتح کیدو نه وړاندې به الله تعالی ددغې منافقانو راز ښکاره کړی او هغوئ به

(١) تفسیر الطبری تحت هذه الآیة رقم الحدیث: ١٢٢٦٠

رسوا او شرمنده کړي نو دغه وخت به دغه خلق په خپلو پټو خيالاتو خپيمانه وي،

په دويم آيت کښې ددې نوره زياته تشريح داسې اوشوه چه هر کله د منافقانو د منافقت راز، راښکاره شي او دهغوئ د دوستئ ددعوؤ او قسمونو حقيقت ښکاره شي نو مسلمانان به حيران شي او دا به وائي چه آيا، دا هغه خلق دي چه مونږ ته به ئې د الله تعالى سخت قسمونه خوړل اود دوستئ دعوې به ئې کولې،نن دهغوئ انجام دا شو چه ټول هغه اسلامي عملونه ئې تباه اوبرباد شو چه خلقو ته به ئې دښودنې دپاره کول،کوم بيان چه په دې آيتونو کښې د فتح مکې اود منافقانو د رسوائي کړيدې ځوورخې پس هغې لره ټولو په خپلو سترګو اوليدل،

په څلورم آيت کښې دا ښودلې شويدې چه غير مسلمو سره ټينګه دوستي او د ګډون کولو کومه منع چې کړې شويده،دغه خالص د مسلمانانو د فائدې دپاره ده،ورنه اسلام داسې حق دين دې چه د حفاظت کولو ذمه ئې الله تعالى په خپله اغستې ده،ديو کس يا ډلې کاره تلل يا نافرماني خو پريږده،که د مسلمانانو ځوک په يو ازې سر يا يوه ډله په جمع،په رشتيا اسلام لره پريږدي او بيخي مرتد کيدو سره غير مسلمو کښې شامل شي نو په دې سره هم اسلام ته څه نقصان نشي رسيدلې،ولې چه کوم قادرِ مطلق ددې د حفاظت ذمه داري اغستې ده هغه به سمدستي بل يو قوم د عمل ميدان ته راولي چه هغه به د دين حفاظت او خورولو فرض اداکوي دهغې کارونه د چاپه ذات پورې اړه لري نه په څه لويه ډله يا اداره اړه لري،هغه چه کله اوغواړي نو د تيلو [ خاشو ] نه د شاهتيرونو [ ګاډرو ] کار اخلي ورنه شهتيرونه [ ګاډر ] چې په ځائې پراته وي نو خاوړې ايرې او خره ترې جوړ شي لکه چه چا ښه وئيلي دي:،

إن المقادير إذا ساعدت :: ألحقت العاجز بالقادر

هر کله چه تقدير الهي د چا مدد ګار شي،نو يوبې وسه او عاجز نه د قدرت لرونکي او توانا تندرست کار اخلي،

په دې آيت کښې ئې يو دا بيان اوکړو چه د مسلمانانو په مرتد کيدو هيڅ پروانشته الله تعالى به يو بل جماعت اودروي،بل طرفته چې ئې دا بيان اوکړو چه دې جماعت کښې به دا،دا صفتونه وي،د دين خدمتګارانو لره پکاردي چه د دغې صفتونو خيال لري،ولې چه هم ددې آيت نه معلوم شو چه دغه صفتونه او عادتونه په چا کښې وي دغه خلق به د الله تعالى په نزد مقبول شوي او غوريزوي،

د دوئ رومبې صفت قرآن کريم داسې بيان کړيدې چه الله تعالى به هغوئ سره مينه لري او هغوئ به الله تعالى سره مينه لري،ددې صفت دوه برخې دي يوه برخه ئې داده چه هغوئ الله تعالى سره مينه لري،داخو په څه ناڅه درجه کښې دانسان په اختيار کښې ګڼرلې شي چه که د انسان چاسره طبعي محبت نه وي نو کم ناکم،عقلي محبت خود خپل قصد او ارادې تابع لرلې شي، او طبعي محبت هم اګرچه دانسان په اختيار کښې نه وي مګر ددې اسباب هم اختياري دي، مثلا د الله تعالى عظمت او جلال او دهغه قدرت کامله په انسانانو باندې دهغه داختياراتو او انعاماتو مراقبه او تصور په لازمي ډول دانسان په زړه کښې د الله تعالى طبعي محبت هم پيدا کوي،

ليکن په بل جزء کښې چه د الله تعالى محبت به دې خلقو سره وي،په ظاهره دا معلوميږي چه په دې کښې دانسان داختيار او عمل هيڅ دخل نشته او کوم څيز چه زمونږ د قدرت او

اختیارنه بهردې دهغې دآورولواوښودلونه هم په ښکاره څه حاصل نه راوځي،
لیکن دقرآن کریم په یوبل آیت کښې دغورکولونه معلومیږي چه دمحبت ددې جزء اسباب هم، دانسان په اختیارکښې دي که هغه، دغې اسبابولره استعمال کړي نو دالله تعالی محبت به هغه سره خامخادغه اسباب یوآیت شریف داسې ښودلی دی: ﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ﴾ یعنی اې رسول الله ﷺ تاسو ﷺ خلقوته اوښایئی چه که تاسو الله تعالی سره محبت لرئ نوزماتابعداري کوئ، دهغې نتیجه به داوی چه الله تعالی به درسره محبت کول شروع کړي،
په دې آیت کښې اوښودلې شوچه څوک په دې تکل کښې وی چه الله تعالی دې ورسره محبت اوکړي نوهغه دې خپل ټول ژونددرسول الله ﷺ دسنتوتابع جوړکړي اودادې په ځان لازم کړي چه په هرکارکښې دسنتوتابعداري کوی، چنانچه په داسې کولوباندې دالله تعالی وعده ده چه هغه به ورسره محبت کوی، اودې آیت نه داهم معلومه شوه چه دکفراو ارتدادمقابله به هم هغه جماعت اوتړلې کولې شی چه دسنتوتابعداروی، دشریعت په حکمونومنلوکښې څه کوتاهی نه کوی اونه دخپله اړخه، دسنتونه خلاف عملونه اوبدعتونه جاري کوی،
ددې جماعت [دلې] بل صفت دابیان کړې شویدې: ﴿أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ قاموس په ډاګه داخبره کړیده چه لفظ د﴿أَذِلَّةٍ﴾ د[ذَلِيل] یا [ذَلُول] جمع کیدې شي، په عربی ژبه کښې دذلیل هم هغه معنی ده کومه ئې چه په اردو وغیره کښې مشهوره ده اود[ذَلُول] معنی ده [نرم اوسهل الانقیاد] [چه په آسانئ سره قابو کښې راتلې شی] دلته دجمهورومفسرینو په نزدهم دغه معنی مراد ده، یعنې دا خلق به دمسلمانانوپه وړاندې نرم وی اوکه په څه معامله کښې ئې اختلاف هم راغلونوپه آسانئ سره به په قابو کښې راتلې شی، جګړه به پرینږدی اګرچه هغه په جګړې کولوکښې په حقه هم وی، لکه په یوصحیح حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: [اَنازعيم ببيت فی ربض الجنة لمن ترک المراء وهومحق] (۱) یعنی هغه چاد پاره په جنت کښې دکور ورکولوذمه واری اخلم چه په حقه وی اوسره دهغې نه جګړه پرینږدی! ددې لفظ حاصل داشوچه دغه خلق، مسلمانانوسره دخپلو حقوقو اومعاملاتوپه باره کښې هم هیڅ جګړه نه کوی، دغه شان دویم لفظ ﴿أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ راغلو، [أَعِزَّةٌ] لفظ دعزیزجمع ده، معنی ئې غالب، سخت اوقوی کولې شی، مطلب ئې داشوچه داخلق، دالله تعالی اودهغه ددین دمخالفینوپه مقابله کښې سخت اوقوی وی چه هغوئ پر قابونشی بیاموندې،
چه دواړه جملې یوځائې شی نومطلب ئې دا راوځی چه: دابه داسې یوقوم وی چه مینه، محبت، عداوت، دوستی اودښمنی به یواځې خپل ذات اوذاتی حقوقو اومعاملاتوپورې نه تړی، دابه یواځې دالله دهغه درسول الله ﷺ اودهغه ددین په خاطروی، لهذاداسې کس د جنګ جګړې مخه به یې دالله تعالی اودهغه درسول الله ﷺ فرمانبردارانو اړخ ته نه وی بلکه د هغه ددښمنانو اونافرمانو اړخ ته وی دڅنګه چه په سورت فتح کښې دغسې راغلی دی: ﴿أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾
دړومبی صفت خلاصه دحقوقو مکمل کول وو، اود دویم صفت حاصل حقوق العباداو دمعاملاتوبرابری اوسمون دې، ددې دلې دریم صفت ئې دا اوفرمائیلو ﴿يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾

---

(۱) سنن ابي داود، كتاب الأدب، باب في حسن الخلق: ج ۲، ص ۶۶۲

[داخلق به دحق دين دخورولو او پورته کولو دپاره په مخه جهاد کوي] خلاصه ئي داده چه دکفر او مرتد کيدو د مقابلې دپاره يو اځې، مشهور قسم عبادت کول اونرميدل، سختيدل کافي نه دي بلکه داهم ضروري دي چه ددين دقائمولو جذبه ئې هم وي چنانچه ددې جذبې دمکمل کولو دپاره ئې څلورم صفت دا اوښودلو: ﴿وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ﴾ [يعني ددين په قائيم لرلو اودحق کلمې دسربلنده کولو په کوشش کښې به داخلق دهيڅ پروانه لري،

په غورکولو سره معلوميږي چه ديو تحريک چلوونکي په لارکښې دوه قسمه څيزونه خنډ ان جوړيدې شي، ① يو دمخالف قوت زور، زبردستي او ② بل دخپلو خلقو لعن طعن او ملامتيا. چنانچه تجربه ګواه ده چه څوک په جوش جذبې سره ديو تحريک چلولو دپاره راپورته شي، نو په اکثرو حالاتو کښې عموما، هغوئ دمخالف قوت دزورزبردستئ له کبله پاتې نه راځي، دې دپاره جيل، قيد، بند وغيره زغملې شي په وينې کيدو اوزخمي کيدو سره پکښې څه کمزوري نه پيدا کيږي او برداشت کوي يې ليکن دخپلو خلقو د لعن طعن، ملامته کولو اوبدو ردوويلو په وجه دلويو لويو خلقو خپې خوئيږي، کيدې شي چه دلته الله تعالى هم په دغې وجه دا يو صفت ذکر کړو چه داخلق د چا د ملامتيا دپروا کولو نه بغير خپل جهاد په مخه جاري لري،

په آخر د آيت کښې ئې داهم اوښودل چه دا ښکلي صفتونه او خويونه خالص د الله تعالى انعامات او احسانات دي، هم هغه ئې ورکوي چاته ئې چه اوغواړي، انسان خالص، په خپل عمل او کوشش سره دا نشي حاصلولې کله چه د الله تعالى فضل ورسره نه وي،

د آيت د الفاظو د تشريح نه دا خبره په ډاګه شوه چه که څوک مسلمانان مرتدان هم شي نو داسلام دين ته پرڅه نقصان نه رسي، بلکه ددې دحفاظت او مرستې دپاره به د الله تعالى داسې يو ډله راپورته کړي چه داعلى عملونو او اخلاقو خاوندان به وي،

جمهور و مفسرينو ﷫ فرمائيلي دي چه دا آيت په حقيقت کښې دراتلونکو فتنو پيشنګوئي ده او هغې ډلې ته پکښې زيرې ورکول دي څوک چه په دغه وخت په مرانې سره ددغه فتنو مقابله اوکړي او کامياب شي، راتلونکې فتنه مرتد کيدل دي چه څه ناڅه جراثيم ئې دپيغمبرئ دزمانې په آخر کښې خوريدل شروع شوي وو اودرسول الله ﷺ دوفات نه پس په عام کيدو سره په ټول جزيرة العرب کښې ئې دطوفان شکل اختيار کړو، اوزيرې موندونکي حضرات صحابه کرام ﷺ دي، چه د اول خليفه حضرت ابى بکر صديق ﷺ ئې ملاتړ اوکړو اوددغه فتنې [دمرتد کيدلو] مقابله ئې په نره اوکړه،

چنانچه دټولو نه اول [مسيلمة کذاب] ددې دعوى اوکړه چه هغه رسول الله ﷺ سره په نبوت او پيغمبرئ کښې شريک دې، يو اځې دا نه بلکه درسول الله ﷺ قاصدان ئې بيرته په دې شان واپس اوليږل چه ورته اووئيل که دتبليغ او سعې راوستو په خاطر دادستور او قانون عام نه وې چه ربياران او سفيران نشي وژلې کيدې نو ما به تاسو وژلي وئ، مسيلمه اګرچه په خپله دې دعوى کښې سخت دروغژن ووخو هغوئ ﷺ ته دده په خلاف دجهاد موقعه په لاس ورنغله، تردې چه وفات شو،

دغه شان په يمن کښې د [مذجج] قبيلې سردار، اسود عنسى، هم دخپلې پيغمبرئ اعلان اوکړو، رسول الله ﷺ خپل مقرر کړي حاکم ديمن ته دهغه دمقابلې کولو حکم اوکړو، خو په

کومه شپه چه هغه اووژلي شو دهغې په صباله رسول الله ﷺ وفات شو، صحابه کرامو رضي الله عنهم ته ددې خبر دربیع الاول په آخر کښې اورسیدو. دغه شان واقعه په بني اسد قبیله کښې هم راپیښه شوه چنانچه ددې قبیلې سردار [طلحه بن خویلد] په خپل ځان دپیغمبرئ دعویدار شو،

د دریؤ قبیلو دغه ډلې درسول الله ﷺ دوفات په مرض کښې مرتدې شوې وې، د هغوئ ﷺ دوفات په خبر خوریدو سره دغه فتنې یو طوفانی شکل اختیار کړو، دعربو [۷] اوه قبیلې په مختلفو ځایونو کښې داسلام او اسلامی حکومت نه باغیان شو، ددغې وخت ړومبی خلیفه، حضرت ابی بکر صدیق رضي الله عنه ته ئې داسلامی قانون په مطابق زکوة اداکولو نه انکار اوکړو،

دهغوئ ﷺ دوفات نه پس ابی بکر صدیق رضي الله عنه باندې دوه پیښې دمصیبتونو داسې راؤغورځیدل چه ① یو خو درسول الله ﷺ دوفات کیدو دغم پیښې ووا و ② بل داپیښې وو چه دغه قسم فتنې اوبغاوتونه داسلام نه رابرسیره شو، چنانچه حضرت عائشې صدیقې رضي الله عنها فرمائیلې دی چه د رسول الله ﷺ دوفات نه پس کوم غمونه زماپه باباجی راغلل که هغه په مضبوطو غرونو هم راپریوتی وې نو ذره ذره شوی به وو، خو الله تعالی ورته دصبر او استقامت هغه اعلی مقام ورکړې وو چه دټولو آفتونو او مصیبتونوئې په پوره مړانې او مضبوطیا سره مقابله اوکړه او آخر کامیاب شو،

ښکاره خبره ده چه دبغاوتونو مقابله صرف په طاقت استعمالولو سره کیدې شی، خو ددغه وخت حالات دومره نازک وو چه هر کله صدیق اکبر رضي الله عنه ددې په باره کښې دصحابه کرامو رضي الله عنهم نه مشوره اوغوښته نو چاهم دسخت قدم او چتولو په باره کښې مشوره ورنکړه ولې چه دهغوئ رضي الله عنهم داخیال ووکه مونږ په کورنی اوندرونی جنګ کښې بوښت شو نوبهرنی مخالفین به رباندې ښه په ډاده حمله اوکړی او اسلامی حکومت به ګډوډ کړی خو الله تعالی دصدیق اکبر رضي الله عنه زړه ددې جهاد دپاره مضبوط کړو او دصحابه کرامو رضي الله عنهم په وړاندې ئې داسې فصیحه خطبه ورکړه چه دهغوئ ټولو سینه هم دجهاد دپاره پرانستې شوه ددغې خطبې الفاظ څه داسې وو،

[کوم خلق چه دمسلمانیدو نه پس درسول الله ﷺ دورکړو احکامو او قانون نه انکار اوکړی نو زما فرض دی چه دهغوئ په خلاف جهاد اوکړم او که زما مقابلې ته ټول پیریان، بنیادم ددنیا ټولې اونې، بوټی او کانړی په جمع راوستې شی او زما بل هیڅوک ملګرې نه وی بیا به هم په یو اخې ځان دغه جهاد ترسره کوم]،

دې خطبې ورکولو نه پس په اس سورشو او روان شو، دغه صحابه کرامو رضي الله عنهم ورته مخې ته شو، صدیق اکبر رضي الله عنه ئې په خپل ځائې کښېنولو، مختلفو محاذونو ته ئې دمختلفو حضراتو دلیرلو منصوبه جوړه کړه،

په دې وجه حضرت علی رضي الله عنه، حسن بصری رحمه الله، ضحاک رحمه الله، قتاده رحمه الله، وغیره د تفسیر جمهور و امامانو رحمهم الله بیان کړیدی چه داآیت دحضرت ابی بکر رضي الله عنه او دهغوئ رضي الله عنهم دملګرو په باره کښې راغلې دې، ولې چه ټولو نه اول مصداق دآیت، دغه قوم ثابت شو، دکوم چه الله تعالی میدان عمل ته دراویستلو ارشاد فرمائیلې دې،

که داروایت په بل چاباندې صادق شی نو بې سمونه به نه وی، چنانچه ځنې حضراتو ددې مصداق حضرت ابی موسی اشعری رضي الله عنه او نورو صحابه کرام رضي الله عنهم هم ګرځولې دې، په دې بنا صحیح خبره داشوه چه دغه ټول حضرات څه چه ترقیامته پورې ټول هغه مسلمانان چه

دقرآنی هدایتونو په جوړ دکفر او مرتد کیدو مقابله کوی هغه به ددې آیت دمصداق لاندې داخل وی. په هر حال دصحابه کرامو ﷺ یوه ډله دحضرت صدیق اکبر ﷺ په هدایت دمرتد کیدو ددې فتنې په خلاف اودریدل، دحضرت خالد بن ولید ﷺ په سالارۍ کښې ئې یولوئې لښکرد مسیلمهٔ کذاب دمقابلې دپاره دیمامې اړخ ته وراولیږلو هلته مسیلمه هم غټ طاقت بیامونده وو ملګری ئې ډیر وو، سخت جنګونه اوشو آخر دغه مسیلمه، دحضرت وحشی ﷺ دلاسه اووژلې شو، دهغه ټوله ډله مسلمانه شوه اودوئ سره یوځائې شو، دغه شان طلیحه بن خویلد دمقابلې دپاره هم حضرت خالد ﷺ وراولیږلې شو، هغه ترې اوتښتیدو اوچرته بهرلاړو، بیا مسلمان شو او واپس خپل ځائې ته په خیر خیریت راغلو(١).

دحضرت صدیق ﷺ دخلیفه کیدو داولې میاشتې [ربیع الاول] په آخر کښې د اسود عنسی(٢) دقتل اودهغه دقوم دفرمانبرداره کیدو خبر راورسیدو چه دټولونه اول دبری یو خبر وؤ کوم چه حضرت صدیق اکبر ﷺ ته په دغه حالاتو کښې رسیدلې وو، دغه شان په نورو هغه قبیلو باندې هم په هره موقعه الله تعالی صحابه کرامو ﷺ ته برې ورکړو کومې چه دزکوة ورکولونه منکرشوې وی.

چنانچه دالله تعالی ددې ارشاد: ﴿فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ﴾ عملی تفسیر دنیا په خپلو سترګو اولیدلو اوهرکله چه په تاریخی او واقعاتی رنګ کښې داخبره خودبخود ثابته وه چه درسول الله ﷺ دوفات نه پس په عربو قبیلو کښې دارتداد [مرتد کیدو] فتنه راپورته شوه، الله تعالی چه ددې دپاره کوم قوم راپورته کړو هغه صدیق اکبر ﷺ سره دنورو صحابه کرامو ﷺ ملګرو وو، نو دې آیت نه داهم ثابته شوه چه ددې جماعت کوم صفتونه چه قرآن کریم فرمائیلی دی هغه ټول په صدیق اکبر ﷺ اودهغوئ ﷺ په ملګرو کښې داسې موندې شو: ① الله تعالی ورسره محبت کوی ② دوئ الله تعالی سره محبت کوی ③ مسلمانانو سره په معاملاتو کښې زیاته نرمی کوی اودکفارو په معاملاتو کښې زیات تیزوی ④ د دوئ ﷺ جهاد خالص دالله تعالی په لار کښې وو او په دې کښې ئې دچاد ملامتیا هیڅ پروانه کوله ⑤ په آخر دآیت کښې ئې دحقیقتونو ددې حقیقت وضاحت داسې اوکړو چه دکمال دا ټول صفتونه، بیا ددې هروخت استعمالول. داټول دخه تدبیر، یاطاقت، یادډلې په داډنشی حاصلیدې بلکه خالص دالله تعالی په فضل حاصلیدې شی چاته ئې چه غواړی هغه ته ئې ورکوی.

په تیروشوؤ رومبو خلورو آیتونو کښې مسلمانان دې نه منع کړې شوی وو چه کافرانو سره کلکه دوستی ساتی،

په پنځم آیت کښې په مثبت ډول دا اوښودلې شو چه دمسلمانانو کلکه دوستی او خاص ملګرتیا دې چاسره وی؟ دې کښې دټولونه اول دالله تعالی، بیا دهغه درسول ﷺ بیان دې، ولې چه په حقیقت کښې دمؤمن ولی اوملګرې په هر حال کښې یواځې الله تعالی دې او هم هغه کیدې شی، دهغه نه سوا دهرچا دوستی اوتعلق فانی دې اورسول الله ﷺ سره تعلق هم په حقیقت کښې الله تعالی سره تعلق دې ولې چه داخپل منځ کښې سره جدانه دی، په دریم نمبر

---

(١) التفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ١٢٨ نه ١٣٠ پورے۔

(٢) اسود عنسی لره فیروز دیلمی وژلے وو۔ (صحيح بخارى: ج ٢، ص ٣٨ كتاب المغازى باب قصة الأسود العنسى)

کښې دمسلمانانو ملګرې او مخلص دوستان هغه مسلمانان ګرځولې شویدي چه تش په نوم مسلمانان نه بلکه سوچه مسلمانان وي، دکوم چه دادرې صفتونه اونخښې ښودلې شویدي:

﴿الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَوٰةَ وَهُمْ رَٰكِعُونَ﴾

① يو داچه مونځ لره، په پوره آدابو اوشرطونو سره په پابندۍ اداکوي، ② بل داچه خپل مال نه زکوة اوباسي، ③ دريم داچه دغه خلق عاجزي کوونکي اوخاکساره وي په خپلو نيکو عملونو فخر اوتکبر نه کوي،

ددې آيت دريمه جمله کښې ﴿وَهُمْ رَٰكِعُونَ﴾ راغلې دې، د[رکوع] دلفظ ګڼ مطلبونه کيدې شي چنانچه دتفسير په امامانو کښې څنو فرمائيلي دي چه دلته د[رکوع] نه مراد اصطلاحي رکوع ده کومه چه په مونځ کښې کولې شي اود ﴿يُقِيمُونَ الصَّلَوٰةَ﴾ نه پس د ﴿وَهُمْ رَٰكِعُونَ﴾ الفاظ دابنائي چه دمسلمانانو مونځ دنوروقومونو دمونځونو نه جدا کول او ممتاز کول مقصود دې، مونځونه اګرچه يهود او نصارا، هم کوي خوهغې کښې رکوع نه وي خالص په اسلامي مونځ کښې رکوع وي [مظهري] ([1]).

مګرجمهور مفسرين رحمهم الله فرمائي چه دلته د رکوع نه مراد اصطلاحي رکوع نه ده، بلکه ددې لغوي معنی يعنې ټيټيدل، عاجزي اوخاکساري کول مراد دي، چنانچه په تفسيربحر محيط کښې ابوحيان او په تفسير کشاف کښې زمخشري، دې لره اختيار کړيدی ([2])، په تفسير مظهري اوبيان القرآن وغيره کښې هم دامعنی اغستې شويده ([3])، ځکه ددې معنی به داسې شي چه دغه خلق په خپلو عملونو باندې ناز، فخر نه کوي، بلکه عاجزي اوخاکساري کول د دوئ خوئ خصلت دې.

په څنې روايتونو کښې راغلي دي چه داجمله دحضرت علي رضي الله عنه په باره کښې په يوه خاصه واقعه کښې نازله شويده، واقعه داسې وه چه يوځل حضرت علي رضي الله عنه مونځ اداکولو په رکوع کښې ترېنه سوالګرې سوال اوکړو، هغوئ رضي الله عنه هم په دغه رکوع کښې خپله ګتمه دخپلې ګتې نه راوويسته اوهغه ته ئې وراوغورځوله ([4])، چنانچه ديو حاجتمند بنده په حاجت پورا کولو کښې ئې دومره مهلت کول هم نه خوښول چه دمونځ پوره کولو نه پس دهغه ضرورت پوره کړي، په نيکۍ کښې داسې جلدي کول دالله تعالی خوښ شواوددې جملې په ذريعه ئې دهغې قدر زياته ستائنه اوکړه.

ددې روايت په سند کښې دعلماؤ رحمهم الله اومحدثينو کلام دې، که بياهم روايت لره صحيح اومنلې شي نوحاصل به ئې داوي چه دمسلمانانود کلکې دوستۍ جوګه هغه عام مسلمانان کيدې شي چه دمونځ اوزکوة پابندوي اوپه دوئ کښې حضرت علي رضي الله عنه خصوصيت سره ددې دوستۍ زيات مستحق دې لکه په يوبل حديث کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائيلي دي: [من كنت مولاه فعلي مولاه] [احمد، دمظهري نه] ([5])

---

[1] ) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۱۳۲

[2] ) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۱۱ وكشاف تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۸

[3] ) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۱۳۲

[4] ) المعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث: ۳۷۳ باب الميم.

[5] ) مسند أحمد رقم الحديث: ۶۰۶، ومن مسند علي بن ابي طالب رضي الله عنه.

ایعنی زه چه دچا دوست یم نو حضرت علی ﷛ به ئې هم دوست وی]

په یو بل حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: [اللهم والِ من والاهُ وعادِمن عاداهُ] (١)

ایعنی اې الله، ته دوست لرې هغه چالره چه محبت لری حضرت علی ﷛ سره او دښمن لرې هغه چالره چه دښمن لری حضرت علی ﷛ لره]

حضرت علی ﷛ ته غالبًا داخصوصی شرف او عزت څکه ورکړې شویدې چه رسول الله ﷺ ته دراتلونکې فتنې داسې انکشاف شوې وو چه څه خلق به حضرت علی ﷛ سره عداوت او دښمنی لری او دهغوئ ﷛ خلاف به دبغاوت جنډه پورته کوی، څنګه چه دخوارجو فتنه دهغوئ ﷛ په خلاف راخرګنده شوه،

په هرحال که دغه آیت شریف هم ددې واقعې په باره کښې نازل شوې وی، مګر دآیت الفاظ عام دی چه ټولو صحابه کرامو ﷡ او عامو مسلمانانو لره شامل دی، دحکم په لحاظ دهیڅ یو کس خصوصیت نشته، چنانچه دحضرت امام باقر ﷫ نه چا تپوس اوکړو چه دې آیت کښې د ﴿الَّذِينَ آمَنُوا﴾ نه حضرت علی ﷛ مراددې؟ نو هغوئ اوفرمائیل چه هرکله هغوئ ﷛ هم په مؤمنانو کښې داخل دې نو په دغې حیثیت سره ددې آیت مصداق جوړیدې شی (٢)،

وروسې په بل آیت کښې هغه خلقو ته دفتح، امداد او په دنیا باندې دغالب راتلو زیرې ورکړې شویدې چه ددغه قرآنی آیتونو په احکامو باندې عمل اوکړی، او غیرمسلمو سره دټینګې دوستئ کولو نه واوړی، صرف الله تعالی، دهغه د رسول ﷺ او مؤمنانو لره خپل دوست جوړکړی لکه فرمائی: ﴿وَمَنْ يَتَوَلَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالَّذِينَ آمَنُوا فَإِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْغَالِبُونَ﴾

په دې کښې ارشاد داسې دې چه دالله تعالی په دې احکامو باندې عمل کول فرض دی مسلمانان دالله تعالی ډله دی او بیائې دازیرې واورولو چه دالله تعالی ډلې انجام دادې چه په ټولو به غالب او برراخی، راتلونکو واقعاتو ددې داسې تصدیق اوکړو چه هرلیدونکی دا اولیدل چه صحابه کرام ﷡ په ټولو باندې غالب راغلل کوم طاقت چه هغوئ ﷡ سره ټکره اووهله هغه ذره ذره شو داول خلیفه صدیق اکبر ﷛ په مقابله کښې اندرونی [کورنئ] فتنو سر راپورته کړونو الله تعالی حضرت ابی بکر ﷛ لره په ټولو غالب کړو، دحضرت فاروق اعظم په مقابله کښې ددنیا دټولونه لوئې طاقتونه قیصر او کسری راغلل خو الله تعالی د هغوئ نوم او نخښه ورکه کړه. کومو خلیفه ګانو او مسلمانانو چه ددغې احکامو داسې پابندی کوله چه هغوئ غیرمسلمو سره ګډون او کلکه دوستی نه ساتله، هغوئ تل دپاره کامیاب او فتحمند ښکاریدل،

په شپږم آیت کښې دتاکید په ډول هغه حکم سردوباره بیان کړې شو کوم چه د رکوع په شروع کښې بیان شوې وو، دهغې مفهوم دادې چه [اې دایمان خاوندانو: تاسو دغه خلق خپل ملګری یا کلک دوستان مه جوړوی چه ستاسو دین لوبې ټوقې ګڼړی، دا دوه ډلې دی، ① یو اهلِ کتاب او ② بل عام کفار او مشرکان،

امام ابوحیان ﷫ په بحر محیط کښې فرمائیلی دی چه په لفظ د [کُفار] کښې اهلِ کتاب هم داخل وو، بیا دلته په خصوصیت سره د اهلِ کتابو ذکر په مستقل ډول دامطلب لری چه

---

(١) مسند أحمد رقم الحديث: ٦٠٦، ومن مسند علی بن ابی طالب رضی الله عنه۔

(٢) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٢٦٠

په نسبت دنورو کفارو، اسلام سره زیات نزدې وو، خو تجربې نه ثابته شوه چه په دوئ کښې ډیرو لږو خلقو اسلام قبول کړو، چنانچه په لټون سره به داخرګند شي چه په زمانه د رسول الله ﷺ کښې یادې نه پس مسلمانیدونکی خلق چه او کتلې شي نو زیات به په کښې عام کفار وی مسلمانیدونکی اهلِ کتاب به پکښې ډیر کم بیاموندې شی(۱)،

ددې اصلی وجه داده چه اهلِ کتاب په دې مست دی چه دوئ ګڼی دخدائ دین او د آسمانی کتاب پابند دی او هم په دې وجه حق قبلولو ته غاړه نه اږدی، داشان مسلمانانو پورې زیاتې ټوقې او خنداګانې هم دې خلقو کړیدی، د دوئ داسې ورانکارئ یوه واقعه دلته په اووم آیت کښې داسې بیان شویده:

﴿وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى الصَّلَوٰةِ اتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَلَعِبًا﴾ یعنی کله چه مسلمانان دمونځ دپاره آذان ورکول نو دغه خلق ورپورې خنداګانې کوی، داشان یو واقعه په تفسیر مظهری کښې دابن ابی حاتم په حواله داسې نقل کړې شویده چه په مدینه منوره کښې یو نصرانی به چه په آذان کښې: [أشهد أن محمدا رسول الله] آؤریدل نو داسې به ئې وئیل: أحرق الله الكاذب] [الله تعالی دې دروغژن لره اوسوځوی]، دده دغه ښیره هم په ده باندې پخپله داسې اولګیده چه دوئ دشپې ټول اوده وو، نوکرئې دڅه ضرورت دپاره اوردغه کور ته راؤړو دهغې بځرې والوتو او چرته په یو جامه پریوتو چه ټول ښه اوده وونو اورغرغندې شو او ټول دسیلمې اوسوځیدل، ایرې شو(۲)،

ددې آیت په آخر کښې ئې اوفرمائیل: ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ﴾ یعنی دین پورې دټوقو او خنداګانو کولو وجه سوا ددې نه بله نشی کیدې چه دغه خلق بې عقله دی]،

په تفسیر مظهری کښې قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله فرمائیلی دی، چه الله تعالی دې خلقو ته بې عقله او فرمائیل حالانکه ددنیا په کارونو کښې د دوئ عقل، پوهه ښه مشهوره ده دې نه معلومه شوه چه یو کس به یو قسم کار کښې هوښیار او عقلمند وی مګر په بل کار کښې به هغه دعقل نه کار نه اخلی، یا به ئې ورته دسره عقل نه رسی، په دې وجه په دغې کښې به بیوقوف بنده بې عقله ثابت شی، چنانچه دې مضمون لره قرآن کریم په دویم آیت کښې داشان بیان کړیدې:

﴿يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَٰفِلُونَ﴾ [یعنی داخلق د دنیوی ژوند سرسری څیزونه په ښه شان پیژنی مګر دانجام او آخرت نه غافله دی].

| | | | |
|---|---|---|---|
| قُلْ | يَٰٓأَهْلَ الْكِتَٰبِ | هَلْ تَنقِمُونَ | مِنَّآ |
| اووایه ائې نبی | ائې اهل کتابو | آیا تاسو کینه لرئ | زمونږ سره |
| دوئ ته اووایه چې ائې اهل کتابو تاسو زمونږ نه نور څه بد نه ګڼرئ: | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّآ | أَنْ ءَامَنَّا | بِاللَّهِ | وَمَآ | أُنزِلَ | إِلَيْنَا |
| صرف په دې خبره | چې ایمان راوړې دې مونږه | په الله باندې | او په هغه کتاب باندې | چې نازل شوې دې | مونږ ته |
| خو بس دا چې مونږ په الله ﷻ باندې ایمان راوړې دې او په هغه کتاب چې مونږ ته نازل شوې دې | | | | | |

۱) تفسیر البحر المحیط تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۳۳
۲) تفسیر ابن ابی حاتم رقم الحدیث: ۶۵۳

وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلُ وَأَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَٰسِقُونَ ۝ قُلْ هَلْ

اوپه هغه | چې نازل شوې وو | مخکښې | اوبیشکه | زیات له تاسو | فاسقان دی | اووایه | آیا

اوپه هغه کتاب چې زمونږنه مخکښې نازل شوې دې | اوپه تاسو کښې اکثر خلق نافرمان دی | انې پيغمبره ورته اووایه

أُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكَ مَثُوبَةً عِندَ ٱللَّهِ ۚ مَن

زۀ خبر درکرم تاسو ته | په زیات خراب انسان | ددې نه | په لحاظ دانجام | په نزد د الله | هغه څوک دې

چې ایاتاسوته حال بیان کرم | چې دالله ﷻ په نیز د دې [فسق] نه زیات خراب انجام د چا دې | دهغه چا چې

لَّعَنَهُ ٱللَّهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ

چې لعنت کړې دې په هغه | الله | اوغضب ئې کړې دې | په هغه | اوجوړ کړې ئې دی | دځینودهغوئ نه

الله ﷻ پرې لعنت کړې وی | ...........او غضب ئې پرې کړې وی | ..................او چې دچا نه ئې

ٱلْقِرَدَةَ وَٱلْخَنَازِيرَ وَعَبَدَ ٱلطَّٰغُوتَ ۚ أُولَٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا

بیزوګان | اوخنزیران | اوبندګی ئې اوکړه د شیطان | هم دا کسان | ډیر بد دی | په لحاظ دمرتبې سره

بیزوګان اوخنزیران جوړ کړې دی | او چې دشیطان عبادت کوی | دداسې خلقوخائې ډیربدترین دې

وَأَضَلُّ عَن سَوَآءِ ٱلسَّبِيلِ ۝ وَإِذَا جَآءُوكُمْ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا

اوډیر بې لارې دی | دنیغې لارې نه | اوهرکله چې | راشی تاسو ته | وائی | چې ایمان راوړې دې مونږه

اودسمې لارې نه ګمراه شوې دی | .........کله چې دا خلق تاسوته راشی | نووائی چې مونږ ایمان راوړې دې

وَقَد دَّخَلُوا۟ بِٱلْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا۟ بِهِۦ ۚ وَٱللَّهُ

اوحال دا چې بې شکه | دوئ ننوتی وو | دکفر سره | اودوئ | بیشکه وتلی دی | ددې سره | اوالله

خو حقیقت دادې چې په حالت د کفر کښې راغلی وو | اوهم په حالت د کفر کښې واپس لاړل | اودوی چې

أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا۟ يَكْتُمُونَ ۝

بنه پوهه دې | په هغه څه | چې وو دوئ | چې پټول به ئې

څه پټوی هغه الله تعالی ته ډیربنه معلوم دی

**آسان ترجمه قرآن:** ته (دوی ته) اووایه چه: اې اهل کتابو په تاسو دې نه سوا څمونږ کومه خبره بده لګي چه مونږ په الله او په هغه کتاب چه کوم په مونږ نازل شوې دې او په هغه کتاب چه کوم مخکښې نازل شوې وو په هغې مو ایمان راوړې دې حال دا چه تاسو کښې اکثر خلق نافرمانه دی؟ (اې پيغمبره ! دوی ته) ووایه چه :آیا څه تاسو ته اووایم چه (کومه خبره تاسو بده ګڼرئ) د هغې نه زیات بد انجام والا څوک دې؟ دا هغه خلق دی چه دوی باندې الله لعنت رالیږلې دې او خپل غضب ئې پرې نازل کړې دې . اوهغوی نه ئې شادوګان او خنزیران جوړ کړي دي اوچا چه د شیطان عبادت کړې دې ! دا هغه خلق دي چه دهغوی انجام ډیر بد دې اوهغوی دسَمې لارې نه هم ډیر آوړیدلي دي کله چه دوی تاسو له راشي نو وائي چه "مونږ ایمان راوړي دې" حال دا چه دوی کفر سره راغلي وو او د کفر سره بهر شو اوالله ښه پوهیږي چه کوم څه دوی پټوي.

**خلاصه تفسیر**

﴿ قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّاۤ اِلَّاۤ اَنْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَاۤ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَاۤ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ ﴾ تاسو اووائې چه ائې اهل کتابو تاسو مونږ کښې څه عیب بیا مومئی سوا د ددې نه چه مونږ ایمان راوړے دے په الله ﷻ او په هغه کتاب چه مونږ ته رالیږلے شوې دے [یعنی قران پاك] اوپه هغه کتاب [هم] چه [مونږ نه] مخکښې لیږلے شوې دے [یعی ستاسو په کتاب تورات ا نجیل] ﴿ وَاَنَّ اَكْثَرَكُمْ فٰسِقُوْنَ ﴾ سره ددې نه چه په تاسوکښې زیات خلق د ایمان نه خارج دی [چه نه په قران پاك ایمان لری چه ددې پخپله هم اقرار کوی اونه په تورات او انجیل ایمان لری.ولې چه که په بعضې ئے ایمان وے نوهغې کښې خو په رسول الله ﷺ اوپه قران پاك باندې دایمان راوړلو هدایت موجود دې. په هغې به یئ هم ضرور ایمان وو.دقران پاك نه انکار په دې گواه دې چې په تورات او انجیل هم دوی ایمان نه لری.دا حال خو ستاسو دخلقو شو اومونږ ددې په عکس په ټولو کتابونو ایمان لرو.نو عیب مونږ کښې نشته بلکه پخپله په تاسو کښې دې. غور اوکړئې]. ﴿ قُلْ هَلْ اُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ مَثُوْبَةً عِنْدَ اللّٰهِ ﴾ او تاسو دوی ته اووائې چه [که سره ددې هم تاسو زمونږ طریقه خرابه گڼرئی نو راشئ] آیا زه [په ښه اوبد کښې تمیز کولو دپاره] تاسو ته داسې طریقه اوښایم چه [زمونږ] ددې [طریقې] نه هم [کومې لره چه تاسو بد گڼرئی] دالله ﷻ نزد په سزا ملایدو کښې زیاته بده وی ﴿ مَنْ لَّعَنَهُ اللّٰهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيْرَ وَعَبَدَ الطَّاغُوْتَ ﴾ دادهغه کسانو طریقه ده چالره [چه ددغې طریقې په وجه] الله ﷻ دخپل رحمت نه لرے کړی وی اوپه هغوی ئے غضب کړې وی اوهغوی لره یئ بیزوگان [او خنزیران جوړ کړی وی او هغوی د] شیطان عبادت کړې وی [اوس اوگورئ چه په دې کښې کومه سزا بده ده.آیا هغه طریقه چه په کښې دغیرالله عبادت اودهغې نه دا وبال وی یا هغه طریقه چه سراسر د توحید اود نبیانو ﷺ او دپیغمبرئی تصدیق وی یقیناً ددې جاج اخستلونتیجه هم دغه ده چه] ﴿ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّاَضَلُّ عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ ﴾ داسې کسان [دکوموطریقه چه اوس بیان شوه په آخرت کښې] دمکان په اعتبار سره هم [چه د سزا په ډول به ورکولې شی] ډیر خراب دی [ولې چه دغه مکان دوزخ دې] او [په دنیا کښې] دسمے لارې نه هم ډیرلرے دی [اشاره داده چه تاسو خلق مونږ پورې خندا کوئی حالانکه د ټولو جوگه طریقه هم ستاسو ده ولې چه دغه ټول کارونه او ټولې خبرې په تاسو کښې داسې موندې شی چه یهودو د څخی عبادت کړې دې ، نصرانیانو حضرت مسیح ﷺ لره یئ خدائې جوړے کړې دې بیا خپلو عالمانو او پیرانو ته د خدائې اختیارات سپارلی دی.ددې کبله هرکله چه یهودیان دخالی[هفتې] د ورځې د احکامو نه خلاف ورزی اوکړله نود الله ﷻ عذاب راغلو هغوی نه بیزوگان جوړ کړې شو اود نصرانیانو په درخواست باندې د آسمان نه خوانچه نازلیدل شروع شو.هغوی بیا هم ناشکری اوکړه نوهغوی نه بیزوگان او خنزیران جوړ شو.وړیسے ددوئ دیوې بلے ډلے بیان دے کومه چه دمنافقانوډله ده دمسلمانانو په مخکښې به یئ خپل اسلام ښکاره کولو اوپه پټه هم یهودیان وو]. ﴿ وَاِذَا جَآءُوْكُمْ قَالُوْۤا اٰمَنَّا وَقَدْ دَّخَلُوْا بِالْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوْا بِهٖ ﴾ اوکله چه دغه [منافقان] خلق ستاسو خواته راځی نو وائی چه مونږ ایمان راوړلے دے حالانکه هغوی هم کفرراوړے وو [او دمسلمانانو مجلس ته راغلی وو او کفر ئے یوړو [او] لاړل ﴿ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا يَكْتُمُوْنَ ﴾ اوالله ﷻ خو ښه پیژنی هغه څه

چه دوی [په خپل زړه کښې] پټ لرلی دی [په دې وجه به ددوی منافقت دالله ﷻ په مخکښې کار ورنکړی اودکفر ډیرے ناکاره سزا سره به مخ شی].

## معارف اومسائل

﴿أَكْثَرَكُمْ فَٰسِقُونَ﴾ دلته الله تعالی دټولو په ځائې اکثر[زیات] یهودیان اونصاری په خطاب کښې دایمان نه بهراوښودل، وجه ئې داده چه په دوئ کښې څنې خلق داسې هم ووچه په هر حال کښې مؤمنان پاتې شوی ووترڅوپورې چه رسول الله ﷺ پیغمبرنه ووجوړ کړې شوې هغوئ دتورات او انجیل داحکاموتابعداری کوله اوپه هغې ئې ایمان راوړلو، کله چه رسول الله ﷺ ته پیغمبری ورکړې شوه اوقرآن کریم نازل شونوپه هغوئ ﷺ ئې ایمان راوړې وو اود قرآن په جوړئې عمل کولو،

**په تبلیغ کولواوبلنې ورکولوکښې دمخاطب لحاظ ساتل:** دلته په ﴿قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُم﴾ الفاظوسره دیو مثال په اندازکښې دداسې خلقوحال بیان شویدې چابانديې چه دالله تعالی لعنت اوغضب دې،سره ددې چه مصداق ئې په حقیقت کښې پخپله همدغه مخاطبین [اهلِ کتاب] وو،مقام داسې ووچه هم دوئ ته ئې وئیلې چه تاسوداسې یئی لیکن قرآن کریم ددې په ځائې ورته دیو مثال صورت ورکړو،په دې سره دپیغمبری بلنې اودعوت یوخاص اندازاوښودلې شوچه دهغې عنوان داسې پکاردې چه مخاطب ورسره راپاره کیږی نه.

| |
|---|
| وَتَرَىٰ　　كَثِيرًا　　مِّنْهُمْ |
| اوته وینې | زیات خلق | ددوئ نه |
| ..........اوته به په دوئ کښې ډیرکسان وینې ګورې چې |
| يُسَٰرِعُونَ　　فِى ٱلْإِثْمِ　　وَٱلْعُدْوَٰنِ　　وَأَكْلِهِمُ　　ٱلسُّحْتَ　　لَبِئْسَ |
| چې منډې وهی | په ګناه کښې | اوپه ظلم کښې | اوپه خوړلو د دوی[کښې] | حرامو لره | خامخا بددې |
| ګناه او ظلم او حرامو خوړلو ته به په منډه منډه ورځی |..............اودا ډیر |
| مَا　　كَانُوا۟　　يَعْمَلُونَ　　لَوْلَا　　يَنْهَىٰهُمُ　　ٱلرَّبَّٰنِيُّونَ　　وَٱلْأَحْبَارُ |
| هغه | چې وو دوئ | چې کول به ئې | ولې | نه منع کوی دوئ لره | عالمان | اوپوهان |
| بدکارونه دی کوم چې دوئ کوی |..........ددوئ عالمان او پوهه خلق ولې دوی |
| عَن قَوْلِهِمُ ٱلْإِثْمَ　　وَأَكْلِهِمُ　　ٱلسُّحْتَ　　لَبِئْسَ　　مَا |
| د دوی د ګناه د خبرو نه | اودخوړلو ددوئ | حرامو لره | خامخا ډیر بد دې | هغه کار |
| دګناه د خبرو نه او د حرام خوړلونه نه منع کوی |..............حقیقت دا دی | چې دوی ډیربد |
| كَانُوا۟　　يَصْنَعُونَ　　وَقَالَتِ　　ٱلْيَهُودُ　　يَدُ ٱللَّهِ　　مَغْلُولَةٌ　　غُلَّتْ |
| چې دی دوئ | چې کوی ئې | اووایی | یهودیان | چې لاس دالله | ترلې شوې دې | او دې ترلې شی |
| کارونه کوی |..............اویهودیان وائی چې دالله ﷻ لاسونه ترلې شوی دی | ترلې شوی خو |

**آسان ترجمه قرآن:** او دوی کښې به ته ډیر وګوري چه ګناه، ظلم او حرام خوړلو کښې به مخکښې کیږي ربنیاګانو او علماؤ هغوی د ګناه د خبرو کولو نه او حرامو خوړلو نه ولې نه منع کوي؟ حقیقت خو دا دې چه ددوی دا عمل ډیر ناکاره دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَتَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يُسَارِعُوْنَ فِى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ﴾ او تاسو په دې [یهودو کښې] ډیر خلق داسې وینئ چې ډیر په منډه منډه ګناه [یعنی دروغو] او ظلم او حرام [مال] خوړلو باندې وړپریوزی [﴿لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾] واقعی ددوئ دا کارونه ډیر خراب دی [دا د عوامو حال وو، مخکښې د خواصو حال دې چې] [﴿لَوْلَا يَنْهٰهُمُ الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ﴾] دوئ لره ددوئ مشائخ او عالمان د ګناه د خبرې څخه [د مسئلې او واقعې دعلم لرلو باوجود] ولې نه منع کوی [﴿لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ﴾] واقعی دا ډیر خراب عادت دې.

## معارف او مسائل

**دیهودو اخلاقی بربادی:** ددې آیتونو څخه په رومبی آیت کښې اکثر دیهودو دوړپریوتې اخلاقی او عملی بربادئ بیان دې چه آورېدونکی ترنصیحت واخلی، او ددغې کارونو او ددې داسبابو نه ځان ساتی،

اګرچه عموماً دیهودو هم دغه حال وو لیکن په دوئ کښې څه ښه خلق هم وو، ځکه قرآن کریم دهغوئ دمستثنی کولو دپاره د ﴿كَثِيْرًا﴾ لفظ استعمال کړو، او زور ظلم، زبردستی او حرام خوری اګرچه دواړه د لفظ [اِثْمٌ] [ګناه] په مفهوم کښې داخل دی لیکن ددې دواړو قسمو ګناهونو دتباه کارئ او ددې په وجه دټول اطمینان او امن دبربادئ واضح کولو دپاره ئې په خصوصیت سره د دې ذکر بیل او کړو [بحر محیط] [1]،

په تفسیر روح المعانی وغیره کښې دی چه ددې خلقو په باره کښې په دې عنوان اختیارولو سره [چه دوئ په منډه منډه په ګناهونو باندې وړپریوځی] قرآن کریم دې اړخ ته اشاره او کړه چه دا خلق ددغه بدو خویونو عادتی مجرمان دی او دابدعملونه د دوئ په رګ رګ کښې داسې ورننوتی دی چه بې دځه ارادې نه هم دغې اړخ باندې چلیږی [2]،

دې نه معلومه شوه چه هر یو عمل [بد یا ښه] چه څوک ډیر ډیر کوی، هغه دده یو پوخ عادت ګرځی چه دهغې په کولو کښې ده ته څه مشقت نه وی، چنانچه په بدو خویونو او عادتونو کښې یهودیان دغې حدته رسیدلی وو چه دهغې دښکاره کولو دپاره ئې او فرمائیل: ﴿يُسَارِعُوْنَ فِى الْاِثْمِ﴾ او دغه شان په ښو خصلتونو او عادتونو کښې د انبیاء، اولیاؤ حال هم دې لکه چه قرآن کریم د دوئ په باره کښې فرمائی: ﴿يُسَارِعُوْنَ فِى الْخَيْرٰتِ﴾

**دعملونو درست کولو طریقه:** دټولو نه زیات دعملونو درست کوونکی حضرات صوفیانې کرام او اولیاء الله دی، دغه حضراتو هم ددغې قرآنی ارشاداتو نه، دازیات ضروری اصول اغستی دی، چه هر څو مره بد یا ښه عملونه چه انسان کوی دهغې بنیاد هغه پټې ملکې او اخلاق وی چه دانسان

---

[1] ) تفسیر البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۷۱
[2] ) روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج ۶، ص ۱۷۹

یو قسم طبیعت جوړشوی وی، په دې وجه دبدوعملونو او جرمونو دبندیزدپاره دهغوئ نظرهم په دغه پټو ملکووی چه درستوالې ئې راولی نوټول عملونه ئې ورسره پخپله درست شی، مثلا دچا په زړه کښې د دنیوی مال حرص غلبه وی، ددې په نتیجه کښې هغه، رشوت هم اخلی، سود هم کوی، که موقعه په لاس ورشی نو ډاکې اوغلاکولو ته هم لاس واچوی، صوفیائې کرام، ددې جرمونو دبیل بیل علاج کولو په ځائې هغه نسخه وردپاره استعمالوی چه ددې ټولو جرمونو، بیخ بنیاد پراوځی، هغه ددنیاناپائیداری ده، اوددې زهرجن عیش، عشرت رامخې ته کول دی،

دغه شان دچاپه زړه کښې چه تکبراوغروروی، یاغصه پرغالبه وی، دنوروخلقوبې عزتی او سپکاوې کوی، دوستانو ګوانډیانو سره جنګونه کوی، دغه حضرات دآخرت فکراود الله تعالی په وړاندې دجواب ورکولوفکرخان ته راوړاندې کړی اوهغه نسخه استعمال کړی چه ورسره دغه عملونه پخپله ختمیږی،

خلاصه داشوه چه ددې قرآنی اشارې له مخې معلومیږی چه په انسان کښې داسې ملکې وی چه هغه دده دویم طبیعت جوړشی چاکښې چه دخیر، ښیګړې ملکې وی نو پخپله ترې خیرښیګړې عمل صادریږی، اوچاکښې چه دشراوفسادملکې وی هغوئ بدوعملونو ته پخپله په منډه ورځی، چه مکمل سمون راوستل غرض وی نوهغې دپاره ددې ملکوسمون راوستل ضروری دی،

**په علماؤباندې دعوامودعملونوپه واره:** په بل آیت کښې دیهودودپیرانو اوعلماؤته په دې سخت خبرداري ورکړې شویدې چه هغوئ دغې خلقولره دبدوعملونونه ولې نه منع کوی، دلته په قرآن کریم کښې دوه الفاظ استعمال شویدی یولفظ ﴿الرَّبّٰنِيُّوْنَ﴾ دې چه ترجمه ئې [خدائی خلق] ده، یعنی عابدان، زاهدان خلق چه زمونږپه عرف کښې ورته درویشان، پیران یامشائخ وئیلې شی اوبل لفظ [أحبار] دې چه معنی ئې [دیهودوعلماء] ده، دې نه معلومه شوه چه اصل ذمه داری د [امربالمعروف] او[نهی عن المنکر] په دې دواړو ده، ځنې مفسرینو رحمهم الله فرمائیلی دی چه [ربانیون] نه مرادهغه علماء دی چه دحکومت له اړخه ورته امرشوې وی اود اقتدارخاوندان وی اود[احبار] نه مرادعام علماءدی، په دې صورت کښې، جرمونونه دمنع کولوذمه داری په حاکمانواوعلماؤ د دواړو راځی چنانچه په ځنې نوروروایتونوکښې ددې وضاحت هم راغلې دې،

**عالمانواوپیرانولره خبرداري:** په آخردآیت کښې فرمائی: ﴿لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ [یعنی ددې مشائخواو علماؤیوبدعادت داجوړشویدې چه [امربالمعروف] او[نهی عن المنکر] نه کوی، دقوم هلاکیدل په خپلوستر ګوویني خومنع کوی ئې نه،

مفسرینو رحمهم الله فرمائیلی دی په رومبی آیت کښې دعوامودناکاره کارونوبیان وونود هغې په آخر کښې اوفرمائیلې شو: ﴿لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ اودبل هغه آیت په آخر کښې چه مشائخو او علماؤته دهغوئ په غلطئ خبرداري ورکړې شویدې داسې اوفرمائیلې شو: ﴿لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ﴾

ددې مطلب داراوځی چه په عربی لغت کښې [فعل] په قصد یابې قصده کارته وئیلې شی او[عمل] صرف هغه کارته وئیلې شی چه په قصداواراده کولې شی، او[صنع، صنعت] داسې کارته وئیلې شی چه په قصداواختیارسره کولې شی اودعادت اومقصدپه ډول بیابیا سمولې اوکولې شی، په دې بناباندې دعوامودبدعملونو په نتیجه کښې خوصرف د[عمل] لفظ داسې اختیارکړې شو: ﴿لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ اودخاصوخلقو، مشائخواوعلماؤدغلط کارئ په نتیجه کښې د[صنع] لفظ داسې اختیارکړې شو: ﴿لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ﴾ دې سره اشاره دې.

خبرې ته هم کیدې شی چه علماء او مشائخ دومره غلط کردار اداکوی چه سره ددې پوهیدونه چه عوام به د دوئ په منع کولو سره دبدو کارونو نه منع شی او بیائې هم په قصد سره صرف ددې کبله نه منع کوی چه د دوئ شکرانو کښې به څه کموالې یا ختمیدل راشی یا به د دوئ د مریدئ نه اوځی، هر کله چه په دوئ کښې دحق جذبه دسره نشی موندې څکه د دوئ دا کردار، دبد کارو خلقو دبد و عملونو کولو نه هم زیات سخت دی،

حاصل ئې دا راؤوتو چه که یو قوم په جرمونو او گناهونو کښې اخته شی او علماء او مشائخ ئې په دې پوهه کوی چه زمونږ په منع کولو سره به هغوئ ددې نه منع شی او بیائې هم دڅه نذرانو د لالچ او ویرې نه نه منع کوی، نود دوئ جرم د اصل مجرمانو نه زیات سخت دې حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائیلی دی چه په ټول قرآن کښې د مشائخو او علماؤ د پاره ددې نه زیات سخت خبردارې بل چرته نشته، او د تفسیر امام ضحاک رحمه الله فرمائیلی دی چه ا زما په نزد، مشائخو او علماؤ د پاره ددې آیت نه زیات دویرې [خوفناک] آیت بل نشته [ابن جریر رحمه الله، ابن کثیر رحمه الله] (۱).

وجه ئې داده چه ددې آیت له مخې د دوئ جرم د ټولو غلو، ډاکوانو او هر قسم بد کارو خلقو نه زیات جوړیږی [العیاذ بالله] خو یا دلرئ چه دا سختوالې او غصه به په هغه صورت کښې وی چه علماؤ او مشائخ په اندازې سره د دوئ دخبرې منل معلوم کړی، او کله چه په تجربې سره غالب گمان نشی کیدې یا غالب گمان ئې د نه آوریدو او نه منلو وی او په مقابله کښې ورته تکلیفونه او زیانونه رسولې شی نو په داسې ځایونو کښې حکم دادې چه ذمه دارئ خو به ئې ختمه شی، خو زیات غوره بیا هم دادی چه خپل فرض دې اداکوی اگرچه څوک ئې نه آوری او نه ئې منی، او په دې کښې دې د چا د ملامتیا یا زیان ورکولو اندیښنه نه کوی، څنگه چه څو آیتونه ورانديې دالله تعالی دمقبولو مجاهدینو په صفتونو کښې داسې تیر شویدی: ﴿وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ﴾ [یعنی دا خلق دالله تعالی په لار کښې او دحق خبرې په ښکاره کولو کښې دچا ملامتگر د ملامتیا پروانه کوی،

خلاصه ئې داشوه چه کله دخبرې آوریدو او منلو غالب احتمال او گمان وی هغه وخت په علماؤ او مشائخو څه چه په هر مسلمان باندې دگناه په بندیز کښې دخپل وس مناسب کوشش کول فرض دی کوم چه ددې جرم کیدل او گناه کیدل پیژنی، دغه کوشش په لاس، ژبې یا کم نه کم په زړه سره کیدې شی چه په زړه کښې هغې له سپک او ناکاره گڼړی، البته په هغه کښې خو منع کول او ایسارول فرض نه دی چه غالب گمان ئې دخبرې نه آوریدو راشی یا ددې گمان ئې غالب شی چه ما سره به دښمنی شروع کړی، خو بیا هم زیات غوره او بهتر کار دادې چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر جاری اوساتی، څنگه چه دا تفصیلات د صحیح احادیثو نه راغستې شویدی، پخپله نیک عملی کول او بد عملئ نه بچ کیدل او بل له نیکئ ته بلل او بدئ نه ئې بچ کول په عامو مسلمانانو او خصوصا په علماؤ او مشائخو باندې ددې ذمه داری اچول، په دنیا کښې دامن او اطمینان پیدا کولو د پاره اسلام داسې یو روښانه اصول جوړ کړیدی چه هر کله پرِ عمل او کړې شی نو ټول قوم په ډیرې آسانئ سره د ټولو خرابو نه پاکیدې شی،

---

۱) تفسیر الطبری لابن جریر تحت هٰذه الآیة: ج ۱۰، ص ۴۲۹ و تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۸۲

**دامت داصلاح طريقه:** داسلام په رومبوزمانو کښې اودې نه پس، تر کومه وخته چه په دغې اصولوعمل جاري وو، نود مسلمانانو ټولقوم دعلم، عمل، اخلاقو او کردار په لحاظ سره په ټوله دنيا کښې سربالا او ځانګړې حيثيت لرلو، کله نه چه مسلمانانو دا فريضه پريښوه، دجرمونو بنديزرا وستل ئې يوا ځې دحکومت اوپوليس ذمه داري اوګڼړله اوپخپله ترې لاس په سرشو، نو نتيجه ئې نن هرځائې کښې خلق په خپلوستر ګووينې، چه ديو ديندار ه مور، پلار اودشريعت دپوره پابندخاندان اولاد اوکشران دهغوئ نه په بله لار روان دی، دهغوئ خيالات اوسوچ فکرهم جدا دې، او دعمل طريقې ئې هم بيلې دی، همدغه وجه ده چه دملت داجتماعي اصلاح دپاره په قرآن اوحديث کښې په امربالمعروف اونهی عن المنکربانديې خاص زور ورکړې شويدې دې کارلره قرآن کريم دامت محمديه په خصوصياتو کښې شميرلې دې اودې نه خلاف کول ئې سخته ګناه اودعذاب باعث ګرځولې دې، چنانچه په يوحديث کښې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه [هرکله په يوقوم کښې دګناه کارکولې شي اوددغه قوم هيڅوک ئې نه منع کوی نونزدې ده چه الله تعالی په دغې ټولو [ټول قوم] باندې عذاب راؤليږی [بحرمحيط] (۱).

**په ګناهونوباندې دګرکې نه بګاره کولو وعيد [دړکه]:** مالک بن دينار رحمه الله فرمائيلی دی چه په يوځائې کښې الله تعالی خپلوفرښتوته حکم ورکړوچه فلانئ علاقه تباه کړئ، فرښتو عرض اوکړوچه په دغه علاقه کښې خوستايوعبادت کوونکې بنده اوسيږی، حکم ورته اوشوچه هغه هم په عذاب کړئ ځکه چه زمونږ په نافرمانيؤ او ګناهونوليدلوسره هغه ته غصه هم نه ده ورغلې اومخ ئې دغصې له کبله هډو بدل شوې نه وو (۲).

حضرت يوشع بن نون عليه السلام ته الله تعالی وحی راؤليږله چه ستاد قوم يولاکهه خلق به په عذاب سره هلاکولې شی، چه په هغوئ کښې به څلويښت زره هغه خلق هم هلاکيږی چه نيکو کار وو اوشپيته زره هلاکيږی، حضرت يوشع عليه السلام عرض اوکړوچه ای رب العالمين: د بد عملو خلقو د هلاکيدو وجه خوښکاره ده ليکن نيك خلق ورسره ولې هلاکولې شی؟ ارشادئې اوکړوچه دغه نيکانو خلقو به بدعملوخلقوسره دوستانه تعلقات لرل، هغوئ سره به خوراک، څکاک، خندا، خوشحالی اوګپ شپ کښې شريک پاتې کيدل، زمانافرمانئ او ګناهونه به ئې چه ليدل نوکله ئې هم هغوئ سره مخ تريؤشوې نه وو او دا ټول روايتونه دبحر محيط نه منقول دی [(۳)].

| | | | |
|---|---|---|---|
| غُلَّتْ | مَغْلُوْلَةٌ | يَدُ اللهِ | وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ |
| او دې تړلې شی | تړلې شوې دی | چې لاس دالله | اووايئ يهوديان |
| ......... اويهوديان وائی چې دالله تعالی لاسونه تړلې شوی دی [ تړلی شوی خو | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَدٰهُ | بَلْ | قَالُوْا | بِمَا | وَلُعِنُوْا | اَيْدِيْهِمْ |
| دواړه لاسونه د هغه | بلکه | چې وائی دوئ | په سبب دهغه | اولعنت کړې شوې دې په دوئ | لاسونه ددوئ |
| ددوئ لاسونه دی [ او د دې وينا کولوپه وجه په دوئ باندې لعنت ونيلې شوې دی ] بلکه دالله تعالی | | | | | |

(۱) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۷۱ والمعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ۱۳۳۲
(۲) د دے مضمون حديث المعجم الأوسط للطبراني کښ موجود دے، رقم الحديث: ۷۸۲۶
(۳) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۷۱، ۲۷۲

مَبْسُوْطَتٰنِ ۙ يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَآءُ ۭ وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ

فراخه دی | خرچ کوی | څنګه چې | غواړی هغه | او خامخا زیاتوی | ډیرو خلقو لره | د دوی نه

لاسونه خو پرانیستي دی | چې څنګه غواړی هغه شان خرچ کوی | حقیقت دادې چې تاته د الله ﷻ د طرفنه

مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ۭ

هغه کلام | چې نازل کړې شوې دې | تاته | د طرفه د رب ستانه | په سرکشۍ سره | او په کفر سره

کوم کتاب نازل شوې دې | هغه په دوی کښې د ډیرو خلقو د پاره د سرکشۍ او کفر سبب ګرځیدلې دې۔

وَاَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۭ

او اچولې ده مونږه | په مینځ د دوی کښې | دشمنی | او بغض | دورځې د قیامت پورې

[او د دې په سزا کښې] مونږ د دوی په مینځ کښې تر قیامته پورې دښمنی او بغض واچولو

كُلَّمَآ اَوْقَدُوْا نَارًا لِّلْحَرْبِ اَطْفَاَهَا اللّٰهُ ۙ وَيَسْعَوْنَ

هر کله چې | بل کړو دوی | وور | د پاره د جنګ | مړ کړو هغه | الله | او کوشش کوی دوی

چې کله هم دوی د جنګ اور بل کړی | نو الله ﷻ به ئې مړ کوی | ............او دوی کوشش کوی

فِي الْاَرْضِ فَسَادًا ۭ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِيْنَ ۝ وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتٰبِ

په زمکه کښې | د فساد | او الله | نه خوښوی | فساد کونکی | او که بیشکه | اهل کتابو

چې د زمکې په مخ فساد خور کړی | او فسادیان خو د الله ﷻ بالکل ناخوښه دی | کچرې دې اهل کتابو

اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ

ایمان راوړې وې | او تقوی ئې اختیار کړې وې | نو خامخا به لرې کړې وې مونږه | د هغوی نه | ګناهونه د هغوی

ایمان راوړې وې | او پرهیزګاران جوړ شوې وې | نو مونږ به د دوی نه ګناهونه معاف کړی وو

وَلَاَدْخَلْنٰهُمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۝ وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا

او خامخا به داخل کړې وې مونږ هغوی لره | جنتونو | د نعمتونو ته | او که | بیشکه دوی | قائم کړې وې

او دوی به مو د نعمتونو د کوباغونو ته داخل کړی وو | ........... او که چرې دوی

التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ

توراة | او انجیل | او هغه | چې نازل کړې شوې دې | دوی ته | د طرفه د رب د دوی نه

په تورات او په انجیل او په هغې کتابونو چې د الله ﷻ د طرفنه ورته راغلی دی قائم ولاړ وې

لَاَكَلُوْا مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ ۭ مِنْهُمْ

نو خامخا به ئې خوراك کولې | د پاس خپل نه | او د لاندې | د پښو خپلو نه | ځینی د دوی نه

نو د بره نه به پرې رزق راوریدلو | او د ښکته نه به ورته راټوکیدو | ............... په دوی کښې

اُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ ۭ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ سَآءَ مَا يَعْمَلُوْنَ ۝٦٦

څه خلق دی | انصاف والا | او زیات | د دوی نه | ډیر بد عمل دی | هغه | چې کوی ئې دوی

یوه ډله په سمه لار هم روانه ده | خو زیات خلق په کښې ډیر بدکاره دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَآيُّهَا الرَّسُولُ | بَلِّغْ | مَآ | أُنْزِلَ | إِلَيْكَ | مِنْ رَّبِّكَ ؕ |
| اے رسوله | اورسوه | هغه | چې نازل کړې شوې دې | تاته | د طرفه د رب ستانه |
| اے پیغمبره ﷺ په تا چې د خپل رب د طرفه کوم [احکام] نازل شوي دی \| هغه ټول خلقو ته اورسوه | | | | | |
| وَإِنْ | لَّمْ تَفْعَلْ | فَمَا بَلَّغْتَ | رِسٰلَتَهٗ ؕ | وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ | مِنَ النَّاسِ ؕ |
| او که چرې | اونه کړو تا | نو اونه رسوو تا | پیغام د هغه | او الله به بچ کوی تا | د خلقو نه |
| او که چرې دا کار دې اونه کړلو \| نو د الله یو حکم به دې هم نه وی رسولې \| او الله به تا د خلقو [د شر] نه بچ ساتی | | | | | |
| إِنَّ اللّٰهَ | لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ | الْكٰفِرِيْنَ ۞ | | |
| بیشکه الله | نه ښائی لار | قوم | کافرته | | |
| بیشکه الله کافرو ته سمه لار نه ښائی | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** او یهود وائی چه د الله لاسونه تړلي شوي دي، لاسونه خو پخپله د دوی تړلي شوي دي، او کومه خبره چه دوی کوي د هغې د وجې نه په دوی لعنت لا جدا کړې شوې دې بلکه د الله دواړه لاسونه کهلاؤ دي او څنګه چه وغواړی نو خرچ کوي ئې، او (اې پیغمبره!) په تا چه کومه وحی نازله شوې ده دا به په دوی کښې د ډیرو په سر کشئ او کفر کښې نوره اضافه کوی، او مونږ دوی کښې تر قیامته پورې عداوت او بُغض پیدا کړی دی. کله هم چه دوی د جنګ د پاره اور بل کړي نو الله ئې مړ کوي او دوی په زمکه کښې فساد خوروي، حال دا چه الله فساد کونکو لره نه خوښوي. او که اهل کتابو ایمان راوړې وې او تقوىٰ ئې اختیار کړې وې نو مونږ به ضرور د دوی ګناهونه معاف کړي وو او دوی لره به ضرور مونږ د آرام او راحت په باغونو کښې داخل کړی وو او که دوی به تورات او انجیل او کوم کتاب چه دوی ته د دوی د رب د طرف نه نازل شوې دې د دې ئې صحیح صحیح پابندی کړې وې نو دوی به د څان د پره نه او د لاندې د پښو نه هر طرف نه (د الله رزق) خوړلې (اګر چه) دوی کښې یوه ډله په صحیح لاره روانه ده مګر دوی کښې ډیر خلق داسې دي چه د هغوی اعمال خراب دي. اې پیغمبره! څه چه تا ته ستا د رب د طرف نه نازل شوي دي د هغې تبلیغ کوه، او که داسې نه کوي نو (ددې مطلب به دا وي) چه تا د الله پیغام نه دې رسولې. او الله به تا لره د خلقو (د سازشونو نه) بچ کوي. یقین وکړه چه الله کافرانو ته هدایت نه کوي.

**د ایتونو ربط:** مخکښې تیرو شوؤ آیتونو کښې د یهودیانو بعضې اقوال ذکر شوی دی. اوس په دې آیتونو کښې نور زیات خاص احوال بیانیږی. قصه څه دا شان اوشوه چې لباش بن قیس او فنحاص چې د قینقاع قبیلې سردار وو د الله ﷻ په حق کښې ډیر ګستاخانه الفاظ اووئیل. د کوم بیان چې راروان دې. نو په دې باندې راتلونکی آیت مبارک نازل شو. کذافی اللباب بروایة الطبرانی عن ابن عباس رضی اللہ عنہ وبروایة ابی الشیخ عنه.

### خلاصه تفسیر

( وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ ؕ ) او یهودو اووئیل چه د الله ﷻ لاس بند شوې دے [یعنی نعوذ بالله ﷻ کنجوسی کوی په حقیقت کښې] ( غُلَّتْ اَيْدِيْهِمْ ) هم د دوی لاسونه بند دی [یعنی حقیقت دا دې چه پخپله بخیلان دی او الته په الله ﷻ دغه تور پورې کوی] ( وَلُعِنُوْا بِمَا قَالُوْا ۘ ) او په خپلې دې

وینا سره دوی درحمت [دالله ] نه لرے کړې شو [چه اثر ئے په دنیا کښې ذلیله کیدل قید کیدل
او وژلے کیدل وغیره شو .اوپه آخرت کښې عذاب د جهنم شو. اوداسې هیچرې نشی کیدلې چه
الله ﷻ کښې ددې عیب احتمال هم وی] ﴿بَلۡ يَدَاهُ مَبۡسُوطَتَانِ يُنفِقُ كَيۡفَ يَشَآءُ﴾ بلکه دهغه دواړه
لاسونه خلاص دی [یعنی ډیر سخی او کریم دے خوهرکله چه حکیم هم دے څکه] څنګه چه
غواړی خرچ کوی [نوپه یهودوبه باندې دتنګئ راتلوعلت حکمت دې چې ددوی دکفر په وبال
سره پرې راوستل کیدل علت ئے کنجوسی نه ده] او [دیهودو دکفر اوسرکشئ دا حالت دې
چې که دوی ته دخپلې وینا باطلیدل په دلیل سره هم ثابت شی نو دوی به دهغې نه توبګار
نشی.دا خوئے دکفر اوسرکشئ حالت دے چنانچه] ﴿ وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرٗا مِّنۡهُم مَّآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ مِن رَّبِّكَ طُغۡيَٰنٗا
وَكُفۡرٗاۚ ﴾کوم مضمون چه تاسوته ستاسو دپروردګار د طرفه رالیږلے شی هغه به په دوی کښې
دډیرو [خلقو] دسرکشئ او کفر دترقئ کولو سبب جوړشی [په دې شان سره چه دوی ددې هم
انکار کوی اول ئے سرکشی اوکفر وو اوداسې نورهم زیات شو] ﴿ وَأَلۡقَيۡنَا بَيۡنَهُمُ ٱلۡعَدَٰوَةَ وَٱلۡبَغۡضَآءَ إِلَىٰ
يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِۚ ﴾ او [ددوی څخه دکفر په وجه چه په دوی لعنت شوې دې یعنی رحمت نه لرے کړې
شوی دی په دنیا کښې ددے یوه نخښه داده چه] مونږ په دوی کښې یو تربله [ددین په باره]
ترقیامته پورې دښمنی او بغض واچولو [چنانچه په دې کښې مختلفې فرقې دی او هره فرقه
دبلې دښمنه ده چناچه ددغې دښمنئ او بغض په وجه] ﴿ كُلَّمَآ أَوۡقَدُواْ نَارٗا لِّلۡحَرۡبِ أَطۡفَأَهَا ٱللَّهُۚ ﴾ هرکله
چه [مسلمانانو سره] د جنګ اور ګرمول غواړی [یعنی د جنګ اراده ورسره لری] الله ﷻ هغه
لره ختم کړی [مرئے کړی یعنی رعب پرې پریوځی یاپه جنګ کښے ماتے اوخوری یا خپل مینځ
کښ داختلاف په وجه ئے اتفاق نه راځی] او کله چه دجنګ کولو نه پاتې راشی نودخپلے دښمنئ
براس په بل شان [داسې اوباسی چه] ﴿وَيَسۡعَوۡنَ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَسَادٗاۚ﴾ په ملك کښې [پټ] فساد په
مخه کوی [لکه نوی مسلمانان دهوکه کول یو بل ته راپارول کوی.عوامو ته دتورات بدل احکام
آوروی اود اسلام نه یې اړوی] ﴿وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلۡمُفۡسِدِينَ﴾ اوالله ﷻ [چونکه] فساد کوونکو لره نه
خوښوی [یعنی بدی ئے شی څکه به ورته دفساد پوره سزا ورکولې شی که هغه په دنیا کښې
وی ورنه په آخرت کښې خوبه خامخا وی]. ﴿ وَلَوۡ أَنَّ أَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ ءَامَنُواْ وَٱتَّقَوۡاْ﴾اوکه دے اهل کتابو
[یهودیانو اونصرانیانو دکوموحق څیزونه نه چه دوی منکر دی لکه دمحمد ﷺ دپیغمبرئ او
دقرا نه پاك نه حق کیدل شو په دې ټولو] ایمان راوړلے وې او [درسول الله ﷺ په ذریعه چه کوم
کارونه دکفر اوګناه خودلے شوی دی دهغې ټولونه یې] تقوی [یعنی پرهیزګاری] اختیار ولې ﴿
لَكَفَّرۡنَا عَنۡهُمۡ سَيِّـَٔاتِهِمۡ ﴾ نومونږ به ضرور ددوی ټولے [تیرې شوې] بدئی [کفر شرك او ګناهونه چه
ټولو اقوالو او احوالو لرهٔ شاملے دی] معاف کړې وے لږ په معاف کولو سره [ضرور به یې دوی
لره دآرام] ﴿ وَلَأَدۡخَلۡنَٰهُمۡ جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ﴾ او راحت [په باغونو کښې [یعنی په جنت کښې] داخل کړې
وے [داد آخرت برکتونه شو] ﴿ وَلَوۡ أَنَّهُمۡ أَقَامُواْ ٱلتَّوۡرَىٰةَ وَٱلۡإِنجِيلَ ﴾ اوکه دے خلقو [دغه بیان کړې
شوی ایمان اوتقوی اختیار کړې وے چه په نورو ټکو کښې داسې هم وئیلې شی چه] د تورات
او انجیل ﴿ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيۡهِم مِّن رَّبِّهِمۡ﴾ او دهغې کتاب چه ددوی دپروردګار له طرفه [اوس] دوی
ته [درسول الله ﷺ په ذریعه] راولږلے شو [یعنی قران] پوره پابندی کولې [یعنی په دې کښې به
کومه کومه خبره چه د عمل کولو لیکل شویده په هغې ټولو ئے عمل کولې په دې کښې

دپیغمبریٔ تصدیق کول هم راغلل اوددې نه بدل شوی اومنسوخ شوی احکام اووتل ولې چه ددغې کتابونو مجموعه په دې باندې دعمل کولو دپاره نه وائی بلکه دهغې نه منع کوی] ﴿لَأَكَلُوا مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ أَرْجُلِهِمْ﴾ نو دے خلقو به [په دې وجه] دپورته نه [اوبه راؤ وری] اولاندے [یعنی زمکې] نه [به پیدا وار کیدو چه دهغې نه به ئے] ښه په آزادیٔ خوړلے [دا دایمان ددنیوی برکت ذکر شو لیکن په کفر کلك وو خکه پرې تنگی راوستلې شوه چه دهغې په وجه چه بعضو خلقو الله ﷻ ته د کنجوسیٔ نسبت کولو سره گستاخی اوکړه مگر بیا هم ټول یهود او نصرانیان په یو شان نه دی چنانچه هم] ﴿مِنْهُمْ أُمَّةٌ مُقْتَصِدَةٌ﴾ پدوی کښې یوه ډله په سمه لار تلونکی [هم] دی [لکه په یهودو کښې عبدالله بن سلام اودهغوی ملگری اوپه نصرانیانو کښې نجاشی او دهغه ملگری لیکن داسې په کښې لږ دی] ﴿وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ سَاءَ مَا يَعْمَلُونَ﴾ او [پاتې] زیات په دوی کښې داسې دی چه کردار ئے ډیر خراب دے [خکه چه کفر او دښمنی نه به زیات خراب کردار بل کوم وی] ﴿يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ﴾ ائې رسول ﷺ هغه څه چه ستاسو دپروردگار د طرفه په تاسو نازل کړې شوی دی تاسو [خلقو ته هغه] ټول اورسوئی ﴿وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ﴾ اوکه [بفرض ومحال] تاسو داسے نه کوئی نو [داسے به گڼلے شی چه په ټولو پټولو سره دا فرض نشی تر سره کیدې دغه شان د بعضو په پټولو سره دغه فرض کیږی اونه پوره کیږی] او [دتبلیغ په باره کښې دکافرو نه هیڅ مه ویریږئی خکه چه] ﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ الله ﷻ به تاسو لره دخلقو [دمقابلے] نه محفوظ لری [تاسو لره به هغوی قتل نه کړې شی او] ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ﴾ یقیناً الله ﷻ به کافرو خلقو ته [داشان قتلولو اوهلاکولو دپاره تاسو پورې] لار ورنکړی.

## معارف اومسائل

**دیهودو دیوې ادبیٔ جواب:** ﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ﴾ په دې آیت کښې دیهودو دیو سنگین جرم اویوه زیاته ناکاره کلمه دابیان کړې شوه چه دغې کم بختودا اووئیل چه [معاذالله] الله تعالی نیستمن شو، واقعه داوه چه الله تعالی دمدینې یهود ډیر مالداره اوآسوده حال جوړ کړی وو، خو هر کله چه رسول الله ﷺ مدینې منورې ته تشریف راؤړو اودهغویٔ ﷺ بلنه ورته اورسیده نودغه ظالمانو په دغه وجه هغه قبوله نکړه چه قومی نذرانې اوشکرانې ئې دلاسه وتلې کومې به ئې چه دجاهلانه رسمونو رواجونو په ذریعه حاصلولې داسې مخالفت ئې چه د رسول الله ﷺ اوکړونو الله تعالی ددې په سزا کښې په دویٔ باندې دنیا تنگه کړه دویٔ خوار او نیستمن شو، په دې وجه ددغې ضدیانو خلقو دژبونه داسې خبرې راخرگندې شوې چه [معاذالله] په خدائی خزانه کښې کمې راغلو، یاالله تعالی کنجوس شو، ددې جواب کښې آیت داسې اوفرمائیل چه لاسونه خوهم ددغه ویونکو خلقو بند کړې شویدی اولعنت پر کړې شویدی چه په آخرت کښې ئې اثرعذاب دې اوپه دنیا کښې سپکاوې اوبیعزتی ده، دالله تعالی لاسونه خو تل دپاره خلاص اوآزاد دی، دهغه سخاوت اوخوانمردی، تل داسې وه اوتل ترتله به وی، خو ځنکه چه هغه پوره شته من اودفراخیٔ خاوند دې دغه شان حکیم هم دې، دغه خپل شته دخپل حکمت په تقاضاخرچ کوی، چرته چه مناسب اوگنړی په هغوفراخی راولی اوچرته چه مناسب اوگنړی په هغوتنگی راولی،

بیانې داسې اوفرمائیل چه تاسو ﷺ باندې دقرآنی بیاناتو دنازلیدو دفائدې اغستو په ځائې د دوئ کفراوانکارپرنورهم زیـاتیږی اوسـختیږی، اوالله تعـالی ددوئ خپـل منـځ کښې دفرقـو اختلاف په دې غرض پیدا کړې دې چه خپل منځ کښې سره انښتی وی اومسلمانان ئې دشرنه بچ وی، ددې کبله بـه مـسلمانانوسره په ښکاره دجنګ کولوحوصله نشی کولې اونه بـه ئې سازشونه چلیدې شی: ﴿كُلَّمَآ أَوْقَدُوا۟ نَارًا لِّلْحَرْبِ أَطْفَأَهَا ٱللَّهُ﴾ کښې دظاهری جنګ ناکامئ اوپه ﴿وَيَسْعَوْنَ فِى ٱلْأَرْضِ فَسَادًا﴾ کښې دپټو سازشونودناکامئ ذکردې،

**دالله تعالی په حکمونوباندې پوره عمل کول په دنیاکښې هم دبرکتونوسبب دی:** په آیت نمبر[۲۴] کښې یهودوتـه هدایت ورکړې شوچه دتورات اوانجیـل دهدایاتو اودانبیاؤ ﷺ دارشاداتونه دغې خلقو، هیڅ فائده پورته نکړه، ددنیالالچ په مخه واغستل،تول هرڅه ئې هیر کړل،نتیجه ئې دا شوه چه په دنیاکښې هم نیستمن شو ،لیکن که اوس هم دغه خلق دایمان اوخداترسئ طریقه اختیار کړی نوموږبه ئې ټول کړی ګناهونه معاف کړو ،او ورته به په نعمتونوسره به ډك باغونه ورکړو،

**دالله تعالی په حکمونوباندې پوره عمل په څه شان سره کیدې شي:** ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا۟ ٱلتَّوْرَىٰةَ﴾ په دې آیت کښې دهغـه قـسم ایمـان اوتقـوی څـه قـدرې تفـصیل بیـان شویدې چه پـه هغـې بانـدې د دنیـوی برکتونو ،آرام اوراحت وعده په تیرشوی آیت کښې کړې شویده،هغه تفصیل دادې چه تورات اوانجیل او ورپسې نازل شوی آخری کتاب [قرآن کریم] لره دې قایم کړی،دلتـه دعمـل کولوپـه ځائې داقامت [قائمولو] مراد دادې چه ددې په تعلیماتوباندې پوره پوره صحیح عمل هله وی چه په دې کښې څه کوتاهی،کمې اوزیـاتې نـه وی،ځنګه چه یوه ستنه [دآبادئ] هله درسته او صحیح بللې شی چه یوطرفته کږه نه وی بلکه بیخی نیغه وی،

حاصـل ئې داشوچه کـه نـن هم،دتورات،انجیـل اودقرآن کریم پـه هدایاتوباندې ایمان راوړی اوپه دې باندې دهدایاتومطابق پوره پوره عمل کوی،نه پکښې څه عملی کوتـاهی کوی اونه پکښې څه داسې زیاتې راولی چه دخپله خانه جوړ شوی څیزونولره دین اوګرځوی، نو د آخرت دهغـه نعمتونوبـه حقدارګرځی چه وعده ئې کړې شویده اوپـه دنیاکښې بـه هـم دروزئ دروازې پرداسې پرانستې شی چه دپاسه به پرروزی راوریږی اودلاندې نه بـه ورتـه راختکیږی، دلاندې نه په ظاهره مرادپه آسانئ سره په مخه درزق ورکول دی [تفسیر کبیر](۱).

پـه تیروشوؤآیتونوکښې صرف دآخرت دنعمتونووعده وه،په دې آیت کښې ددنیوی راحت اوآرام وعده هم دیرتفصیل سره بیان کړې شوه،ددې وجه داکیدې شی چه دیهودو دبد عملئ اودتورات او انجیل په احکاموکښې دبدلون راوستو ،تاویل کولواودمات ګډ کولو غټه وجه د دوئ دنیاپرستی اودمـال حرص وو ،اوداهغـه آفت ووچه قرآن کریم اودرسول الله ﷺ واضح نخښې ئې لیدل اوسره دهغې ئې په دې باندې دعمل کولونه بندکړی وو ،دوئ سره ویره داوه چه که موږ مسلمانان شو نو پـه حقیقت رانه مشروالی او سرداری ختمه شی ، اوس د دینی پیشوایئ په وجه کومې شکرانې چې ملاویږی هغـه بـه هم راباندې بندې شی،لهذا الله تعالی د دوئ دغه شان وسوسې لرې کولودپاره داوعده هم اوفرمائیله چه که دوئ په رشتیا

---

(۱) التفسیر الکبیر تحت هٰذه الآیة: ج٦، ص١١١

سره ایمان او عملِ صالح اختیار کړی نو په دنیوی راحت او دولت کښې به یې هم هیڅ کمې رانشی بلکه دوړاندې نه به زیات شی،

**دېوې شبهې جواب:** ددې تفصیل نه داهم معلومه شوه چه دا خاص وعده هغه یهودیانو سره کړې شوې وه چه د رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کښې موجود وو او د نبی کریم ﷺ مخاطب وو، هغوئ که دغه احکام منلې وې نو په دنیا کښې به هم ورته هرقسم راحت او نعمت ورکړې شوې وو، چنانچه هغه وخت کوم حضرات تو چه ایمان او نیک عمل اختیار کړو هغوئ ته دغه نعمتونه پوره ملاؤ شو، لکه نجاشی دحبشې بادشاه او عبدالله بن سلام شو. دې نه نه الازمیږی چه هرکله څوک دایمان او نیک عمل پابند شی نو په دنیا کښې به ورسره د روزئ فراخی ضروروی او که پابند نشی نو د روزئ تنگی به ورسره ضروروی، ولې چه دلته څه عامه قاعده یا ضابطه بیانول مقصود نه دی بلکه یو خاص ډلې او جماعت سره په خاصو حالاتو کښې وعده کړې شویده،

البته دا یو عامه قاعده او ضابطه ده چه دایمان او عملِ صالح په ادا کولو باندې دپاکیزه ژوند ورکولو وعده کړې شویده، چه د روزئ د فراخئ په صورت کښې هم کیدې شی، او د ظاهری تنگدستئ په صورت کښې هم، څنگه چه دانبیاؤ ﷺ او اولیاؤ ﷺ حالات په دې گواه دی چه هغوئ ته تل دپاره فراخ رزق نه دې ورکړې شوې البته پاکیزه ژوند تو لو ته ورکړې شویدې،

په آخر د آیت کښې دعدل او انصاف دتقاضا مطابق ئې داهم اوفرمائیل چه بیان کړې شوې بدعملی او کاره تلل دټولو یهودیانو کار نه دې بلکه ﴿مِنۡهُمۡ أُمَّةٞ مُّقۡتَصِدَةٞۖ﴾ [په دوئ کښې یوه ورکوتې ډله په سمه لار هم شته] اگرچه زیات پکښې بدکاره او بدعمله خلق دی، په سمه لار باندې کیدونکی هغه خلق دی چه ړومبې خو یهودیان یا نصرانیان وو، بیائې په قرآن کریم او په رسول کریم ﷺ باندې ایمان راؤړلو، په دې دواړو آیتونو کښې او ددې نه وړاندې په دوؤ رکوع گانو کښې په مخه دیهودو، نصاراؤ دکږوتلو، د گمراهئ، او د اسلام په خلاف دسازشونو کولو بیان راوړان وو،

**دتبلیغ تاکید او رسول الله ﷺ ته تسلی ورکول:** ددې انسانی فطرت مطابق طبعی طور سره دا کیدې شو. ① دمجبورئ او بې وسئ په صورت کښې کیدې شوه چه ددې په تقاضا سره ناامیده شوې وې او په تبلیغ او رسالت کښې ترڅه کمې راغلې وې او ② بل اثر دا هم کیدې شو چه دچا د مخالفت، دښمنئ او تکلیف پروائې نه لرلې او په تبلیغ او دپیغمبرئ په کار کښې په مخه لگیاوې چه په نتیجه کښې ورته ددښمنانو دلاسه تکلیفونه او مصیبتونه ور رسیدې، په دې وجه په دریم آیت کښې یو اړخ ته رسول الله ﷺ ته دا حکم ورکړې شو چه کوم څه چه په تاسو ﷺ باندې دالله تعالی داړخه نازلولې شی هغه ټول د یو مخه بغیر د څه ناراستئ نه خلقو ته رسوئ، ددې پروا مه کوئ چه څوک ئې بدگنړی یا بنه، مخالفت ئې کوی یا غاړه ورته اړدی. او بل اړخ ته ئې په دې زیری ورکولو سره ډاډ گیرنه ورکړه چه د احکامو په تبلیغ کښې دغه کفار، تاسو ﷺ ته هیڅ نقصان نشی در رسولې، الله تعالی به دې پخپله حفاظت کوی.

په دې آیت کښې په دې جمله ښه غور کول پکار دی چه: ﴿وَإِن لَّمۡ تَفۡعَلۡ فَمَا بَلَّغۡتَ رِسَالَتَهُۥۚ﴾ که یو حکم خداوندی دې هم خپل امت ته اونه رسولو نو دخپلې پیغمبرئ فرض دې ادا نکړو، هم دغه وجه وه چه رسول الله ﷺ خپل ټول عمر مبارک ددې فریضې په ادا کولو کښې ښه په مړانې او

قوت سره اولګولو اوحجة الوداع مشهوره خطبه چه په یو حیثیت سره د اسلام آئین او دستور وو او بل اړخ ته د بو رؤف اورحیم او د مور پلار نه د زیات مشفق پیغمبر ﷺ آخری وصیت وو.

**حجة الوداع په موقعه د رسول الله ﷺ بوه نصیحت:** د دغې خطبې په موقعه هغوئ ﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم یوې لوئې غونډې په وړاندې د ډیر ضروری هدایاتو ورکولو نه پس د دغې غونډې نه یو سوال او کړو: [أَلَا هَلْ بَلَّغْتُ] "ګورئ: ما درته دین در اورسولو ."] صحابه کرامو رضی الله عنهم اقرار او کړو چه ضرور دې ر اورسولو ، هغوئ ﷺ بیا او فرمائیل: تاسو په دې ګواه اوسئ او ورسره ئې دا هم او فرمائیل: [فَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ] یعنی موجوده خلق دې غیر موجوده خلقوته دا اورسوی[1] غائیبینو نه مراد د لته هغه خلق هم دی چه په هغه وخت دنیا کښې ژوندی وو خو دغلته موجود نه وو او هغه خلق ترهم مراد دی چه پیدا نه وو او تر قیامته پورې به پیدا کیږی، چنانچه د دې پیغام رسولو طریقه علم دین خورول وو چه صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله په ډیر کوشش سره په ښه طریقه سرته اورسول،

د دې اثر دا وو چه په عام و حالاتو کښې صحابه کرامو رضی الله عنهم، د رسول الله ﷺ ارشادات او کلمات د الله تعالی دیو درونډ امانت پشان محسوس کړل او د خپل وس مطابق ئې پوره پوره کوشش او کړو چه د رسول الله ﷺ د خلې مبارکې نه آوریدلې یوه جمله هم بل چاته د رسولو نه بغیر پاتې نشی ،که د څه خاص مجبورئ په وجه چا یو خاص حدیث خلقوته چرې نه وو رسولې نو د خپل مرګ نه لږ شان وړاندې درې څلور و کسانو ته یې هغه واورولو چه د غې امانت نه غاړه خلاصه کړی. چنانچه په صحیح بخاری کښې د یو حدیث په باره کښې همدغه شان واقعه بیان شویده: [اخبربه معاذ عند موته تأثماً][2] یعنی حضرت معاذ رضی الله عنه هغه حدیث څکه د غه خلقوته بیان کړو چه د هغې نه د نه بیانولو په وجه د د نیا نه ګناهګار لاړ نشی.

د آیت په دویمه جمله کښې ﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ کښې دا زیرې ورکړې شویدې چه د بیشمیره مخالفتونو باوجود به هم دښمن تاسو ته هیڅ څه نقصان در نکړې شی، په حدیث شریف کښې راغلی دی چه د دې آیت شریف د نازلیدو نه وړاندې به څو کسه صحابه کرام رضی الله عنهم د رسول الله ﷺ د حفاظت د پاره یعنی په سفر او غیر سفر کښې ورسره وو، چه دا آیت شریف نازل شو نو هغه ټول ئې رخصت کړل او ووې فرمائیل چه اوس د څوکیدارئ او د حفاظت ضرورت څکه پاتې نشو چه الله تعالی پخپله د حفاظت ذمه داری واخسته[3].

د حضرت حسن رضی الله عنه په روایت رسول الله ﷺ او فرمائیل: چه هر کله ماته د تبلیغ او پیغمبرئ احکام ملاؤ شو نو زړه کښې مې دا اندیښنه پیدا شوه چه هر اړخ نه به خلق زما تکذیب او مخالفت کوی خو چه دا آیت نازل شو نو زړه مې آرام او تسلئ شو [تفسیر کبیر][4]

چنانچه د دې آیت شریف د نازلیدو نه پس د هیچا څه وس بر نشو چه رسول الله ﷺ ته د تبلیغ او پیغمبرئ په لار کښې څه تکلیف اورسولې شی، په جنګ، جهاد وغیره کښې په عارضی ډول څه تکلیف ورسیدل دې سره منافی نشی کیدې.

---

[1] ) مسند أحمد رقم الحديث: ١٩٣٢ وشعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث: ٢٩٢١

[2] ) صحيح البخارى، كتاب العلم، باب من خص بالعلم قوماً دون قوم الخ: ج١، ص ٢٣

[3] ) جامع الترمذى، أبواب التفسير، باب من سورة المائدة: ج ٢، ص ١٣٥

[4] ) التفسير الكبير تحت هذه الآية: ج٦، ص ١١٣

قُلْ يَآهْلَ الْكِتٰبِ

| اووايه | اني اهل كتابو

| ......................اني پيغمبره ﷺ دوئ ته ښكاره اووايه

لَسْتُمْ عَلٰى شَىْءٍ حَتّٰى تُقِيْمُوا التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ

نه يئ تاسو | په هيڅ څيز باندې | ترهغې پورې | چې قائم كړئ تاسو | تورات | او انجيل

چې تاسو په هيڅ دين باندې نه يئ | ..............ترڅو چې په تورات او انجيل باندې عمل اونكړئ

وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَلَيَزِيْدَنَّ

اوهغه چې | نازل كړې شوې دې | تاسو ته | دطرفه درب ستاسو نه | اوخامخا به زياتوي

اوپه هغه كتاب عمل اونكړئ كوم چه تاسو ته ستاسو د رب دطرفه نازل شوې دې | او كوم كتاب

كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا

زياتوخلقو لره | ددوئ نه | هغه | چې نازل كړې شوې دې | تاته | دطرفه درب ستا نه | دجهته دسركشئ نه

چې تاته راغلې دې هغه به ددوئ ډيروكسانو دپاره د زياتې سركشئ او د لونې كفر ..................

وَّكُفْرًا ۚ فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

اود كفرنه | نومهٔ كوه افسوس | په قوم كافر باندې | بيشكه هغه كسان | چې ايمان ئې راوړې دې

سبب اوگرځي | نوته په دې كافرو باندې هيڅ كله افسوس مهٔ كوه | بيشكه څوك چې مؤمنان دي

وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِئُوْنَ وَالنَّصٰرٰى مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ

اوهغه كسان | چې يهوديان دي | اوصابيان دي | اوعيسايان دي | څوك چې | ايمان راوړي | په الله باندې

يايهوديان دي | يا صابيان دي | يا نصارئ دي | په دوئ كښې چې څوك هم په الله ﷻ

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝

اوپه ورځ دآخرت باندې | اوعمل ئې اوكړو نيك | نو نشته ويره | په هغوئ باندې | اونهٔ به هغوئ | غمژن كيږي

او په ورځ دآخرت ايمان راوړي | اونيک عمل كوي | نوپه هغوئ باندې نه څهٔ ويره شته | اونه به غمژن شي

**آسان ترجمه قرآن:** ته ووايه اې اهل كتابو! ترڅو چه تاسو په تورات او انجيل باندې او چه كوم ( كتاب ) ستاسو د پروردګار د طرف نه تاسو ته (اوس) رالیږلې شوې دې ددې پوره پابندې نه كوئ نو ستاسو به څه بنياد هم نه وي چه په هغې تاسو اودريږئ او ( اې پيغمبره ! ) كومه وحې چه د خپل پروردګار د طرف نه تا باندې نازله شوې ده هغه به دوی كښې په ډيرو كښې سر كشي او كفر كښې زياتوالې وكړي دې وجې نه ته په دې كافرانو باندې افسوس مه كوه. حقه خبره خو داده چه څوك هم خواه كه هغه مسلمانان وی كه يهوديان وی يا صابيان وی يا عيسايان ، په الله او په ورځ د آخرت باندې ايمان راوړی اونيك عمل وكړی نو نه به هغوی باندې څه ويره وی اونه به هغوی څه غم كښې مبتلا شي.

**دآيتونو ربط::** پورته اهل كتابو ته د اسلام ترغيب وركړې شوې وو. او دې پسې ددې ذكر دې چې دوئ د كومې موجوده طريقې دعوی كوله هغه ناكاره ، ناكافی او نجات وركوونكې نه ده،

بلکه نجات صرف په اسلام کښې دې . او دوئ بیا هم په کفر باندې کلك ولاړ دی ، او رسول کریم ﷺ ته تسلی ورکړې شوې ده ، او ددې په مینځ کښې یو خاص مناسبت سره د تبلیغ ذکر راغلې وو.

## خلاصه تفسير

﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتٰبِ لَسْتُمْ عَلٰى شَيْءٍ﴾ تاسو [یهودو اونصرانیانوته] اووائې چه انې اهل کتابو تاسو په هیڅ یولار باندې نه یئ [ولې چه په یو نامقبوله لار باندې کیدل دې لارې کیدو پشان دی] ﴿حَتّٰى تُقِيمُوا التَّوْرٰىةَ وَالْإِنْجِيلَ﴾ ترڅو چه دتورات او انجیل ﴿وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ﴾ اودهغه کتاب چه [اوس] تاسوته [درسول الله ﷺ په واسطه] ستاسو دپروردګار له طرفه رالیږلې شوې دے [یعنی دقران پاك هم] پوره پابندی اونکړئ [چه د هغه معنی ترغیب کول اوبرکتونه یئ پورته ذکر شوی دی] ﴿وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِنْهُمْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا﴾ او[انې محمد ﷺ هرکله چه ددوی اکثرخلق په ناکاره تعصب کښې انختی دې له دې وجې نه] ضرور [ده چه] کوم مضمون تاسوته ستاسو د پروردګار له طرفه رالیږلې شی هغه په دوی کښې د ډیرو د سرکشئ اودکفر دترقئ سبب جوړیږی [کیدیشی چه په دې سره تاسوته غم درد درسی خوچه معلومه شوه چه دغه خلق تعصب کوونکی دی] ﴿فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِينَ ۝﴾ نوتاسو ددغه کافرو خلقو [په دې حالت باندې] غم مه کوئ. ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالصّٰبِئُونَ وَالنَّصٰرٰى﴾ دا تحقیقی خبره ده چه مومنان یهودیان فرقه دصابئینواو نصرانیانو [په دې تولو کښې] ﴿مَنْ آمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا﴾ چه څوك یقین لری په الله ﷻ [یعنی دهغه په ذات او صفاتو] اوپه قیامت او کارګذاری ښه اوکړی [یعنی دشرعی قانون مطابق] ﴿فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝﴾ په دې سے خلقو [په آخرت کښې] نه به څه شان اندیښنه وې اونه به هغوی غمژن وی.

## معارف اومسائل

**اهل کتابوته دخدائی شریعت دتابعدارئ کولوهدایت:** په رومبی آیت کښې اهل کتابو یهودو او نصاراؤته دخدائی شریعت دتابعدارئ هدایت په دې عنوان سره اوکړې شوچه که تاسوذشرعی احکامو پابندی اونکړه نوتاسوهیڅ نه یئې مطلب دادې چه داسلامی شریعت دپابندئ نه بغیر، ستاسو ټول کمالات اوعملونه سراسر بیکاره دی، تاسوته الله تعالی یو فطری کمال دادرکړیدې چه دپیغمبرانو ﷺ اولادیئې، بله داچه دتورات اوانجیل علمی کمالات هم لرئ، تاسو کښې ګڼړ خلق درویش طبیعتی هم دی، مجاهدې، ریاضتونه هم کوی، خوددې ټولوڅیزونو وزن دالله تعالی په نزدپه دې موقوف دی چه تاسودخدائی شریعت تابعداری کوئ، دې نه سوا، نه څه نسبی فضیلت په کارراځی، نه علمی تحقیقات دنجات اوخلاصی ذریعه ګرځی اونه ستاسو مجاهدې اوریاضتونه [چیلې وغیره]،

په دې ارشادسره مسلمانانوته هم داهدایت ورکړې شوچه درویش جوړیدل، سلوك او طریقت اختیارول، مجاهدات اوریاضتونه کول، کشف اوالهام برسیره کیدل، ترهغې پورې دالله تعالی په نز، دفضیلت اوخلاصی څه ذریعه نشی جوړیدې ترڅوچه دشریعت پوره پابندی اونکړې شی،

په دې آیت کښې دخدائی شریعت دتابعدارئ دپاره د دریؤڅیزونودتابعدارئ هدایت کړې شویدې د ① تورات، ② انجیل چه ① یهودواو ② نصاراؤدپاره رومبې نازل کړې شوې وو

③ ﴿وَمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكُم مِّن رَّبِّكُمۡ﴾ [هغه څه چه د الله تعالى دا رخه تاسو ته را الیږلي شویدی]،
جمهور مفسرین رحمهم الله، صحابه کرام رضي الله عنهم او تابعین رحمهم الله اتفاق لري چه دي نه مراد قرآن کریم دي
کوم چه ټول امت دعوت ته سره دیهودو نصارا اؤ دنبی کریم ﷺ په واسطه لیږلي شوي دي،
لهذا د آیت معنی به داسې وی چه ترڅو پورې د تورات، انجیل او قرآن کریم په راؤړلی احکامو
باندې تاسو صحیح او پوره پوره عمل نه کوئ ستاسو هیڅ قسم نسبی یا علمی کمال به د الله
تعالی په نز مقبول او معتبر نه وی.

دلته په دې خبره ژور نظر اچول پکار دی چه په دې آیت کښې د تورات او انجیل پشان د
قرآن کریم د لندنوم اغستلو په ځائې دا اوږده جمله: ﴿وَمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكُم مِّن رَّبِّكُمۡ﴾ استعمالول څه
حکمت لري؟ کیدې شی چه دې کښې دهغې احادیثو مضمون ته اشاره وی په کومو کښې چه
رسول الله ﷺ داسې فرمائیلی دی: څنګه چه ماته دعلم او حکمت خزانه قرآن کریم راکړې
شو دغه شان نور علوم او معارف راکړې شویدی. چه په یو حیثیت سره ورته د قرآن کریم تشریح
هم وئیلې شی، دحدیث شریف الفاظ دا دی:

﴿الا انی اوتیت القرآن ومثله معه الا یوشك رجل شبعان علی اریکته یقول علیکم بهذا القرآن فما وجدتم فیه من حلال
فاحلوه وما وجدتم فیه من حرام فحرموه وان ما حرم رسول الله ﷺ کما حرم الله﴾ (١) خبر شئ چه ماته قرآن کریم
راکړې شوی دی او ددې سره ددې پشان نور علوم هم راکړې شوی دی په راتلونکې زمانه کښې
داسې کیدونکی دی او قریب ده چه څوک ډک خیټې آرام پسند دا اووائی چه تاسو لره یواځې
قرآن کافی دې. کوم چې په دې کښې حرام دی هغه حرام ګنړئ او چې په دې کښې حلال دی هغه
حلال او ګنړئ حالانکه حقیقت دادې چه کوم څیزلره د الله رسول ﷺ حرام ګرځولی دی هغه به
دغسې حرام وی څنګه چه د الله تعالی [د کلام په ذریعه] حرام کړې شوې دې.

**داحکامو دری قسمه:** او قرآن کریم پخپله هم ددې مضمون ګواه دې لکه فرمائی:

﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ ٱلۡهَوَىٰٓ ۞ إِنۡ هُوَ إِلَّا وَحۡيٞ يُوحَىٰ﴾ [رسول الله ﷺ هیڅ یوه خبره دځانه نه کوی بلکه
ټولې ورته د الله تعالی دا رخه دوحی په ډول نازلیږی] په کومو حالاتو کښې چه رسول الله ﷺ
یو اجتهادی او قیاسی خبره اوکړی او دوحی الهی په ذریعه دهغې په خلاف ورته څه هدایت
ورنکړې شی نو هغه هم په آخر کښې دوحی په حکم کښې شی.

خلاصه د کلام دا شوه چه د رسول الله ﷺ په ذریعه امت ته ورکړی احکام ① یا خو په قرآن کریم
په ښکاره بیان شویدی ② که په ښکاره نه وی نازل شوی نو دیو بل طرز په وحی سره ورته نازل
شوی دی ③ دریم هغه دی چه هغوئ ﷺ په خپل اجتهاد یا قیاس سره څه حکم ورکړې وی او
الله تعالی د هغې خلاف بل څه حکم نه وی نازل کړې نو هغه هم دوحی په حکم کښې شول، ددرې
واړه قسمونو تابعداری کول واجب دی او په ﴿وَمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكُم مِّن رَّبِّكُمۡ﴾ کښې داخل دی،

هرکله چه د قرآن کریم لندنوم پرېښوې شوا وددې په ځائې دا اوږده جمله راؤړې شوه،
﴿وَمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكُم مِّن رَّبِّكُمۡ﴾ دې سره دې مطلب ته هم اشاره کیدې شی چه دهغه ټولو احکامو
تابعداری کول لازم او واجب دی ① چه په ښکاره قرآن کریم کښې ذکر دی د ② بل طرز په وحی

(١) سنن ابی داود، کتاب السنة، باب فی لزوم السنة: ج ٢، ص ٣٣٢، وسنن ابن ماجه، مقدمة، باب تعظیم حدیث رسول الله
صلی الله علیه وسلم: ص ٣، ومشکوٰة، کتاب الایمان، باب الاعتصام بالکتاب والسنة: ج ١، ص ٢٩

سره ورته نازل شوی دی، یا ② هغوی ﷺ په خپل اجتهاد یا قیاس سره څه حکم ورکړې وی او الله تعالی دهغې په خلاف، بیا، بل څه حکم نه وی نازل کړې، په دې آیت کښې دغور کولو جوګه دویمه خبره داده چه پکښې یهودو او نصاراؤته دتورات، او انجیل او قرآن [درې واړو] په احکامو باندې دعمل کولو هدایت کړې شویدې، حالانکه په دې کښې یو دبل دپاره منسوخ ګرځوونکې دې انجیل دتورات څنې احکام منسوخ کړیدی او قرآن کریم دتورات او انجیل ډیر احکام منسوخ کړل نو بیا په درې واړو باندې عمل کول څنګه کیدې شی.

ددې جواب داشان ښکاره دې چه هر راتلونکې کتاب چې درومبی کتاب کوم احکام بدل کړی نو په دغه بدل کړو احکامو باندې عمل کول هم په دواړو کتابو نو باندې عمل کول شو، په منسوخ شوؤ احکامو باندې عمل کول د دواړو کتابونو د مقتضاء خلاف دی.

**رسول الله ﷺ ته پوتلې ورکول:** په آخر کښې د رسول الله ﷺ د تسلئ کولو په غرض او فرمائیلې شو چه اهل کتابو سره زمونږ د دې رعایت او مهربانئ باوجود په دې کښې به ډیر داسې خلق وی چه د الله تعالی دغې مهربانئ نه به فائده نه اخلی، بلکه دهغوئ کفر او عناد به نور هم زیات شی، لهذا تاسو دې سره مه غمژن کیږئ او په دغه خلقو مه ترسیږئ.

**څلورو قومونوته دایمان او عمل صالح ترغیب او په آخرت کښې دنجات وعده:** په دویم آیت کښې الله تعالی څلور قومونه مخاطب کړل، دایمان او عمل صالح ترغیب ئې ورکړو او په دې باندې ئې د آخرت دکامیابئ وعده ورسره اوکړه، رومبې ئې مسلمانان ذکر کړل لکه فرمائی: ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ دوئیم یهود، لکه فرمائی: ﴿وَالَّذِينَ هَادُوا﴾ دریم ئې صابئین ذکر کړل لکه فرمائی ﴿وَالصَّابِئُونَ﴾ او څلورم ئې نصاری ذکر کړل لکه فرمائی: [وَالنَّصَارَىٰ] ددې څخه درې فرقې او قومونه خومشهوردی چه ددنیا په اکثرو حصو کښې موندې شی لیکن د [صابئینو] یا [صابئه] په نوم باندې نن صباهیڅ قوم نه یادیږی لهذا ددې په باکلو کښې دعلمائې کرامو ﷺ او امامانو ﷺ اختلاف دې، چنانچه دتفسیر امام ابن کثیر ﷺ دحضرت قتاده ﷺ په حواله هم دا یو قول نقل کړیدې چه [صابئین] هغه خلق دی چه دفرښتو عبادت کوی او دقبلې نه بل اړخ ته مونځ کوی، دآسمانی کتاب [زبور] تلاوت کوی، کوم چه په حضرت داؤد ﷺ باندې نازل شوې وو [١]،

د قرآن پاک د سیاق او طرز د ظاهر نه ددې قول تائید کیږی چه د کومو څلورو آسمانی کتابونو بیان په قرآن کریم کښې راغلې دې دهغې تولو دمننوکو بیان هم پکښې راغلی دی.

چنانچه ددې مضمون یو آیت په سورت بقره کښې تقریبا په دې الفاظو سره داشان راغلې دې:

﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالنَّصَارَىٰ وَالصَّابِئِينَ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ﴾

په دې کښې دمقام په تقاضا سره څنې الفاظ وړاندې وروستو ذکر شویدی، دې نه سوا، نور هیڅ فرق پکښې نشته،

**دالله تعالی په نزد، داعتبار دارومدار په نیک عمل باندې دې::** ددې دواړو آیتونو دمضمون خلاصه داده چه زمونږ په دربار کښې نسبی، وطنی او قومی خصوصیت هیڅ شان نه لری، څوک چه پوره فرمانبرداری، اعتقاد او نیک عمل اختیار کړی، خواه که هغه درومبې نه هر څنګه چه وی، هغه

[١] تفسیر ابن کثیر، تفسیر سورة البقرة/ ٦٣ ج ١، ص ٢٨٦

زمونږ په نز مقبول او د هغه خدمت قابل قدر دي. او دا ښکاره خبره ده چه د قرآن کريم د نازليدو نه پس پوره فرمانبرداري په مسلمانانو باندې اړه لري، ولې چه په پخوانو آسماني کتابونو، تورات او انجيل کښې هم، ددې هدايات موجود دي او قرآن کريم خو سراسر هم دې د پاره نازل شويدې، لهذا د قرآن کريم د نازليدو او د رسول الله ﷺ د پيغمبر کيدو نه پس په قرآن کريم او په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړو نه بغير نه د تورات او انجيل تابعداري کول صحيح کيدې شي او نه د زبور . په دې وجه د آيت مطلب به داوي چه په دې ټولو قومونو کښې چه څوک مسلمانان شي، هغوئ به په آخرت کښې د نجات، خلاصې او ثواب حقدار ګرځي، په دې سره ددې خيال او سوال، جواب هم اوشو چه د دوئ تيرشوې کفر، تيرشوي ګناهونه، د اسلام او مسلمانانو خلاف شرارتونه يې کول د هغه به څه انجام وي ؟ معلومه شوه چې مخکښې ټول ګناهونه او ټول هرڅه به ئې په مسلمانيدو سره معاف کيږي، په آخرت کښې به د داسې خلقو هيڅ انديښنه پاتې نشي نه به ورته څه غم او خفګان راپيښيږي،

په مضمون باندې د نظر اچولو نه په ظاهره دا معلوميږي چه دلته د مسلمانانو ذکر کول په دې وجه نه وو پکار چه هغوئ خو هسې هم هغې مقام د ايمان او فرمانبردارۍ ته رسيدلي دي کوم چه دې آيت کښې غوښتلې شويدې بلکه دلته خو د هغه خلقو ذکر کول پکار وو کوم چه دې مقام ته رابللې شي، خو دې خاص طرز سره چه مسلمانان هم پکښې ذکر کړې شول يو خاص بلاغت . دا شان پيدا شو چه مثلاً يو بادشاه په څه موقعه داسې اووائي چه زمونږ قانون عام دې څوک موافق يا مخالف چه فرمانبرداري کوي هغه به د مهربانۍ او انعام حقدار وي، اوس او ګورئ چه موافق خو هسې هم فرمانبرداري کوي، په اصل کښې مخالف ته آوړول دي، ليکن د موافق په ذکر کولو کښې حکمت دا دې چه موافقو خلقو سره زمونږ مهرباني کول څه نسبي يا قومي خصوصيت په وجه نه دې بلکه دا د فرمانبردارۍ په صفت باندې دارومدار لري، که مخالف هم فرمانبرداري کوي هغه به هم د مهربانۍ او انعام حقدار وي، دغې ټولو قومونو ته په خطاب کولو سره چه کوم هدايت ورکړې شويدې د هغې درې برخې دي،

① ايمان بالله، ② باليوم الاخر، او ③ عمل صالح،

**په رسالت باندې د ايمان راوړو نه بغير نجات نشته:** ښکاره خبره ده چه په دې آيت کښې د ټولو ايمانياتو او اسلامي عقيدو تفصيلات بيانول منظور نه دي او نه ددې موقعه ده بلکه مقصود دا دې چه يو څو بنيادي عقيدو ذکر کولو سره ټولو اسلامي عقيدو ته اشاره اوکړې شي او د هغې اړخ ته بلنه ورکړې شي او دا هم ضروري خبره نه ده چه هر يو آيت کښې د ايمان په ذکر راتلو سره د هغې ټول تفصيلات بيان کړې شي، په دې وجه دلته اوس په رسول يا رسالت باندې د ايمان راوړلو په ښکاره ذکر کولو سره هغه چاته د هيڅ قسم شک شبهه ګنجائش نشته چه څوک معمولي پوهه، عقل، انصاف او هوښيارتيا لري، ولې چه پوره قرآن او ددې په سوونو آيتونو نه په رسالت باندې د ايمان راوړلو د تصريحاتو نه ډک دې، چنانچه هغې کښې داسې واضحه خبرې هم موجودې دي چه په رسول او د رسول ﷺ په ارشاداتو باندې د مکمل ايمان راوړلو نه بغير خلاصې نشته، او هيڅ يو ايمان او عمل بغير ددې نه مقبول او معتبر نه دې، ليکن د بې دينو خلقو يوې داسې ډلې چه په څه شان سره په قرآن کريم کښې خپل ناکاره نظريات ورننول غواړي دلته په دې بنا يو نوې نظريه قائمه کړه چه د قرآن او سنت د بيشميره تصريحاتو نه بيخي خلاف ده، چه نوې نظريه

ئي دا راوښكله چه كه هرڅوک په خپل خپل مذهب يهوديت، نصرانيت، هندوتوب، بت پرستئ باندې قائيم وي اوصرف په الله تعالى اود قيامت په ورځ ايمان راوړي اونيک كارونه كوي نو دآخرت دخلاصى حقدار كرځي، دآخرت د نجات دپاره په اسلام كښې داخليدل ضروري نه دي؟ [نعوذبالله]،

چاته چه الله تعالى دقرآن كريم دتلاوت اوپه دې باندې دصحيح ايمان توفيق وركړې دې، هغوئ دپاره دقرآني تصريحاتوپه بناددې مغالطې لرې كول دڅه لوئي علم اونظرحاجت نه لري، بلكه هغه كسان هم ددغې غلط خيال ناكاروالې په آسانئ سره معلومولې شي څوک چه دقرآن كريم صرف په اردوترجمه هم پوهيږي دمثال په ډول يوڅوآيتونه دادي:

قرآن كريم چه چرته ايمان مفصل بيان كړيدې دهغې الفاظ دسورت بقره په آخركښې دادي: ﴿كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓىِٕكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ ۟ لَا نُفَرِّقُ بَیْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ۟﴾ ټولو ايمان راوړوپه الله، دهغه په فرښتو، دهغه په كتابونو، اودهغه په رسولانو ﷺ په داسې شان چه دهغه درسولانوترمنځه څه قسم بيلتون نه راولو.

په دې آيت كښې يې دايمان تفصيلات بيان كړيدى په هغه كښې يې دا هم واضحه كړيدى چه په يويادشميرپه څو پيغمبرانوباندې ايمان راوړل نجات اوخلاصى دپاره بيخى كافى نه دى بلكه په ټولورسولانوباندې ايمان راوړل شرط دى كه چاصرف په يورسول ﷺ هم ايمان رانه ووړونودهغه ايمان، دالله تعالى په نزدمعتبراومقبول نه دې،

بل ځائې كښې فرمائى:
﴿اِنَّ الَّذِیْنَ یَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَیُرِیْدُوْنَ اَنْ یُّفَرِّقُوْا بَیْنَ اللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَیَقُوْلُوْنَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَّنَكْفُرُ بِبَعْضٍ ۙ وَّیُرِیْدُوْنَ اَنْ یَّتَّخِذُوْا بَیْنَ ذٰلِكَ سَبِیْلًا ۙ اُولٰٓىِٕكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ حَقًّا ۚ﴾ كوم خلق چه الله تعالى اودهغه درسولانو ﷺ نه انكاركوى اوداغواړى چه دالله تعالى اودهغه درسولانو ﷺ ترمنځه داسې بيلتون راولى چه په الله خوايمان راوړى خو كه د الله په رسولانو ايمان نه راوړې او هغه وائى چې موږ بعضې منو او بعضې نه منو او غواړى چه د كفراواسلام په منځ كښې څه لار راوباسى نوځان پوهه كړئ چه همدغه خلق په اصل كښې كافران دى،

رسول الله ﷺ فرمائيلى دى: ﴿لوكان موسى حيا لما وسعه إلا اتباعي﴾(۱)، كه بالفرض حضرت موسى ﷺ ژوندې وې نوهغه لره به زمادا تابعدارئ كولونه سوابله څه لاره نه وه،

اوس كه څوک داسې اووائى چه خپل خپل مذهب باندې روانَ خلق كه په رسول الله ﷺ باندې ايمان نه راوړى اواسلام قبول نكړى نوبياهم جنت مونډې شى اوپه آخرت كښې كامياب كيدې شى، نودابه دقرآن كريم ددغه ذكرشوؤآيتونونه په ښكاره مخالفت كول وى،

ددې نه علاوه كه هرمذهب اوملت داسې شى چه په هغې باندې هره زمانه كښې عمل كول دآخرت دخلاصئ اوكاميابئ ذريعه جوړيدې شى نوبيادخاتم الانبياء ﷺ مبعوث كيدل اوقرآن كريم نازليدل بې مطلبه ثابتيږى، اودغه شان ديوشريعت نه پس، دبل شريعت ليږل عبث جوړيږى، كه داشان كيدې شوې نودټولونه رومبى رسول به چه كوم شريعت راوړې ووهغه به كافى وو، دنورو رسولانو ﷺ كتابونو اوشريعتونوليږلو هيڅ ضرورت نه وو، زيات نه زيات به

۱) كنز العمال رقم الحديث: ۱۰۱۰

داسي خلق موجوديدل كافي وو چه ددغه شريعت اوكتاب باقي لرلواو په هغې باندې پخپله دعمل كولواوبل لره په دې باندې عمل ته درارولوانتظام ئې كولې چه عمومادهرامت دعلماؤ فريضه پاتې شويده اوپه دې صورت كښې به دقرآن كريم دافرمان ﴿لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا﴾ امونږه، په تاسو كښې هرامت دپاره يوخاص شريعت اوخاص لارجوړه كړيده] ټول به بې مطلبه ثابت شوى وو،

اوبيابه داڅنګه رواشوى وو، چه رسول الله ﷺ هغه خلقو، يهودو، نصاراؤاونورو منكرانوسره، تبليغى جهادبلكه دتورې نيزې جهادكړې وې، كوموچه په هغوئ ﷺ اوپه قرآن كريم باندې ايمان نه وړاوړې. كه دانسان دمؤمن جوړيدلو، يادالله تعالى په نزددمقبول كيدلودپاره يواځې په الله تعالى اوپه ورځ دآخرت باندې ايمان راوړل كافي وې نوبيابه ابليس په څه جرم كښې رټلې شوې ګرځيدو؟ آيا، هغه په الله تعالى ايمان نه لرلو؟ آياهغه دآخرت په ورځ دايمان راوړلونه منكروو؟ هغه خودغصې په حالت كښې هم [إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ] وئيلوسره، په آخرت باندې دايمان راوړلواقراركړيدې. حقيقت دادې چې دا مغالطه صرف ددې نظريې پيداوار دې چې مذهب رشته دارو ته په تحفه كښې وركولې شى اوددې په ذريعه نوروقومونو سره رابطې قائيمولې شى، حالانكه قرآن كريم ښه په واضحه بيان كړيدى چه غيرمسلموسره همدردى، احسان، سلوك اومړانه هرڅه كول پكاردي خوچه دمذهب دحدودوپوره حفاظت اوددې دسرحداتوهم پوره نګرانې اوڅوكيدارى كولې شى،

دقرآن كريم په تيرشوى آيت كښې بالفرض، كه دايمان بالرسول ذكربالكل نه وې نود قرآن كريم هغه نورآيتونه كافي وو په كوموكښې چه دايمان بالرسول پوره تاكيدشوې دې اود څنوحواله هم ورته وركړې شويدې، بياهم كه غوراوكړې شى نوپخپله دې آيت كښې هم په رسول باندې دايمان راوړلو واضح ارشادپه دې شان موجود دې چه دقرآن كريم په اصطلاح كښې په الله تعالى باندې ايمان راوړل هغه معتبردى چه پكښې دالله تعالى په ښودلو شوؤ ټولوڅيزونو ايمان راوړل وى، چنانچه قرآن كريم خپله دا اصطلاح په دې الفاظو كښې واضحه كړيده: ﴿فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوا﴾ [يعنى ايمان بالله به صرف هغه معتبروى څنګه چه صحابه كرامو ﷡ راوړې وو] ښكاره خبره ده چه د دوئ ﷡ دايمان دټولونه لوئې ركن، په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړل وو، لهذاد ﴿مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ﴾ په الفاظو كښې پخپله، په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړل داخل دى.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَقَدْ | أَخَذْنَا | مِيثَاقَ | بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ | وَأَرْسَلْنَآ | إِلَيْهِمْ | رُسُلًا ۖ |
| په تحقيق سره | وا اخستله مونږه | پخه وعده | دبني اسرئيلونه | او اوليږل مونږه | هغوئ ته | دير رسولان |
| مونږ دبني اسرائيلونه پخه وعده اخستې وه | ...........اودير پيغبران مووړته ليږلي وؤ | | | | | |
| كُلَّمَا | جَآءَهُمْ | رَسُولٌۢ | بِمَا | لَا تَهْوَىٰٓ | أَنفُسُهُمْ | فَرِيقًا |
| هر كله چي به | راغي هغوئ ته | يو رسول | دهغه حكم سره | چي نه خوښوؤ | نفسونو دهغوئ | ځيني ئې |
| كله چي به يو پيغمبر دوئ ته دالله ﷻ داسې احكام راوړل | چي هغه به ددوئ دخواهشاتو خلاف وؤ | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَذَّبُوا | وَفَرِيقًا | يَقْتُلُونَ ۝ | وَحَسِبُوٓا | أَلَّا | تَكُونَ | فِتْنَةٌ |
| دروغ اوګڼړل | اوخینی به نې | وژل | اوګمان نې اوکړو | چې نهٔ | به وی | هیڅ فتنه |

نوخوک به نې دروغژن ګڼړل او خوک به نې قتل کړل او ددوئ دا ګمان وو چې دوئ ته به هیڅ سزا نشی ورکولې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَعَمُوا | وَصَمُّوا | ثُمَّ | تَابَ اللَّهُ | عَلَيْهِمْ | ثُمَّ | عَمُوا |
| نو ړاندهٔ شو | اوکاڼړهٔ شو | بیا | رجوع اوکړه الله | په هغوئ | خوبیا | ړاندهٔ شو هغوئ |

نوخانونه نې نور هم ړاندهٔ کاڼړه کړل ...........بیا الله ﷻ دوئ معاف کړل خوبیاهم په دوئ کښې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَصَمُّوا | كَثِيرٌ | مِّنْهُمْ | وَاللَّهُ | بَصِيرٌ | بِمَا | يَعْمَلُونَ ۝ |
| اوکاڼړهٔ شو | ډیر | د هغوئ نه | اوالله | الیدونکې دې | دهغه کارونو | چې کوی نې دوئ |

ډیروکسانو خانونه ړاندهٔ کاڼړهٔ کړل .........اوالله ﷻ ددوئ کارونه وینی ګوری

**آسان ترجمه قرآن:** مونږ د بني اسراءيلو نه وعده اخستې وه، او دوی ته مو رسولان لیږلی وو چه کله به یو پیغمبر دوی ته څه خبره راوړه چه هغې لره به ددوی زړونو نه خوښوله نو څه (پیغمبران) ئې دروغژن کړل او څه به ئې وژل. او دوی دا ګمان وکړو چه څه عذاب به نه وي، دې وجې نه دوی کاڼړه او ړانده شو بیا الله د دوی توبه قبوله کړه نو دوی کښې بیا ډیر کاڼړه او ړانده شو، او الله د دوی اعمال ښه ګوری.

## خلاصه تفسير

﴿ لَقَدْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَاءِيلَ ﴾ مونږ دبنی اسرائیلو نه [په تورات کښې دټولوپیغمبرانو دتصدیق او فرمانبرداریٔ کولو] لوظ واخستو او [ددغې لوظ یادولو دپاره] ﴿ وَأَرْسَلْنَا إِلَيْهِمْ رُسُلًا ﴾ مونږ دوی ته ډیر پیغمبران اولیږل [لیکن ددوی داحالت وو] ﴿ كُلَّمَا جَاءَهُمْ رَسُولٌ بِمَا لَا تَهْوَىٰ أَنفُسُهُمْ ﴾ چه هرکله به دوی ته یو پیغمبرداسې حکم راوړو چه هغې لره ددوی زړونونه غوښتلو[څکه ئې دهغوی مخالفت اوکړو] ﴿ فَرِيقًا كَذَّبُوا وَفَرِيقًا يَقْتُلُونَ ۝ ﴾ نو بعضو لره [خو ئې] دروغژن اوبلل او بعضو لره به یې [بیدریغه] وژل او [تل دپاره په هر شرارت باندې چه دڅو ورځو ډیل په سزا کښې ورکړې شو] ﴿ وَحَسِبُوا أَلَّا تَكُونَ فِتْنَةٌ فَعَمُوا وَصَمُّوا ﴾ همدغه ګمان ئې کوؤ چه هیڅ سزا به نه وی دے ګمان کولو سره نورهم ړانده او کاڼړه [یعنی ددوی پښان] شو [چه د انبیاء ﷺ د ربښتینولیٔ دلیلونو نه یې هم اونه کتل اونه یې دهغوی کلام واوریدو] ﴿ ثُمَّ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ ﴾ بیا [څه موده پس] الله ﷻ په دوی [باندې رحمت سره] توجه اوکړه [چه بل څوك پغمبر ﷺ ئې ورته راولیږلو چه اوس خوپه لار راشی مګر] ﴿ ثُمَّ عَمُوا وَصَمُّوا كَثِيرٌ مِّنْهُمْ ﴾ بیا هم [هغه شان] ړانده اوکاڼړه پاتې شول [یعنی ټول خو نه مګر] پدویٔ کښې ډیر ﴿ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ۝ ﴾ اوالله ﷻ ددوی [دغې] عملونو لره لیدونکې دې [یعنی ددوی ګمان غلط وو.چنانچه دوی ته به وخت په وخت سزا هم ورکولې شوه.مګر ددوی همدغه دستور پاتې شو تر دې چې اوس ئې تاسو لره هم دغه شان دروغ ګڼړلو او خلاف کولو معامله اوکړه].

## معارف اومسائل

**دبنی اسرائیلووعده ماتول :** ﴿ كُلَّمَا جَاءَهُمْ رَسُولٌ بِمَا لَا تَهْوَىٰ أَنفُسُهُمْ ﴾ یعنی کله به چه بنی اسرآئیلوته د دویٔ رسول ﷺ څه حکم راؤړلوچه د دویٔ دخوښې به نه وو، نولوظ او وعده به ئې ماته

کړو او خدائې سره به ئې غداری کوله، د الله تعالی څه پیغمبرانو ﷺ لره ئې دروغژن او بلل، څوک ئې قتل کړل داخود دوئ د [ایمان بالله] او [عمل صالح] حال وو د [ایمان بالیوم الاخر] اندازه ئې ددې نه اوکړئ چه دومره سخت ظلمونه او باغیانه جرمونه ئې اوکړل او بیا هم بې فکره پاتې کیدل، لکه چې ددغې حرکاتو به څه سزا دوئ ته نه ملاویږي او ددې خرابې نتیجې به کله ددوئ مخ ته راځي، چنانچه دداسې خیال کولو په وجه دخدائي نخښو او خدائي کلام نه بیخې ړانده او کاڼه پاتې شو او ډیرې ناکړدې ئې اوکړې، تردې چه ځنې انبیاء ﷺ ئې قتل کړل ځنې ئې قیدل کړل، آخر الله تعالی په دوئ باندې [بخت نصر] مسلط کړو، ډیره موده پس دفارس ځنې بادشاهانو، دوئ لره د [بخت نصر] دذلت او شرمندګئ دقیدنه خلاص کړل او بابل نه ئې بیت المقدس ته واپس کړل، دغه وخت خلقو توبه اوکړه او دخپل حال سمولو ته ئې مخه شوه، الله تعالی ئې توبه قبوله کړه لیکن څه زمانه پس ئې بیا هغه شرارتونه راشروع کړل او ځان ئې بیخې ړوند کوڼ کولو سره دحضرت زکریا ؑ او حضرت یحیی ؑ دقتل کولو جرات ئې اوکړو او د حضرت عیسی ؑ قتلولو ته هم تیار شو [فوائد عثماني]

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ۭ

یقینا کفر اوکړو | هغه کسانو | چې وې وئیل | چې بیشکه الله | هم دغه | مسیح | خوئ | دمریم دې

بیشکه هغه کسان پاخه کافران شوی دی چې وائي بیشکه هم دا مسیح بن مریم خدائې دې

وَقَالَ الْمَسِيْحُ يٰبَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّيْ

او حال دا چې وئیلی وو مسیح | چې ائې بنی اسرائیلو | بندګی کوئ | دالله | چې رب زما دې

او حال دادې چې مسیح ؑ خو دوئ ته وئیلي وو | چې دالله ﷻ عبادت کوئ | چې زما هم رب دې

وَرَبَّكُمْ ۭ اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ

او رب ستاسو دې | بیشکه | هغه څوک | چې شریك جوړوی | دالله سره | نو حرام کړو الله

او ستاسو هم رب دې | څوک چې الله ﷻ سره شریک جوړ کړی | نو الله ﷻ پرې

عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَاْوٰىهُ النَّارُ ۭ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ۝

په هغه باندې | جنت | او ځاې دهغه | وور دې | او نشته دې | دپاره دظالمانو | هیڅوك مددګار

جنت حرام کړې دې | او دهغوئ ځاې به دوزخ وی | او د ظالمانو دپاره به هیڅوک مددګار نه وی

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ۘ وَمَا

یقینا | چې کفر اوکړو | هغه کسانو | چې وئیل ئې | بیشکه الله | دریم دې | ددریو نه | او حال دا چې نشته

هغه کسان په یقین سره کافران شول | چې هغوئ دا او وئیل چې الله ﷻ دریو کښې یو دې | حال دادې چې

مِنْ اِلٰهٍ اِلَّآ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۭ وَاِنْ لَّمْ يَنْتَهُوْا عَمَّا يَقُوْلُوْنَ

هیڅوك لائق دعبادت | مګر | معبود | یو | او که چرې | نه شو منع دوئ | دهغه خبرو نه | چې دوئ ئې وائی

دالله ﷻ نه بغیر بل څوک معبود نشته | او که دوئ ددې خپلو وینا ګانو نه منع نه شول

لَيَمَسَّنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ اَفَلَا

نو خامخا به رسيږي | هغه کسانو ته | چي کفر ئې کړې دې | ددوئ نه | عذاب | اردردناک | آيا

نوچا چي به دوئ کښې کفر اختيار کړې وي | هغوئ ته به دردناک عذاب اورسيږي |............آيا

يَتُوْبُوْنَ اِلَى اللّٰهِ وَيَسْتَغْفِرُوْنَهٗ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ مَا

نونهٔ اوباسي توبه دوئ | الله ته | اومعافي نهٔ غواړي دهغه نه | اوالله | ښبونکي | مهربان دي | نه دي

دوئ الله ﷻ ته توبه نهٔ اوباسي | اونهٔ ترې نه دخپلو گناهونو بخښنه غواړي | اوالله ﷻ ښبونکي او مهربان دي

الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ

مسيح | اخوني | دمريم | مگر يو رسول دې | تير شوي دی | مخکښې دهغه نه | نور ډير رسولان

دحضرت مريم خونې مسيح ددې نه سوا هيڅ نه دې چي دالله رسول دې | دهغه نه مخکښې ډير پيغمبران تيرشوي دی

وَاُمُّهٗ صِدِّيْقَةٌ ؕ كَانَا يَاْكُلٰنِ الطَّعَامَ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ

اومور دهغه | رښتيني ښخه وه | وؤ دواړه | چي خوړوبه ئې | طعام | اوگوره | څرنگې

اودهغه مور ډيره رښتيني ښخه وه | اودواړو به دنورو خلقو پشان خوراک کولو | اوگوره چي

نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ۝ قُلْ

بيانوؤ مونږه | دوئ ته | نښې | بيااوگوره | چي کوم خوا | دوی اړولی روان دی | اووايه

مونږدوئ ته څنگه ښکاره نښې بيانوؤ | خوبيااوگوره چي دوئ کوم طرفته اړولی شوي روان دی | اوته اوؤايه

اَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ؕ

آيا تاسو عبادت کوئ | ماسوا دالله نه | دهغه چا | چي اختيار نهٔ لرى | دپاره ستاسو | د ضرر | اونهٔ دنفعې

آيا د الله نه سوا د هغه چا عبادت کوئ چي نهٔ تاسو ته نقصان درکولې شي اونهٔ فائده

وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝

اوالله | هم هغه | ښه اوريدونکي | ښه پوهه دي |

اوالله ﷻ هرڅه آوري او په هرڅه پوهه دي

**آسان ترجمه قرآن:** هغه خلق يقيناً کافران شوي دي چه هغوی وئيلي وو چه الله مسيح ابن مريم دي حال دا چه مسيح خو دا وئيلي وو چه "اې بني اسرائيلو ! دالله عبادت کوئ چه څما هم رب دې اوستاسو هم رب دې يقين وکړئ چه څوک د الله سره بل څوک شريک کړي الله په هغه باندې جنت حرام کړې دې ، او د هغه ځائې جهنم دې ، او کوم خلق چه (دا ) ظلم کوي هغوی ته به څوک هم مددگار ملاؤ نه شي. او هغه خلق هم يقيناً کافران شوي دي چه هغوی دا وئيلي دي چه " الله دريم د دريو نه دې حال دا چه دالله نه سوا بل خدائی نشته او که چرې دا خلق دې خبرې نه واپس نه شول نو دوی کښې چه کومو خلقو ( داسې ) کفر کړې دې ، دوی لره به دردناک عذاب راونيسي. آيا بيا به هم دا خلق د معافي دپاره الله طرف ته رجوع نه کوي او د هغه نه به معافي نه غواړي؟ حال دا چه الله ډير بخونکې او ډير مهربان دې. مسيح ابن مريم خو يو رسول وو ، ددې نه زيات څه نه وو. دده نه مخکښې (هم) ډير رسولان تير شوي دي ، او

دده مور صديقه وه. دې دواړو خوراك خوړلو وګوره مونږ دوی ته څنګه صفا صفا نښې واضح کوو ا بيا هم وګوره دا خلق کوم طرف ته اړولې شي ا (اې پيغمبره ا) دوی ته ووايه آيا تاسو د الله نه علاوه د داسې مخلوق عبادت کوئ چه نه تاسو ته نقصان رسولې شي او نه فايده . حال دا چه الله هره خبره آوري او په هر څه پوهيږي ؟"

## خلاصه تفسير

﴿ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ﴾ بيشکه هغه خلق کافران شو چاچه دا اووئيل چه الله ﷻ بعينه مسيح بن مريم دے [يعنی دواړه يو دی] ﴿وَقَالَ الْمَسِيْحُ يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبَّكُمْ ﴾ حالانکه [حضرت] مسيح ﷺ پخپله فرمائيلی وو چه ائې بنی اسرائيلو تاسو دالله ﷻ عبادت کونی چه زما هم پروردګار دې او ستاسو هم پروردګار دے [په دې وينا کښې ئے ددې په ډاګه اقرار دې چې زه پالل‌ے شوې اوبنده يم بيا ورته " اله" او معبود وئيل هغه مثل دې چې مدعی سست ګواه چست] ﴿ اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ ﴾ بيشکه څوك چه الله ﷻ سره [په خدائې يا دخدائې په خصوصياتو کښې] چالره شريك اوګرځوی نو په هغه به الله ﷻ جنت حرام کړی ﴿ وَمَاْوٰىهُ النَّارُ ﴾ اودهغه ځائې [تل دپاره] دوزخ دے ﴿ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴾ اودداسې ظالمانو به څوك مددګار نه وی [چه دوزخ نه يئ خلاص کړی او جنت ته يئ اورسوی او څنګه چه ديوالې عقيده لرل کفر دے دغه شان د درے والی عقيده لرل هم کفر دے پس] ﴿ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ﴾ بيشکه هغه خلق هم کافران دی چه وائی چه الله ﷻ د دريو [معبودانو] نه يو دے ﴿ وَمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّآ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ﴾ حالانکه سوا ديو [حق] معبود نه بل هيڅوك [حق] معبود نشته دې [نه دوه اونه درے هرکله چه دا عقيده کفر دے نو په ﴿انه من يشرك بالله﴾ کښې بيان کړې شوې سزا دې دپاره هم ده] ﴿وَاِنْ لَّمْ يَنْتَهُوْا عَمَّا يَقُوْلُوْنَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ اوکه دا [د دواړه عقيدو] خلق کافر پاتې شی په هغوی به [آخرت کښې] دردناك عذاب واقع کيږی ﴿ اَفَلَا يَتُوْبُوْنَ اِلَى اللّٰهِ وَيَسْتَغْفِرُوْنَهٗ ﴾ آيا [دتوحيد او وعيد ددې مضامينو په آوريدو] بيا هم [دخپلو دغه عقيدو او خبرو نه] دالله ﷻ په مخکښې توبه نه کوی اودهغه نه معافی نه غواړی؟ ﴿وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ حالانکه الله ﷻ [کله چه ورته څوك توبه کوی نو هغه] ډير بخښوونکې او لوئې رحم کوونکې دې. ﴿مَا الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ اِلَّا رَسُوْلٌ﴾ مسيح ابن مريم [پخپله خدائې يا دخدائې جز] هيڅ نه دې صرف يو پيغمبر دے ﴿قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ﴾ چه دهغه [نه مخکښې نور پيغمبران هم] تير شوی دی [چه هغه لره عيسان، خدايان نه منی پس که پيغمبری يا د عادت خلاف کيدل د خدائې دليل وی نو ټولو لره اله[خدائې]منل پکاردی اوکه دخدائې دليل نه وی نومسيح ﷺ ته دې ولې اله اووئيلې شی. غرض دا چه که نورو ته اله نه وائې نو عيسی ﷺ ته هم مه وائې ] او [داشان] ﴿ وَاُمُّهٗ صِدِّيْقَةٌ ﴾ دهغه والده [هم اله ياد اله جز نه ده بلکه هغه] يو وليه يعنی نيکه بی بی ده [څنګه چه نورے بيبيانے وليانے تيرے شوی دی اوچه دواړه خدايان نه دی او ددې يو آسان دليل دادې چه]﴿ كَانَا يَاْكُلٰنِ الطَّعَامَ ﴾ دواړو [حضراتو] به خوراك خوړلو [اوڅوك چه خوراك کوی نوهغه ورته حاجت لری او خوراك کول دمادی ځيزونو خصوصيت دې او حاجت لرل اوماده کيدل د ممکن الوجود خاصه ده دکوم چه

وجود موجودیدل ضروري نه وي اوهغه څيز چه وجود ئےضروري نه وي هغه خدائي نشي کیدلي] ﴿ اُنْظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ۝ ﴾ اوګوره [کنه] مونږ په څه شان صفا صفا دلیلونه دوی ته بیانوو بیا اوګوره دوی التـه کوم خوا روران دی ﴿ قُلْ اَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ تاسو[دوی ته]اوفرمائي آیا تاسو دخدائي نه سوا دداسي [مخلوق] عبادت کوئی ﴿ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ۭ ﴾ چه نه تاسوته دڅه ضرر درسولو اختیار لری اونه دنفعے رسولو[اختیارلری او عاجز کیدل خدائي توب سره خلاف دي] ﴿ وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ۝ ﴾ حالانکه الله ﷻ ټول آوری پیژنی [بیا هم دخدائي نه نه ویریږی او دخپل کفر او شرک نه نه آوری].

## معارف اومسائل

قوله تعالى: ﴿ اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ۘ ﴾ ① یعنی حضرت مسیح ﷺ، ② روح القدس او③ الله، یا① مسیح ﷺ، ② مریم، او③ الله، دري واړه خدایان دی، [العیاذبالله] په دوئ کښي یوحصه دارالله شو، بیاهغه دري یو، اوهغه یودري دی، دعیسایانو عامه عقیده داده چنانچه دعقل اوهدایت نه خلاف دي عقیدي لره په ګډو وډو اوکږکیچنو عبارتونو او الفاظو کښي اداکوی اوکله چه دچاپه پوهه کښي نه راځي نودي ته دعقل نه پورته حقیقت وائی، [فوائد عثماني رحمه الله]،

**دحضرت مسیح ﷺ دخدائي تردید:** ﴿ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۭ ﴾ یعنی څنګه چه نورپیغمبران ﷺ دنیا ته راغلل اوڅه موده پس ترلاړل اوهمیشه ژوندی پاتي نشو څنګه چه د[اله] شان وی، دغه شان حضرت مسیح ﷺ [چه دهغوئ پشان انسان دي] همیشه دپاره ژوندي نشي پاتي کیدي په دي وجه هغه ﷺ [اله] اومعبودنشي کیدي،

لږشان غور کولو سره معلومیږی چه دخوراک څکاک محتاج بنده ددنیادهر شی محتاج وی، یعنی زمکي، هوا، اوبو، نمر اونورو څاروو ته حاجت لری، که خیال اوکړئ چه خیټي ته خوراک څکاک ورځی اوبیاهضمیږی، نوپه واسطي سره یابی دڅه واسطي نه ئي څومره څیزونو ته ضرورت پیښیږی، دخوراک څکاک نه چه کوم اثرات اونتیجي پیداکیږی دهغي سلسله ترکومي رسیږی، د حاجتمندئ او ضرور تمندئ دي اوږدلمني لرئ ته چه خیال اوکړونود استدلال په شکل کښي دحضرت مسیح ﷺ دخدائي باطل ګرځول په دي شان سره کولي شو چه هرکله حضرت مسیح ﷺ اوحضرت مریم دخوراک څکاک دضروریاتونه اوزګاراو خلاص نه وو ولي چه دغسي لیدلي شوی وواوپه تواترسره ثابته ده، نوداسي کسان چه دخوراک څکاک ضرورت لری، هغوئ ددنیاد یو څیزنه بي حاجته کیدي نشی، ښه نواوس تاسو اووایئ، چه هرکله یوذات دټولو انسانانو پشان دخپلي بقادپاره دعالم اسباب نه بي حاجته کیدي نشی هغه به څنګه خدائي جوړشی؟ دایوداسي قوی اوواضح دلیل دي چه عالم او جاهل پرپه یوشان اویورنګ پوهیږی، مطلب داشو چه خوراک څکاک کول خدائي کیدوسره هیڅ قسم سمون نه خوری اګر چي خوراک څکاک نه کول هم دخدائي دلیل څکه نشی جوړیدي چه بیاخوبه [معاذالله] ټولي فرښتي خدایاني وي [فوائد عثماني]

**بی بی مریم پیغمبره وه که ولیه وه:** په دي خبره کښي اختلاف دي چه بی بی مریم پیغمبره وه که ولیه وه، خوهرکله چه په آیت کښي ورته، صدیقه] اووئیلي شوه، نوښکاره اشاره تردا معلومه شوه چه ولیه وه پیغمبره نه وه څکه چه دي سره دهغي تعریف کړي شویدي اوپه داسي مقام

د تولونه اعلی مقام د بنده ذکر کولې شی، که د اپیغمبره وې نو دلته به ورته [نبیه] وئیلې شوی وو، معلومه شوه چه ورته [صدیقه] وئیل ددې دلیل دې چه ولیه وه پیغمبره نه وه [روح المعانی، تلخیص سره] (١).

د جمهور امت تحقیق دادې چه په زنانو کښې چرته نبوت ځکه نه دې راغلې چه قرآن کریم فرمائی ﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَا مِن قَبۡلِكَ إِلَّا رِجَالٗا نُّوحِيٓ إِلَيۡهِم مِّنۡ أَهۡلِ ٱلۡقُرَىٰٓۗ﴾ [فوائد عثمانی، سورة یوسف رکوع: ٢].

| |
|---|
| قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لَا تَغۡلُواْ |
| ورته اووایه \| ائې اهل کتابو \| مه اوړئ د حدنه |
| ورته اووایه چې ائې اهل کتاب تاسو ......... \| |
| فِي دِينِكُمۡ غَيۡرَ ٱلۡحَقِّ وَلَا تَتَّبِعُوٓاْ أَهۡوَآءَ قَوۡمٖ قَدۡ ضَلُّواْ |
| په دین خپل کښې \| په ناحقه \| او مه کوئ پیروی \| د خواهشاتو \| د قوم \| چې بې لارې شوی دی |
| د دین په مسئلو کښې هیڅ بیخه زیاتې مه کوئ \| او دهغه چاد خواهشاتو تابعداری مکوئ \| چې د وړاندې نه گمراه دی |
| مِن قَبۡلُ وَأَضَلُّواْ كَثِيرٗا وَضَلُّواْ عَن سَوَآءِ ٱلسَّبِيلِ |
| د مخکښې نه \| او بې لارې کړې ئې دی \| نور ډیر خلق \| او گمراه شو \| د نیغې لارې نه |
| او نور ډیر خلق ئې بې لارې کړی دی \| او بخپله هم د سمې لارې نه بې لارې شوی دی |
| لُعِنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنۢ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ عَلَىٰ لِسَانِ |
| لعنت اووئیلې شو \| په هغه کسانو \| چې د کفر لارئې خپله کړه \| د بنی اسرائیلو نه \| په ژبه |
| د بنی اسرائیلو په هغه کسانو باندې چې کفر یئ کړې وو لعنت وئیلې شوې دې \| او دا [لعنت] په ژبه د |
| دَاوُۥدَ وَعِيسَى ٱبۡنِ مَرۡيَمَۚ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَواْ وَّكَانُواْ |
| د داود \| او د عیسی خوی د مریم \| دا \| په دې وجه او شوا \| چې نافرمانی ئی کړې وه \| او وو هغوئ |
| داود ﷺ او عیسی ﷺ کړې شوې وو \| ځکه چې دوئ نافرمانی کړې وه \| .................او |
| يَعۡتَدُونَ كَانُواْ لَا يَتَنَاهَوۡنَ عَن مُّنكَرٖ فَعَلُوهُۚ |
| چې زیاتې ئی شروع کړې وو \| وو هغوئ \| چې نه به ئې منع کول یو بل \| د هغه بد کارنه \| چې کوو به هغوئ هغه |
| د حدنه وړاندې تیر شوی وو \| دوئ چې کوم بد کارونه کول \| د هغې نه په هیڅ شان نه منع کیدل |
| لَبِئۡسَ مَا كَانُواْ يَفۡعَلُونَ تَرَىٰ كَثِيرٗا مِّنۡهُمۡ يَتَوَلَّوۡنَ |
| ډیر بد وو \| هغه کار \| چې کوو به هغوئ \| ته وینې \| ډیر خلق \| د هغوئ نه \| چې دوستی کوی هغوئ |
| دوئ چه کوم کارونه کول هغه ډیر بد وو \| ته به په دوئ کښې ډیر کسان وینې چې هغه کسانو سره دوستی کوی |
| ٱلَّذِينَ كَفَرُواْۚ لَبِئۡسَ مَا قَدَّمَتۡ لَهُمۡ أَنفُسُهُمۡ |
| دهغه کسانو سره \| چې کافران دی \| یقینا چې ډیر بد دې \| هغه انجام \| چې مخکښې ولیږلو خان د پاره \| نفسونو دهغوئ |
| کوم چه کافران دی \| ..........دوئ چې کوم عمل خان د پاره مخکښې لیږلې دې هغه ډیر خراب دې |

١) روح المعانی تحت هٰذه الآية: ج ٥، ص ١٠

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ سَخِطَ | اللّٰهُ | عَلَيْهِمْ | وَفِي الْعَذَابِ هُمْ | خٰلِدُوْنَ۝ | وَلَوْ | كَانُوْا | |
| چې په غضب شو | الله | په هغوئ باندې | او په عذاب کښې به هغوئ | همیشه وي | او که چرې | وئ هغوئ | |
| الله ﷻ ورته په قهر شوې دې \| او دوئ به تول عمر په عذاب کښې وي \|..................او که چرې دوی | | | | | | | |
| يُؤْمِنُوْنَ | بِاللّٰهِ | وَالنَّبِيِّ | وَمَآ | أُنْزِلَ | إِلَيْهِ | | |
| چې ایمان ئې راوړې وې | په الله باندې | او په نبي باندې | او په هغه څيز | چې نازل شوې وو | هغه ته | | |
| په الله ﷻ او په رسول ﷺ او هغه کتاب چه په هغه باندې نازل شوې دې ایمان راوړې وې | | | | | | | |
| مَا اتَّخَذُوْ | هُمْ | أَوْلِيَآءَ | وَلٰكِنَّ | كَثِيْرًا | مِّنْهُمْ | فٰسِقُوْنَ۝ | |
| نو نه به وؤ نیولی دوی | کافرانو لره | دوستان | لیکن | ډیر خلق | دهغوئ نه | فاسقان دی | |
| نو کافرانو سره به ئې ملګرتیا نه کوله \| او په دوئ کښې زیات خلق نافرمان دی | | | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** (او دوی ته دا هم ووایه چه) اې اهل کتابو! په خپل دین کښې ناحقه غلو مه کوئ، او د هغه خلقو خواهشاتو پسې مه ځئ چه اول هم ګمراه شوي وو، نور خلق ئې هم ګمراه کړل، او د نيغې لارې نه واوړيدل. په بني اسراءيلو کښې چه کوم خلق کافران دي په هغوی باندې د داؤد او عيسٰی ابن مريم په ژبه باندې لعنت ليږلې شوي وو دا هرڅه دې وجې نه شوي وو چه دوی نافرماني کړې وه، او دوی د حد نه تيرشوي وو. هغوی چه په کومه ګناه کوله د هغې نه به ئې يوبل نه منع کول. حقيقت دا دې چه د هغوی عمل ډير ناکاره وو. ته په دوی کښې ډيرو لره وينې چه هغوی (بت پرست) کافرو لره دوستان جوړ کړي دي يقيناً دوی چه څه د خپل ځان نه وړاندې په خپل حق کښې ليږلي دي هغه ډير بد دی ځکه (چه ددې وجې نه) الله دوی نه ناراضه شوې دې او دوی به هميشه په عذاب کښې وي. که دې خلقو په الله او په نبي باندې او کوم کتاب چه په ده باندې نازل شوي دي په هغې ئې ايمان راوړې وې نو دې (بت پرستو) لره به ئې دوستان نه نيول ليکن (خبره دا ده چه) په دوی کښې اکثر داسې دي چه نافرمانه دی.

**خلاصه تفسير**

﴿قُلْ يٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ﴾ تاسو [دې نصرانيانو ته] او وائې چې ائې اهل کتابو ﴿لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ﴾ تاسو د خپل دين [معامله کښې] ناروا غلو [او زياتې] مه کوئی ﴿وَلَا تَتَّبِعُوْٓا أَهْوَآءَ قَوْمٍ﴾ او ددې [زياتی باب کښې] ددې خلقو خيالات [يعنې بې سنده خبرو] باندې پسې مه ځئ ﴿قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ﴾ چې [ددې وخت نه] وړاندې پخپله هم غلطئ کښې اخته شوی دی ﴿وَأَضَلُّوْا كَثِيْرًا﴾ او [خپل خان سره] نورو ډيرو لره ئې [تباه کړی دی] او په غلطئ باندې دی ﴿وَضَلُّوْا عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ﴾ او [دا غلطی په دې وجه نه ده شوې چې حق مفقود شوې وؤ او دد ې معلومات نشته دی بلکه] دا خلق اګر چې حق لار شته [بيا هم قصد سره] ددې نه لرې [او جدا] شوی وو [يعنی هر کله چې د دوئ غلطی د دلائلو نه ثابته شوه بيا ددوئ اتباع ولې نه پريږدی؟!] ﴿لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْۢ بَنِيْٓ إِسْرَآءِيْلَ﴾ بنی اسرائيلو کښی چه کوم خلق کافر وو په هغوی باندې [دالله ﷻ له طرفه سخت] لعنت کړې شوې وو [په زبور او انجيل کښې چه] ﴿عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ﴾ د حضرت داودو ؑ او حضرت عيسی ابن مريم په ژبه [شوې وو يعنی زبور او انجيل کښې په کافرانو

لعنت ليکلے شوي ووځنګه چه په قرآن پاك كښې هم ﴿ لعنة الله على الكافرين ﴾ شته.هر كله چه دا كتابونه په حضرت داود ﷺ اوپه حضرت عيسى ﷺ نازل شوى وو ځکه دا مضمون دهغوى په ژبه ښكاره شواو] ﴿ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴾ دا لعنت ددې وجې په اوشو چه دوئ يئ دحكم [عقيدې] مخالفت اوكړو [چه كفر دې] او [پدغه مخالفت كښې] دحد نه [ډير لرې] اووتل [يعنى كفر يئ هم سخت وو او دې سره اوږدهم وو چه تل دپاره يئ جارى اولرلو چنانچه] ﴿ كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ فَعَلُوْهُ ﴾ كوم خراب كار [يعنى كفر] چه هغوى [اختيار] كړې وو دهغې نه [بيا هم] نه آوړيدل [بلكه په هغې كلك وو نو ددوى دسخت او اوږد كفر په وجه پدوى لعنت اوشو] ﴿ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴾ واقعى ددوى [دا] كار [چه بيان كړې شو يعنى كفر اوبيا هغه هم سخت او اوږد] بيشكه بدوو [چه په هغې دا سزا مرتبه شوه].

﴿ تَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ﴾ تاسو ته پدې [يهودو] كښې ډير خلق اوګورئ چه [مشركانو] كافرانو سره دوستى كوى [چنانچه دمدينې ديهودو اود مشركانو د مكے ترمينځه په دې بنياد ښه روغه جوړه وه چه دواړه ډلے په كفر كښې يو تر بله ملګرى او دواړو مسلمانانو سره دښمنى لره] ﴿ لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ اَنْفُسُهُمْ ﴾ كوم كار چه دوى مخكښې ليږلے دے [سزا به يئ مومى يعنى كفرئے كړې دې چه سبب وو د دوستئ د كفارو او ددښمنئ د مومنانو] هغه بيشكه بد [ځكه] دې چې [ددې په سبب] ﴿ اَنْ سَخِطَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ﴾ الله ﷻ پدوى باندې [تل دپاره] ناراضه شو او [ددغې هميشه ناراضګئ نتيجه به دا وى چه] ﴿ وَفِى الْعَذَابِ هُمْ خٰلِدُوْنَ ﴾ دا خلق به په عذاب كښې هميشه پاتې كيږى ﴿ وَلَوْ كَانُوْا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالنَّبِيِّ ﴾ اوكه دے [يهوديانو] خلقو په الله ﷻ باندې ايمان لرلے [دكوم چه دوى دعوى كوى] ﴿ وَمَا اُنْزِلَ اِلَيْهِ ﴾ اوپه هغه كتاب [ئے ايمان لرلے] چه دهغوى [پيغمبر] ته ليږلے شوې وو [يعنى په تورات] ﴿ مَا اتَّخَذُوْهُمْ اَوْلِيَآءَ ﴾ نودوى [يعنى مشركان] به يئ دوستان نه جوړول ﴿ وَلٰكِنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴾ ليكن پدوى كښې زيات خلق دايمان د دائرے نه خارج دى [ځكه ئے كافرانو سره يو ځائې كيدل او دوستى شوه].

## معارف اومسائل

**دبنى اسرائيلو دكوږتيا بيان اوړخ:** ﴿ قُلْ يٰاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِىْ دِيْنِكُمْ ﴾ په تيروشوؤ آيتونو كښې دبنى اسرائيلو سركشئ اوزورظلم كولوداشان بيان ووچه دالله تعالى كومو رسولانو ﷺ چه دوئ دپاره دهميشه ژوند پيغام اوددنيا اوآخرت ښائيسته كولو دستور العمل راوړې وو ،دهغوئ دقدر عزت كولو اومرتبې پيژندلو په ځائې ئې ورسره ناروا سلوك اوكړو : ﴿ فَرِيْقًا كَذَّبُوْا وَفَرِيْقًا يَّقْتُلُوْنَ ﴾ [يعنى ځنې انبياء ﷺ ئې دروغژن اوبلل اوځنې ئې اووژل].

اوس په دې آيتونو كښې د دوئ د كوږتګ دوئيم اړخ داسې ښودلې شويدې چه دغه جاهلان خودسركشئ اونافرمانئ دې حدته رسيدلي ووچه دالله تعالى رسولانو ﷺ ته ئې دروغژن اوويل اوځنې ئې اووژل ، اوياد ګمراهئ دې حدته اورسيدل چه درسولانو ﷺ په تعظيم كولو كښې ئې دحدنه دومره تيريدل اوكړل چه هغوئ لره ئې خدايان اوبلل: ﴿ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ﴾ [يعنى هغه بنى اسرائيل كافرشو چاچه دا اوويل چه الله خوهم دعيسى ابن مريم نوم دې]،

دلته دا قول صرف د نصاراؤ بیان شویدې بل ځائې کښې غلو زیاتوالي راوستل او ګمراهي د یهودو بیان کړې شویده: ﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ عُزَيْرٌ ابْنُ اللَّهِ وَقَالَتِ النَّصَارَى الْمَسِيحُ ابْنُ اللَّهِ﴾ [یعنی یهودو دا او وئیل چه حضرت عزیر ﷺ د الله تعالی ځوئې دې او نصاراؤ او وئیل چه عیسی ابن مریم د الله تعالی ځوئې دې.

د [غُلو] معنی ده، د حد نه وتل، په دین کښې د [غُلو] مطلب دا دې چه عقیدې او عمل د پاره د دین د مقرر کړې حد بندئ نه تیریدل او کړې شي، مثلاً، د انبیاؤ ﷺ د تعظیم حد دا دې چه دوئ لره د الله تعالی په مخلوق کښې د ټولو نه غوره او ګنړلې شي، د دې حد نه په تیریدلو سره ورته خدائې یا د خدائې ځوئې وئیل اعتقادی [غُلو] ده،

**دبنی اسرآئیلو افراط اوتفریط:** د انبیاؤ او رسولانو په معامله کښې د بنی اسرآئیلو دوه قسم کارونه او عملونه چه خپل مینځ کښې سره الټه دی، داسې قسم افراط او تفریط دې چه جهالت او ناپوهئ سره لازم دی، چنانچه کله خو دهغوئ ﷺ په دروغژن بللو او دهغوئ په وژلو هم صرفه نه کوی او کله ئې خدائې یا د خدائې ځوئې ګرځوی. عرب وائی چه: [الجاهلُ إما مفرط او مفرط] [جاهل بنده کله هم په درمیانه حال باندې نه پاتې کیږی کله زیاتې راولی او کله کمې] د [افراط] معنی د حد نه ور تیریدل دی او د [تفریط] معنی د خپلو فرضو په اداکولو کښې کمی یا کوتاهی کولو ته وئیلې شی او کیدې شی چه دا افراط او تفریط د بنی اسرآئیلو د دوؤ مختلفو جماعتونو له اړخه په عمل کښې راغلې وی او داسې هم کیدې شی چه د یو جماعت دا دوه مختلف عملونه مختلفو انبیاؤ ﷺ سره شوی وی چه څنې دروغژن بولی او وژنی ئې او څنې د خدائې پشان ګرځوی.

په دې آیتونو کښې اهل کتاب ولره مخاطب کولو سره چه کوم هدایات دوئ ته او تر قیامته پورې راتلونکو نسلونو ته ورکړې شویدی، هغه په دین، مذهب او په هغې باندې عمل کولو کښې د یو بنیادی اصولو حیثیت لرې، چنانچه دې نه لرشان اخوا دیخوا کیدل انسان د ګمراهیو په غار کښې وردیکه کوی څکه ئې په تشریح باندې ځان پوهه کړئ.

**الله تعالی ته د رسیدو طریقه:** حقیقت دا دې چه د ټول جهان او د دې د ټولو موجوداتو خالق او مالک یو اځې یو الله جل شانه دې، ملک هم دهغه دې او حکم هم دهغه دې چه تابعداری ئې په هر انسان باندې لازم ده، لیکن دخاؤرې نه پیدا عاجز انسان په خپلو مادی تیرو او کمزورو کښې راګیر دې، دهغه ټول رسیدل هغه پاک ذات ته یا دهغه احکامو او هدایاتو معلومولو ته څنګه کیدې شی؟.

الله تعالی دې د پاره دوه واسطې مقررې کړې چه دهغې په ذریعه ورته د الله تعالی دخوښئ او ناخوښئ او دغه شان دهغه د اړخه ورته د کولو او نه کولو د څیزونو او کارونو علم کیدې شی، یو خپل کتابونه چه انسان د پاره د قانون او هدایت نامې حیثیت لرې، او بل دهغه خپل مخصوص او مقبول بندګان کوم چه الله تعالی انسانانو د پاره منتخب کړیدی، هغوئ لره ئې دخپلې خوښئ، ناخوښئ عملی نمونه او د خپل کتاب عملی شرح جوړ کړې رالیږلی دی، هغوئ ﷺ ته په دینی اصطلاح کښې رسول ﷺ یا نبی ﷺ وئیلې شی، ولې چه په تجربې سره ثابت شویدی چه هیڅ یو کتاب د انسان د اصلاح او تربیت د پاره کافی کیدې نشی اګرچه په هغې کښې هرڅه راجمع کړې شوی او په تفصیل سره ذکر کړې شوی وی. بلکه په فطری ډول د انسان تربیت کوونکې او اصلاح کوونکې یو اځې انسان کیدې شی په دې وجه الله تعالی د انسان د اصلاح او تربیت د پاره دوه لړئ اولړلې، کتاب الله او بل رجال الله چه په کښې انبیاء ﷺ او بیا دوئ

نائبان، علماء اومشائخ ټول داخل دي، د رجال الله ددې لړئ په باره کښې، دپخوازمانې راسې دنيا د افراط اوتفريط په غلطيانو کښې راګيره پاتې شويده، اوپه مذهبونو کښې غلطې فرقې پيدا کېدل ټول ددې پيداوار دي، کله دځدنه په زياتولو سره رجال پرستئ [انسان پرستئ] ته ئې نوبت اورسولې شو، اوکله دهغې هيڅ لحاظ نشو ساتلې اودا اووئيلې شوچه:
احسبناکتاب الله] [مونږلره يواځې کتاب الله کافي دې] يوارخ ته رسول ﷺ لره څه چه، پيرانولره هم عالم الغيب اودخدايئی دصفتونو مالکان اوګنړلې شوتردې چه پيرپرستئ بلکه قبر پرستئ ته نوبت اورسيدو، بل ارخ ته دالله تعالى رسول هم خالص يوريبار اوچتئ رسان اوګنړلې شو، په دې ذکر شوؤ آيتونو کښې د رسولانو ﷺ بې عزتی کوونکی هم کافران اوګرځولې شو اودځدنه زيات په پورته کولو او د خدايئی درجې ته په رسولوئې هم کافران اوګرځولې شو چنانچه دې مضمون ته:

﴿لَاتَغۡلُوۡافِیۡ دِیۡنِکُمۡ﴾ سره تمهيد کيښودل شو اوپه دې سره واضح کړې شوچه په اصل کښې دين دځوحدودو اوقيودونوم دې، په هغې کښې څنګه چه کوتاهی اوکمې کول جرم دې دغه شان تروړاندې تلل اوکمې پکښې راوستل هم جرم دې، څنګه چه درسولانو ﷺ اودهغوئ ﷺ د نائبانو خبره نه منل اوبيعزتی ئې کول لويه ګناه ده، دغه شان دوئ لره دالله تعالى د خاصو صفتونو مالک يادهغه برابرګنړل ئې هم دهغې نه زياته لويه ګناه ده،

**علمی تحقيق اوباريکی بيانول غلو نه ده:** ﴿لَاتَغۡلُوۡافِیۡ دِیۡنِکُمۡ﴾ سره د ﴿غَیۡرَالۡحَقِّ﴾ لفظ راوړل دمحققينو مفسرينو ﷺ په نزدتاکيددپاره استعمال شويدې، ولې چه په دين کښې [غلو] کول هميشه ناحقه وی، په دې کښې دسره دحق کيدواحتمال نه وی. ليکن علامه زمخشری[1] وغيره دلته د [غلو] دوه قسمونه ګرځولې دی يوقسم ناحق اوباطل [غلو] ده چه ممانعت ئې دلته راغلې دې او بل قسم حق اوجائز[غلو] ده، دهغې مثال ئې علمی تحقيق اوباريکی بيانول ګرځولی دی څنګه چه دعقائدوپه مسئلوکښې دمتکلمينوحضراتو اوپه فقهی مسئلوکښې دفقهاؤ ﷺ طريقه ده، دهغوئ په نزد داهم اګرچه [غلو] حسابيږی، مګرداجائزاوحق [غلو] ده. دجمهورو دتحقيق په بنا، داد سره د[غلو] په تعريف کښې داخله نه ده، دقرآن اوسنت په مسئلو، ژور نظر کول اوباريکی بيانول ترکومه پورې چه رسول الله ﷺ، صحابه کرامو ﷺ اوتابعينو ﷺ نه ثابت دی، هغه [غلو] نه ده، اوکه د[غلو] حدته اورسيده هغه په دې کښې هم بده ګنړلې شی،

**بنی اسرائيلوته دمعتدلې لارې هدايت:** ددغې آيت په آخر کښې موجوده بنی اسرائيلوته داسې خطاب اوفرمائيلې شو ﴿وَلَاتَتَّبِعُوۡۤااَهۡوَآءَقَوۡمٍ قَدۡضَلُّوۡامِنۡ قَبۡلُ وَاَضَلُّوۡاکَثِیۡرًاوَّضَلُّوۡاعَنۡ سَوَآءِالسَّبِیۡلِ﴾ [يعنی دهغې قوم د خيالانو تابعداری مه کوئ چه تاسونه وړاندې پخپله هم ګمراه شوی وواونورئې هم ګمراه کړی ووا وروسته د دوئ دګمراهئ حقيقت اوددې وجه په دې الفاظوسره بيان کړې شوه: ﴿وَضَلُّوۡاعَنۡ سَوَآءِالسَّبِیۡلِ﴾ [يعنی داخلق، دصراط مستقيم نه آوړيدلی وو، کومه چه دافراط اوتفريط په مينځ کښې معتدله لارده.

[1]) الکشاف تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٥٦ وتفسير البحر المحيط: ج ٢، ص ٣٦١

داشان په دې آيت کښې د [غلو] او د [افراط] [تفريط] د مهلکې غلطئ بيان هم راغلو او په درميانه لارې، صراطِ مستقيم باندې دقائم پاتې کيدو هم،

**دبنی اسرائیلو بدانجام:** په دوئيم آيت کښې دهغې بنی اسرائيلو بدانجام بيان اوشو کوم چه د دغې [افراط] او [تفريط] په گمراهئ کښې مبتلا وو چه په هغوئ د الله تعالى لعنت اوشو اول دحضرت داؤد ﷺ په ژبې سره چه دهغې په نتيجه کښې دهغوئ شکلونه وران شو او د خنزيرانو په شکلونو شو، بيا دحضرت عيسى ﷺ په ژبې سره د العنت په هغوئ مسلط شو، چه اثرئې په دنيا کښې داشو چه شکلونه يې دبيزوگانو [شادوگانو] شو[1]، او ځنو مفسرينو ﷺ فرمائيلي دي چه دلته دمقام دتقاضا مطابق صرف د دوو پيغمبرانو د ژبې نه په دوئ باندې دلعنت کيدو ذکر شويدې، ليکن په حقيقت کښې په دوئ باندې دلعنت کولو شروع دحضرت موسى ﷺ نه شويده او انتهائ په حضرت خاتم الانبياء ﷺ باندې اوشوه، دغه شان دځلورو پيغمبرانو ﷺ په ژبه په دوئ لعنت مسلط شو کوم چه د پيغمبرانو ﷺ مخالفت اوکړو، ياچاچه دوئ لره دحدنه په ورتيرولو سره په خدائی صفاتو کښې شريک اوگرځول،

په آخرى دوؤ آيتونو کښې کفارو سره دژورې دوستئ او موالات ممانعت او دهغې دتباه کوونکو نتيجو بيان اوشو، چه په کښې دې اړخ ته هم اشاره کيدې شی چه دبنی اسرائيلو داټول کوږتگ او گمراهی د دوئ دغلط قسم ماحول او کفارو سره درزه دکومی نه د دوستئ کولو نتيجه وه چه دوئ ئې دتباهئ کندې ته ورگوذار کړي وو.

| |
|---|
| لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا |
| خامخا به ته بيا مومې \| زيات سخت دخلقو نه \| په دشمنى کښې \| دهغه کسانو سره \| چې ايمان ئې راوړې دې |
| ته به مسلمانانو سره په دشمنئ کولو کښې د ټولونه زيات ............ |
| الْيَهُوْدَ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا ۚ وَلَتَجِدَنَّ اَقْرَبَهُمْ |
| يهوديان \| او [بل] هغه کسان چې مشرکان دي \| او خامخا به ته بيا مومې \| د ټولو نه زيات نزدې |
| يهوديان او مشرکان بيامومې \| ............ او مسلمانانو سره په دوستئ |
| مَّوَدَّةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا |
| په محبت کښې \| دهغه کسانو سره چې ايمان ئې راوړې دې \| هغه کسان \| چې وائی \| بيشکه مونږه |
| ساتلو کښې به د ټولو نه نزدې هغه کسان مومې چې ځان ته ............ |
| نَصٰرٰى ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيْسِيْنَ |
| نصارى يو \| دا \| په دې وجه \| چې بيشکه ځينى دهغوئ نه \| عبادت گزاره عالمان دی |
| نصارى وائی \| ځکه چې په دوئ کښې عالمان |

[1]) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۱۱

| وَرُهْبَانًا | وَّاَنَّهُمْ | لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ۝ |
|---|---|---|
| اودنیا پریښودونکي فقیران دي | اوبیشکه هغوئ | تکبر لوني اوغرورنهٔ کوي |
| اودرویشان موجود دي | ..... | اودوئ تکبر نهٔ کوي.... |

**آسان ترجمه قرآن:** ته به دا خبره ضرور محسوسوې چه د مسلمانانو سره دټولونه سخت دشمنئ ساتلو والا یو خو یهود دي او دویم هغه قسم خلق دي چه (ښکاره) شرك كوي. او ته به دا خبره هم محسوسوې چه (غیر مسلمو کښې) مسلمانانو سره په دوستئ کښې نزدې هغه خلق دي چه هغه خپل ځان ته عیسایان وائي ددې وجه دا ده چه دوی کښې ډیر علماء او ډیر خدائي خلق دي، دا وجه هم ده چه دوی تکبر نه کوي.

## خلاصه تفسیر

[په غیرو مومنانو کښې] ﴿لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الْيَهُوْدَ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا﴾ دټولو خلقو نه زیات مسلمانانوسره دښمني لرونکی به تاسو یهودو اودغه مشرکانو لره به مومئ ﴿وَلَتَجِدَنَّ اَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰى﴾او په دغه [غیرمومنانو خلقو] کښې به مسلمانانو سره په دوستئ لرلو کښې زیات نزدې [په نسبت دنورو] هغه خلق بیا مومئ چه ځان ته نصرانیان وائی [دزیات نزدې مطلب دادې چه دوستان خو دوی هم نه دی مگر د نورو کافرو په نسبت غنیمت دی] ﴿ذٰلِكَ بِاَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيْسِيْنَ وَرُهْبَانًا﴾دا [په دوستئ کښې زیات نزدې کیدل اوپه دښمنئ کښې کمیدل] په دې سبب دی چه په دوی [نصرانیانو] کښې ډیر څه علم دوست عالمان دی او ډیر دنیاپریښودونکی درویشان دی [اوکله چه په یو قوم کښې دغسې خلق ډیروی نوعوامو کښې یئ هم دحق سره زیات عناد نه پاتې کیږی اګر چه خاصان اوعام خلق ئې حق لرل قبول نکړی] ﴿وَّاَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ۝﴾اوپه دې سبب سره دی چه دا [نصرانیان] خلق متکبران نه دی [دقسیسینو اود رهبانو خلقو نه زر اثر قبلوی اودغه شان دتواضع او خاکسارئ خصوصیت دادې چه دحق په مخکښې نرمیږی څکه دوی زیاته دښمنی نه کوی نو قسیسین او رهبان یعنی عالمان او مشائخو وجود اشاره وه.علت فاعلی طرف ته اوعدم استکبار یعنی تکبر نه کول قابلیت طرف ته اشاره ده په خلاف دیهودو اومشرکانو چه دنیا سره محبت لرونکی اومتکبران دی اویهودو کښې هم اګر چه څه ناڅه حقانی عالمان وو چه مسلمانان شوی وو لیکن ددوی دکموالی په وجه ئې عوامو کښې اثر نه رسیدلو.لهذا په دوی کښې عناد دې چې دسختې دښمنئ کولو سبب جوړیږی په دې وجه یهودیانو کښې خو لږ مسلمانان شو او مشرکانو نه چه عناد اووتلو نومومن کیدل ئې شروع شو].

## معارف اومسائل

**دغې اهل کتابوحق پرستی** په دې آیتونو کښې مسلمانانوسره ددښمنئ یادوستئ په پیمانه دهغه اهل کتابوذکرکړې شویدې چه دخپلې حق پرستئ اوخداپرستئ په وجه ئې مسلمانانوسره بغض اودښمنی نه لرله مګرداسې خلق په یهودوکښې ډیرکم،دنیشت برابروو لکه حضرت عبدالله بن سلام وغیره،د دوئ په نسبت،نصاراؤکښې ددغسې خلقوشمیرډیر زیات وو، خصوصادرسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کښې دحبشې د ملک دبادشاه نجاشی او ددغه ځائې په حاکمانو اوعوامو کښې ددغسې خلقو شمیر زیات وو اوپه دې وجه هر کله چه د مکې مکرمې

مسلمانان د قریشو د ظلمونو نه تنګ راغلل نو رسول الله ﷺ هغوئ ته د حبشې اړخ ته د هجرت کولو مشوره ورکړه او وې فرمائیل چه ما اورېدلی دی چه د حبشې بادشاه نه خو پخپله ظلم کوی او نه په بل چا باندې ظلم کولو ته څوک پرېږدی، لهذا مسلمانان دې څه زمانې د پاره هلته لاړشی([1]).

په دغه مشوره ئې عمل اوکړو او په رومبی ځل یولس حضرات حبشې ته لاړل چه په کښې حضرت عثمان رضی الله عنه او د هغوئ رضی الله عنها بی بی رقیه د رسول الله ﷺ لوربی بی شامل وو، وروستو د حضرت جعفر بن ابی طالب رضی الله عنه په مشرئ کښې د مسلمانانو یو لویه قافله چه د زنانو نه علاوه [۸۲] دوه اتیا کسان نارینه پکښې وو، حبشې ته لاړه، د حبشې بادشاه او د هغه خانې اوسېدونکو د هغوئ شریفانه استقبال اوکړو او دا خلق په امن او تسلئ سره هلته پاتې کېدل، هر کله چه د مکې قریش د غصې نه ډک وو نو د دغې مسلمانانو خلقو په دغه شان اوسېدل ئې هلته نشو زغملی، یو وفد ئې سره د ډیرو تحفو او ډالوورا و لیږلو او هغه نه ئې دا خواست اوکړو چه دغه مسلمانان دې د خپل ملک نه اوباسی، خو هر کله چه د حبشې بادشاه د حالاتو تحقیق اوکړو او حضرت جعفر بن ابی طالب رضی الله عنه او د هغوئ د ملګرو نه ئې د اسلام او د پیغمبر اسلام حالات معلوم کړل او د حضرت عیسی علیه السلام او د انجیل د پیشنګوئی سره ئې مطابق بیا موندل په کومه کښې چه د حضرت خاتم الانبیاء ﷺ د پیغمبر کیدو ذکر او د هغوئ ﷺ د تعلیماتو مختصره خاکه وه د هغوئ ﷺ او د هغوئ ﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم شکل شباهت وغیره بیان شوې وو، د دې اثر ئې قبول کړو او د حبشې بادشاه د قریشو د وفد تحفې ډالئ واپس کړې او صفا جواب ئې په دې شان ورکړو چه زه دا سې خلقو له د خپل ملک نه د اوښکلو حکم نه شم ورکولې،

**د حضرت جعفر بن ابی طالب د تقریر د حبشې په بادشاه باندې اثر کول:** حضرت جعفر د نجاشی په دربار کښې د اسلام او د اسلامی تعلیماتو یوه لنډه مګر تول اړخیزه خاکه وړاندې کړې وه او بیا دغه حضرات چه هلته پاتې کېدل هغې سره یو اځې د حبشې د بادشاه په زړه کښې نه بلکه د هغه ځائې د حاکمانو او عوامو تولو په زړونو کښې د اسلام او پیغمبر ﷺ رشتینې محبت او قدر پیدا کړې وو، نتیجه ئې دا شوه چه هر کله رسول الله ﷺ مدینې منورې ته هجرت اوفرمائیلو او هلته په تسلئ سره اوسېدل ئې معلوم شو نو حبشې نه دغه مهاجرینو هم مدینې منورې ته د تلو قصد ښکاره کړو، نجاشی هغوئ سره د خپل مذهب، [نصارا ؤ] د لویو لویو علماؤ او مشائخو یو وفد هم د رسول الله ﷺ په خدمت کښې اولیږلو چه ټول او یا کسان جوړېدل دوه شپیته کسان پکښې د حبشې و او اته پکښې د شام وو.

**د حبشې د بادشاه د رالیږلی وفد حاضرېدل په دربار د رسالت ﷺ کښې:** دغه وفد د رسول الله ﷺ په خدمت کښې چه حاضر شو نو د درویشانو او راهبانو جامې ئې اغوستې وې، رسول الله ﷺ ورته چه سورت یسین واورولو د وفد خلق پرې پوهېدل او د سترګو نه ئې اوښکې جاری وې ټولو وئیل چه

[1]) دلائل النبوة للبیهقی رقم الحدیث: ۵۲۲، وتفسیر البغوی، سورة المائده ج ۳، ص ۸۵

دا کلام خوبیخی هم هغه شان دي کوم چه په حضرت عیسی ﷺ باندل نازل شوي وو، اوټول مسلمانان شو،

چه دا وفد خپل ملک حبشي ته لاړونو نجاشي هم دخپل اسلام راؤړولو اعلان اوکړو، خپل ځوئي ئي یو وفد سره کړو خپل خط ئي ورکړو او مدیني منورې ته ئي روان کړو، بدقسمتئ نه دغه کشتئ په دریاب کښې غرقه شوه اوپکښې ټول وفد هم غرق شو، غرض داچه دحبشې بادشاه، حاکمانو او عوامو اسلام اومسلمانانوسره دشریفانو په شان دانصاف سلوک اوکړو او بیاپخپله هم مسلمانان شو[1].

جمهورمفسرین ﷺ فرمائي چه دغه ذکرشوی آیتونه ددغې حضراتو په باره کښې نازل شوي دي: ﴿وَلَتَجِدَنَّ أَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ﴾ اوپه ورپسې آیتونو کښې دابیان شویدی چه دوئ دالله تعالی دویرې نه ژړیدل اوحق ئي قبول کړې وو، په دې باندې هم دجمهورومفسرینو ﷺ اتفاق دې چه اګرکه داآیتونه دنجاشي اودهغه دلیږلی وفد په باره کښې نازل شویدی لیکن دالفاظود عموم له کبله ددې حکم هغه ټولو نصاراؤ له عام اوشامل دې چه داهل حبشه پشان حق پرست اوانصاف پسند وی، یعنی اسلام نه وړاندې د انجیل تابعدار وو او د اسلام په راتلوسره داسلام تابع شول،

یهود هم اګرچه دغسې څوکسان موجود وو چه دحضرت موسی ﷺ په زمانه کښې په تورات عمل کوونکی وودااسلام په راتلوباندې هغوئ داسلام تابع شولیکن شمیرئې دومره کم ووچه دامتونو اوقومونو دذکرکولو په وخت کښې هغوئ نشی ذکرکولې، د باقی یهودوحال بیخی بیکاره ووچه دمسلمانانوپه خپووهلو اودښمنئ کښې دټولونه وړاندې وو. لهذاآیت په رومبی سرکښې ئي داسې اوفرمائیل: ﴿لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ﴾ [یعنی مسلمانانو سره په دښمنئ کولو کښې یهود دټولونه زیات سخت دی]،

خلاصه دکلام داشوه چه په دې آیت کښې دنصاراؤدیوې خاصې ډلې تعریف بیان کړې شویدې چه خدائې نه ویریدونکی اوحق پرست وو، په دوئ کښې نجاشي اودهغه امدادیان او ملګری هم داخل دی اوهغه نصاراهم پکښې داخل دی چه داصفتونه ئي لرل اویا په آئنده زمانه کښې به دغسې وی، لیکن دامعنی ئي هیڅکله نه خودې آیتونونه راؤځی اونه کیدې شی چه نصارا، که هرڅومره ګمراه شی اوپه اسلام دښمنئ کښې هرڅومره سخت قدم پورته کړی نو په هرحال کښې دې بیاهم د مسلمانانو دوستان ګڼرلې شی اومسلمانان دې هم ورته د دوستئ لاس وروړاندې کوی ولې چه دا ښکاره غلطه او د واقعاتونه بیخی خلاف خبره ده چنانچه امام ابوبکرجصاص ﷫ په احکام القرآن کښې فرمائیلی دی چه دځنې جاهلانو، دا خیال لرل چه په

---

[1] تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۵۸ وتفسیر الخازن: ج ۲، ص ۲۲۱

دې آيتونو كښې مطلقا د نصاراؤ تعريف دې او هغوئ مطلقا د يهودو نه بهتر دي نو دا بيخي جهالت او ناپوهي ده، ولې چه كه په عام ډول د دواړو ډلو د مذهبي عقائدو و يو بل سره نسبت اوكړې شي نو نصارى ترزيات مشركان معلوميږي[1] او كه مسلمانانو سره په معاملاتو كښې ئې اندازه واغستې شي نو دنن صبا نصاراؤ هم په اسلام دښمنئ كښې د يهودو نه څه كمه برخه نه ده اغستې، البته دا صحيح ده چه په نصاراؤ كښې داسې خلق ډير ګڼ تير شويدي كوم چه خداترس اوحق پرست وو، د هغې په نتيجه كښې د اسلام راوړلو توفيق هغوئ ته اوشو، او دا آيتونه د دغې د دواړو ډلو ترمينځه د بيلتون څرګندولو د پاره نازل شويدي چنانچه د دې آيت په آخر كښې قرآن كريم دې حقيقت له په دې الفاظو كښې واضح كړيدې: ﴿ذٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ﴾ [يعنى د كومو نصاراؤ تعريف چه په دې آيتونو كښې كړې شويدې، د هغې وجه دا ده چه په دوئ كښې علماء خداترس او دنيا پريښودونكى حضرات دى، په دوئ كښې داسې تكبر نشته چه د نورو خلقو په خبرو باندې غور كولو ته نه تياريږى، چه يهودو سره ئې نسبت اوكتلې شو نو د هغوئ داسې حالات نه وو، په هغوئ كښې خداترسى اوحق پرستې نه وه، د هغوئ علماؤ د دنيا پريښودو په ځائې خپل علم له د روزګار ذريعه جوړه كړې وه او په طلب د دنيا كښې داسې مست شوى وو چه د حق او ناحق او د حلالو او حرامو ترمينځه ئې هيڅ فرق نه كولو.

**دقوم اوملت اصلى روح حق پرست علماء اومشائخ دى:** د دې آيت نه يوه ډيره ضرورى خبره دا هم معلومه شوه چه د قوم اوملت اصلى روح حق پرست، خداترس علماء او مشائخ دى، د دوئ وجود سره ټول قوم ژوندې وى تر څو چه يو قوم كښې داسې علماء او مشائخ [پيران، بزرګان] موجود وى چه دنيوى خواهشاتو پسې نه ځى، او د خدائې نه ويريدونكى وى نو د غه قوم به د خير او بركت نه نه بې نصيبه كيږى.

[الحمد لله ! شپږمه پاره ختمه شوه]

---

[1] أحكام القرآن للجصاص: ج٦، ص٩٩ سورة المائدة۔